# الدر المنضود

## فی حل

# سنن أبي داؤد

**افادات:-** حضرت مولانا محمد عاقل صیب

صدر مدرّس مظاهر العلوم سهارنپور (هند)

**مترجمين:**

[ رفقاء ] دار التصنيف والتحقيق

**زير نگرانی**

مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس

**پښتو..............................پنځم جلد**

**خصوصیات**

① د کتاب په اول کښې د اصول حدیث مفیده مقدمه.
② د بذل المجهود شرح أبي داود عربي شرحې خلاصه او نچوړ
③ د متن ټولو احادیث ته اعراب ورکول
④ د هر کتاب په اول کښې هغې سره متعلقه ضروري مباحث.
⑤ د هر حدیث تخریج د مصدر، کتاب او رقم په حوالې سره.
⑥ د مشکلو لغاتو حل.
⑦ په فقهي مباحثو کښې د مذاهبو بیان.
⑧ د فریق مخالف دلائل
⑨ د فریق مخالف د دلائلو ځخه جوابونه.
⑩ د مذهب حنفي دلائل او وجوه ترجیح

**خورونکی**

**فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور**

د کتاب نوم: الدر المنضود فی حل سنن أبی داؤد

مؤلف: حضرت مولانا محمّد عاقل صاحب دامت برکاتہم

زیرنګرانی:- مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس

خورونکی: فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور


### دملاویدو پتې

- مکتبه فخر الدین رازی هرات [نمائنده فیصل کتبخانه درهرات]
- جدید اسلامی کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانیوال کتب خانه جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- موئے مبارک کتب خانه غزنی
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- واحدی کتب خانه خوست
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوٰی کتب خانه جلال آباد
- نعمت کتب خانه کابل
- شریف الله کتب خانه کابل
- حقانیه کتب خانه ګردیز
- مسلم کتب خانه جلال آباد
- مکتبه نعمانیه غزنی
- ګودر کتب خانه جلال آباد
- مسلم کتب خانه خوست
- حاجی سردار کتب خانه کابل
- مکتبه رشیدیه کابل


خپرونکې

# فیصل کتب خانه

مدینه تاور محله جنګی پیښور قصه خوانئ پیښور

موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست ابواب جلد سوم

.........

# بَابُ الصَّدَاقِ

## د مهر د احکامو بيان

په صداق کښې دوه لغتونه دی بفتح الصاد لکه سحاب، او بالکسر لکه کتاب او د دې جمع صدق بضمتين راځی، په دې کښې نور هم لغات دی لکه صدقه چه د هغې جمع صدقات راځی ففی التنزيل : واتوا النساء صدقاتهن... او په يو لغت کښې په دې کښې صدقه دې چه د هغې جمع صدقات راځی دې، يعنی مهر، د مهر وجه تسميه د صداق سره علماء کرامو دا ليکلې ده چه هغه په صدق رغبت فی النکاح باندې دلالت کوی چه دا سړې واقعی د نکاح طالب دې پس د دې دپاره د مال د انفاق دپاره هم تيار دې.

د مهر مشروعيت د کتاب الله، حديث او اجماع نه ثابت دې، قال الله تعالى ﴿واحل لكم ما وراء ذلكم ان تبتغوا باموالكم ﴾هم دغه شان ﴿واتوا النساء صدقاتهن نحلة﴾ او احاديث خو بيشماره دی ﴿التمس ولو خاتما من حديد ﴾وغيره وغيره

### د مهر شرعی حيثيت :

بيا ځان پوهه کړئ چه د مهر په نوعيت کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې چه ايا هغه د نکاح د صحت دپاره شرط دې يا نه؟ د احنافو په نزد دلته شرط صحت نه دې بلکه د هغوی په نزد مهر د احکاماتو نکاح نه دې نو په هدايه کښې دی ﴿ويصح النكاح وان لم يسم فيه مهرا، وكذا اذا تزوجها بشرط ان لا مهر لها ﴾، هم دغه شان په هدايه کښې ئې په دې کښې د امام مالک اختلاف نقل کړې دې چه د هغه په نزد د نفی په صورت کښې نکاح صحيح نه ده، زه وايم ځکه چه د مالکيانو په نزد مهر د ارکان نکاح نه دې کما قال الدروير : اركان النكاح اربعة ولی، وصداق ومحل وصيغة. هم په دې وجه باندې د هغوی په نزد د نفی صداق په صورت کښې نکاح باطل ده، اوس دا چه ذکر صداق هم د هغوی په نزد ضروری دې يا نه پس په دې کښې د هغوی په نزد تفصيل دې (ففی الاوجز ۴/۲۴۶ : قال الدسوقی الاقسام فيه اربعة الاول ما ينعقد به النكاح مطلقا سوا سمی صداق او لا. وهو انكحت وزوجت. والثانی ما ينعقد به ان سمی صداقا والا فلا وهو وهبت فقط الى اخر ما قال) او په کتب شافعيه کښې دی ﴿سن ذكره فی العقد وكره اخلاؤه عنه كذا فی حاشية الجمل على المنهج ﴾او اوس دا چه د شوافعو په نزد د مهر د نفی کولو په صورت کښې نکاح صحيح ده يا نه، د دې تصريح خو ماته د شوافعو په کتابونو کښې ملاؤ نه شوه خو د قياس تقاضه دا ده چه د نفی په صورت کښې دې نکاح صحيح نه وی ځکه چه نکاح د هغوی په نزد عقد معاوضه دې د بيع په شان او ظاهره ده چه د ثمن د نفی کولو په صورت کښې بيع باطل ده. فكذا النكاح والله تعالى اعلم

[۲۱۰۵](¹)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْ صَدَاقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: "ثِنْتَا

¹): صحيح مسلم/النكاح ۱۳ (۱٤۲٦)، سنن النسائي/النكاح ٦٦ (۳۳٤۹)، سنن ابن ماجه/النكاح ۱۷ (۱۸۸٦)، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۳۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٩٤)، سنن الدارمي/النكاح ۱۸ (۲۲٤۵) (صحيح)

عَشْرَةَ أُوقِيَةً وَنَشٌّ"، فَقُلْتُ: وَمَا نَشٌّ؟ قَالَتْ: نِصْفُ أُوقِيَةٍ.

**ترجمه:** حضرت ابوسلمه نه روایت دې فرمائی چه دام المومنین عائشه رضی الله عنها نه مې تپوس اوکړو دنبی علیه السلام دمهر دمقدار متعلق چه څومره ئې مقرر کړې وو؟ ام المومنین عائشې رضی الله عنها اوفرمائیل دولس اوقیه اوتی اویو نش وو ماتپوس اوکړو چه نش څه شې وی؟ نو ام المومنین اوفرمائیل نیمه. اوقیه.

**تشریح:** ﴿ عن ابی سلمة قال سالت عائشة رضی الله تعالی عنها عن صداق رسول الله ﷺ فقالت ثنتا عشرة اوقیة ونش فقلت وما نش قالت نصف اوقیة ﴾: یو اوقیه د څلویښتو درهمو وی په دې حساب سره د دولسو اوقیو څلور سوه او اتیه درهم شو او نش یعنی نصف اوقیه شل درهم شو دا مجموعه پنځه سوه درهم شو، خو د دې حکم نه ام حبیبه بنت ابی سفیان رضی الله عنها مستثنی ده چه د هغه مهر څلور سوه دیناره یعنی څلور زره درهم وو لکه چه په راروان روایت کښې به راشي، والحدیث اخرجه مسلم والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۱۰۶]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي الْعَجْفَاءِ السُّلَمِيِّ، قَالَ: خَطَبَنَا عُمَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ، فَقَالَ: "أَلَا لَا تُغَالُوا بِصُدُقِ النِّسَاءِ، فَإِنَّهَا لَوْ كَانَتْ مَكْرُمَةً فِي الدُّنْيَا أَوْ تَقْوَى عِنْدَ اللَّهِ لَكَانَ أَوْلَاكُمْ بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مَا أَصْدَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةً مِنْ نِسَائِهِ، وَلَا أُصْدِقَتِ امْرَأَةٌ مِنْ بَنَاتِهِ أَكْثَرَ مِنْ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ أُوقِيَّةً".

**ترجمه:** دحضرت ابوجعفاء السلمی رضی الله عنه نه روایت دې چه عمر رضی الله عنه په خطبه کښې فرمائیلی وو: خبردار اوسئ دښځو په مهرونو کښې زیاتوالې مه کوئ ځکه که چرې دمهر زیاتوالی په دنیا کښې دعزت علامه وې یا د الله تعالی په نزد دتقوی سبب وې نو په تاسو کښې به نبی علیه السلام ددې زیات حقدار وو (یعنی دهغه به زیات راه مهر مقرر شوې وې) نبی علیه السلام دخپلولونړو او بیبیانو دپاره ددولس اوقیو نه زیات مهر نه وو مقرر کړې.

## توضیح الحدیث

سیدنا عمر رضی الله عنه فرمائی چه د زنانو مهرونه ډیر مه زیاتوئ ځکه چه د مهر زیادت که څه د دنیوی عزت یا تقوی څیز وې نو بیا د دې زیات مستحق رسول الله ﷺ وو حال دا چه رسول الله ﷺ خپلې یوې بی بی ته هم د دولس اوقیه نه زیات مهر نه دې ورکړې او هم دغه شان د هغه په لونړو کښې هم چاته د دې مقدار نه زیات مهر نه دې ورکړې شوې.

### د مهر فاطمی مقدار:

د دې نه معلومه شوه چه د ازواج مطهرات او مهر فاطمی برابر وو یعنی پنځه سوه درهم، زمونږ په عرف کښې دې مهر ته مهر فاطمی وئیلې شی چه د هغې په مقدار کښې د مفتیان کرام څه قدر اختلاف دې ([2]) په دې کښې مونږ د حضرت مفتی شفیع صاحب رحمه الله تحقیق

---

[1]): صحیح مسلم/النکاح ۱۳ (۱۴۲۶)، سنن النسائی/النکاح ۶۶ (۳۳۴۹)، سنن ابن ماجه/النکاح ۱۷ (۱۸۸۶)، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۳۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۹۴/۶)، سنن الدارمی/النکاح ۱۸ (۲۲۴۵) (صحیح)

[2]) پس په عزیز الفتاوی کښې دی چه د ازواج مطهرات او لوریانو مکرمات مهر دولس نیم اوقیه په حدیث شریف کښې راغلې دې... پس پنځه سوه درهم د انګریزی سکې نه ماله ۱۳۰ وی،......۶۰

مونږ دلته نقل کوو ، مفتی صاحب لیکی چه د زنانه د مهر کم از کم مقدار د احنافو په نزد لس درهم دي چه هغه دوه تولې او اووه نیم ماشه چاندی ده او د مهر فاطمی مقدار منقول پنځه سوه درهم دي د هغې مقدار په موجوده روپئ سره (چه د روپئ وزن یولس نیم ماشه دې) یو سل یودیرش روپئ او پنځلس انې دريې نیم پائی (ډک) چاندی شوه او د تولې په حساب سره چه (توله دولس ماشه وی) یو سل یو دیرش توله او دري ماشه سپین زر شو. اهـ لهذا که مهر فاطمی مقرر کړی نو د سپینو زرو مذکوره مقدار دې مقرر کړی او د هغه سپینو زرو د مقدار قیمت په هغه وخت معتبر وی چه کله مهر ادا کولې شی ()

والحديث اخرجه ايضا باقى الاربعة والبيهقى والدارمى والحاكم وقال حديث صحيح الاسناد قاله فى المنهل وقال الشيخ احمد شاكر فى حاشيته على مختصر المنذرى، الحديث رواه احمد فى المسند مطولا ومختصرا الخ.

[۲۱۰۷]() حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، أَنَّهَا كَانَتْ تَحْتَ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ جَحْشٍ فَمَاتَ بِأَرْضِ الْحَبَشَةِ فَزَوَّجَهَا النَّجَاشِيُّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمْهَرَهَا عَنْهُ أَرْبَعَةَ آلَافٍ، وَبَعَثَ بِهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ شُرَحْبِيلَ ابْنِ حَسَنَةَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: حَسَنَةُ هِيَ أُمُّهُ.

**ترجمه**: دحضرت ام حبیبه رضی الله عنها نه روایت دي چې هغه دعبيد الله بن جحش په نکاح کښې وه اوهغه دحبشى په خاوره کښې مرشونو نجاشی بادشاه نبی علیه السلام ته په نکاح ورکړه اوددی مهر ئې څلور زره درهمه مقرر کړل اونبی علیه السلام ته ئې ولیږل په لاس دشرحبیل بن حسنه، ابوداود وائی حسنه دشرحبیل موروه.

[۲۱۰۸]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، "أَنَّ النَّجَاشِيَّ زَوَّجَ أُمَّ حَبِيبَةَ بِنْتَ أَبِي سُفْيَانَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى صَدَاقِ أَرْبَعَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ، وَكَتَبَ بِذَلِكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبِلَ".

**ترجمه**: دحضرت یونس دزهری رحمه الله نه روایت کوی فرمائی چه نجاشی بادشاه ام حبیبه بنت ابی سفیان نبی علیه السلام ته : دڅلور زره درهمو مهر په مقابل کښې په نکاح ورکړه اودا مضمون ئې نبی علیه السلام ته تحریراً اولیږلو اونبی علیه السلام دا منظور کړو.

←.... او په امداد المفتیین کښې ٥٦٤ کښې داسې دي، او چه کله دینار او درهم وزن په حساب د توله او ماشه معلوم شو نو د سرو او سپینو زرو وقتی نرخ معلوملو سره سکه رائج الوقت د هغې قیمت راویستل هیڅ مشکل نه شو مثلاً د مهر فاطمی مقدار پنځه سوه درهم دې چه د هغې وزن رائج الوقت یو سل پنځه څلویښت تولې او لس ماشه شو)

[1]) منقول از حاشیة بهشتی زیور اختری حصه ۴ ص ۱۲)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٨٥٥) (صحيح)

[3]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٥٨٥٥، ١٩٤٠٠) (ضعيف)

## بَابُ قِلَّةِ الْمَهْرِ

### د مهر د کم مقدار بیان

اکثر د مهر څه مقدار متعین نه دې البته د مهر په اقل مقدار کښې اختلاف دې.

### اقل مهر عند الائمه :

د احنافو په نزد اقل کم مهر لس درهم دي (دوه تولې او اووه نیمې ماشې سپین زر) او د امام مالک رحمه الله په نزد ربع دینار او د امام شافعي او امام احمد په نزد مطلق مال متقوم یعنی هر هغه څیز چه د هغې په بیع کښې ثمن جوړیدل صحیح وی، د احنافو دلیل د سیدنا جابر رضی الله عنه حدیث مرفوع دې ﴿لا مهر اقل من عشرة دراهم﴾ رواه الدارقطنی لکن فیه مبشر بن عبید وهو متروک قاله الدارقطنی. والجواب : قال العینی القاضی رواه البیهقی من طرق فانجبر ضعفه.

[۲۱۰۹] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، وَحُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ وَعَلَيْهِ رَدْعُ زَعْفَرَانٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَهْيَمْ"، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً، قَالَ: "مَا أَصْدَقْتَهَا؟" قَالَ: وَزْنَ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ، قَالَ: "أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: النَّوَاةُ خَمْسَةُ دَرَاهِمَ، وَالنَّشُّ عِشْرُونَ، وَالأُوقِيَّةُ أَرْبَعُونَ.

**ترجمه:** د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام عبدالرحمن بن عوف په داسې حال کښې ولیدو چه به زعفران ورباندې لګیدلی وو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل داڅه دی؟ عبدالرحمن عرض اوکړوای دالله رسوله زما دیوې زنانه سره نکاح شوې ده نبی علیه السلام ترې تپوس اوکړو چه مهر ئې څومره دې؟ عبدالرحمن اووئیل دانواة په مقدارسره زر نبی علیه السلام ترې تپوس اوکړو ولیمه وکړه اګرکه په یو بیزه وی (بعضوئیلی دی چه نواة دپنځودرهموپه مقداروي).

### توضیح الحدیث

رسول الله صلی الله علیه وسلم یوه ورځ سیدنا عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه اولیدو په داسې حال کښې چه په هغه باندې د زعفران رنګ لګیدلې وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه نه تپوس اوکړو چه دا څه دی؟ (او بعض د مهیم مطلب لیکلې دې ما شانک؟ چه په تا څه شوې دی؟ هغه عرض اوکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم خبره دا ده چه ما واده کړې دې، رسول الله صلی الله علیه وسلم تپوس اوکړو ایا هغې ته دې مهر ورکړې دې؟ هغه عرض اوکړو ﴿وزن نواة من ذهب﴾ مې ورکړیدې. (۲)

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۳۹)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ۱ (۲۰۴۹)، مناقب الأنصار ۳ (۳۷۸۱)، ۵۰ (۳۹۳۷)، النكاح ۷ (۵۰۷۲)، ۴۹ (۵۱۳۸)، ۵۴ (۵۱۵۳)، ۵۶ (۵۱۵۵)، ۶۸ (۵۱۶۷)، الأدب ۶۷ (۶۰۸۲)، الدعوات ۵۳ (۶۳۸۳)، صحيح مسلم/النكاح ۱۳ (۱۴۷۲)، سنن الترمذي/النكاح ۱۰ (۱۰۹۴) البر والصلة ۲۲ (۱۹۳۳)، سنن النسائي/النكاح ۷۵ (۳۳۷۵)، سنن ابن ماجه/النكاح ۲۴ (۱۹۰۷)، موطا امام مالك/النكاح ۲۱(۴۷)، مسند احمد (۱۶۵/۳، ۱۹۰، ۲۰۵)، سنن الدارمي/الأطعمة ۲۸ (۲۱۰۸)، النكاح ۲۲ (۲۲۵۰) (صحيح)

(۲) قال في النهاية : النواة أسم لخمسة دراهم كما قيل للاربعين اوقية والعشرين نش وقيل اراد قدر نواة من ذهب كان قيمتها خمسة دراهم ولم يكن ثم ذهب وانكره ابو عبيد، قال الازهري لفظ الحديث يدل علي انه تزوج المراءة علي ذهب قيمة خمسة دراهم، الا تراه قال نواة من ذهب، ولست ادري لم انكره ابو عبيد اهـ والنواة في الاصل عجمة التمرة. (حاشية السيوطي علي النسائي).

په دې حدیث کښې دوه مسئلې دی یوه د ترجمة الباب والا او دویمه د کتاب اللباس والا.

**لبس مزعفر للرجل:**

یعنی لبس مزعفر چه کومه کپړه په زعفرانو باندې رنګ کړې شوې وی یا پرې د زعفران والا خوشبوئی لګیدلې وی، د ائمه ثلاث په نزد د سړی دپاره د دې اچول مکروه تحریمی دی. او د امام مالک مسلک دا دې چه د دې قسم کپړې استعمال خو جائز دې خو په بدن کښې د دې زعفران یا زعفرانی رنګ استعمال جائز نه دې، لهذا په ظاهره کښې داحدیث د جمهور خلاف او د امام مالک موافق دې، دجمهورو استدلال د هغه احادیث صحیحه نه دې چه په هغې کښې په لبس زعفران باندې نهی راغلې ده،

**(د حدیث الباب نه جوابات)**

او د قصه عبد الرحمن علماء کرامو مختلف توجیهات کړې دی،اول جواب. قیل ان ذلک کان قبل النهی چه د هغې تائید د دې نه کیږی چه د سیدنا عبدالرحمن ؓ د قصې سیاق نه دا معلومیږی چه دا کار د هجرت په ابتداء کښې شوې وو،دویم جواب او اکثر د نهی رواة هغه دی د چا چه هجرت موخر دې. یو دریم جواب دا ورکړې شوې دې چه دا اثر صفرة قصدا نه وه بلکه دا رنګ د هغه د ناوې د خوشبویئ وو کوم چه په هغه باندې اولګیدو. یو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه هغه اثر ډیر معمولی وو په دې وجه پرې رسول الله ﷺ نکیر او نه فرمائیلو ،څلورم جواب او وئیلې شوې دی چه د لبس مزعفر نهی د تحریم دپاره نه ده بلکه د تنزیه دپاره ده وغیره ذلک من الاجوبة. نو دا اوله مسئله شوه او دویمه مسئله یعنی د قلت کم مهر باقی ده، شوافع وغیره د وزن نواة من ذهب والا حدیث نه استدلال کوی.

**د وزن نواة من ذهب په تفسیر کښې اقوال:**

خو د دې لفظ په تفسیر کښې هم اختلاف دې بعض خو دا وائی چه د نواة نه مراد هم دا د کهجورو تخم دې یعنی نواة مشهوره معنی، او دا چه د دومره وزن سرو زرو قیمت هغه وخت پنځه درهم وو، او وئیلې شوې دی چه ربع دینار وو، او په دې کښې دویم قول دا دې چه د نواة نه د هغې معنی معروف مراد نه ده بلکه ﴿نواة من ذهب ﴾دا عبارت وی د هغه څیز نه چه د هغې قیمت پنځه درهم وی وبه جزم الخطابی ونقله عیاض عن اکثر العلماء. او یو قول په دې کښې دا دې چه وزن نواة من ذهب نه مراد د پنځو درهمو برابر سره زر دی چه د هغې مقدار درې نیم مثقاله جوړیږی [1] د وزن سبعه په لحاظ سره، دا اقوال ثلاثه قسطلانی په شرح د بخاری کښې ذکر کړې دی په دې کښې که اخری قول واخستلې شی نو بیا دا حدیث د یو خلاف هم نه وی.

**د صاحب البدائع رائې:**

او صاحب بدائع د حدیث النواة په باره کښې فرمائی چه وزن نواة خو څه چه عامه وزن دینار نه زائد وی او هغه فرمائی او که څوک دا وائی چه د وزن نواة قیمت خو ثلاثة دراهم بیانولې

[1] او یو دینار د یو مثقال وی، لهذا د وزن نواة مصداق درې نیم دیناره شو او د احنافو په نزد اقل مهر یو دینار دې

شی نو مونږ به وایو چه مقوم معلوم نه دي چه کوم سړي دي چه ترڅو پورې د هغه معلومات اونشي نو د دې قول په بل باندې حجت څنګه کیدې شی، بیا وړاندې فرمائی بلکه بعض حضرات لکه ابراهیم نخغی فرمائی چه د وزن نواة قیمت لس دراهم ته رسیږي، هم دغه شان دا هم کیدې شی چه دا محمول شی په مهر معجل باندې لکه چه هغه وخت دستور وو نه اصل مهر، او دا هم احتمال دې چه دا د هغه وخت واقعه وی چه کله بغیر د مهر نه نکاح جائز وه ترديې چه رسول الله ﷺ د شغار نه منع اوفرمائیله. اهـ

قال : اولم ولو بشاة... رسول الله ﷺ اوفرمائیل؛ ولیمه اوکړه اګر که د بیزې د ذبح سره وی، قسطلانی فرمائی : دا ﴿لو﴾ د تقلیل دپاره دې یعنی د یو وس والا سړی دپاره دا ده چه کم از کم ولیمه په یوې بیزې سره اوکړی، او د غریب دپاره حسب استطاعت وقدرت، پس د رسول الله ﷺ نه بعض وخت ولیمه په مد شعیر سره او د سیده صفیه په نکاح کښې کهجورې او غوړی او اقط سره ثابت ده، او په کوکب کښې لیکلي شوې دی چه ﴿لو﴾ دلته د تکثیر دپاره دې چه د هغې تشریح ئې داسې کړې ده چه چونکه عبدالرحمن بن عوف مالدار حضراتو نه وو پس هم د دې په وجه باندې رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائیل چه ته ښه ولیمه اوکړه په هغې کښې بیزه ذبح کړه، او په دې کښې څه د اسراف خبره نشته.

﴿اولم﴾ صیغه د امر ده چه د هغې تقاضه وجوب ده پس ظاهریه د وجوب ولیمه قائل دی او هم دا یو روایت د امام شافعی بلکه ائمه ثلاثه نه دې، خو په مشهور قول کښې ولیمه د ائمه اربعه په نزد سنت ده، والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۱۱۰](۱) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ جِبْرَائِيلَ الْبَغْدَادِيُّ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ، أَخْبَرَنَا مُوسَى بْنُ مُسْلِمِ بْنِ رُومَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَعْطَى فِي صَدَاقِ امْرَأَةٍ مِلْءَ كَفَّيْهِ سَوِيقًا أَوْ تَمْرًا فَقَدِ اسْتَحَلَّ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ صَالِحِ بْنِ رُومَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ مَوْقُوفًا. وَرَوَاهُ أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ رُومَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كُنَّا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَسْتَمْتِعُ بِالْقُبْضَةِ مِنَ الطَّعَامِ عَلَى مَعْنَى الْمُتْعَةِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَلَى مَعْنَى أَبِي عَاصِمٍ.

**ترجمه:** دحضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنهما نه روایت دې چه نبی ﷺ فرمائیلي دي: که چرې به یو کس یوی ښځې ته په مهر کښې یو ه لپه ستوان یا کهجورې ورکړی نو یقینا ده دا ښځه خپل ځان ته حلاله کړه. ابوداود فرمائی چه دا روایت عبدالرحمن ابن مهدی: د صالح بن رومان نه هغه دابوزبیرنه اوهغه دجابرنه موقوفًا نقل کړی دی او همدارنګی ابوعاصم دصالح بن رومان نه هغه دابوزبیرنه اوهغه دجابرنه روایت نقل کړی دی فرمائی چه مونږ به دزنانونه دنبی ﷺ په زمانه کښې په یو موټی دوډئ فائده اخستله (یعنی مهر) ابوداود فرمائی چه دا روایت ابن جریج دابو الزبیرنه هغه دجابرنه هغه دعاصم نه دروایت په شان بیان کړی دي.

**تشریح:** ﴿من اعطى فى صداق امراة ملا كفيه سويقا او تمرا فقد استحل﴾ کوم سړی چه د خپلې

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۹۷۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۵۵) (ضعیف)

ښځې په مهر کښې يو موټې سويق يا تمر ورکړل نو هغه دغه زنانه د خپل ځان دپاره حلاله کړه، دا يا خو په مهر معجل باندې محمول دې او يا په متعه باندې محمول دې لکه چه په راتلونکې روايت کښې د دې تصريح ده چه په متعه کښې به داسې کيدل، او متعه منسوخ شوې ده لهذا دا هم. والحديث اخرجه ايضا احمد والدارقطني والبيهقي قاله في المنهل.

## بَابٌ فِي التَّزْوِيجِ عَلَى الْعَمَلِ يُعْمَلُ

### کار يا مزدورۍ د مهر عوض کرځول

**په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه:**

په کومه مسئله باندې چه مصنف ترجمه قائم کړې ده هغه اختلافي دې د احنافو په نزد د مهر مالک کيدل ضروري دی د زوجې خدمت وغيره د هغې مهر نه شي مقرر کيدې، او د امام شافعي او احمد په نزد د زوجې خدمت مثلا تعليم صناعت يا تعليم د علوم شرعيه داسې تعليم چه په هغې باندې اجرت اخستل جائز دی د هغې مهر مقرر کيدل جائز دی خو په تعليم القرآن باندې اجرت اخستل د امام احمد رحمه الله په نزد د هغه د مشهور قول مطابق جائز نه دی په دې وجه د هغه په نزد تزويج على تعليم القرآن جائز نه دې او! د امام شافعي رحمه الله په نزد اخذ الاجرة على تعليم القرآن جائز دې لهذا د هغه په نزد په دې باندې تزويج هم جائز دې کما في حديث الباب:

[۲۱۱۱] (۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي حَازِمِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي قَدْ وَهَبْتُ نَفْسِي لَكَ، فَقَامَتْ قِيَامًا طَوِيلًا، فَقَامَ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، زَوِّجْنِيهَا إِنْ لَمْ يَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ تُصْدِقُهَا إِيَّاهُ؟" فَقَالَ: مَا عِنْدِي إِلَّا إِزَارِي هَذَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّكَ إِنْ أَعْطَيْتَهَا إِزَارَكَ جَلَسْتَ وَلَا إِزَارَ لَكَ فَالْتَمِسْ شَيْئًا"، قَالَ: لَا أَجِدُ شَيْئًا، قَالَ: "فَالْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ"، فَالْتَمَسَ فَلَمْ يَجِدْ شَيْئًا، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَهَلْ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْءٌ؟" قَالَ: نَعَمْ، سُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا، لِسُوَرٍ سَمَّاهَا، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَدْ زَوَّجْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ".

**ترجمه:** دحضرت سهل بن سعد الساعدی رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه يوه زنانه دنبي عليه السلام په خدمت کښې و حاضره شوه او عرض ئې اوکړو چه ما خپل ځان تاته بخلې دې (يعنی زما د طرف نه تاته دنکاح اجازت دې) هغه زنانه تر ډيره وخته خاموشه ولاړه وه ليکن و نبي عليه السلام ورته په دې حقله جواب نه ورکوو په دې وخت کښې يو صحابی اودريدو او عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله که چرې تاته ددې ښځې سره دنکاح کولو ضرورت نه وی نوزما نکاح ورسره وکړه نبي عليه السلام ترې تپوس اوکړو آيا څه مال درسره شته؟ چه دې ته ئې په مهر کښې ورکړې هغه اووئيل زماسره زماددی لنګ نه علاوه نور هيڅ نشته نبي عليه السلام اوفرمائيل که

(۱): صحيح البخاري/الوكالة ۹ (۲۳۱۰)، وفضائل القرآن ۲۱ (۵۰۲۹)، ۲۲ (۵۰۳۰)، والنكاح ۱٤(۵۰۸۷)، ۳۲ (۵۱۲۱)، ۳۵ (۵۱۲٦)، ۳۷ (۵۱۳۲)، ٤۰ (۵۱۳۵)، ٤٤ (۵۱٤۱)، ۵۰ (۵۱٤۹)، ۵۱ (۵۱۵۰)، واللباس ٤۹(۷۱۱۷)، سنن الترمذي/النكاح ۲۳ (۱۱۱٤)، سنن النسائي/النكاح ٦۹ (۳۳٦۱)، (تحفة الأشراف: ٤۷٤۲)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/النكاح ۱۳(۱٤۲۵)، سنن ابن ماجه/النكاح ۱۷(۱۸۸۹)، موطا امام مالك/النكاح ۳ (۸)، مسند احمد (۵/۳۳٦)، سنن الدارمي/النكاح ۱۹ (۲۲٤۷) (صحيح)

چرې لنګ ورته په مهر کښې ورکړې نوته به بربنډ پاتې شي دمهر دادا و کولو دپاره بل کوم شي ولټوه او راځې وړه هغه اووئيل هيڅ مې اونه مونډل نبي ﷺ ورته اووئيل چې وګوره که هغه د دوسپنې يوه ګوته دې نه وي، هغه اووئيل هيڅ راته ملاو نه شول چه راځې ورم نبي ﷺ اوفرمائيل آيا دقرآن پاك څه حصه دې زده ده؟ هغه اووئيل هو، فلانۍ فلانۍ سورت مې ياد دې اودسورتونو نومونه ئې واخستل نبي ﷺ ورته اوفرمائيل ددې سورتونو په عوض کښې مې درته دا په نکاح درکړه (يعني ددې سورتونو تعليم به ورته ورکوي).

## توضيح الحديث

مضمون حديث واضح دې، بيان ته احتياج نه لري د هغه زنانه په نوم کښې اختلاف دې، حافظ خو فرمائي ﴿ لم اقف على اسمها ﴾ خو بعض نورو شارحينو وئيلې دی چه د هغې نوم خوله بنت حکيم يا ام شريک ده.

﴿قال فالتمس ولو خاتما من حديد ﴾د دې حديث نه شوافعو د لبس خاتم حديد په جواز باندې استدلال کړې دې خو خپله حافظ فرمائي ﴿ولا حجة فيه ﴾ځکه چه په جواز اتخاد سره جواز لبس نه لازميږی ځکه چه د دې منفعت په لبس کښې منحصر نه دې بلکه انتفاع بالقيمة هم کيدې شي.

## په خاتم حديد کښې مذاهب علماء :

په اوجز کښې ليکی چه د شوافعو اصح قول هم دا دې چه خاتم حديد مکروه نه دې، امام نووی رحمه الله فرمائي والحديث الوارد فى النهى ضعيف. د دې نه روستو په اوجز ۲۴۸/۴ کښې د حنابله او مالکيانو مذهب کراهت ليکلې دې لکه چه د هغوی په کتابونو کښې د دې تصريح ده، هم دغه شان خاتم نحاس ورصاص کښې هم دا اختلاف دې چه صرف د شوافعو په نزد مکروه نه دې د نورو امامانو په نزد مکروه دې، هم دغه شان د احنافو مذهب هم دا دې چه د سپينو زرو نه علاوه د حديد او نحاس وغيره ګوتمه مکروه ده، للرجال والنساء جميعا.چه د هغې دليل حديث د بريده رضی الله عنه دې کوم چه په ابوداود کتاب الخاتم کښې راروان دې ﴿ان رجلا جاء الى النبى ﷺ وعليه خاتم من شبه فقال له ما لى اجد منک ريح الاصنام فطرحه ثم جاء وعليه خاتم من حديد فقال ما لى ارى عليک حلية اهل النار ﴾او بيا په اخر کښې دی ﴿اتخذه من ورق ولا تتمه مثقالا﴾ واخرجه الترمذی ايضا فى اخركتاب اللباس وقال هذا حديث غريب.

قد زوجتکها بما معک من القران... په ﴿بما معک ﴾باء د احنافو په نزد د سببيت دپاره ده يعنی د قران کريم کوم چه يو عظيم نعمت تاسو ته حاصل دې په دې وجه باندې ستا نکاح د هغې سره کولې شي او د شوافعو په نزد للعوض. هم دا جواب د احنافو د طرف نه د دې حديث دې، او دويمه خبره دا ده چه دا حديث دَ خپل ظاهر په اعتبار سره بالاتفاق متروک دې ځکه چه سورة من القران مهر کيدل د چا په نزد هم صحيح نه دی او په دې کښې د تعليم قران ذکر شته نه په کوم چه ئې شوافع محمول کوی، او يو جواب هغه دې کوم چه وړاندې په کتاب کښې د مکحول نه منقول دې، والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۱۱۲]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَفْصِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنِي أَبِي حَفْصُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ الْحَجَّاجِ الْبَاهِلِيِّ، عَنْ عِسْلٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، نَحْوَ هَذِهِ الْقِصَّةِ، لَمْ يَذْكُرِ الْإِزَارَ وَالْخَاتَمَ، فَقَالَ: "مَا تَحْفَظُ مِنَ الْقُرْآنِ؟" قَالَ: سُورَةَ الْبَقَرَةِ، أَوِ الَّتِي تَلِيهَا، قَالَ: "فَقُمْ، فَعَلِّمْهَا عِشْرِينَ آيَةً وَهِيَ امْرَأَتُكَ".

**ترجمه:** عطاء بن أبي رباح دابوهريره رضي الله عنه نه دتيرشوی روايت په شان روايت نقل کړي دي او دلنګ اودګوتی ذکرئې په کښې نه دي کړي اودا اضافه ئې کړی ده چه دقرآن څه حصه دی ياده ده؟ هغه اووئيل سورة بقره ياهغه سورة کوم چه دي ته نزدې دي هغه مې ياد دي نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل پاڅه اودشلو آيتونو تعليم ورته ورکړه او دا ستا ښځه شوه.

[۲۱۱۳]([2])حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَاشِدٍ، عَنْ مَكْحُولٍ، نَحْوَ خَبَرِ سَهْلٍ، قَالَ: وَكَانَ مَكْحُولٌ يَقُولُ: لَيْسَ ذَلِكَ لِأَحَدٍ بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** حضرت محمد بن راشد دمکحول نه دسهل دروايت په شان روايت نقل کړي دي او وئيلی يې دی چه مکحول به وئيل چه دا حکم ددغه صحابی نه علاوه دنبی عليه السلام نه پس دبل چادپاره نه دي (داپه هغه پورې خاص وو).

## بَابٌ فِيمَنْ تَزَوَّجَ وَلَمْ يُسَمِّ صَدَاقًا حَتَّى مَاتَ
### که څوک نکاح وکړی او د مهر تعين ونکړی تردې چه مړ شی

[۲۱۱٤]([3])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ فِرَاسٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، فِي رَجُلٍ تَزَوَّجَ امْرَأَةً فَمَاتَ عَنْهَا وَلَمْ يَدْخُلْ بِهَا وَلَمْ يَفْرِضْ لَهَا الصَّدَاقَ، فَقَالَ: لَهَا الصَّدَاقُ كَامِلًا وَعَلَيْهَا الْعِدَّةُ وَلَهَا الْمِيرَاثُ، فَقَالَ مَعْقِلُ بْنُ سِنَانٍ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَضَى بِهِ فِي بِرْوَعَ بِنْتِ وَاشِقٍ".

**ترجمه:** دحضرت مسروق دعبدالله بن مسعود رضي الله عنهما نه روايت : نقل کوی فرمائی چه عبدالله دهغه کس په باره و کښې وئيلی ووچه يوې داسې زنانه سره ئې نکاح وکړه او وفات شو اودخول ئې ورسره نه ووکړې او مهرئې ورلره هم نه وو مقررکړې نوعبدالله ووئيل دازنانه دپوره مهر حق داره ده اوددی دپاره عدت تيرول لازمی دی اودميراث حقداره هم ده، په دې وخت کښې معقل بن سنان اووئيل ماد نبی عليه السلام نه اوريدلی دی چه دا فيصله ئې دبروع بنت واشق دپاره کړی وه.

[۲۱۱٥]([4])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، وَابْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَسَاقَ عُثْمَانُ مِثْلَهُ.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤١٩٤)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/النكاح (٥٥٠٦) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٤٧٨) (ضعيف)

[3]: سنن الترمذي/النكاح ٤٤(١١٤٥)، سنن النسائي/النكاح ٦٨(٣٣٥٨)، والطلاق ٥٧(٣٥٥٤)، سنن ابن ماجه/النكاح ١٨ (١٨٩١)، (تحفة الأشراف: ١١٤٦١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٨٠/١، ٢٨٠/٤)، سنن الدارمي/النكاح ٤٧(٢٢٩٢) (صحيح)

[4]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٤٦١) (صحيح)

**ترجمه:** دحضرت عبدالله بن ابن مسعوده نه ددې روايت په شان روايت نقل شوى دى اوباقى حديث ئې دتيرروايت په شان بيان كړو.

[۲۱۱٦]() حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ خِلَاسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ أُتِيَ فِي رَجُلٍ بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: "فَاخْتَلَفُوا إِلَيْهِ شَهْرًا، أَوْ قَالَ: مَرَّاتٍ، قَالَ: فَإِنِّي أَقُولُ فِيهَا: إِنَّ لَهَا صَدَاقًا كَصَدَاقِ نِسَائِهَا لَا وَكْسَ وَلَا شَطَطَ، وَإِنَّ لَهَا الْمِيرَاثَ وَعَلَيْهَا الْعِدَّةُ، فَإِنْ يَكُ صَوَابًا فَمِنَ اللَّهِ، وَإِنْ يَكُنْ خَطَأً فَمِنِّي وَمِنَ الشَّيْطَانِ، وَاللَّهُ وَرَسُولُهُ بَرِيئَانِ، فَقَامَ نَاسٌ مِنْ أَشْجَعَ فِيهِمُ الْجَرَّاحُ وَأَبُو سِنَانٍ، فَقَالُوا: يَا ابْنَ مَسْعُودٍ، نَحْنُ نَشْهَدُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَاهَا فِينَا فِي بِرْوَعَ بِنْتِ وَاشِقٍ، وَإِنَّ زَوْجَهَا هِلَالُ بْنُ مُرَّةَ الْأَشْجَعِيُّ كَمَا قَضَيْتَ، قَالَ: فَفَرِحَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ فَرَحًا شَدِيدًا حِينَ وَافَقَ قَضَاؤُهُ قَضَاءَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** حضرت عبدالله بن عتبه بن مسعود نه روايت دې فرمائى چه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته ديوسړى واقعه راوړلى شوه وه راوى وائى چه دوى په دغه مسئله كښې يوه مياشت اوكه داسې ئې ووئيل ډيركرته ئې پكښې اختلاف كړى وو عبدالله ووئيل زه ددې واقعې په باره كښې، داسې وايم چه دا زنانه دمهرداسې حق داره ده لكه څنګه چه ددې دقوم نورى ښځې حقدارى دى (يعنى دهغوى دمهر په مقدار به ددې، مهروى ددې نه، نه كم اونه زيات اوددى دپاره عدت ثابت دى اوعدت به هم تيروى كه چرې زما دافيصله، حقه وى نودابه دالله تعالى مهربانى وى په ما باندې وى اوكه چرې خطاء وى نودابه زما دنفس دطرفه او دشيطان دطرفه وى او الله اودهغه رسول به ددې نه پاك اوبرى وى، په دې وخت داشجع قبيلې يوڅو كسان چه پكښې جراح او ابوسنان هم اودريدل وئى وئيل اې ابن مسعود مونږ ګواهى وركووچه نبى عليه السلام هم داسې فيصله كړى وه دپاره دبروع بنت واشق كومه چه دهلال بن مره ښځه وه نو په دې وخت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ډير خوشحاله شوچه دده فيصله د نبى عليه السلام د فيصلې مطابق ثابته شوه.

**تشريح:** د دې باب د لاندې مصنف د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دا حديث ذكر كړې دې چه د هغه نه تپوس اوكړې شو چه يو سړى د يوې زنانه سره نكاح اوكړه او د نكاح كولو نه څو ورځې پس هغه مړ شو په داسې حال كښې د هغه د طرف نه دخول بيا نه موندلې شو او نه تسميه مهر نو په داسې صورت كښې به د متوفى عنها زوجها (زنانه) دپاره څه وى؟ د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه دا تپوس سائل بار بار اوكړو او هغه په دې مسئله كښې غور كولو، د يو مياشت غور كولو نه پس هغه دا جواب وركړو: ﴿لها الصداق كاملا وعليها العدة ولها الميراث﴾

**په مسئلة الباب كښې مذاهب ائمه:**

مسئله مختلف فيه ده د امام ابوحنيفه او امام احمد مذهب خو هم دا دې او امام مالك رحمه الله فرمائى چه په دې صورت كښې د هغه زنانه دپاره صرف ميراث دې مهر وغيره هيڅ هم نشته، د امام شافعى يو قول خو هم داسې دې. او بل قول د هغه نه دا منقول دې چه هغه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٢٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٤٣٠، ٤٣١، ٤٤٧، ٤٤٨) (صحيح)

فرمائی: لو صح حدیث بروع لقلت به... په بذل المجهود کښې دی: قال الحاکم قال شیخنا ابو عبدالله لو حضرت الشافعی لقمت علی رؤس الناس وقلت قد صح الحدیث فقل به.

**فائده**: ځان پوهه کړه چه د دې مسئلې مختلفې حصې دی چه د هغې تفصیل دا دې: ان طلقها قبل الدخول (والخلوة الصحیحة فی حکم الدخول) ولم یسم لها مهرا فلیس لها مهر بل المتعة فقط والمتعة هی الکسوة، الدرع والخمار والملحفة وان کان سمی لها المهر ولم یدخل بها حتی طلقها فحینئذ لها نصف المسمی. قال تعالی: ﴿ وان طلقتموهن من قبل ان تمسوهن وقد فرضتم لهن فریضة فنصف ما فرضتم ﴾ ولو لم یسم المهر لکن دخل بها او مات عنها فلها مهر مثلها کاملا، فالحاصل ان فی صورة الدخول او موت الزوج (۱) کمال المهر وان لم یسم المهر وان لم یوجد الموت ولا الدخول بل الطلاق فحینئذ فی صورة التسمیة نصف المسمی، وفی صورة عدم التسمیة لا مهر مطلقا بل المتعة فقط. (ملخصاً من مختصر القدوری)

امام ترمذی د دې حدیث د تخریج نه پس فرمائی: حدیث حسن صحیح والعمل علی هذا عند بعض اهل العلم من اصحاب النبی صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وغیرهم وبه یقول الثوری واحمد واسحاق، وقال بعض اهل العلم منهم علی بن ابی طالب وزید بن ثابت وابن عباس وابن عمر اذا تزوج الرجل امراءة ولم یدخل بها ولم یفرض لها صداقا حتی مات قالوا لها المیراث ولا صداق لها وعلیها العدة وهو قول الشافعی وقال ولو ثبت حدیث بروع بنت واشق لکانت الحجة فیه وروی عن الشافعی انه رجع بمصر عن هذا القول وقال بحدیث بروع بنت واشق. اهـ

[۲۱۱۷] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ الذُّهْلِيُّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، وَعُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، قَالَ مُحَمَّدٌ: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَصْبَغِ الْجَزَرِيُّ عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحِيمِ خَالِدِ بْنِ أَبِي يَزِيدَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِرَجُلٍ: "أَتَرْضَى أَنْ أُزَوِّجَكَ فُلَانَةَ؟" قَالَ: نَعَمْ، وَقَالَ لِلْمَرْأَةِ: "أَتَرْضَيْنَ أَنْ أُزَوِّجَكِ فُلَانًا؟" قَالَتْ: نَعَمْ، فَزَوَّجَ أَحَدَهُمَا صَاحِبَهُ، فَدَخَلَ بِهَا الرَّجُلُ وَلَمْ يَفْرِضْ لَهَا صَدَاقًا وَلَمْ يُعْطِهَا شَيْئًا وَكَانَ مِمَّنْ شَهِدَ الْحُدَيْبِيَةَ وَكَانَ مَنْ شَهِدَ الْحُدَيْبِيَةَ لَهُ سَهْمٌ بِخَيْبَرَ، فَلَمَّا حَضَرَتْهُ الْوَفَاةُ، قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَوَّجَنِي فُلَانَةَ وَلَمْ أَفْرِضْ لَهَا صَدَاقًا وَلَمْ أُعْطِهَا شَيْئًا، وَإِنِّي أُشْهِدُكُمْ أَنِّي أَعْطَيْتُهَا مِنْ صَدَاقِهَا سَهْمِي بِخَيْبَرَ، فَأَخَذَتْ سَهْمًا فَبَاعَتْهُ بِمِائَةِ أَلْفٍ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَزَادَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَحَدِيثُهُ أَتَمُّ فِي أَوَّلِ الْحَدِيثِ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَيْرُ النِّكَاحِ أَيْسَرُهُ"، وَقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلرَّجُلِ، ثُمَّ سَاقَ مَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: يُخَافُ أَنْ يَكُونَ هَذَا الْحَدِيثُ مُلْزَقًا، لِأَنَّ الْأَمْرَ عَلَى غَيْرِ هَذَا.

**ترجمه**: دحضرت عقبة بن عامرنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ یوکس ته اوفرمائیل

[1]) د دې په باره کښې فقهاء کرامو لیکلې دی (کما فی الکوکب الدري) الموت منه للشيء... مرګ یو څیز لره د هغه انتهاء او کمال ته رسونکې دې یعنی د انسان په څه حال او صفت باندې مړ کیدل دا د هغه صفت کمال دې نو چه کله د زوج وفات د زوج کیدو د صفت سره وی نو دا د صفت تزوج او نکاح کمال شو، پس چه کله نکاح د خپل صفت کمال سره بیا موندلې شوه نو په دې صورت کښې مهر هم کاملا واجب دې. ۱۲)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۹۶۲) (صحیح)

ایاخوښه دی نه ده چه فلانی زنانه درته په نکاح کړم؟هغه ووئیل هو، بیائی ښځې ته ووئیل ایاخوښه دی نه ده چه فلانی ته دی په نکاح ورکړم؟هغې ووئیل هو، نونبی ﷺ دوی په مینځ کښې نکاح وتړله نوسړی ورسره خلوت اوکړو اومهرئی ورله معین کړې نه وواوهیڅ شی ئې ورته ورکړی هم نه وواودا دهغه.کسانونه ووڅوك چه په بیعة الرضوان کښې شامل وواوپه غزوه حدیبیه کښې هم حاضر شوی وواوپه غزوه خیبر کښې دده حصه هم وه نود وفات په وخت کښې ئې وصیت اوکړو اووئ وئیل چه فلانی ماته نبی ﷺ په نکاح کړې وه اوما ورله مهرنه ومقرر کړی او څه شی مې ورکړی هم نه دی اوس زه تاسو ګواه کوم چه ما خیبرخپله حصه دیته په مهر کښې ورکړه نوهغې دده حصه واخسته او په یولاك درهمه ئې خرڅه کړه، امام ابوداود فرمائی چه دعمربن الخطاب رضي الله عنه نه روایت دی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی بهترینه نکاح هغه وی کومه چه اسانه وی او ددوی حدیث دټولو نه زیات کامل دې اوپه دیکښې ان رسول الله قال للرجل په ځائې قال رسول الله للرجل دې، اوددې نه پس ئې دنبی ﷺ نه دتیرشوی روایت په شان روایت بیان کړو امام ابوداود وائی چه زما خیال دی دا روایت ددغه بل روایت سره خلط شوی دی ځکه چه اصل مسئله ددې نه علاوه ده.

**تشریح:** وکان من شهد الحدیبیة لهم سهم خیبر : راوی وائی چه کوم خلق په غزوه حدیبیه کښې شریک وو د هغوی دپاره په غنائم خیبر کښې سهم یعنی حصه وه، زه وائم چه د دې وجه دا ده چه غزوه خیبر د حدیبیه نه فورا روستو پیښه شوې وه او په دې کښې ټول هغه صحابه کرام شریک وو کوم چه په حدیبیه کښې هغه سره وو، دا خبره په روایاتو او تاریخ کښې مشهوره ده.

﴿قال ابوداود : وزاد عمر فی اول الحدیث قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خیر النكاح ایسره ﴾ د عمر نه مراد د صنف استاذ دې کوم چه په سند کښې مذکور دې یعنی د مصنف بل استاذ محمد بن یحیی دا زیادت په دې حدیث کښې ذکر نه دې بلکه عمر کړې دې.

**الحدیث فی غیر محله :**

دا حدیث مرفوع ﴿خیر النكاح ایسره ﴾دلته د ابوداود په دې باب کښې ﴿فی غیر محله ﴾دې او چه کوم حدیث غیر محل کښې وی د دې تلاش کول ډیر مشکل دی هم په دې وجه مونږ په دې باندې تنبیه کړې ده، چه کوم مضامین غیر مظان کښې وی او ډیر وی د دې تپوس کول او لټون کول یو لوئې کار دې.

## بَابٌ فِي خُطْبَةِ النِّكَاحِ

**باب د نکاح د خطبې بیان**

[۲۱۱۸](¹)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ فِي خُطْبَةِ الْحَاجَةِ فِي النِّكَاحِ وَغَيْرِهِ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ الْمَعْنَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ،

¹): سنن الترمذي/النكاح ۱۷ (۱۱۰۵)، سنن النسائي/الجمعة ۲٤ (۱٤۰۵)، والنكاح ۳۹ (۳۲۷۹)، سنن ابن ماجه/النكاح ۱۹ (۱۸۹۲)، مسند احمد (۱/۳۹۲، ٤۰۸، ٤۱۳، ٤۱۸، ٤۲۳، ٤۳۷)، سنن الدارمي/النكاح ۲۰ (۲۲٤۸)، (تحفة الأشراف: ۹۵۰۶، ۹۶۱۸) (صحيح)

عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، وَأَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "عَلَّمَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُطْبَةَ الْحَاجَةِ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ نَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنَعُوذُ بِهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا، مَنْ يَهْدِ اللَّهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا سورة النساء آية ۱، يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ سورة آل عمران آية ۱۰۲، يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ۷۰ يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا ۷۱ سورة الأحزاب آية ۷۰-۷۱"، لَمْ يَقُلْ مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ أَنْ.

**ترجمه:** دحضرت عبدالله بن مسعود د نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ مونږ ته دخطبه حاجت تعلیم راکړي : وو اوهغه داسي وه : «أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ نَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنَعُوذُ بِهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا، مَنْ يَهْدِ اللَّهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ» «يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا»، یعنی ټول تعریفونه خاص دالله تعالی دپاره دی، مونږ دهغه نه مدد غواړو اودهغه نه بخښنه غواړو اوپه هغه پوري پناه غواړو د خپلو نفسونو دبدوالی نه، چاته چه الله تعالی سمه لار وښائی نونشته هغه لره څوك بې لاری کونکی اوڅوك چه هغه بې لاری کړی نونشته دغه کس ته څوك لارښودونکې، زه ګواهی ورکوم چه دالله نه علاوه بل څوك حقداردبندګئ نشته او زه ګواهی ورکوم چه محمد دهغه بنده اورسول دي،اې ایمان والو دالله تعالی نه ویره اوکړئ و دچادنوم په وصیله باندې چه تاسو غوښتل کوئ اودریښتو دماتولونه ځان وساتئ یقینا الله تعالی ستاسو نګهبان دي، اې ایماندارو خلقو دالله تعالی کم نه ویریږه څرنګه چه دهغه نه دیریدلو حق دي اوهیڅ کله دي تاسوته مرګ رانشی په داسې حال کښې ث چه تاسو مسلمانان نه ئي اې ایمان والا خلقو دالله نه یره اوکړئ په باره دانصاف کولو کښې هغه به ستاسو کارونه سم کړی اوستاسو ګناهونه به او بخښی چاچه دالله اودهغه درسول تابعداری اوکړه نوهغه لویه کامیابی حاصله کړه (د محمد بن سلیمان په روایت کښې دالحمدلله نه مخکښې لفظ د ،انّ، نشته).

## توضیح الحدیث

د حاجت نه مراد په ظاهره کښې حاجت نکاح دې، او په یو بل روایت کښې دی ﴿فی خطبة الحاجة فی النکاح وغیره﴾ چه د هغې نه د شوافعو تائید کیږی ځکه چه د هغوی په نزد خطبه چه څنګه د عقد نکاح دپاره مسنون دي هم دغه شان عقد بیع وغیره نور عقود کښې هم مسنون دي. کذافی المنهل.

وړاندې په روایت کښې د تشهد نه پس داسې دی ﴿یَاأَیُّهَاالَّذِیْنَ امَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ﴾حال دا چه مشهور قراءت داسې نه دي بلکه دا ده ﴿یَاأَیُّهَاالنَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ﴾دا روایت په ترمذی کښې هم دي، په دې کښې د تشهد نه پس داسې دي، قال ویقراء ثلاث ایات قال عبثر ففسرها سفیان الثوری اتقوا الله حق تقاته ولا تموتن الا وانتم

مسلمون، اتقوا الله الذی تساءلون به والارحام ان الله کان علیکم رقیبا. اتقوا الله وقولوا قولا سدیدا.
پوره آیت خو د ترمذی په روایت کښې هم نشته خو چه څومره ذکر دي هغه د مصحف مطابق دي په خلاف د ابوداود چه په هغې کښې دی ﴿يَاأَيُّهَاالَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ الَّذِيْ تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ﴾ په دې کښې په بذل المجهود کښې د ملا علی قاری نه نقل دی ﴿هكذا فی نسخ المشكاة ﴾ والاذكار وتيسير الاصول الى جامع الاصول، وبعض نسخ الحصن. بيا وړاندې دا دی چه علامه طیبی فرمائی ممکنه ده چه د ابن مسعود په مصحف کښې هم دغه شان وی، د دې نه روستو حضرت په بذل کښې لیکی اولی او مناسب دا ده چه په خطبه کښې آیت لره د قراءت متواتره موافق لوستل پکار دی.

دا مخکښې تیر شو چه د نکاح خطبه مسنون ده شرط نه ده، حافظ فرمائی: وقد شرطه فی النكاح بعض اهل الظاهر وهو شاذ (بذل) او امام ترمذی رحمه الله د خطبه نکاح د حدیث ذکر کولو نه پس لیکی وقد قال بعض اهل العلم ان النكاح جائز بغير خطبة وهو قول سفيان الثوری وغيره من اهل العلم.

**د خطبه نکاح روایات:**

د دې نه پس ځان پوهه کړه د خطبة النكاح حدیث په صحیحین کښې په یو کښې هم نشته، البته امام بخاری ترجمة الباب ضرور قائم کړې ده، باب الخطبة. خو په هغه حدیث کښې ئې دخطبې تخریج نه دې کړې، حافظ فرمائی: وورد فی تفسيرخطبة النكاح احاديث من اشهرها ما اخرجه اصحاب السنن وصححه ابو عوانة وابن حبان عن ابن مسعود مرفوعا. اوبیا حافظ هم هغه حدیث ذکر کړې دې کوم چه دلته په ابوداود کښې دې، او امام طحاوی په شرح مشکل الاثار کښې په ډیر اهتمام سره د دې سلسلې ډیر روایات راجمع کړې دی، هغه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه او ابن عباس رضی الله عنه نه علاوه د یو بل صحابی نبیط بن شریط رضی الله عنه روایات ذکر کړې دی.

**فائده:** خطبه نکاح د کلام پاک په درې ایتونو باندې مشتمل وی چه په هغې کښې د هر یو شروع د امر بالتقوی نه ده. ﴿ يَاأَيُّهَاالنَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ ، يا ايها الذين امنوا اتقوا الله حق تقاته، يا ايها الذين امنوا اتقوا الله وقولوا قولا سديدا ﴾ د خطبه مسنونه دا اسلوب قابل غور او قابل توجه دې چونکه په نکاح سره ګویا یو مستقل ژوند شروع کیږی او هغه د تکثیر امت ذریعه ده په دې وجه خاص طور سره د نکاح په شروع کښې د تقوی او طهارت تعلیم فرمائیلې شوې دې د دې دپاره چه دا نکاح د اتقیاء په وجود کښې د راتلو ذریعه وی، بله دا چه په واده ښادئ لګیدلو سره انسان په عشرت او لهو لعب کښې اخته نه شی. والله الموفق

[۲۱۱۹] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ، عَنْ أَبِي عِيَاضٍ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا تَشَهَّدَ"، ذَكَرَ نَحْوَهُ، وَقَالَ بَعْدَ قَوْلِهِ: "وَرَسُولُهُ أَرْسَلَهُ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ، مَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ رَشَدَ، وَمَنْ يَعْصِهِمَا فَإِنَّهُ لَا يَضُرُّ إِلَّا نَفْسَهُ وَلَا يَضُرُّ اللَّهَ شَيْئًا".

¹: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۶۳۶) (ضعيف)

**ترجمه:** دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به کله تشهد لوستلو بیا راوی حدیث داسې ذکر کړې دې، لیکن د ورسوله، نه پس ئې دا الفاظ زیات کړل أَرْسَلَهُ بِالْحَقِّ بَشِيرًا تر آخره پورې یعنی لیږلې دې خپل رسول په رښتیا سره زیرې ورکونکې دې په جنت باندې و بیره ورکونکې دې ددوزخ نه، چاچه دالله اودهغه درسول تابعداری اوکړه نوهغه هدایت حاصل کړو اوچاچه دالله اودهغه درسول نافرمانی اوکړه نوهغه دخپل ځان نه علاوه دبل هیچا نقصان ونکړو اودې الله ته هیڅ ضرر نشی ورسولې.

[۲۱۲۰]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا بَدَلُ بْنُ الْمُحَبَّرِ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْعَلَاءِ ابْنِ أَخِي شُعَيْبٍ الرَّازِيِّ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ، قَالَ: "خَطَبْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمَامَةَ بِنْتَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَأَنْكَحَنِي مِنْ غَيْرِ أَنْ يَتَشَهَّدَ".

**ترجمه:** حضرت اسماعیل بن ابراهیم په بنی سلیم قبیله کښې دیوکس (یعنی عباد بن سلیم نه) نه روایت کوی چه وئیلی ئې وو چه مادنبی علیه السلام ترورر امامه بنت عبدالمطلب ته دنکاح پیغام اولیږلو نبی علیه السلام بغیر دخطبی نه دهغې نکاح زماسره اوکړه.

## توضیح الحدیث

د رجل نه مراد عباد بن شیبان السلمی رضی الله عنه دې کما فی تهذیب التهذیب... په دې حدیث کښې ﴿خطبت خطبة﴾ بکسر الخاء دې، عباد بن شیبان فرمائی چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې امامة بنت عبدالمطلب ته د نکاح پیغام اولیږلو نو هغه بغیر د خطبې نه زما نکاح د هغې سره اوکړه، معلومه شوه چه د نکاح خطبه ضروری نه ده.

**تنبیه** : دا امامه بنت عبدالمطلب په اصل کښې بنت ربیعه بن الحارث بن عبدالمطلب ده دلته په دې حدیث کښې د هغې نسبت د جد اعلی طرف ته کړې شوې دې کذا فی البذل. لهذا دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تره د ځوئی لور شوه، صاحب منهل هم دا لیکلې دی، او صاحب عون المعبود لیکلې دی چه ﴿عمته صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ﴾ گویا د هغه په نزد د عبدالمطلب طرف ته د هغې نسبت حقیقی دې نه دا چه د جد اعلی طرف ته نسبت دې، خو دا د حافظ وغیره د کلام خلاف ده، لهذا دې ته به د صاحب عون وهم وئیلې شی، بله دا چه صحیح دا ده چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ترورریانو کښې سوا د صفیه بنت عبدالمطلب نه یوې هم اسلام نه دې قبول کړې، نو د اختلاف ملت په صورت کښې نکاح څنګه کیدې شی؟

د دې نه پس په مختصر د منذری کښې دا ملاؤ شوه : والحدیث اخرجه البخاری فی تاریخه الکبیر وذکر الاختلاف فیه وذکر فی بعضها خطبت الی النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمته، وفی بعضها الا انکحک امامة بنت ربیعة بن الحارث. او د هغې په حاشیه کښې شیخ احمد محمد شاکر لیکی چه دا حدیث د بیهقی په سنن کبری کښې هم دې او د هغه تحقیق هم دا دې چه دا امامة بنت ربیعه بن الحارث بن عبدالمطلب دې، په بعض روایاتو کښې هغه د جد اعلی طرف ته منسوب کړې شوې ده.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۳۰) (ضعیف)

## بَابٌ فِي تَزْوِيجِ الصِّغَارِ
### د نابالغه جينکود نکاح بيان

[٢١٢١]()حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَأَبُو كَامِلٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "تَزَوَّجَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا بِنْتُ سَبْعٍ، قَالَ سُلَيْمَانُ: أَوْ سِتٍّ. وَدَخَلَ بِي وَأَنَا بِنْتُ تِسْعٍ".

**ترجمه:** حضرت ام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام زماسره نکاح اوکړه او په دې وخت کښې زما عمر اوه ۷ کاله وو اودسليمان په روايت کښې دی چه شپږ کاله او د نهو ۹ کاله په عمر کښې واده شوم

### توضيح الحديث

رسول الله صلى الله عليه وسلم د عائشې رضي الله عنها سره نکاح د يو قول په بناء باندې د سيده خديجه رضي الله عنها د مرګ نه پس قبل هجرت، د هجرت والا په کال ئې اوفرمائيل او رخصتي ئې په شوال ١ هـ کښې اوشوه، دويم قول دا دې چه په ٢ هجري کښې. د دې حديث د ترجمة الباب يعني تزويج الصغار ثابته شوه چه دسيده عائشه رضي الله عنها نکاح دهغې پلار دشپږوکالو په عمر کښې اوکړه.

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه:

د تزويج الصغيره په مسئله کښې اختلاف دې چه د هغې تفصيل دا دې چه صغيره که باکره ده، د هغې تزويج د پلار دپاره بالاتفاق جائز دې، او که هغه صغيره ثيبه ده نو په هغې کښې د ائمه اختلاف دې، د امام ابوحنيفه او امام مالک په نزد د پلار دپاره د هغې تزويج جائز دې، د امام شافعي رحمه الله په نزد ناجائز دې ځکه چه د صغر په وجه باندې خپله د هغې اجازت معتبر نه دې، او په وجه د ثيوبة پلار ته په هغې باندې د مجبوره کولوحق نشته لهذا د دې ترويج د هغې د بلوغ نه روستو کيدې شي. باقي پاتې شو مسلک حنابله نو د هغوی نه په دې کښې درې روايات دی، عدم الجواز مطلقا، الجواز مطلقا کما في المغني. او په دريم روايت کښې دا دی چه که صغيره د نهو کالو نه د کم عمر وه نو بيا خو د پلار دپاره د هغې نکاح جائز دې، او که نهه کاله يا د هغې نه زيات وی نو بيا د هغې نکاح بغير د هغې د اجازت نه جائز نه دې د حنابله مشهور قول هم دا دې، امام ترمذي رحمه الله د حنابله د دې مسلک دا دليل هم ليکلې دې، جامع ترمذي اوګورئ، ګويا د نهو کالو جينئ د بالغې په حکم کښې ده او د هغې اذن معتبر دې او کومه چه د نهو کالو نه کم دې هغه صغيره ده په هغې باندې پلار ته ولاية اجبار حاصل دې د دې نه معلوميږی چه د امام احمد رحمه الله په نزد صغر هم علت اجبار دې وقد اشرنا اليه في باب الولي. وهذا غاية التنقيح لهذه المسئلة والله اعلم بالصواب. دلته دوه مذاهب نور دی کما في البذل وغيره من الشروح.

---

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧١٠٦، ١٦٨٧١)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/النكاح ٣٨ (٥١٣٣)، ٣٩ (٥١٣٤)، ٥٩ (٥١٥٨)، صحيح مسلم/النكاح ١٠ (١٤٢٢)، سنن ابن ماجه/النكاح ١٣ (١٨٧٦)، سنن النسائي/النكاح ٢٩ (٣٢٥٧)، مسند احمد (١١٨/٦)، سنن الدارمي/النكاح ٥٦ (٢٣٠٧) (صحيح)

ابن شبرمه فرمائي چه دصغيره نكاح مطلقا ثيبه وي يا باكره چه ترڅو پوري بالغه نه شي د پلار جائز نه دى، او د دې بالمقابل د حسن بصري او ابراهيم نخعي مسلک دا دې چه د پلار دپاره د جينۍ نكاح مطلقا جائز ده كه وړه وي او كه لويه وي، كه باكره وي يا ثيبه وي كه رضا وي اوكه رضانه وي والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة قاله المنذري.

## بَابٌ فِي الْمَقَامِ عِنْدَ الْبِكْرِ

### دباكرې ښځې سره د نكاح نه پس د تقسيم نه علاوه څوورځې تيرول پكار دى؟

مقام بضم الميم بمعنى الاقامة، او كوم چه ﴿مقام﴾ بفتح الميم دې هغه ظرف دې په ترجمة الباب كښې مصنف چه كومه مسئله ذكر فرمائي هغه دا ده چه كه يو سړې دويم واده اوكړي د اولنۍ زوجې په موجودګۍ كښې نو اوس به دې نوې ناوې سره څومره وخت تيروي؟ نو د حديث د ظاهر نه معلوميږي چه كه هغه نوې ناوې باكره وي نو ابتداء دې د واده نه پس هغې سره اووه شپې تيرې كړي بغير د قضاء نه، يعني په دې اووه شپو كښې به عدل او برابرى نه وي بلكه دا خالص د هغه حق او حصه ده، او كه هغه ناوې ثيبه ده نو هغې سره دې په شروع كښې درې ورځې تيرې كړي يعني دا شپې به د هغې حق وي، بيا د هغې نه روستو هم هغه عدل بين الزوجات واجب وي، او برابرى كول به ضروري وي. دا د باكرې دپاره چه كومې اووه شپې دى او د ثيبه دپاره درې شپې دى دې ته حق الزفاف للمزفوفه وئيلې شي، بيا د بعض رواياتو نه دا معلوميږي چه دويمه ښځه كومه چه ثيبه ده كه په درې شپو باندې راضي نه وي بلكه هغه هم د باكره په شان د خاوند نه د اووه شپو مطالبه كوي نو صحيح ده د هغې سره دې هم اووه ورځې قيام اوكړي خو په دې دويم صورت كښې به قضاء واجب وي، يعني بيا به د قديمه سره هم اووه شپې تيروي ګويا هغه درې ورځې كومې چه خاص د هغې دپاره وې هغه به ساقطې شي.

### په حق الزفاف للمزفوفه كښې اختلاف ائمه :

كومه تشريح چه مونږ بيان كړې ده هغه د امام شافعي او امام احمد مسلک دې د حديث د ظاهر پيش نظر، امام مالک اګر چه د شوافع په شان د حق زفاف قائل دې خو هغه د ثيبه په حق كښې د تخيير قائل نه دې، بلكه د هغه په نزد چه څنګه د باكره دپاره اووه شپې بغير د اختيار نه دى هم دغه شان د ثيبه دپاره هم درې شپې بغير د اختيار نه دى، د دې اختيار ذكر په بعض رواياتو كښې راځي او په بعض كښې نه راځي نو ګويا د شوافع او حنابله عمل خو په ټول احاديث الباب باندې شو او د امام مالک په نزد په احاديث الباب كښې په بعض باندې عمل اوشو او په بعض باندې نه، او حضرات احناف د دې حق زفاف يعني فضيلت دنوې په زړه باندې بالكل قائل نه دى، احناف د احاديث الباب دا توجيه فرمائي چه په كومو احاديثو كښې فضيلت دنوې په زړه باندې ثابتيږي هغه صرف د ابتداء په اعتبار سره دې يعني بيتوتت (شپې تيرولو) په ابتداء كښې د دې نوې ناوې سره اوكړي، پس كه هغه باكره وي نو اووه شپې دې مسلسل هغې سره تيرې كړي يعني بيا دې د بقيه ازواج سره هم دغه شان اووه اووه شپې تيرې كړي، او كه هغه بلكه ثيبه ده نو په شروع كښې

دې د هغې سره درې ورځې تيرې کړې يعنی بيا دې د نورو ازواجو سره هم دغه شان درې درې شپې تيرې کړې. نو ګويا د هغوی په نزد دا تفضيل د دورې د ابتداء په اعتبار سره دې مطلقا نه دې، يعنی د شپې تيرولو ابتداء به د دې جديده نه وی فقط. نه دا چه دومره شپې هغه د هغې مستقل حق دې. والله تعالی اعلم. په ترجمة الباب کښې اګر چه مصنف صرف عند البکر بيان کړې دې خو مراد عند البکر والثيب دې ځکه چه په احاديث الباب کښې بکر او ثيب دواړو حکم مذکور دې، او په داسې موقعو باندې داسې وئيلې شی چه دا تعبير د ﴿سرابيل تقيکم الحر﴾ د قبيل نه دې يعنی ﴿والبرد﴾ احد الضدين، په ذکر باندې اکتفاء کوی ځکه چه د يو ضد په ذکر کولو سره د ضد اخر طرف ته په خپل ذهن منتقل کيږی.

[۲۱۲۲] (1) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا تَزَوَّجَ أُمَّ سَلَمَةَ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا، ثُمَّ قَالَ: "لَيْسَ بِكِ عَلَى أَهْلِكِ هَوَانٌ، إِنْ شِئْتِ سَبَّعْتُ لَكِ وَإِنْ سَبَّعْتُ لَكِ سَبَّعْتُ لِنِسَائِي".

**ترجمه**: حضرت ابوبکر رضی الله عنه دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه نبی عليه السلام کله دام سلمه رضی الله عنها سره نکاح اوکړله نودری شپې ئې ورسره تيری کړې او بيائې اوفرمائيل زما ستاسره دری شپې تيرول ستا اوستادقوم ' دپار دشرم خبره نه ده که چرې ستاخوښه وی نو اوه شپې به درسره تيری کړم اوکه چرې ستاسره اوه شپې تيری کړم نو بيا به دنورو بيبيانوسره هم اوه اوه شپې تيروم.

## شرح الحديث

د سيده ام سلمه رضی الله عنها سره چه کله رسول الله صلی الله عليه وسلم نکاح اوفرمائيله نو چونکه هغه ثيبه وه په دې وجه رسول الله صلی الله عليه وسلم په شروع کښې هغې سره درې شپې پاتې شوې وو او هغې ته ئې اوفرمائيل چه ته زما په نزد د کمې مرتبې والا نه ئې لهذا د باکره په شان زه تا سره اووه شپې هم ايسارېدې شم، خو د دې تسبيع (اووه شپو) په صورت کښې به د دې اووه شپو قضاء وی يعنی د نورو کره به هم اووه اووه شپې ايسارېږم.

په دې حديث کښې دثيبه په حق کښې تخيير مذکوردې چه دهغې امام احمد اوامام شافعی قائل دی، دا په ظاهره کښې د امام مالک خلاف دې، ﴿ليس بک علی اهلک﴾ کښې د اهل نه څه مراد دې؟ په دې کښې دوه اقوال دی يو هغه کوم چه پورته ذکر شو، دويم دا چه ددې نه دام سلمه رضی الله عنها د کور خلق مراد دی. والحديث اخرجه مسلم والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۱۲۳] (2) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، عَنْ هُشَيْمٍ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "لَمَّا أَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفِيَّةَ، أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا". زَادَ عُثْمَانُ: "وَكَانَتْ ثَيِّبًا". وَقَالَ: حَدَّثَنِي هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ، أَخْبَرَنَا أَنَسٌ.

---

[1]: صحيح مسلم/الرضاع ۱۲ (۱۴۶۰)، سنن ابن ماجه/النکاح ۳۶ (۱۹۱۷)، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۲۹)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الکبری/ عشرة النساء (۸۹۲۵)، موطا امام مالک/النکاح ۵ (۱٤)، مسند احمد (۲۹۲/٦، ۲۹٦، ۳۰۷)، سنن الدارمي/النکاح ۲۷ (۲۲۵٦) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۸٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۹۹/۳) (صحيح)

**ترجمه:** دحضرت انس بن مالك رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی كله چه نبی علیه السلام صفية رضی الله عنها سره نكاح اوكړه نودرې شپې ئې ورسره تيرې كړې، دعثمان په روايت كښې ورسره دا اضافه ده چه هغه كونډه وه.

[٢١٢٤]([1])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، وَإِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "إِذَا تَزَوَّجَ الْبِكْرَ عَلَى الثَّيِّبِ أَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا، وَإِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا"، وَلَوْ قُلْتُ: إِنَّهُ رَفَعَهُ لَصَدَقْتُ، وَلَكِنَّهُ قَالَ: "السُّنَّةُ كَذَلِكَ".

**ترجمه:** دحضرت انس بن مالك رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه كله به يوكس دخلوت شده ښځې با وجود د باكره جينئ سره نكاح اوكړه نو د باكره جينئ سره به ئې اوه شپې تيرولې. اوچه كله به ئې خلوت شده ښځه په خلوت شده ښځه و باندې اوكړله نوترد رې شپوپورې به ورسره وو، راوی وائی كه چرې زه ووايم چه دا حديث أنس رضی الله عنه مرفوع بيان كړې دی نوربښتيابه وی ليكن انس ووئيل چه سنت عمل همداسې وې.

## توضيح الحديث

په دې حديث كښې د ثيبه دپاره اختيار مذكور نه دې، د مالكيانو پيش نظر هم دا حديث دې، په دې وجه هغوی د اختيار قائل نه دی.

## د احنافو د طرف نه د حديث الباب جواب :

د دې نه پس تاسو په دې ځان پوهه كړئ چه حضرات احناف په دې مسئله كښې ظاهر حديث لره نه دې اختيار كړې ځكه چه جمهور علماء كرام چه د دې احاديث كوم مطلب اخلى دا احاديث په هغې كښې نص او صريح نه دی، او دا انصاف د بيبيانو په منځ كښې مسئله ډيره اهم او نازكه ده د نص قطعی نه د عدل وجوب ثابت دې. قال تعالی : ﴿ ولن تستطيعوا ان تعدلوا بين النساء ولو حرصتم فلا تميلوا كل الميل فتذروها كالمعلقة ﴾دغه شان ډير حديثونو كښې برابر والې نه كول او دبيبيا نو په منځ كښې د انصاف (برابری) پريښودلو باندې سخته زورنه راغلې ده په دې وجه احنافو احاديث الباب كوم چه محتمل وو احتياطا په دې معنی باندې محمول نه كړل چه په كوم باندې ئې دا جمهور حضرات كوی بلكه په هغه معنی باندې ئې محمول كړل كوم چه د باب په شروع كښې تير شو، امام طحاوی د جمهورو په مسلك باندې سوال كړې دې او هغه دا چه په ثيبه كښې كه درې ورځې د هغه خپل حق وو نو د تسبيع په صورت كښې هغه ساقط ولې شو، او قضاء پوره د اووه ورځو ولې وی، بلكه درې ورځې مستثنی كيدو سره قضاء صرف د څلورو ورځو كيدل پكار دی، حال دا چه داسې نه ده.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم وابن ماجة قاله المنذری ([2])

---

[1]): صحيح البخاري/النكاح ١٠٠ (٥٢١٣)، ١٠١ (٥٢١٤)، صحيح مسلم/الرضاع ١٢ (١٤٦١)، سنن الترمذي/النكاح ٤٠ (١١٣٩)، سنن ابن ماجه/النكاح ٢٦ (١٩١٦)، (تحفة الأشراف: ٩٤٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/النكاح ٥(١٥)، سنن الدارمي/النكاح ٢٧ (٢٢٥٥) (صحيح)

[2]) الحديث الأول من افراد مسلم وفيه ذكر التخيير بخلاف هذا الحديث المتفق عليه).

## بَاب فِي الرَّجُلِ يَدْخُلُ بِامْرَأَتِهِ قَبْلَ أَنْ يُنْقِدَهَا شَيْئًا

### د نکاح نه پس ښځې ته د خلوت نه مخکښې څه ورکول پکار دی

يعنی د نکاح نه روستو د مهر د ادا کولو نه مخکښې خاوند د خپلې بی بی سره وطی کولې شی یا نه؟ قال الشوکانی اتفقوا علی انه لا یجب علی الزوج تسلیم المهر الی المراءة قبل الدخول، په دې کښې د احنافو مسلک دا دې چه دا خو صحیح ده چه په خاوند باندې د مهر ادا کول قبل الدخول واجب نه دی، خو للمراءة حق المنع عن تمکین الزوج قبل اداء المهر... يعنی که زنانه غواړی نو د مهر ادا کولو نه مخکښې ورته د مهر ادا کولو حق حاصل دې هغه خاوند لره د وطی نه منع کولې شی.

[٢١٢٥](١)حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الطَّالَقَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَمَّا تَزَوَّجَ عَلِيٌّ فَاطِمَةَ، قَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعْطِهَا شَيْئًا"، قَالَ: مَا عِنْدِي شَيْءٌ، قَالَ: "أَيْنَ دِرْعُكَ الْحُطَمِيَّةُ".

**ترجمه:** دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دی فرمائی چه کله علی رضی الله عنه دفاطمې رضی الله عنها سره نکاح اوکړله نونبی عليه السلام ورته اوفرمائيل څه شی ورته ورکړه علی رضی الله عنه ووئيل هيڅ راسره نشته، نبی عليه السلام ورته او فرمائيل ستاحطمی زغره چرته ده؟

### توضيح الحديث

يعنی کله چه د سيدنا علی رضی الله عنه د سيده فاطمه رضی الله عنها سره نکاح اوشوه او د رخصت کيدو وخت راغلو نو رسول الله صلی الله عليه وسلم علی رضی الله عنه ته اوفرمائيل چه دې ته څه ورکړه، هغه عرض اوکړو ما سره هيڅ نشته، په دې باندې رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه تا سره چه کومه حطمی زغره وه هغه چرته ده؟ هغه حطمی زغره خپله رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه ته ورکړې وه د غنائم بدر نه، او وړاندې په روايت کښې راځی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه ته اوفرمائيل: ﴿اعطها درعک فاعطاها درعة ثم دخل بها﴾

دلته دا شبه راځی چه د واده په شپه کښې او د رخصت کيدو په موقع باندې د زغرې ورکول څه مناسبت لرلو، زغره خو د جنګ په موقع باندې په کار راتلونکې څيز دې؟ د دې جواب دا دې چه د درع نه مراد ثمن درع دې، او په منهل کښې ليکلې دی د درع د قيمت په باره کښې چه هغه څلور سوه اتيا درهم وو، او د مولانا يوسف صاحب په حياة الصحابه ص ٦٦١ کښې مې څه وخت کتلې وو په هغې کښې دی چه هغه زغره علی رضی الله عنه په عثمان باندې خرڅه کړې وه، او هم دغه شان د مولانا ادريس کاندهلوی صاحب په سيرة المصطفی ١٧١/٢ کښې هم دا مضمون دې، اصل کښې روايات د هغې په ثمن کښې مختلف دی ترډې چه يو روايت دا هم دې ﴿لا تساوی اربعة دراهم﴾ او د ظاهر حديث نه دې دا خيال اونکړې شی چه د فاطمه رضی الله عنها مهر معين نه وو ځکه چه دلته چه د کوم مهر ذکر دې دا

---

(١): سنن النسائي/النكاح ٧٦ (٣٣٧٨)، (تحفة الأشراف: ٦٠٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨/١) (حسن صحيح)

خو هغه دې کوم ته چه مهر معجل وئيلې شي [1] يعنى د مخ ښکاره کولو چه کومې پيسې خاوند ته په اوله شپه ورکوى (كرامة وتانيسا) د خپل قرب او مانوس كولو دپاره. والحديث اخرجه النسائى قاله المنذرى.

[٢١٢٦] ([2]) حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ عُبَيْدٍ الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو حَيْوَةَ، عَنْ شُعَيْبٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي حَمْزَةَ، حَدَّثَنِي غَيْلَانُ بْنُ أَنَسٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ عَلِيًّا لَمَّا تَزَوَّجَ فَاطِمَةَ بِنْتَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَرَادَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، فَمَنَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى يُعْطِيَهَا شَيْئًا، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَيْسَ لِي شَيْءٌ. فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعْطِهَا دِرْعَكَ"، فَأَعْطَاهَا دِرْعَهُ ثُمَّ دَخَلَ بِهَا.

**ترجمه:** حضرت عبد الرحمن بن ثوبان په صحابه کرامو کښې ديو کس نه روايت کوى فرمائى چه علی رضی الله عنه کله دفاطمه بنت رسول الله ﷺ سره نکاح اوکړه او اراده ئې اوکړه چه خلوت ورسره اوکړى نونبى علیه السلام منع کړوتردې چه څه شى ورته ورکړى، هغه عرض اوکړو اې دالله رسوله هيڅ شى راسره نشته، نبى علیه السلام ورته اوفرمائيل هغه زغره دى ورته ورکړه، نوهغه ورته خپله زغره ورکړه او بيائى ددې نه پس ورسره خلوت اوکړو.

[٢١٢٧] ([3]) حَدَّثَنَا كَثِيرٌ يَعْنِي ابْنَ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو حَيْوَةَ، عَنْ شُعَيْبٍ، عَنْ غَيْلَانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، مِثْلَهُ.

**ترجمه:** حضرت عکرمه دابن عباس رضی الله عنهما نه دتيرشوى روايت په شان روايت نقل کړى دى.

[٢١٢٨] ([4]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ طَلْحَةَ، عَنْ خَيْثَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أُدْخِلَ امْرَأَةً عَلَى زَوْجِهَا قَبْلَ أَنْ يُعْطِيَهَا شَيْئًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَخَيْثَمَةُ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عَائِشَةَ.

**ترجمه:** دحضرت عائشه رضی الله عنها نه روايت دې فرمائى چه نبى علیه السلام راته حکم وکړوديوى زنانه په باره کښې چه خپل خاوند ته ئې ورسوه، مخکښې ددې نه چه دهمبسترئ نه مخکښې ئې ورته څه ورکړى وى. امام ابوداود وائى چه دخيثمه سماع دعائشې رضی الله عنها نه ثابته نده.

[٢١٢٩] ([5]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ الْبُرْسَانِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ نُكِحَتْ عَلَى صَدَاقٍ أَوْ حِبَاءٍ أَوْ عِدَةٍ قَبْلَ عِصْمَةِ النِّكَاحِ فَهُوَ لَهَا، وَمَا كَانَ بَعْدَ عِصْمَةِ النِّكَاحِ فَهُوَ لِمَنْ أُعْطِيَهُ، وَأَحَقُّ مَا أُكْرِمَ عَلَيْهِ الرَّجُلُ ابْنَتُهُ أَوْ أُخْتُهُ".

**ترجمه:** حضرت عمرو بن شعيب دخپل پلارنه اوهغه دده دنيکه نه روايت کوى فرمائى چه

---

[1] خو که د دې زغرې قيمت څلور سوه او اتيا درهم اومنلې شى نو بيا به دا وئيلې شى چه په مهر معجل به هم دا وه او ټول مهر هم دا وو.

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٦٨) (ضعيف)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١٨٤) (ضعيف)

[4]: سنن ابن ماجه/النكاح ٥٤ (١٦٠٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٦٠٦٩) (ضعيف)

[5]: سنن النسائي/النكاح ٦٧ (٣٣٥٥)، سنن ابن ماجه/النكاح ٤١ (١٩٥٥)، (تحفة الأشراف: ٨٧٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٨٢) (ضعيف)

نبي ﷺ فرمائيلي دي هره يوه ښځه چه په عطيه يامهريا په وعده باندې نکاح اوکړی دنکاح نه وړاندې ميلاويدونکې ځيز دښځې به وی او دنکاح نه پس کوم ځيز چې ملاو شونو دهغه چا به وی چاته چې ميلاو شي (انعام وغيره) سړې چې دکوم ځيز په وجه باندې دخپل عزت يا اکرام مستحق دې هغه دده لور يا خور ده سړی ته دخور يا لورپه وجه ورکړی شي.

## توضيح الحديث

دا حديث په ابن ماجه کښې هم دی هغه په دې باندې ترجمه قائم کړې ده "باب الشرط فی النکاح"او په بيهقی کښې هم دی او د دې ترجمه ده "باب الشرط فی المهر"

## شرح الحديث ومذاهب العلماء :

او حاصل معنی د دې حديث دا ده چه د عقد نکاح نه مخکښې زنانه يا د زنانه اولياء د طرف نه د مهر سره چه نور بعض شرطونه هم لګولې دی ورکړه وغيره، مثلا سړی ته اوئيلې شو چه د زنانه فلانی عزيز ته به دا ورکولې شی او فلانی ته به دا ورکول وی مثلا کپړه، پيزار او دغه شان ځيزونه نو په دې حديث کښې دی چه د داسې لين دين چه کومه وعده وی نو هغه ځيز به د هغه سړی دپاره نه وی د کوم دپاره چه نامزد کړې شوې دې بلکه دا ټول ځيزونه به د زنانه دپاره وی ځنګه چه مهر صرف د زنانو دپاره دې، او که دا د لين دين خبره د عقد نکاح نه روستو وی نو د چا په نوم چه ورکولې شی هم د هغه به وی، دا خو ده د حديث معنی. اوس دا چه فقهاء کرام څه فرمائی او په دې حديث باندې د چا عمل دې پس د هغه په باره کښې په شروع کښې دا ليکلې دی چه د جمهور علماء کرامو په دې باندې عمل نه دې. او! سفيان ثوری، عمر بن عبدالعزيز او امام مالک هم د دې قائل دی کوم چه په دې حديث کښې دی، او د امام احمد مسلک دا دې چه هم دغه شان به کيږی چه ځنګه په دې حديث کښې دی، خو د دې نه پلار مستثنی دې يعنی د جينئ د پلار دپاره تسميه صحيح ده هغه به هم هغه ته ملاويږی او د امام شافعی رحمه الله په نزد په داسې صورت کښې (چه هر کله د مهر سره نور ځيزونه شرط کړې شوې وی) تسميه مهر به باطل شی لهذا صرف مهر مثل به باقی پاتې شی، د احنافو په نزد چه د مهر سره کوم شرط لګولې شی هغه شرط هم صحيح او لازم دې او تسميه هم صحيح ده، دا حديث په بلوغ المرام کښې هم دې په هغې کښې دی رواه احمد والاربعة الا الترمذی او د هغې په شرح سبل السلام کښې ئې په دې حديث باندې ښه کلام کړې دې، مذاهب ائمه ئې هم ليکلې دی، د احنافو او شوافعو مذهب ئې هم هغه ليکلې دې کوم چه پورته مذکور شو، د تشريح مذکور نه معلومه شوه چه دا حديث د احنافو او شوافعو خلاف دې، جواب دا کيدې شی چه دا حديث د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده په سند سره دې چه په هغې باندې کلام مشهور دې.

﴿واحق ما اکرم عليه الرجل ابنته واخته﴾او هغه ځيز چه د هغې په وجه باندې انسان د اکرام او احسان زيات مستحق کيږی هغه د هغه لور او خور ده.

## د ښځې د خپلوانو سره حسن سلوک :

يعنی د کوم سړی په نکاح کښې چه د کوم سړی لور وی يعنی د انسان سخر، يا د هغه خور

وي يعني د زنانه نسبتي رور او اوښې، دا ډير قابل اکرام او قابل احسان دی، د دې حديث نه معلومه شوه چه انسان لره د خپل سخر او اوښې سره د اکرام او احسان معامله کول پکار دی، ځکه چه د هغه دواړو کسانو ډير لوئې احسان دې، پس متل مشهور دې چه چا خپله لور ورکړه هغه خپل هر څه ورکړل، نو بيا به هغه د احسان مستحق ولې نه وی، د اکرام نه مراد صرف تعظيم نه دې بلکه ورکړه ده، په دې حديث کښې د حسن معاشرت په بهترين شکل کښې تعليم او تلقين دې پس چه کله د ښځې د پلار او رور سره د حسن سلوک او احسان دومره تاکيد دې نو خپله د ښځې سره د دې موکد کيدل ظاهر دی. والله الموفق

## بَابُ مَا يُقَالُ لِلْمُتَزَوِّجِ

### نکاح کونکی ته به مبارکبادی څنګه ورکولې شي؟

[٢١٣٠] (١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَفَّأَ الْإِنْسَانَ إِذَا تَزَوَّجَ، قَالَ: "بَارَكَ اللَّهُ لَكَ وَبَارَكَ عَلَيْكَ وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا فِي خَيْرٍ".

**ترجمه**: حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلی دخلقودنکاح په وخت کښې ورته وئيل چه دادعاوائی: قال«بارك الله لك وبارك عليك وجمع بينكما في خير»

### د نوی واده کونکی دپاره دعا :

يعني رسول الله صلى الله عليه وسلم نوی واده کونکی ته مبارکی په دې الفاظو سره ورکوله، او په زمانه جاهليت کښې مشرکين عرب "بالرفاء والبنين" دعا به ئې ورکوله. د رفاء معنی التهام او اتفاق يعني جوړ او يوځائې کيدل، او په بنين سره اشاره وه د کراهت بنات طرف ته، مطلب دا شو چه الله پاک دې ستاسو ترمينځه تعلق قائم ساتي او نارينه اولاد دې درکړی، په اسلام کښې د دې په ځائې مذکوره مسنون دعا مشروع کړې شوې ده.

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة وقال الترمذی، حسن صحيح قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَتَزَوَّجُ الْمَرْأَةَ فَيَجِدُهَا حُبْلَى

### دهغه کس بيان چه دچا سره نکاح وکړی او خپله ښځه په داسې حال کښې ووينی چه حامله وی

[٢١٣١] (٢) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ أَبِي السَّرِيِّ الْمَعْنَى، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، قَالَ ابْنُ أَبِي السَّرِيِّ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَقُلْ مِنَ الْأَنْصَارِ، ثُمَّ اتَّفَقُوا، يُقَالُ لَهُ: بَصْرَةُ، قَالَ: تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً بِكْرًا فِي سِتْرِهَا، فَدَخَلْتُ عَلَيْهَا فَإِذَا هِيَ حُبْلَى، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَهَا الصَّدَاقُ بِمَا اسْتَحْلَلْتَ مِنْ فَرْجِهَا وَالْوَلَدُ عَبْدٌ لَكَ، فَإِذَا وَلَدَتْ، قَالَ الْحَسَنُ: فَاجْلِدْهَا، وَقَالَ ابْنُ أَبِي السَّرِيِّ: فَاجْلِدُوهَا، أَوْ قَالَ: فَحُدُّوهَا". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ قَتَادَةُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ، وَرَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ نُعَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، وَعَطَاءٍ الْخُرَاسَانِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، أَرْسَلُوهُ كُلُّهُمْ، وَفِي حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، أَنَّ

---

[1]: سنن الترمذي/النكاح ٧ (١٠٩١)، سنن ابن ماجه/النكاح ٢٣ (١٩٠٥)، سنن النسائي/ اليوم والليلة (٢٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨١/٢)، سنن الدارمي/النكاح ٦ (٢٢١٩) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٠٢٤ و ١٨٧٥٦) (ضعيف)

بَصْرَةَ بْنَ أَكْثَمَ نَكَحَ امْرَأَةً، وَكُلُّهُمْ قَالَ فِي حَدِيثِهِ: جَعَلَ الْوَلَدَ عَبْدًا لَهُ.

**ترجمه:** د بصرة رضی الله عنه نه روایت دی فرمائی چه دیوی پرده داری پیغلی جینئ سره مي نکاح اوکړه زه و چه کله ورنزدې شوم نوهغه حامله وه، مانبی ﷺ ته ددې خبری تذکره اوکړله هغه اوفرمائیل هغه زنانه دمهر حقداره ده ځکه چه تادهغې فرج ځان ته حلال کړی دی، کله چی ددې خوی اوشی هغه به، ستاغلام وی اوکله چه ددې ولادت وشی نودحسن په روایت کښې دی چی په کوړه ئې اوهه (دواحد صیغې سره) او دابن سری په روایت کښې دی چی په کوړو سره ئې اوهې دجمع صیغې سره یا نبی ﷺ خره ائیلې دی چی حد پرې جاری کړې. امام ابوداود وائی چه دا حدیث قتاده دسعید بن یزیدنه هغه دابن المسیب، نه اوهمدارنګی یحی بن أبی کثیردیزیدبن نعیم نه هغه، دسعید بن المسیب اوعطاء خراسانی نه اوټولومرسل بیان کړی دی او په حدیث دیحی بن أبی کثیر کښې دا اضافه ده چه بصره بن اکثم دیوی زنانه سره نکاح اوکړه اودټولو راویانوپه روایتونوکښې داسې الفاظ دی چه دهغې بنځې خوی ئې دده غلام کړو.

**تشریح:** ﴿عن رجل من الانصار یقال له بصرة قال تزوجت امراة بکرا فی سترها الخ ﴾

بصره بن اکثم فرمائی چه ما د یوې پیغلې او نا واده کړې جینئ سره واده اوکړو په داسې حال کښې چه هغه لا تر اوسه پورې په خپله پرده کښې وه یعنی نکاح کولو سره به د یو سړی مخې ته نه راتله خو چه کله زه د هغه خواته راغلم نو ما اوکتله چه هغه حامله ده، دا قصه رسول الله ﷺ ته اورسیده نو هغه اوفرمائیل ﴿لها الصداق بما استحللت من فرجها ﴾ یعنی نکاح چونکه صحیح شوه نو زنانه ته به مهر ورکولې شی، هم دغه شان اوفرمائیل ﴿والولد عبد لک ﴾دا کلام په خپل ظاهر باندې نه دې ځکه چه ولد حره بالاتفاق حر وی اګر چه هغه ولد زنا وی په دې وجه علماء کرامو د دې مطلب دا لیکلې دې چه دې پیدا کیدونکی ماشوم نه د ولد زنا کیدو د وجې نه تاته په دې وجه نفرت نه دې کیدل پکار بلکه د هغه سره د احسان معامله کول ځنګه چه انسان د خپل غلام سره د احسان معامله کوی.

﴿فاذا ولدت فاجلدها ﴾د جلد ثبوت بغیر د زنا د ثبوت نه نه کیږی او د زنا ثبوت بغیر د اعتراف یا شهادت نه نه کیږی لهذا مطلب دا شو چه که هغه زنانه د زنا اعتراف اوکړی نو په هغې باندې دې حد زر جاری کړې شی، د جمهورو قول هم دا دې په دې کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف دې، د هغه په نزد ثبوت حد او زنا دپاره وجود حمل کافی دې لهذا دا حدیث د هغه په نزد په خپل ظاهر باندې دې تاویل ته محتاج نه دې او د جمهورو په نزد یا خو په اعتراف زنا باندې محمول دې او یا دا په خائې د حد په تعزیر او تادیب باندې محمول کول پکار دی والحدیث اخرجه البیهقی قاله فی المنهل.

[ ٢١٣٢ ]( )حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَلِيٌّ يَعْنِي ابْنَ الْمُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ يَزِيدَ بْنِ نُعَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، أَنَّ رَجُلًا يُقَالُ لَهُ: بَصْرَةُ بْنُ أَكْثَمَ نَكَحَ امْرَأَةً، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، زَادَ وَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا، وَحَدِيثُ ابْنِ جُرَيْجٍ أَتَمُّ.

[1]. تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢١٢٤، ١٨٧٥٦) (ضعيف)

**ترجمه**: حضرت سعید بن مسیب نه دتیرشوی روایت په شان روایت نقل کړی شوی دی مګر ددی اضافی سره چه بیانی ددوی په مینځ کښې جدائی راوستله (طلاق) اوحدیث دابن جریج ډیر کامل دې.

**تشریح**: ﴿ فذكر معناه زاد : وفرق بينهما ﴾ په دې دویم روایت کښې دا زیادت دې چه د دې دواړو ښځې او خاوند ترمینځه ئې جدائی راوستله د دې زیادت د ظاهر نه خو دا معلومیږی چه دا نکاح صحیح نه وه حال دا چه بالاتفاق نکاح خو صحیح ده د زانیه سره هم په دې وجه باندې هغه د مهر فیصله هم اوفرمائیله. پس ممکنه ده چه رسول الله ﷺ د هغوی ترمینځه تفریق د هغوی په طلب او خواهش باندې راوستلې وی. یعنی خاوند د رسول الله ﷺ نه د دې طلاق اجازت غوښتلې وی او هغه ورته اجازت ورکړو. او یا دا اوئیلې شی چه دلته د تفریق نه مراد په اعتبار د وطی دې ځکه چه هغه زنانه د زنا نه حبلی وه، فوری او موجوده حالت کښې د خاوند دپاره د هغې قربان کول جائز نه وو (بذل)

وهذه التعاليق اخرجها البيهقى قاله في المنهل.

## بَابٌ فِي الْقَسْمِ بَيْنَ النِّسَاءِ

### د ښځو په مینځ کښې دا نصاف کولو او د شپو تقسیم بیان

د قسم نه مراد عدل او نمبر مقرر کول دی د تعدد ازواج په صورت کښې.

[۲۱۳۳](۱)حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنِ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ كَانَتْ لَهُ امْرَأَتَانِ فَمَالَ إِلَى إِحْدَاهُمَا، جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَشِقُّهُ مَائِلٌ".

**ترجمه**: حضرت ابوهریره (رض) نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی دچاچه دوه ښځې وی او دیوی طرف ته ورکوږ شی (یعنی توجه ورته زیاته کړی اودبلې خیال نه ساتی نودقیامت په ورځ به په داسې حال کښې راشی چه دجسم یوه حصه به ئې شله وي.

**تشریح**: ﴿من كانت له امراتان فمال الى احدهما جاء يوم القيامة وشقه مائل ﴾

په دې حدیث کښې په ترک عدل باندې وعید دې چه کوم سړې په دوه ښځو کښې برابری نه کوی بلکه د یوې طرف ته مائل وی نو هغه ته په سزا هم دا قسم ورکولې شی یعنی میدان حشر ته چه کله هغه راشی نو د هغه د بدن یوه حصه به ښکته شوې وی.

والحديث اخرجه الترمذى والنسائى وابن ماجة قاله المنذرى.

[۲۱۳۴](۲)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ الْخَطْمِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ فَيَعْدِلُ، وَيَقُولُ: "اللَّهُمَّ هَذَا قَسْمِي فِيمَا أَمْلِكُ، فَلَا تَلُمْنِي فِيمَا تَمْلِكُ وَلَا أَمْلِكُ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: يَعْنِي الْقَلْبَ.

[1]: سنن الترمذي/النكاح ۴۱ (۱۱۴۱)، سنن النسائي/عشرة النساء ۲ (۳۹۹۴)، سنن ابن ماجه/النكاح ۴۷ (۱۹۶۹)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۹۵، ۳۴۷، ۴۷۱)، سنن الدارمي/النكاح ۲۴ (۲۲۵۲) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/النكاح ۴۱ (۱۱۴۰)، سنن النسائي/عشرة النساء ۲ (۳۳۹۵)، سنن ابن ماجه/النكاح ۴۷ (۱۹۷۱)، (تحفة الأشراف: ۱۶۲۹۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۱۴۴)، سنن الدارمي/النكاح ۲۵ (۲۲۵۳) (ضعيف)

**ترجمه:** حضرت ام المومنين عائشة رضي الله عنها روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام به زمونږ په مينځ کښي دشپو تقسيم کولو او دخپلو بيبيانو په مينځ کښي به ئي انصاف کولو او فرمائيل به ئي اې الله زما دا تقسيم په داسي کارکښي دې دکوم چه زماسره اختياردې اوزه ئي مالك يم خودکوم کارچه ته مالك ئي اوزماپه اختيارکښي نشته نوپه هغي باندې ما ملامت نکړې يعني دکوشش باوجود که چرې کمي بي بي ته رغبت زيات شي نوهغه راته معاف کړې.

## توضيح الحديث

په دې باندې خو د ټولو اتفاق دې چه د رسول الله ﷺ عادت شريفه او معمول د زوجات ترمينځه برابرى کول وو خو په دې کښې د علماء کرامو اختلاف دې چه په هغه باندې دا برابرى واجب وه يا که هغه به په خپل اختيار سره فرمائيلو. بهرحال د عدل او برابرئ باوجود به رسول الله ﷺ دا دعا کوله کومه چه په حديث کښې ذکر شوې ده چه د هغې مطلب دې يا الله! په کومو څيزونو کښې چه برابرى کول زما په اختيار کښې دى هغه خو زه کوم او په کوم څيز کښې چه برابرى زما په اختيار کښې نه ده يعنى غير اختيارى طور د يوې ښځې سره محبت کول ته په هغې کښې ما معاف کړه.

والحديث اخرجه الترمذى والنسائى وابن ماجة قاله المنذرى.

[۲۱۳۵]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَتْ عَائِشَةُ: "يَا ابْنَ أُخْتِي، كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُفَضِّلُ بَعْضَنَا عَلَى بَعْضٍ فِي الْقَسْمِ مِنْ مُكْثِهِ عِنْدَنَا، وَكَانَ قَلَّ يَوْمٌ إِلَّا وَهُوَ يَطُوفُ عَلَيْنَا جَمِيعًا، فَيَدْنُو مِنْ كُلِّ امْرَأَةٍ مِنْ غَيْرِ مَسِيسٍ حَتَّى يَبْلُغَ إِلَى الَّتِي هُوَ يَوْمُهَا فَيَبِيتَ عِنْدَهَا، وَلَقَدْ قَالَتْ سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ حِينَ أَسَنَّتْ وَفَرِقَتْ أَنْ يُفَارِقَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، يَوْمِي لِعَائِشَةَ، فَقَبِلَ ذَلِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا، قَالَتْ: نَقُولُ فِي ذَلِكَ أَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى، وَفِي أَشْبَاهِهَا أُرَاهُ، قَالَ: وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا سورة النساء آية ۱۲۸".

**ترجمه:** حضرت عروه روايت دې فرمائي چه ام المومنين عائشه رضي الله عنها فرمائيلى دى اې زما د خور بچيه نبي عليه السلام به دشپو په تقسيم کښې پخپلو بيبيانوکښې يوى ته په بلى فضيلت نه ورکولو يعنى زمونږ سره په وخت تيرولوکښې، اوداسې به ډيرکم وو چه هغه به مونږ ټولو ته نه راتلو اود لاس وړلو نه بغير به نبي ﷺ ټولو ته نزدې ووکومې بى بى ته به ئې چه لاس ونه لږولو تردې پورې چه نبي عليه السلام به کله هغه بى بى ته ورغې دچا چه به دشپې نمبر وو نوهمبسترى به ئې اوکړله. کله چه سوده رضي الله عنها بوډۍ شوه اودا وېره ورسره پيداشوه هسې نه چه نبي عليه السلام مې پرېږدى نوپه دى وجه هغې خپل نمبر عائشه رضي الله عنها ته اوبخښلو نبي عليه السلام داخبره منظور کړه او ددې معاملې په شان نور معاملات په دې آيت کريمه: («وان امرأة خافت من بعلها نشوزا») کښې نازل شول که چرته ښځې ته د خپل خاوند د بد مزاج وېره وه.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۰۲٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/النكاح ۹۹ (۵۲۱۲)، صحيح مسلم/التفسير ۱ (۳۰۲۲)، مسند احمد (۱۰۷/٦) (حسن صحيح)

[۲۱۳۶]()حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ مُعَاذَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَأْذِنُنَا إِذَا كَانَ فِي يَوْمِ الْمَرْأَةِ مِنَّا بَعْدَ مَا نَزَلَتْ: تُرْجِي مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ مَنْ تَشَاءُ سورة الأحزاب آية٥١"، قَالَتْ مُعَاذَةُ: فَقُلْتُ لَهَا: مَا كُنْتِ تَقُولِينَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَتْ: كُنْتُ أَقُولُ: "إِنْ كَانَ ذَلِكَ إِلَيَّ لَمْ أُوثِرْ أَحَدًا عَلَى نَفْسِي".

**ترجمه**: حضرت ام المومنين عائشة رضی الله عنها روايت دي : فرمائي چه دذكرشوي آيت: («ترجي من تشاء منهن وتؤوي إليك من تشاء») د دنازليدونه پس يعنى دچادپاره چه ته وغواړې چه شاته ئې پريږدې (نوستادپاره اجازت دي) اودچادپاره چه وغواړې چه دځان سره ورته ځائې ورکړې (نوستادپاره اجازت دي) اګرچه ددې ايت په وجه نبی علیه السلام ته اختيار ورکړې شوې وولیکن ددې باوجود به هم نبی علیه السلام دنمبر خيال ساتلو اوچه دانمبر به وو دهغې په اجازت به پنې دبی کره شپه تيرولې معاذه وائي ما دعائشې رضی الله عنها نه تپوس اوکړو چه تابه داجازت غوښتلو په وخت كښې څه وئيل هغې ووئيل مابه داسې وئيل كه چرې دازماپه اختيار كښې وی نوزه به هيڅوك پخپل ځان باندې غوره نكړم.

## شرح الحديث :

سيده عائشه رضی الله عنها فرمائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د بيوې بی بی په نمبر كښې بلې زوجې نه تلل غوښتل نو د هغې نه به ئې اجازت غوښتلو بغير د اجازت نه نه. حال دا چه دا آيت كريمه نازل شوې وو ﴿ترجى من تشاء﴾ د سيده عائشه رضی الله عنها د دې حديث نه د دې آيت كريمه تفسير هم معلوم شو هغه دا چه په دې كښې الله پاک رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اختيار وركړې دې چه د خپلو بيبيانو نه چه كله غواړې او كومه يوه غواړې خپل ځان ته راغوښتلې شي او چه څوك غواړې د ځانه ئې لرې كولې شي، د ارجاء اصل معنى د تاخير ده او دلته ددې نه مراد ترک بيتوتت دې او ايواء د دې مقابل دې يعنى بيتوتت او شپه تيرول. د دې آيت كريمه په تفسير كښې نور هم ډير اقوال دی مجامعت او ترک مجامعت كښې اختيار، او يو تفسير د دې دا دې چه په دې كښې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اختيار وركړې شوې دې د امساک او تطليق ترمينځه چه په دې ازواج كښې چه هغه چاته غواړې طلاق وركولې شي او چه څوك په نكاح كښې باقی ساتل غواړې هغه دې باقي اوساتي و غيره.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي قاله المنذري.

[۲۱۳۷]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا مَرْحُومُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ الْعَطَّارُ، حَدَّثَنِي أَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ بَابَنُوسَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ إِلَى النِّسَاءِ تَعْنِي فِي مَرَضِهِ فَاجْتَمَعْنَ، فَقَالَ: "إِنِّي لَا أَسْتَطِيعُ أَنْ أَدُورَ بَيْنَكُنَّ، فَإِنْ رَأَيْتُنَّ أَنْ تَأْذَنَّ لِي فَأَكُونَ عِنْدَ عَائِشَةَ فَعَلْتُنَّ"، فَأَذِنَّ لَهُ.

**ترجمه**: حضرت ام المومنين عائشة رضی الله عنها روايت دي فرمائي چه نبی علیه السلام په مرض موت

[1]: صحيح البخاري/تفسير القرآن ۷ (۴۷۸۹)، صحيح مسلم/الطلاق ٤ (١٤٧٦)، سنن النسائي/ الكبري/ عشرة النساء (۸۹۳٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٧٦، ١٥٨، ٢٦١) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٦٨٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الجنائز ٦٤ (١٦١٨)، مسند احمد (٦/١٨٧، ٢٩١) (صحيح)

کښې خپلې بيبيانې راوغوښتلې ټولې راغلې نبی علیه السلام ورته اوفرمائيل زما طاقت ختم شوی دې چه زه په و تاسو ټولوباندې وګرځم که ستاسو اجازت وی نوزه به دعائشې رضی الله عنها سره داشپې ورځې تيرې کړم هغوی ورته اجازت ورکړو او تروفات کيدو پورې دعائشې رضی الله عنها سره او اوسيدو اوهم ددې په کور کښې وفات شو.

## توضيح الحديث

يعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل مرض وفات کښې ټولې بيبيانې راجمع کړې او ورته ئې اوفرمائيل چه اوس په ما کښې دومره طاقت نشته چه تاسو ټولو کره دې په نمبر نمبر شپه تيره کړم، پس که تاسو مناسب ګنړئ نو ماته د دې خبرې اجازت راکړئ چه زه د عائشې رضی الله عنها کره يم، نو داسې ضرور اوکړئ په دې باندې هغوی ټولو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اجازت ورکړو. دا مضمون حديث حضرت شيخ په خصائل نبوی ص ۲۴۱ کښې داسې ليکی : د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مرض ابتداء د سر درد نه اوشوه هغه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم د عائشې رضی الله عنها په کور کښې وو، د هغې نه روستو د سيده ميمونه رضی الله عنها د نمبر په ورځ کښې په مرض کښې شدت پيدا شو، په دې حالت کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د بيبيانو د نمبرو تقسيم پوره کولو خو چه کله ئې په مرض کښې زيات شدت پيدا شو نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وينا باندې ټولو بيبيانو د عائشې رضی الله عنها په کور کښې د بيمارئ د ورځو تيرولو اختيار ورکړې وو، هم دا وجه وه چه د عائشې رضی الله عنها په کور کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفات شو الی اخره.

[۲۱۳۸]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ، أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا أَقْرَعَ بَيْنَ نِسَائِهِ فَأَيَّتُهُنَّ خَرَجَ سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا مَعَهُ، وَكَانَ يَقْسِمُ لِكُلِّ امْرَأَةٍ مِنْهُنَّ يَوْمَهَا وَلَيْلَتَهَا، غَيْرَ أَنَّ سَوْدَةَ بِنْتَ زَمْعَةَ وَهَبَتْ يَوْمَهَا لِعَائِشَةَ".

**ترجمه**: حضرت ام المومنين عائشة رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به کله دسفر اراده اوکړه - نودخپلو بيبيانو په مينځ کښې به ئې قرعه اندازی کړه قرعه اندازی چه به د چاوختله نوهغه به ئې دځان سره بوتله اود هرې يوی بی بی دپاره به ئې يوه شپه اويوه ورځ مقرروله مګر سوده بنت زمعه رضی الله عنها نه خپله ورځ عائشې رضی الله عنها ته بخلی وه نونبی علیه السلام به دهغې سره په اوسيدو دهغې په نمبر کښې به هم دعائشې رضی الله عنها سره اوسيدو.

## د حديث سره متعلق فقهی اختلافی مسئله :

د حديث مضمون واضح دې خو مسئله اختلافی ده. د رسول الله صلی الله علیه وسلم په باره کښې خو اختلاف دې چه په هغه باندې چې تقسيم د بيبيانو په منځ کښې واجب وو يا نه خو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د غير دپاره د امام شافعی او امام احمد مذهب دا دې چه د کوم سړی ډيرې بيبيانې وی او هغه په هغوی کښې صرف د بعض سره سفر کول غواړی نو په دې صورت کښې د دې

[1]): صحيح البخاري/الهبة ۱۵ (۲۵۹۳)، والنكاح ۱۷ (۵۰۹۲)، (تحفة الأشراف: ۱۶۷۰۳، ۱۶۶۷۸)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/فضائل الصحابة ۱۳ (۲۴۴۵)، سنن ابن ماجه/النكاح ۴۷ (۱۹۷۰)، سنن النسائي/ الكبری/ عشرة النساء (۸۹۲۳)، مسند احمد (۶/۱۱۷، ۱۵۱، ۱۹۷، ۲۶۹)، سنن الدارمي/الجهاد ۳۱ (۲۴۶۷) (صحيح)

دواړو امامانو په نزد قرعه اندازي واجب ده او د احنافو او مالکیانو په نزد واجب نه ده، د هغوی دواړو په نزد د سفر په حالت کښې تقسیم واجب نه دې، او افضل او سنت ضرور دې، بیا د امام شافعي او احمد په نزد که ئې قرعه اندازي نه وی کړې او یو ئې د خپل ځان سره واخستلو نو د سفر د مودې قضاء به واجب وی او که د قرعه اندازئ نه پس ئې واخستلو نو بیا به قضاء واجب نه وی، د احنافو او مالکیانو په نزد به مطلقا قضاء واجب نه وی (منهل)

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَشْتَرِطُ لَهَا دَارَهَا

**که چرې خاوند پخپله ښځه دا شرط ولګوی چه بل کور کښې به وی ملک ته به دې نه بوځم**

یعنی که د نکاح په وخت زنانه د سړی په مخکښې دا شرط کیخودلو چه ته ما د خپل کور نه یا ښهر نه بهر نه شې بوتلې او سړی هغه شرط قبول کړو نو ایا په دې سړی باندې شرعا د دې شرط پوره کول واجب دې؟

[۲۱۳۹] (۱) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ، أَخْبَرَنِي اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "إِنَّ أَحَقَّ الشُّرُوطِ أَنْ تُوفُوا بِهِ مَا اسْتَحْلَلْتُمْ بِهِ الْفُرُوجَ".

**ترجمه:** حضرت عقبة بن عامر نه روایت دې فرمائی چه نبی عليه السلام وفرمائیل په ټولو شرطونو کښې په تاسو باندې مستحق هغه شرطونه پوره کول لازم دی دکوموپه وجه چه تاسو ته شرمګاهونه حلال کړې شوی دی.

### توضیح الحدیث

قوله: عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "إِنَّ أَحَقَّ الشُّرُوطِ أَنْ تُوفُوا (۲) بِهِ مَا اسْتَحْلَلْتُمْ بِهِ الْفُرُوجَ":

یعنی په ټولو شرطونو کښې د دې شرط پوره کول ډیر ضروری دی کوم چه د نکاح د عقد په وخت اولګولې شی، دا حدیث خو د یو قاعده کلیه په درجه کښې دې، د دې قاعدې په جزئیات کښې دا مسئله هم راځی کومه چه په ترجمة الباب کښې مذکور ده یعنی شرط کول دکور، د مصنف په ترجمه کښې څه د استنباط شان دې، دا په خپل مقام کښې مونږ سره تیر شو، چه د سنن ابی داود تراجم د ترمذی د تراجم نه اوچت دی، پس امام ترمذی په دې باندې دا ترجمه تړلې ده باب ما جاء في الشرط عند عقدة النكاح.

### مسئله مترجم بها کښې د علماء ګرامو اختلاف

د دې نه پس تاسو په دې باندې ځان پوهه کړئ چه د شرط دار ایفاء په ائمه کرامو کښې صرف د امام احمد رحمه الله په نزد واجب دې اګر چه امام ترمذی رحمه الله خو د امام شافعي رحمه الله قول

(۱): صحیح البخاري/الشروط ٦ (۲۷۲۱)، والنكاح ٥٣ (٥١٥١)، صحیح مسلم/النكاح ٨ (١٤١٨)، سنن الترمذي/النكاح ٢٢ (١١٢٧)، سنن النسائي/النكاح ٤٢ (٣٢٨٣)، سنن ابن ماجه/النكاح ٤١ (١٩٥٤)، (تحفة الأشراف: ٩٩٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٤/٤، ١٥٠، ١٥٢)، سنن الدارمي/النكاح ٢١ (٢٢٤٩) (صحيح)

(۲) توفوا دواړو طریقو سره ضبط کړې شوې دې، ﴿ توفوا ﴾ بالتخفیف، ﴿توفوا ﴾ بالتشدید، په اول صورت کښې د باب افعال نه او په دویم صورت کښې د باب تفعیل نه دې

هم دا ليکلي دي خو حافظ په دې باندې تعقب کړې دې او دا ليکلي دي: النقل في هذا عن الشافعي غريب... امام ترمذی د بعض صحابه کرامو هم دا مسلک ليکلې دې، هغه فرمائی ﴿منهم عمر بن الخطاب قال اذا تزوج الرجل امراءة وشرط لها ان لا يخرجها من مصرها فليس له ان يخرجها ﴾بيا وړاندې امام ترمذی رحمه الله فرمائی ﴿وروى عن على بن ابى طالب انه قال شرط الله قبل شرطها كانه راى للزوج ان يخرجها وهو قول سفيان الثورى وبعض اهل الكوفة ﴾.

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه دا حديث په خپل عموم باندې د چا په نزد هم نه دې، فقهاء کرام او شارحين حديث دا ليکلي دی چه شرطونه درې قسمه کيدې شی، اول قسم الشرائط التي فيها نفع محض للمراءة مثلا اشتراط دار يا عدم التزوج بالغير... يا عدم التسرى (چه زنانه دا شرط اولګوی چه زما په موجودګئ کښې به ته وينزه د خپل ځان سره نه شی ساتلې) او د دې په شان شرطونه، د دې قسم شرطونو پوره کول صرف د حنابله په نزد واجب ده د نورو ائمه کرامو په نزد نه، او دويم قسم الشرائط التى فيها ضرر محض للمراة، مثلا د عدم مهر شرط لګول يا عدم النفقه والسکنی شرط، د دې پوره کول د چا په نزد هم جائز نه دی، او دريم قسم الشرائط التي يقتضيها العقد، کوم شرطونه چه د مقتضاء عقد موافق دی لکه عشرت بالمعروف (د ښځې سره په ښه طريقه باندې پيش کيدل او مهر هم دغه شان نفقه او سکنی وغيره) د دې شرطونو پوره کول د ټولو په نزد واجب دی، بلکه دا څيزونه بغير د شرط نه هم ضروری دی.

## بَابٌ فِي حَقِّ الزَّوْجِ عَلَى الْمَرْأَةِ

### په ښځه باندې د خاوند د حق بيان

[۲۱۴۰](١)حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ قَيْسِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: أَتَيْتُ الْحِيرَةَ فَرَأَيْتُهُمْ يَسْجُدُونَ لِمَرْزُبَانٍ لَهُمْ، فَقُلْتُ: رَسُولُ اللَّهِ أَحَقُّ أَنْ يُسْجَدَ لَهُ، قَالَ: فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: إِنِّي أَتَيْتُ الْحِيرَةَ فَرَأَيْتُهُمْ يَسْجُدُونَ لِمَرْزُبَانٍ لَهُمْ، فَأَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَحَقُّ أَنْ نَسْجُدَ لَكَ، قَالَ: "أَرَأَيْتَ لَوْ مَرَرْتَ بِقَبْرِي أَكُنْتَ تَسْجُدُ لَهُ؟" قَالَ: قُلْتُ: لَا، قَالَ: "فَلَا تَفْعَلُوا، لَوْ كُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ لَأَمَرْتُ النِّسَاءَ أَنْ يَسْجُدْنَ لِأَزْوَاجِهِنَّ، لِمَا جَعَلَ اللَّهُ لَهُمْ عَلَيْهِنَّ مِنَ الْحَقِّ".

**ترجمه:** حضرت قيس بن سعد رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه زه د کوفې سره نزدې حيره ښار ته لاړم ما هلته خلق اوليدل چه خپل سردار ته ئې سجدې کولی نوپه خپل زړه کښې مې اووئيل چه ددوی ددې سردارنه خو نبی عليه السلام زيات حقدار دې چه سجده ورته اوکړې شی کله چه زه واپس شوم او د نبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شوم نوعرض مې ورته اوکړو و چه زه حيره مقام ته تلې وم ماهلته خلق اوليدل چه خپل سردارته ئې سجدې کولې نوددی د سردار به نسبت خو ته زيات حقدار ئې چه مونږ درته سجده اوکړو نبی عليه السلام اوفرمائيل لږ سوچ خو اوکړئ که چرې تاسو زما په قبرباندې تيريږئ نوايا تاسو به ورته سجده کوئ؟ ماعرض اوکړو نه نبی عليه السلام اوفرمائيل سجده مه کوئ ځکه که ماچاته دا اجازت ورکولې چه څوک دی چاته سجده اوکړی نو اول به مې ښځوته اجازت ورکړې وو چه خپلو خاوندانوته

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٩٠)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الصلاة ١٥٩ (١٥٠٤) (صحيح)

سجدې اوکړئ دهغه حق په وجه باندې کوم چه الله تعالی په ښځو باندې دخاوندانو دپاره مقرر کړې دې.

## توضيح الحديث

قیس بن سعد رضی الله عنه فرمائی چه زه مقام حیره ته لاړم، حیره بکسر الحاء د عراق د یو ښهر نوم دې نو د هغه ځائې بعض خلق ما اولیدل چه هغوی خپل سردار ته سجده کوی، ما په خپل زړه کښې سوچ اوکړو چه رسول الله ﷺ د دې مرزبان په مقابله کښې زیات مستحق دې چه مونږ هغه ته سجده اوکړو، هغه چه کله د سفر نه واپس شو نو رسول الله ﷺ ته ئې د دې خبرې تذکره اوکړه او د خپل گمان تذکره ئې ورته هم اوکړه چه ته زیات مستحق ئې د دې خبرې چه تاته سجده اوکړې شی، هغه د ډیر حکیمانه جواب ورکړو چه ښه دا راته اوایه چه کله زه مړ شم او خپل قبر ته اورسیږم نو آیا ته به هغه وخت هم زما قبر ته سجده کوې؟ ما ترې صفا انکار اوکړو چه نه! رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه بیا داسې خبره ولې کوې؟ بیا وړاندې چه په حدیث کښې دی هغه ظاهره ده کوم چه د ترجمة الباب سره متعلق دې.

[۲۱۴۱](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا دَعَا الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ إِلَى فِرَاشِهِ فَأَبَتْ فَلَمْ تَأْتِهِ، فَبَاتَ غَضْبَانَ عَلَيْهَا، لَعَنَتْهَا الْمَلَائِكَةُ حَتَّى تُصْبِحَ".

**ترجمه**: دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی کله چو یوکس په تاسوکښې خپله ښځه خپلې بسترې ته را اوغواړی اوهغه انکار اوکړی او خاوندئې په داسې حال کښې شپه تیره کړی چه دې ته غصه وی نوپه داسې ښځه باندې فرښتې لعنت وائې ترڅوچه صباشوی نه وی.

## بَابٌ فِي حَقِّ الْمَرْأَةِ عَلَى زَوْجِهَا

### په خاوند باندې د ښځې دحق بیان

[۲۱۴۲](٢)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا أَبُو قَزَعَةَ الْبَاهِلِيُّ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ الْقُشَيْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا حَقُّ زَوْجَةِ أَحَدِنَا عَلَيْهِ؟ قَالَ: "أَنْ تُطْعِمَهَا إِذَا طَعِمْتَ، وَتَكْسُوَهَا إِذَا اكْتَسَيْتَ أَوِ اكْتَسَبْتَ، وَلَا تَضْرِبِ الْوَجْهَ، وَلَا تُقَبِّحْ، وَلَا تَهْجُرْ إِلَّا فِي الْبَيْتِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَا تُقَبِّحْ، أَنْ تَقُولَ: قَبَّحَكِ اللَّهُ.

**ترجمه**: حضرت حکیم بن معاویه قشیری دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه ما عرض اوکړو اې دالله رسوله په مونږ کښې په یوکس باندې دخپلې ښځې څه حق دې؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل کله چه خوراك کوئ نودوی ته هم خوراك ورکوی اوکله چه لباس اغوندئ نودوی ته هم لباس میسر کوئ او په مخ باندې ئې مه وهئ اوبد الفاظ ورته مه وائی اوکله ترې جداکیږئ نوپه کور کښې ترې جداکیږئ (دجداکیدو دپاره ورته کور مه پریږدئ)، ابوداود

١): صحيح البخاري/بدء الخلق ٧ (٣٢٣٧)، والنكاح ٨٥ (٥١٩٤)، صحيح مسلم/النكاح ٢٠ (١٤٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٣٤٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٣٩، ٤٨٠)، سنن الدارمي/النكاح ٣٨ (٢٢٧٤) (صحيح)

٢): سنن ابن ماجه/النكاح ٣ (١٨٥٠)، (تحفة الأشراف: ١١٣٩٦)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبرى/ عشرة النساء (٩١٧١)، مسند احمد (٤/٤٤٧، ٥/٣) (حسن صحيح)

وائی د (ولاتقبح) مطلب دا دې چه داسې ورته مه وائی قبحك الله. (الله دې هلاكه کړه).

**تشريح:** قلت يا رسول الله ما حق زوجة احدنا عليه؟

د حديث مضمون واضح دې، وړاندې په حديث کښې دی ﴿ولا تضرب الوجه ولا تقبح﴾ يعنى په مخ ئې مه وهه، په مخ باندې د وهلو هسې خو مطلقا ممانعت راغلې دې، ﴿ولا تقبح﴾ او نه هغې ته څه سخته خبره کوه لکه کنځل او بد دعا، ﴿ولا تجهر الا فى البيت﴾ يعنى كه تاديبا واصلاحا نو د هغې نه دې جدائى اختيار کړې نو صرف په کور کښ، يعنى دا نه چه د کور نه دې هم بهر لاړ شى بلكه زيات نه زيات دا اوکړې چه په کور کښې اوسيدو سره هغې نه لاړ نه شى

[۲۱۴۳]()حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا بَهْزُ بْنُ حَكِيمٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، نِسَاؤُنَا مَا نَأْتِي مِنْهُنَّ وَمَا نَذَرُ؟ قَالَ: "ائْتِ حَرْثَكَ أَنَّى شِئْتَ، وَأَطْعِمْهَا إِذَا طَعِمْتَ، وَاكْسُهَا إِذَا اكْتَسَيْتَ، وَلَا تُقَبِّحِ الْوَجْهَ وَلَا تَضْرِبْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى شُعْبَةُ تُطْعِمُهَا إِذَا طَعِمْتَ وَتَكْسُوهَا إِذَا اكْتَسَيْتَ.

**ترجمه:** دحضرت بهز بن حكيم دخپل پلارنه اوهغه دده دنيکه نه روايت کوی چه فرمائيلی ئې وو ماعرض اوکړو اې دالله رسوله مونږ خپلو ښځوته دکوروالی دپاره په څه طريقه راتګ اوکړو او په څه طريقه ئې ونکړو؟نبی ﷺ اوفرمائيل خپل فصل ته راتګ اوکړئ څنګه چه موخوښه وی اوکله چه خوراك کوئ نودوی ته هم خوراك ورکوئ اوکله چه لباس اغوندئ نودوی ته هم لباس ميسرکوئ اودمخ بی عزتی ئې مه کوئ اومه ئې وهئ، ابوداد وائی چه دشعبه په روايت کښې داسې دي: «تطعمها إذا طعمت وتكسوها إذا اكتسيت». او بد الفاظ ورته مه وائی اوکله ترې جداکيږئ نو په کور کښې ترې جداکيږئ (دجداکيدو دپاره ورته کور مه پريږدئ)، ابوداود وائی د ولاتقبح مطلب دادې چه داسې ورته مه وايئ: قبحك الله.

**تشريح:** ﴿ بهز بن حكيم حدثنا ابى عن جدى قال قلت يا رسول الله! نساؤنا ما ناتى منها وما نذر ﴾ د بهز بن حكيم د نيکه نوم دې معاويه بن حيده، هغه وائی چه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه مونږ د خپلو ازواجو د کومې حصې نه فائده واخلو او کوم پريږدو؟ په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿انت حرثک انى شئت ﴾يعنى د خپلې ښځې د محل حرث نه فائده اوچته کړه که کيفيت ئې هر څه وی، د ﴿انى شئت﴾دوه معنې راځی ﴿كيف شئت﴾او ﴿من اين شئت﴾ دلته اوله معنى مراد ده چه د هغې قرينه لفظ حرث ده ځکه چه د پټی محل متعين ده يعنى قبل، دبر، محل حرث نه دې په دې وجه دويمه معنى مراد نه شي کيدې، پس د خپلې بی بی سره وطی دشاه طرف کښې حرام دې، په دې کښې د ابن عمر ﷺ اختلاف نقل کولې شی لکه چه وړاندې په کتاب کښې دی باب فى من جامع النكاح کښې روايت راروان دې فانتظروا

قوله: ولا تقبح الوجه... يعنى د هغې مخ مه خرابوه په وهلو باندې، او يا ئې دا مطلب دې چه ﴿لا تقل قبح الله وجهک ولا تضرب﴾يا خو په مخ باندې وهل مراد دی يا مطلق ضرب، كه مخ

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٣٨٥)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ عشرة النساء (٩١٦٠)، مسند احمد (٥،٣،٥) (حسن صحيح)

مراد وی نو بیا خو ظاهره ده او د مطلق په صورت کښې بغیر د څه معقول وجې نه وهل مراد دی. په بذل المجهود کښې د فتاوی قاضی خان نه نقل کړې دی چه خاوند ښځه په څلورو خبرو باندې وهلې شی. د زینت په ترک کولو، که خاوند هغې ته د زینت حکم کوی او هغه ئې نه منی. ۲: ترک الاجابة اذا اراد الجماع وهی طاهرة،(ترک کول دصحبت حالانکې هغه پاکه وی) ۳. ترک الصلاة فی بعض الروایات،(ترک دمانځه په بعض روایاتو کښې راغې) او د امام محمد نه یو روایت دې چه په ترک صلاة باندې د هغه د وهلو حق نشته. او د زنانه غسل جنابت یا غسل حیض ترک کول دا په منزله د ترک صلاة دی، ۴: الخروج عن منزله بغیر اذنه، (دخاوند دکور نه دهغه داجازت نه بغیر وتل).

[۲۱٤٤](١)أَخْبَرَنِي أَحْمَدُ بْنُ يُوسُفَ الْمُهَلَّبِيُّ النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَزِينٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ دَاوُدَ الْوَرَّاقِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ مُعَاوِيَةَ الْقُشَيْرِيِّ، قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَقُلْتُ: مَا تَقُولُ فِي نِسَائِنَا؟ قَالَ: "أَطْعِمُوهُنَّ مِمَّا تَأْكُلُونَ، وَاكْسُوهُنَّ مِمَّا تَكْتَسُونَ، وَلَا تَضْرِبُوهُنَّ وَلَا تُقَبِّحُوهُنَّ".

**ترجمه**: حضرت معاویه قشیری ﷛ نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم اوتپوس مې اوکړو چه زمونږ دښځو په مونږ باندې کوم کوم حقونه دی؟ نبی ﷺ اوفرمائیل څه چه تاسو خورئ هغه دوی ته هم ورکوئ اوڅه چه اغوندئ دهغې په شان دوی ته هم ورکوئ اودوی مه وهئ اوبد رد ورته مه وائې.

## بَابٌ فِي ضَرْبِ النِّسَاءِ
### د ښځو دوهلو بیان

[۲۱٤٥](٢)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي حُرَّةَ الرَّقَاشِيِّ، عَنْ عَمِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "فَإِنْ خِفْتُمْ نُشُوزَهُنَّ فَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ"، قَالَ حَمَّادٌ: يَعْنِي النِّكَاحَ.

**ترجمه**: حضرت ابوحرة الرقاشی دخپل تره نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائلی دی که چرې ستاسو سره ددوی دنافرمانئ په حقله اندیښنه وی نو ددوی نه جدائی اختیار کړئ په خای دارخونولګولو کښې. حماد وئیلی دی ددې نه همبسترئ کول مراد دې.

**تشریح**: ﴿فاهجروهن فی المضاجع﴾ قال حماد یعنی النکاح، یعنی د نشوز د ویرې په وخت کښې سرې له څه کول پکار دی چه هغې سره جماع ترک کړی.

[۲۱٤٦](٣)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي خَلَفٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ ابْنُ السَّرْحِ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ: عَنْ إِيَاسِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي ذُبَابٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَضْرِبُوا إِمَاءَ اللَّهِ"، فَجَاءَ عُمَرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: ذَئِرْنَ النِّسَاءُ عَلَى أَزْوَاجِهِنَّ، فَرَخَّصَ فِي ضَرْبِهِنَّ، فَأَطَافَ بِآلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَاءٌ كَثِيرٌ يَشْكُونَ أَزْوَاجَهُنَّ، فَقَالَ النَّبِيُّ

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٣٩٥)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/عشرة النساء (٩١٥١) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٧٢) (حسن)

(٣): سنن ابن ماجه/النكاح ٥١ (١٩٨٥)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٦)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ عشرة النساء (٩١٦٧)، سنن الدارمي/النكاح ٣٤(٢٦٦٥) (صحيح)

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَقَدْ طَافَ بِآلِ مُحَمَّدٍ نِسَاءٌ كَثِيرٌ يَشْكُونَ أَزْوَاجَهُنَّ، لَيْسَ أُولَئِكَ بِخِيَارِكُمْ".

**ترجمه:** دحضرت اياس بن عبدالله بن ابی ذباب نه روايت دي فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلي دی داللہ تعالی بندګانی مه وهی (خپلي ښبياني) نوپه دی وخت کښي عمرفاروق دنبی ﷺ په خدمت کښي حاضرشو اوعرض ئي اوکړو ښځي په خپلو خاوندانوباندي غالبی اوزړوری شوی دی نوددی په اوريدوسره نبی ﷺ دوی ته دوهلو اودتنبيه ورکولو اجازت ورکړو بيا ددي نه پس ډيری زنانه دنبی ﷺ ښبيانوته دخپلو خاوندانونه شکايتونه اوکړل نبی ﷺ اوفرمائيل زما ښبيانوته ډيرو زنانوو د خپلو خاوندانونه شکايتونه کړی دی اودائي اوفرمائيل چه داسي کسان په تاسو کښي ښه خلق نه دي.

[۲۱۴۷]([1])حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْأَوْدِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمُسْلِيِّ، عَنِ الْأَشْعَثِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يُسْأَلُ الرَّجُلُ فِيمَا ضَرَبَ امْرَأَتَهُ".

**ترجمه:** دحضرت عمر فاروق بن الخطاب نه روايت دي فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلي دی چه دخپلو ښځو دوهلو په حقله دانسان نه (دقيامت په ورځ) تپوس نشي کيدي (يعنی کوم وهل چه داداب دپاره وی دهغي نبی ﷺ عامو مسلمانانو ته اجازت ورکړي دي).

### توضيح الحديث

يعنی که يو سړی خپله ښځه د څه وجي نه اووهله نو هغه د وهونکی نه يعنی د خاوند نه دا تپوس نه دی کول پکار چه تا هغه په څه وجه باندي وهلي ده يعنی د کور او ژوند تيرولو په څه مسئله کښي ورله دخل نه دی ورکول پکار خاص طور دا قسم ناخوشه خبره، خو دا صرف په هغه صورت کښي ده چه کله خاوند د حد نه تجاوز نه کوی كذا فی البذل. او دويم مطلب د دي حديث دا کيدي شی چه د سړی نه به د قيامت په ورځ د ښځي د وهلو تپوس نه کيږی، ځکه چه د حاجت په وخت د ضرب اجازت د قران کريم نه ثابت دي.

## بَابُ مَا يُؤْمَرُ بِهِ مِنْ غَضِّ الْبَصَرِ

### باب: نظر د لاندي ساتلو حکم

[۲۱۴۸]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنِي يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ جَرِيرٍ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَظْرَةِ الْفَجْأَةِ، فَقَالَ: "اصْرِفْ بَصَرَكَ".

**ترجمه:** دحضرت جرير نه روايت دي فرمائی چه دنبی ﷺ نه مي دناڅاپی نظر په باره کښي تپوس اوکړو هغه راته وفرمائيل خپل نظر (دنامحرمه زنانوو نه) واړه وه.

---

[1]: سنن ابن ماجه/النكاح ٥١ (١٩٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٠٤٠٧)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ عشرة النساء (٩١٦٧)، مسند احمد (٢٠/١) (ضعيف)

[2]: صحيح مسلم/الآداب ١٠ (٢١٥٩)، سنن الترمذي/الأدب ٢٨ (٢٧٧٦)، (تحفة الأشراف: ٣٢٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٨/٤، ٣٦١)، سنن الدارمي/الاستئذان ١٥ (٢٦٨٥) (صحيح)

[۲۱۴۹] (¹) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ مُوسَى الْفَزَارِيُّ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي رَبِيعَةَ الْإِيَادِيِّ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَلِيٍّ: "يَا عَلِيُّ، لَا تُتْبِعِ النَّظْرَةَ النَّظْرَةَ، فَإِنَّ لَكَ الْأُولَى وَلَيْسَتْ لَكَ الْآخِرَةُ".

**ترجمه:** دحضرت ابوبریده نه روایت دي فرمائي چه نبي ﷺ علي ته وفرمائيل اي علي په نظرپسې نظر مه اچوه ځکه چه ستاد پاره صرف اولني نظر درست دي او دويم نظر ستادپاره جائزنه دي.

**تشریح:** ﴿یا علی لا تتبع النظرة النظرة فان لک الاولی ولیست لک الاخرة﴾

يعني که په يو نامحرم باندې بغير د قصد نه نظر پريوځي نو د هغې نه روستو دې بيا قصدا هغې ته نه ګورې، وړاندې د هغې وجه ذکر شوې ده ځکه چه ستا دپاره اول ځل کتل خو جائز وو (يعني د عدم قصد د وجې نه) او دويم ځل باندې کتل جائز نه دي (يعني د قصد د وجې نه) بعض علماء کرامو ليکلي دي ﴿لک الاولی﴾ کښې جواز خو راغلو بلکه په دې کښې د نفع طرف ته هم اشاره ده ځکه چه لام د نفع دپاره راځي لهذا که د يو سړي په نامحرم باندې نظر پريوتلو نه پس فورا خپل نظر بدل کړي نو د هغه دپاره په دې کښې فائده دې، ما په يو کتاب کښې لوستلي دي چه د دې احتياط او تقوی په صله کښې الله پاک په هغه باندې دا انعام فرمائي چه هغه ته په عباداتو کښې حلاوت نصيب کيږي.

[۲۱۵۰] (²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ لِتَنْعَتَهَا لِزَوْجِهَا كَأَنَّمَا يَنْظُرُ إِلَيْهَا".

**ترجمه:** دحضرت عبد الله بن مسعود نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي يوه زنانه دې دبلې زنانه دجسم نه ځان نه لګوي په دې وجه چه چرته خپل خاوند ته ددې شکل اوصورت بيان نکړي دا داسې ده لکه چه ددې ښځې خاوند دابله ښځه ويني.

**تشریح:** ولا تباشر المرأة المرأة لتنعتها لزوجها... مباشرة په معنی د مس البشرة. بشره په معنی د څرمن يعني د بدن د بدن سره لګيدل. مطلب دا دې چه يوه زنانه دې د بلې زنانه سره دومره زيات تعلق نه جوړوي چه بيا خپل خاوند ته لاړه شي او هغه ته د هغې حليه بيانوي او داسې به ئې هغه په ذهن کښې نقشه راکاږي ګويا چه هغې ته ګوري، په بعض زنانو کښې داسې عادت وي په دې وجه د دې نه منع کولې شي، دې بې عقلې ته دا خبر نه وي چه که د خاوند ئې خوښه شوه نو د دې به څه انجام وي.

[۲۱۵۱] (³) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى امْرَأَةً فَدَخَلَ عَلَى زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ فَقَضَى حَاجَتَهُ مِنْهَا، ثُمَّ خَرَجَ إِلَى أَصْحَابِهِ، فَقَالَ لَهُمْ: "إِنَّ الْمَرْأَةَ تُقْبِلُ فِي صُورَةِ شَيْطَانٍ، فَمَنْ وَجَدَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا فَلْيَأْتِ أَهْلَهُ، فَإِنَّهُ يُضْمِرُ مَا فِي نَفْسِهِ".

[1]: سنن الترمذي/الأدب ۲۸ (۲۷۷۷)، (تحفة الأشراف: ۲۰۰۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۵۹/۱، ۳۵۱/۵، ۳۵۷) (حسن)

[2]: صحيح البخاري/النكاح ۱۱۸ (۵۲٤۱)، سنن الترمذي/الأدب ۳۸ (۲۷۹۲)، (تحفة الأشراف: ۹۲۵۲)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/عشرة النساء (۹۲۳۱)، مسند احمد (۳۸۷/۱، ٤٤۰، ٤٤۳، ٤٦۲، ٤٦٤) (صحيح)

[3]: صحيح مسلم/النكاح ۲ (۱٤۰۳)، سنن الترمذي/الرضاع ۹ (۱۱۵۸)، (تحفة الأشراف: ۲۹۷۵)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/عشرة النساء (۹۱۲۱)، مسند احمد (۳۳۰/۳) (صحيح)

**ترجمه**: حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دی فرمائی چه نبی عليه السلام يوه زنانه اوليدله نوزينب بنت جحش ته ورغې اوخپل حاجت ئې ترې پوره کړواوبيا خپلو ملګروته راووتو اوهغوی ته ئې اوفرمائيل يقيناښځې دشيطان په شکل کښې خلقوته رامخامخ کيږی نوکله چه دچاپه زړه کښې څه راشی نوخپلې ښځې ته دی ورشی ځکه چه دده په زړه کښې چه کومه وسوسه پيداشوی وی هغه به دې سره ختميږي.

## شرح الحديث :

سيدنا جابر رضي الله عنه فرمائی چه يو ځل د رسول الله صلى الله عليه وسلم نظر په يوه زنانه باندې پريوتلو (رسول الله صلى الله عليه وسلم ته هم هغه ښه ښکاره شوه کما فی رواية فاعجبته) د دې نه پس رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپل ازواج کښې زينب بنت جحش رضي الله عنها ته تشريف يوړلو او د هغې نه ئې خپل حاجت پوره کړو د هغې نه پس ئې بهر مجلس کښې صحابه کرامو ته تشريف راوړلو او وې فرمائيل چه زنانه د شيطان په شکل کښې مخې ته راځی، چه دا کوم سړی ته مخامخ شی يعنی هغه وينی نو هغه له پکار دی چه خپلې ښځې ته راشی او د هغې نه دې خپل خواهش پوره کړی ځکه چه داسې کولو سره به د هغه په زړه کښې چه پردئ ښځې ته د کتلو کوم خواهش پيدا شوې وی هغه به ختم شی.

دا مضمون حديث په روايت د ابن مسعود رضي الله عنه په دارمی کښې هم دې په دې کښې د يو لفظ زياتوالې دې، ﴿رای رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امراة فاعجبته﴾دلته په دې خبره ځان پوهه کول دی چه د يوې زنانه ښه لګيدل نقص نه دې بلکه په دې کښې د نقص شبهه هم نشته، الله پاک فرمائی ﴿لا يحل لک النساء من بعد﴾او بيا په اخر کښې دی ﴿ولو اعجبک حسنهن﴾ بيا دلته دا سوال راځی چه راوی دا خبره څنګه کوی هغه زنانه د رسول الله صلى الله عليه وسلم خوښه شوه او راوی د دې پټ امر جراءت څنګه اوکړو، د دې جواب دا دې چه ظاهره ده چه دا خبره هغه ته رسول الله صلى الله عليه وسلم خپله بيان کړه د تعليم امت دپاره چه که ستا امت کښې چاته داسې خبره پيښه شی او پيښيدل ضروری هم دی، نو بيا په داسې وخت کښې انسان لره څه کول پکار دی، اصل کښې د هغه بعثت تعليم فعلی دپاره وو د دې دپاره چه د امت په مخکښې د هر يو څيز نمونه راشی، د دې ډير مثالونه دی په ليلة التعريس کښې د مونځ قضاء کيدل، په مونځ کښې دننه مختلف قسم سهوه پيښيدل چه د هر قسم سهوه حکم جدا جدا معلوم شی، د قضاء مونځ د لوستلو طريقه معلومه شی، هم دغه شان د نکاح او طلاق واقعات، د هغې هم صادريدل يعنی کيدل په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې اوکړې شو. وغيره وغيره... والله تعالى اعلم

[٢١٥٢][1]حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ ثَوْرٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: مَا رَأَيْتُ شَيْئًا أَشْبَهَ بِاللَّمَمِ مِمَّا قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "إِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا أَدْرَكَ ذَلِكَ لَا مَحَالَةَ، فَزِنَا الْعَيْنَيْنِ النَّظَرُ، وَزِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ، وَالنَّفْسُ تَمَنَّى وَتَشْتَهِي، وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ وَيُكَذِّبُهُ".

[1]: صحيح البخاري/الاستئذان ١٢ (٤٢٤٣)، والقدر ٩ (٢٦١٢)، صحيح مسلم/القدر ٥ (٢٦٥٧)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٧٦) (صحيح)

**ترجمه:** دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه ما قرآن کښې لفظ دلمم يعنی وړه ګناه په شان هغه اعمالونه زيات يوڅيز نه دي موندلي چې هغه ابوهريره رضي الله عنه دنبي عليه السلام نه نقل کړی ده هغه دا چه الله جل جلاله چه دهرکس په: حصه کښې څومره زنا ليکلی ده هغه به دي ضرور: موی اودسترګوزنا کتل دی (غير محرم ته چه سړې وی اوکه ښځه په نظر د شهوت سره کتل او د ژبې زناخبرې کول دی دغير محرم سره چه سړې وی او که ښځه شهوت سره خبرې کول څکه چه په دې سره په زړه کښې خواهش پيدا کيږي او شرمګاه ددې تصديق کوی يا تکذيب کوي.

## توضيح الحديث

قوله: عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: مَا رَأَيْتُ شَيْئًا أَشْبَهَ بِاللَّمَمِ[1] مِمَّا قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا: د عبدالله بن عباس رضي الله عنه په رائې او اجتهاد سره، د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه حديث مرفوع لره د آيت کريمه په تفسير کښې پيش فرمائی.

اول تاسو د حديث مرفوع په مفهوم باندې ځان پوهه کړئ هغه دا چه الله پاک د هر انسان دپاره زنا مقدر فرمائيلې ده کومه چه به هغه په څه نه څه درجه کښې ضرور کوی برابره خبره ده که د بد نظر په ذريعه وی که د استماع په ذريعه وی يا د قدم په ذريعه وی. په مظاهر حق کښې ليکلي دی دلته د زنا نه عام مراد دې که زنا حقيقی وی يا مجازی يعنی مقدمات زنا (بد نظری وغيره) لکه چه وړاندې په حديث کښې ذکر دی. پس بعض خلق په زنا حقيقی کښې ګرفتار او اخته کيږی او بعض په زنا مجازی کښ، خو چاته چه الله پاک په خپل فضل سره بچ کول غواړی هغه محفوظ وی ګويا دا حکم په اعتبار د اکثر دې. اهـ او حضرت په بذل المجهود کښې ليکلي دی چه د ابن ادم نه مراد هر هر فرد نه دې بلکه جنس مراد دې او يا داسې اوايئ چه انبياء عليهم السلام د دې نه مستثنی دی. اهـ او وئيلې شوې دی چه د زنا مراد سبب زنا وموجب زنا دې يعنی شهوة وميل الی النساء کوم چه په هر يو انسان کښې دننه الله پاک پيدا کړې دې، هم دغه شان هغه حواس او قوی چه د هغې په ذريعه خوند محسوس کوی او دا ظاهره خبره ده چه دا څيزونه په ټولو کښې دننه موجود دی، بيا د الله پاک په فضل سره ډير خلق د دې زنا نه محفوظ وی بعض د زنا حقيقی او مجازی دواړو نه او بعض دواړو کښې اخته او ګرفتار وی او بعض د زنا حقيقی نه خو بچ شی او په مقدمات زنا کښې اينخلی. دا خو شو د حديث مرفوع مفهوم

اوس د دې نه روستو د ابن عباس رضي الله عنه په رائې باندې ځان پوهه کړئ د قران کريم په سورة والنجم کښې الله پاک فرمائي. ﴿الذين يجتنبون کبائر الاثم والفواحش الا اللمم﴾ په دې آيت کريمه کښې د نيکانو اوصاف بيانولې شی چه دا هغه خلق دی کوم چه د لويو او فاحش

---

[1] ) اصل اللمم والالمام الميل الي الشئ وطلبه من غير مداومة، يعنی کله کله د يو څيز طرف ته مائل کيدل او هغه طلب کول د مواظبة دپاره. فمعني الايتين ان اجتناب الکبائر يسقط الصغائر وهي اللحم وفسره ابن عباس، بما في هذا الحديث من النظر واللمس ونحوهما وهو الصحيح في تفسير اللمم وقيل ان يلم بالشئ ولا يفعله، وقيل الميل الي الذنب ولا يصر عليه قاله النووي. اهـ من المنهل)

ګناهونو نه ځان ساتي البته واړه او معمولي ګناهونه کله کله اوکړي ګويا د صغائر په کله کله ارتکاب باندې انسان د نيکانو نه خارج شي، د ابن عباس رضي الله عنهما مقصود د ابوهريره رضي الله عنه حديث مرفوع نقل کولو سره د لمم تفسير بيانول دي، او د ابوهريره رضي الله عنه د حديث نه معلوميږي چه د انسان سترګې هم زنا کوي او هغه د سترګو زنا نظر دې او د انسان ژبه هم زنا کوي او هغه ناجائز د زنا وغيره سره متعلق خبرې دي، او نفس دننه د زنا خواهش کوي، دا د نفس زنا شوه نو ابن عباس رضي الله عنهما دا فرمائي چه په دې حديث کښې چه د زنا کوم مختلف قسمونه بيان کړې شوې دي کوم چه وړه قسم زنا ده يعني مقدمات زنا هغه د لمم مصداق کيدې شي او پاتې شوه هغه لويه زنا چه د هغې تعلق د شرمګاه سره دې د هغې خو د فواحش او کبائر نه کيدل بديهي دي، د دې آيت کريمه په تفسير کښې نور هم اقوال دي کوم چه مونږ په حاشيه کښې ليکلې دي.

ددې نه روستو تاسو په دې ځان پوهه کړئ چه د حديث اخري جمله ﴿الفرج يصدق ذلک ويکذبه﴾ د دې شرح عام طور سره خو دا کولې شي او فرج د پورته ذکر شوې ټولو اسباب زنا، يا خو تصديق کوي يعني د هغې زنا کيدل محقق کوي[1] او زنا بالفرج کښې که انسان اخته شي يا ئې تکذيب کوي يعني هغه اسباب زنا لره د زنا نه منع کړي چه په کوم صورت کښې انسان په زنا بالفرج کښې اخته نه شي، حاصل دا چه په نظر او نطق وغيره کښې د افعال نه روستو کوم ته چه زنا وئيلې شي که د زنا حقيقي صدور اوشو نو بيا خو د دې افعال زنا کيدل ثابت شو او دا افعال د کبائرو نه شو، او که زنا حقيقي لره ترک کړې شي نو د دې افعال د زنا کيدو ترديد او تکذيب اوشو پس دا دکبائر کيدو په ځائې صغائر پاتې شو. او ظاهره ده چه په دې صورت کښې به دا د افعال لمم مصداق جوړيږي کوم چه ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي ګينې په اول صورت کښې خو د هغې په کبائر کښې کيدل بديهي دي. غرض دا چه شارحين دا فرمائي چه په تصديق فرج سره اشاره د وقوع الزنا بالفرج طرف ته ده، او تکذيب سره عدم وقوع طرف ته.

### شرح الحديث کښې د حضرت شيخ رائې :

او زمونږ حضرت شيخ به فرمائيل چه زما په نزد د تصديق فرج نه مراد انتشار اله ده او د تکذيب نه عدم انتشار يعني د بد نظر نه پس که په شرمګاه کښې حس وحرکت او انتشار وی نو پوهه شه چه هغه نظر زناء العين دې او که انتشار نه وی نو د دې نه معلومه شوه چه هغه نظر بالشهوت نه وو لهذا زناء العين هم نه وو، والله تعالى اعلم. ما د دې حديث شرح د شارحينو په کلام کښې د ځو کرته غور کولو نه پس ليکلې ده. والله الموفق. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي قاله المنذري. (عون)

---

[1] ، او ملا على قاري د ﴿يصدق ذلک﴾ تعلق صرف د اخري جملې والنفس تمني وتشتهي سره منلې دې يعني نفس د زنا خواهش کوي، او صرف فرج د دې خواهش تصديق کوي يا ترديد، يعني دې تمنا ته عملي جامه اغوستل دا عمل دې د فرج، کله هغه دې ته عملي جامه اغوندي او کله نه،

[٢١٥٣]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لِكُلِّ ابْنِ آدَمَ حَظُّهُ مِنَ الزِّنَا"، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: "وَالْيَدَانِ تَزْنِيَانِ فَزِنَاهُمَا الْبَطْشُ، وَالرِّجْلَانِ تَزْنِيَانِ فَزِنَاهُمَا الْمَشْيُ، وَالْفَمُ يَزْنِي فَزِنَاهُ الْقُبَلُ".

**ترجمه:** دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي نبي ﷺ فرمائيلي دی چه مې دهرانسان دپاره دزنا نه څه حصه ضرور وی لاسونه هم زنی کوی ددوی زنانیول دی اوخپی هم زنا کوی اوددوی زنا تلل دی اوخوله وهم زنی کوی اوددی زنا ښکلول دي.

**تشريح:** ﴿والفم يزنى وزناه القبل﴾ قبل د قبله جمع ده يعنى د انسان د خولې زنا تقبيل دی.

[٢١٥٤]([2])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: "وَالْأُذُنُ زِنَاهَا الِاسْتِمَاعُ".

**ترجمه:** دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه باقي حدیث ئي د تیرشوی روایت په شان بیان کړو ـ مګرددي اضافي سره چه دغوږونو زنا اوریدل دی.

## بَابٌ فِي وَطْءِ السَّبَايَا

### د قیدیا نو ښځو سره همبستری کول

سبايا، جمع د سبية ده. فعيلة په معنى د مفعولة، قيد شوي زنانه (وينزي)

[٢١٥٥]([3])حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ صَالِحٍ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ أَبِي عَلْقَمَةَ الْهَاشِمِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "بَعَثَ يَوْمَ حُنَيْنٍ بَعْثًا إِلَى أَوْطَاسٍ، فَلَقُوا عَدُوَّهُمْ فَقَاتَلُوهُمْ فَظَهَرُوا عَلَيْهِمْ وَأَصَابُوا لَهُمْ سَبَايَا، فَكَأَنَّ أُنَاسًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحَرَّجُوا مِنْ غِشْيَانِهِنَّ مِنْ أَجْلِ أَزْوَاجِهِنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى فِي ذَلِكَ: وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ سورة النساء آية ٢٤، أَيْ فَهُنَّ لَهُمْ حَلَالٌ إِذَا انْقَضَتْ عِدَّتُهُنَّ".

**ترجمه:** دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دی چی نبي ﷺ فرمائي چه دغزوه حنین په ورځ اوطاس مقام ته یوورو کی لښکر ولیږلودوی د خپل دښمن سره مخامخ شول او ورسره وجنګیدل اووربانديې غالب شول اوددوی ښځې ئې ونیولی په صحابه کرامو کښې بعضې کسانوددوی سره همبستری کول جائزنه ګڼړل ځکه چه ددوی ژوندی خاوندان کوم چه کافران وو موجود رونو په دې وخت کښې الله تعالى دا آيت كريمه: («والمحصنات من النساء إلا ما ملكت أيمانكم»)(سورة نساء ٢٤) (او حرام کړې شوې دی)خاوندانو والا ښځې لیکن هغه چه ستاسو په ملکیت کښې راشي نازل کړو، یعنې دوی ستاسو دپاره حلالې دی کله چه عدت تیر کړي

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤٣/٢، ٥٣٦) (حسن)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٨٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧٩/٢) (حسن صحيح)

[3]: صحيح مسلم/الرضاع ٩ (١٤٥٦)، سنن الترمذي/ النكاح ٣٦ (١١٣٢)، تفسير سورة النساء (٣٠١٦)، سنن النسائي/النكاح ٥٩ (٣٣٣٥)، (تحفة الأشراف: ٤٤٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧٢/٣، ٨٤)، سنن الدارمي/الطلاق ١٧ (٢٣٤٠) (صحيح)

ان رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بعث يوم حنين بعثا الى اوطاس.

## غزوه اوطاس:

حنين يوه وادى ده د مکې مکرمې او طائف ترمينځه على بضعة عشر ميلا من مكة. چرته چه مشهوره غزوه شوې ده، غزوه حنيين د فتح مکه نه روستو په شوال ٨ هجرى کښې شوې ده. او اوطاس يوه وادى ده په هوازن مقام کښې او وئيلې شوې دى، وهو موضع عند الطائف وهو غير وادى حنين على الراجح، يعنى رسول اللهﷺ يو لښکر اوليږلو موضع اوطاس ته چه د هغې وجه دا وه چه رسول اللهﷺ کله د غزوه حنين نه فارغ شو کوم چه د قبيله هوازن سره شوې وو نو يوه دسته (مختصر جماعت) د هوازن په اوطاس کښې راغلل او راجمع شو او هلته په قبيله ثقيف کښې شامل شو، رسول اللهﷺ د هغوى د مقابلې دپاره يو جماعت اوليږلو (لکه چه دلته د ابوداود په روايت کښې ذکر شوې دى) دا جماعت په هغه کفارو باندې بحمد الله غالب شو او د مشرکانو ډيرې زنانه هغوى قيديانې کړې چه په هغې کښې بعض داسې هم وې چه واده شوې وې او د هغوى خاوندان هم ژوندى او موجود وو، د تقسيم نه روستو چه د کومو مجاهدينو په حصه کښې داسې قسم زنانه راغلې نو هغوى ته په وطى کولو کښې اشکال راغلو چه د هغوى خو مشرک خاوندان ژوندى او موجود دى بيا د هغوى سره وطى څنګه اوکړې شى؟ لکه چه راوى وائى ﴿تحرجوا من غشيانهن﴾نو په دې باندې دا آيت کريمه ﴿ والمحصنات من النساء الا ما ملكت ايمانكم ﴾نازل شو يعنى کومې زنانه چه د چا په نکاح کښې وى نو هغه د خپل خاوند نه علاوه د نورو دپاره حرامې دى خو هغه منکوحه زنانه چه د دار الحرب نه قيد کولو سره راوستلې شوې وى نو هغه چه د چا په حصه کښې راشى د هغه دپاره به حلال وى د انقضاء عدت (يو حيض) نه پس.

## د سبايا متعلق څو مسائل فقهيه:

دلته څو مسئلې دى بعض په هغې کښې اختلافى دى.

١: د کومې مسبيه چه په دې آيت کريمه کښې استثناء کړې شوې ده د هغې نه مراد هغه کافره زنانه ده کومې ته چه يواځې (بغير د خاوند نه) قيد کولو سره دار الاسلام ته راوستلې شوې وى په دې وجه د احنافو په نزد په تباين دارين سره جداوالې واقع کيږى په نفس قيد سره نه واقع کيږى، په دې مسئله کښې د شوافعو وغيره اختلاف مشهور دې د هغوى په نزد که زوجين مشرکين دواړه قيد کولو سره راوستلې شى بيا به هم هغه مسبيه د سبائى (قيدى) دپاره حلاله وى څکه چه د هغه په نزد په نفس سبى سره جداوالې واقع کيږى.

٢: مسبيه مشرکه کومه چه کتابيه نه وى هغه د مسلمان دپاره حلاله نه ده چه ترڅو پورې اسلام قبول نه کړى البته که هغه کتابيه وى نو حلاله ده دا مسئله د احنافو او شوافعو په نزد اتفاقى ده او په دې حديث کښې چه د کومو سبايا ذکر دې هغه ټولې مشرکانې وې يعنى د مځکښې نه لهذا دلته به دا تاويل کولې شى چه هغوى به اسلام راوړې وى، امام نووىؒ فرمائى دا تاويل او توجيه دلته ضرورى دې. (بذل)

٣: دريمه مسئله دلته دا ده چه په دې آيت کريمه کښې چه د کومې مملوکې استثناء

کړې شوې ده د هغې نه مراد د جمهورو او ائمه اربعه مملوکه یا سبی دې یعنی منکوحة الغیر چه د هغې څوک مسلمان مالک شی هغه لره د قید کولو وجه او کومه منکوحة الغیر چه مملوکه بالشراء وی د هغې دا حکم نه دې یعنی هغه به د مشتری دپاره حلال نه وی ځکه چه په شراء امت سره به د هغې نکاح فسخ شی، په خلاف د قید چه د هغه په نکاح سره عند الجمهور فسخ شی، خو په دې مسئله کښې د سیدنا ابن عباس رضي الله عنه اختلاف منقول دې د هغه په نزد د مملوکه بالشراء هم دا حکم دې. (بذل) والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی اهـ عون عن المنذری

[٢١٥٦]([1])حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مِسْكِينٌ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ خُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي غَزْوَةٍ فَرَأَى امْرَأَةً مُجِحًّا، فَقَالَ: "لَعَلَّ صَاحِبَهَا أَلَمَّ بِهَا"، قَالُوا: نَعَمْ، فَقَالَ: "لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَلْعَنَهُ لَعْنَةً تَدْخُلُ مَعَهُ فِي قَبْرِهِ، كَيْفَ يُوَرِّثُهُ وَهُوَ لَا يَحِلُّ لَهُ، وَكَيْفَ يَسْتَخْدِمُهُ وَهُوَ لَا يَحِلُّ لَهُ".

**ترجمه**: دحضرت ابو الدرداء رضي الله عنه نه روایت دې چه نبی عليه السلام په یوجنګ کښې وو دنبی صلى الله عليه وسلم نظر په یوه حامله ښځه پریوتلو نوهغه اوفرمائیل شاید ددې سره ددې مالک همبستری کړې وی صحابه کرامو عرض اوکړو،هو نبی صلى الله عليه وسلم فرمائی چه ما اراده اوکړه. زما زړه وغوښتل چه په ده باندې داسې لعنت ووایم کوم چه به دده سره ترقبره پورې وی خوبیابه دده څوی څنګه دده وارث جوړشی اوهغه به دده دپاره حلال نه وي. او څنګه به دپردوځامنو سره ملاویږي اوهغه به دده دپاره حلال نه وي، اوڅنګه به دهغوی نه خدمت اخلی اوهغه به دده دپاره حلال نه وي.

## شرح حدیث:

﴿مجح﴾هغه حامله زنانه کومه چه قریب الولادة وی، د حدیث مضمون دا دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په یوه غزوه کښې یوه زنانه اولیده چه حامله قریب الولادة وه (په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې څه طریقې سره ظاهره شوه) او وې فرمائیل چه کیدې شی د دې وینځې مالک دې سره المام (جماع) کړې ده یعنی قبل الاستبراء، په دې باندې بعض حاضرینو د رسول الله صلى الله عليه وسلم تصدیق اوکړو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل چه زما زړه غواړی چه دې سړی ته داسې بد دعا اوکړم چه د هغې اثر هغه سره قبر ته لاړ شی، هم دغه شان ئې اوفرمائیل ﴿کیف یورثه الخ﴾د دې تشریح دا ده چه موجوده صورت حال یعنی بغیر د استبراء نه وطی کولو نه پس اوس دوه احتمالات دی یو دا چه د دې وطی نه پس د شپږ میاشتو تیریدو نه مخکښې ماشوم پیدا شی یا د شپږو میاشتو نه پس په اول صورت کښې نو دا خبره متعین ده چه دا پیدا کیدونکې ماشوم به د زوج اول وی او د دې واطی به غلام وی، او په دویم صورت کښې دوه احتمالات دی یو دا چه هغه ماشوم د زوج وی، دویم احتمال دا چه خپله د هغه واطی وی، یقین د یو طرف هم نه دې، لهذا اوس به دا واطی څه کوی؟ که هغه خپل بچې منی او

[1]: صحيح مسلم/النكاح ٢٣ (١٤٤١)، (تحفة الأشراف: ١٠٩٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/١٩٥، ٦/٤٤٦)، سنن الدارمي/السير ٣٨(٢٥٢١) (صحيح)

خپل وارث ئې جوړوی نو بیا اشکال شته او که د زوج اول بچې ئې منی او د هغه نه خپل غلام او خادم جوړوی نو بیا ناجائز ده، ځکه چه په دې دواړو خبرو کښې یو هم یقینی نه دې پس د احد المحظورین ارتکاب لازمیږی کومه چه نتیجه ده د عدم استبراء، حاصل دا چه په دې حدیث شریف کښې د قید کړې شوې وینځې سره قبل الاستبراء وطی کولو باندې سخت وعید اوفرمائیلو، او استبراء غیر حامله څو یو حیض دې او د حامله وضع حمل، وهذا امر متفق علیه بین الائمة الاربعة قال المنذری، واخرجه مسلم بنحوه. (عون)

[٢١٥٧]() حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ قَيْسِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ أَبِي الْوَدَّاكِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وَرَفَعَهُ، أَنَّهُ قَالَ فِي سَبَايَا أَوْطَاسَ: "لَا تُوطَأُ حَامِلٌ حَتَّى تَضَعَ، وَلَا غَيْرُ ذَاتِ حَمْلٍ حَتَّى تَحِيضَ حَيْضَةً".

**ترجمه:** ابو الوداك دابوسعید خدری رضی الله عنه نه یو مرفوع روایت نقل کړې دی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی داوطاس دقیدیانو په باره کښې چه په دوی کښې به دحاملې سره جماع نشی کولی ترڅوچه وضع دحمل نه وی شوی او بغیر حاملوسره به هم جماع نشی کولی ترڅوچهورباندې یوحیض نه وی راغلی.

[٢١٥٨]() حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي مَرْزُوقٍ، عَنْ حَنَشٍ الصَّنْعَانِيِّ، عَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: قَامَ فِينَا خَطِيبًا، قَالَ: "أَمَا إِنِّي لَا أَقُولُ لَكُمْ إِلَّا مَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَوْمَ حُنَيْنٍ، قَالَ: لَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَسْقِيَ مَاءَهُ زَرْعَ غَيْرِهِ، يَعْنِي إِتْيَانَ الْحَبَالَى، وَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَقَعَ عَلَى امْرَأَةٍ مِنَ السَّبْيِ حَتَّى يَسْتَبْرِئَهَا، وَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَبِيعَ مَغْنَمًا حَتَّى يُقْسَمَ".

**ترجمه:** دحضرت حنش صنعانی رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه رویفع بن ثابت الانصاری رضی الله عنه اودریدو او مونږ ته ئې خطبه راکوله اوداسې ئې اوفرمائیل زه تاسوته نه بیانوم مګرهغه څه کوم چه مې دنبی علیه السلام نه اوریدلی دی، مادهغه نه دحنین په ورځ داسې اوریدلی ووچه وئې فرمائیل حلال نه دی دداسې یوکس دپاره څوك چه په الله تعالی اوپه ورځ دآخرت باندې ایمان لری چه د خپلې اوبه دبل چاپه فصل کښې واړوی یعنی حاملې سره هم وطی کول حلال نه دی دداسې یوکس دپاره څوك چه په الله تعالی اوپه ورځ د آخرت باندې ایمان لری چه کومه قیدی ښځه وطی کړی ترڅوچه ددې رحم نه وی پاك شوی حلال نه دی دداسې یوکس دپاره څوك چه په الله تعالی اوپه ورځ دآخرت باندې ایمان لری چه دغنیمت یوڅیز مخکښې د تقسیم نه خرڅ کړې

**تشریح:** ﴿یعنی اتیان الحبالی﴾حبالی جمع ده د ﴿حبلی﴾، د اتیان نه مراد جماع یعنی کومه زنانه چه د دویم سړی په وطی سره حامله ده هغې سره وطی کول مخکښې د وضع الحمل نه حرام دی

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٩٩٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨/٣، ٦٢، ٨٧) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/النكاح ٣٤ (١١٣١)، (تحفة الأشراف: ٣٦١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٨/٤)، سنن الدارمي/السير ٣٧ (٢٥٢٠)، ويأتي هذا الحديث في الجهاد (حسن)

[٢١٥٩]()حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ "حَتَّى يَسْتَبْرِئَهَا بِحَيْضَةٍ"، زَادَ فِيهِ: حَيْضَةٍ وَهُوَ وَهْمٌ مِنْ أَبِي مُعَاوِيَةَ، وَهُوَ صَحِيحٌ فِي حَدِيثِ أَبِي سَعِيدٍ، زَادَ: "وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَرْكَبْ دَابَّةً مِنْ فَيْءِ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى إِذَا أَعْجَفَهَا رَدَّهَا فِيهِ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَلْبَسْ ثَوْبًا مِنْ فَيْءِ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى إِذَا أَخْلَقَهُ رَدَّهُ فِيهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: الْحَيْضَةُ لَيْسَتْ بِمَحْفُوظَةٍ، وَهُوَ وَهْمٌ مِنْ أَبِي مُعَاوِيَةَ.

**ترجمه:** ابومعاویه دابواسحاق نه دمذکوره روایت په شان ا روایت نقل کړی دی مګردوی اضافي سره چه ترڅو پورې ددې رحم نه وی پاك شوی په یوحیض تیریدوسره، ،ابوداود وائی دحیضة اضافه د ابومعاویه وهم دی او څوك چه په الله تعالی اوپه ورځ دآخرت باندې ایمان لری نوسورلی دی نه کوی دمسلمانانودغنیمت په څاروی باندې چه خوارئی : کړی او بیائی بیرته په نوروکښې واپس کړی او څوك، چه په الله تعالی او په ورځ دآخرت باندې ایمان لری نو د مسلمانانو د غنیمت دمال نه دی جامې نه اغوندی چه زړی ئې کړی اوبیرته ئې په غنیمت کښې شاملی کړې.

**تشریح:** ﴿فلا یرکب دابة من فیئ المسلمین﴾مطلب دا دې چه په مال غنیمت کښې د تقسیم نه مخکښې تصرف کول مثلاً دا چه د څاروی نه د سورلئ ښه ډیر کار واخلی او چه کله هغه کمزورې کړی نو هغه په مال غنیمت کښې کیږدی یا د مال غنیمت نه څه کپړه د استعمال دپاره واخلی او د هغې د استعمالولو نه پس هغه خراب او زړه شی او بیا ئې واپس کړی دا ټول کارونه ناجائز او حرام دی. دا حدیث په کتاب الجهاد کښې راروان دې ﴿حتی اذا خلقها﴾ ای جعلها خلقا ﴿ خلق ﴾په معنی د زوړ. ﴿ اذا اعجفها ﴾یعنی کله چه ئې ښه کمزورې کړو ﴿عجف ﴾په معنی د کمزوری، ﴿اعجف ﴾کمزورې والانثی عجفاء چه د هغې جمع عجاف راځی. کما فی قوله تعالی سبع عجاف... والحدیث سکت عنه المنذری. اهـ عون وفی تکملة المنهل وهذه الروایة اخرجها البیهقی من طریق المصنف مختصرة. اهـ

# باب فِي جَامِعِ النِّكَاحِ

## د نکاح د متفرقو احکامو بیان

یعنی په دې باب کښې متفرق احادیث جمع کړې شوې دی.

[٢١٦٠]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ يَعْنِي سُلَيْمَانَ بْنَ حَيَّانَ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا تَزَوَّجَ أَحَدُكُمُ امْرَأَةً أَوِ اشْتَرَى خَادِمًا، فَلْيَقُلِ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا وَخَيْرَ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْهِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَمِنْ شَرِّ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْهِ، وَإِذَا اشْتَرَى بَعِيرًا فَلْيَأْخُذْ بِذِرْوَةِ سَنَامِهِ وَلْيَقُلْ مِثْلَ ذَلِكَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: زَادَ أَبُو سَعِيدٍ: ثُمَّ لِيَأْخُذْ بِنَاصِيَتِهَا وَلْيَدْعُ بِالْبَرَكَةِ فِي الْمَرْأَةِ وَالْخَادِمِ.

**ترجمه:** حضرت عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه دد دنیکه : عمروبن العاص رضی الله عنه نه

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣٦١٥) (حسن)

[2]: سنن ابن ماجه/النكاح ٢٧ (١٩١٨)، (تحفة الأشراف: ٨٧٩٩)، وقد أخرجه: سنن النسائي/اليوم والليلة (٢٤٠) (حسن)

روایت بیان کړی، دی اوهغه دنبی ﷺ نه روایت کوی چه فرمائیلی ئې ووکله چه په تاسوکښې یوکس دیوی ښځې سره نکاح اوکړی یاخادم واخلی نو دا دعاء دې هم اووائې: «اللَّهُمَّ إني أسألك خيرها وخير ما جبلتها عليه وأعوذ بك من شرها ومن شر ما جبلتها عليه» ترجمه اوکله چه اوښ واخلی نودهغه په کوب دې لاس کیږدی او مذکوره دعادی اووائی، ابوداود وائي چه دابوسعید په روایت کښې ددې الفاظو اضافه منقول ده چه بیادی ددې په تندي باندې لاس کیږدي او دبرکت دحصول دپاره دی دعاوغواړی اوحکم دښځی اوخادم په باره کښې دي •

[٢١٦١] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَأْتِيَ أَهْلَهُ، قَالَ: بِسْمِ اللَّهِ، اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا، ثُمَّ قُدِّرَ أَنْ يَكُونَ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ فِي ذَلِكَ لَمْ يَضُرَّهُ شَيْطَانٌ أَبَدًا".

**ترجمه:** دابن عباس رضی الله عنهما نه مروی دی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی کله چه یوکس په تاسوکښې دخپلې کور وَدانې سره دکور والی اراده اوکړی نوداسې دی وائي: «بسم الله اللَّهُمَّ جنبنا الشيطان وجنب الشيطان ما رزقتنا» بیاکه چرې ددوی دپاره په دې ورځ بچی ورکړی شی نوشیطان به ورته هیڅ قسم ضررنشی رسولې.

**تشریح:** ﴿لو ان احدکم اذا اراد ان یاتی اهله﴾ یعنی که انسان د جماع د ارادې په وخت (د عورت ښکاره کولو نه مخکښ) دا دعا اولولی[2] او الله پاک ته د دې وطی نه ماشوم پیدا کول منظور وی نو د هغه دعا په برکت سره هغه مولود ته شیطان ضرر نه شی ورکولې، په اشعة اللمعات ص ٢٧١ جلد ٢ کښې لیکلې دی او په دې وخت کښې چاته د دعا او ذکر توفیق ملاویږی؟ او هم په دې وجه باندې د اولاد د احوال فساد او خرابوالې او د هغې تباهی ده. د کوم ضرر نفی چه په دې حدیث شریف کښې کړې شوې دې، وئیلې شوې ده چه د دې نه مراد ضرر جسمانی مراد دې ﴿صرع﴾ (مرګی) کوم ته چه ام الصبیان وئیلې شی د دې مرض نه محفوظ وی، او وئیلې شوې دی چه دینی ضرر مراد دې، یعنی د دین لوئې نقصان او نقصان عظیم یعنی خروج عن الاسلام، ګویا شیطان په دې باندې داسې بدې طریقې سره نه شی مسلط کیدې چه هغه د دائره اسلام نه خارج کړی، او په دې کښې یو قول دا هم دې چه په دې جماع کښې د شیطان شرکت نه شی کیدې ځکه چه بعض علماء کرام (مجاهد) نه منقول دی چه کوم سړې د جماع په وخت بسم الله پریږدی نو د هغه په احلیل باندې شیطان اونخلی او په جماع کښې شریک شی. والله تعالی اعلم.. قال المنذری واخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة اهـ عون.

---

[1]: صحيح البخاري/الوضوء ٨ (١٤١)، بدء الخلق ١ (٣٢٨٣)، النكاح ٦٦ (٥١٦١)، الدعوات ٥٥ (٦٣٨٨)، التوحيد ١٣ (٧٣٩٦)، صحيح مسلم/النكاح ١٨ (١٤٣٤)، سنن الترمذي/النكاح ٨ (١٠٩٢)، سنن ابن ماجه/النكاح ٢٧ (١٩١٩)، (تحفة الأشراف: ٦٣٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢١٧، ٢٢٠، ٢٤٣، ٢٨٣، ٢٨٦)، سنن الدارمي/النكاح ٢٩ (٢٢٥٨) (صحيح) [٢١٦٢]

[2]، او د انزال په وخت هم یوه دعا راغلې ده کما في الحصن الحصین: اللهم لا تجعل الشیطان فیما رزقتني نصیبا، یعنی په زړه کښې به دا دعا کوی (حاشیة کوکب)

()حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، عَنْ وَكِيعٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ الْحَارِثِ بْنِ مَخْلَدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَلْعُونٌ مَنْ أَتَى امْرَأَتَهُ فِي دُبُرِهَا".[1]

**ترجمه:** دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبی ﷺ فرمائيلي دی دلعنتی دی هغه کس څوك چه دخپلي ښځي سره په دبر (شاته طرف) کښي جماع اوکړي.

[٢١٦٣]()حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرًا، يَقُولُ: "إِنَّ الْيَهُودَ يَقُولُونَ: إِذَا جَامَعَ الرَّجُلُ أَهْلَهُ فِي فَرْجِهَا مِنْ وَرَائِهَا كَانَ وَلَدُهُ أَحْوَلَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى: نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ سورة البقرة آية ٢٢٣".([2])[3]

**ترجمه:** دحضرت محمد بن المنكدر روائی چه دجابر رضي الله عنه نه مي اوريدلي دی چه فرمائيل ئي يهوديانو به وئيل چه کوم کس دخپلي ښځي سره په فرج کښي دشاد طرف نه جماع اوکړي نوددوی چه کوم بچی پيدا کيږی هغه به کاڼره وی نوددی باطل عقيدی په رد کښي الله تعالی دا آيت: («نساؤكم حرث لكم فأتوا حرثكم أنى شئتم») نازل کړو. (سورة بقره ايت ٢٢٣)

ترجمه: ستاسو ښځي ستاسو دپاره پټی دی چه څنګه مو خوښه وی راځئ ورته.

**تشريح:** ﴿ان اليهود يقولون الخ﴾ يعنی يهود دا وائی چه کوم سړي د خپلي زوجي سره په قبل کښي د شا طرف نه (هغه پرمخي سملولو سره) وطی اوکړي نو د هغي نه چه کوم ماشوم پيدا کيږی هغه احول (چغر) وی، د دي په ترديد کښي دا آيت شريفه نازل شو چه په دي کښي هيڅ باک نشته چه انسان په شرمګاه کښي وطی د دبر د طرف نه اوکړي، د جمهورو رائي دا ده چه دا آيت د عموم احوال وکيفيات دپاره دي، د عموم مواضع دپاره نه دي او د ﴿انى شئتم﴾ معنی کيف شئتم ده، ﴿من اين شئتم﴾ نه ده، د سيدنا جابر رضي الله عنه په دي حديث کښي او د ابن عباس په راتلونکی روايت کښي د دي تصريح ده.

## وطی فی الدبر کښي د مسلك ابن عمر تحقيق:

خو د ابن عمر رضي الله عنه رائي د دي خلاف منقول ده لکه چه په کتب حديث وشروح حديث کښي مشهور دی او خپله دلته په ابوداود کښي په وړاندي روايت کښي ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه ﴿ان ابن عمر الله يغفر له اوهم﴾ ([4]) چه ابن عمر رضي الله عنه دي الله پاك معاف کړی د هغه نه په دي کښي وهم واقع شوي دي. او هغه وهم دا دي چه هغه فرمائی چه دا آيت کريمه د وطی فی الدبر په باره کښي دي لکه چه د دارقطنی او طبرانی په روايت کښي د ابن عمر رضي الله عنه نه صراحة روايت شوي دي کوم چه ابن جرير طبری په خپل تفسير کښي ذکر کړي دي، او امام

---

[1]): سنن ابن ماجه/النكاح ٢٩ (١٩٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٣٧)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ عشرة النساء (٩٠١٥)، مسند احمد (٢/٢٧٢، ٣٤٤، ٤٤٤، ٤٧٩)، سنن الدارمي/الطهارة ١١٤(١١٧٦) (حسن)

[2]): صحيح البخاري/تفسير سورة البقرة ٣٩ (٤٥٢٨)، صحيح مسلم/النكاح ١٩(١٤٣٥)، (تحفة الأشراف: ٣٠٢٢)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/التفسير ٣ (٢٩٧٨)، سنن ابن ماجه/ النكاح ٢٩ (١٩٢٥)، سنن الدارمي/الطهارة ١١٣ (١١٧٢)، النكاح ٣٠(٢٦٦٠) (صحيح)

[3]) وحديث جابر هذا اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري اهـ عون)

[4]) حديث ابن عباس سكت عنه المنذري اهـ وفي المنهل والحديث اخرجه ايضا البيهقي اهـ)

بخاری رحمه الله هم په کتاب التفسير کښې د ابن عمر رضي الله عنه دا روايت ذکر کړې دې، خو ﴿ يأتيها فى ﴾ ليکلو سره ئې وړاندې بياض پريخودلې دې د لفظ ﴿فى﴾مجرور ئې نه دې ذکر کړې، يا خو د دې لفظ د قباحت او شناعت د وجې نه (کما فى تقرير الجنجوهى) يا په قول د بعض شارحينو د عدم تحقيق او تردد د وجې نه بنا بر اختلاف روايات.
د دې نه پس خان پوهه کړئ چه د محدثينو په دې کښې اختلاف دې چه د ابن عمر رضي الله عنه طرف ته د اباحت دبر نسبت صحيح دې يا نه؟ پس بعض علماء چه په هغوی کښې ابن حجر رحمه الله هم شامل دې د دې د صحت قائل دی [1]کما يظهر من کلامه فى الفتح او بعض نور حضرات چه په هغوی کښې حافظ ابن القيم (فى تهذيب السنن) او حافظ ابن کثير وړاندې وړاندې دی هغوی د دې په سختئ سره انکار کوی هغوی وائی چه ابن عمر ته وهم نه دې راغلې بلکه خلقو ته د هغه په مسلک باندې پوهيدو کښې وهم راغلې دې، د هغه اصل رائې خو د آيت په تفسير کښې هم هغه ده کومه چه د ابن عباس رضي الله عنه ده يعنى اتيان فى الفرج من ناحية الدبر، د علامه قسطلانی ميلان هم د حافظ د رائې خلاف هم دې طرف ته دې پس هغه د حافظ ابن حجر کلام نقل کولو نه پس د دې استدراک د حافظ ابن کثير د کلام نه کړې دې او د ابن عمر نه ئې صريح روايات د دې په عدم جواز کښې ذکر کړې دی، ابن قيم په حواله د نسائی يو روايت دا هم ذکر کړې دې عن سعيد بن يسار قال قلت لابن عمر انا نشترى الجوارى فنحمض لهن قال وما التحميض؟ قال ناتيهن فى ادبارهن. قال اف! او يعمل هذا مسلم؟ اهـ علامه انور شاه کشميری رحمه الله رائې هم دا ده چه د دې فاحشه د اباحت نسبت د ابن عمر رضي الله عنه طرف ته بالکل غلط دې، وړاندې فرمائی چه دا وطى فى الدبر داسې فاحشه ده التى تدع الديار بلا قع اهـ (فيض البارى) [2] د حضرت اقدس گنگوهی رحمه الله رائې هم په لامع الدرارى کښې هم دا ده چه د ابن عمر رضي الله عنه مسلک دې هم د جمهورو د مسلک مطابق او منلې شی د هغې خلاف نه

هم دغه شان دې دا هم واضح وی چه څنګه د ابن عمر رضي الله عنه نه په دې مسئله کښې د ناقلينو اختلاف موندلې شی هم دغه شان د فقه دوه لوئې امامان يعنى د مالک بن انس او امام شافعی هم په دې کښې اختلاف نقل کولې شی کوم چه د حديث په شروح کښې مذکور دې او حضرت سهارنپوری هم په بذل المجهود کښې دا نقل کړې دې او دا چه تحقيق دا دې چه دا دواړه امامان د جمهورو سره دی پس وطى فى دبر المراءة باتفاق ائمه اربعه حرام ده، البته حافظ ابن حجر په دې کښې د بعض صحابه او نورو علماء اختلاف ثابت کړې دې. والله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب.

---

[1]) په ظاهره کښې د ابن عمر د روايت مقتضى هم دا ده او هم په دې وجه هغه دا مبهم ساتلې دې، او دابوداود موجوده روايت خو په دې کښې تقريبا صريح دی([3])دادا سې گناه ده چې ښارونه او آبادې دبيخه وتونکې او تباه وبرباد کونکې ده. قلت وفى الحديث اليمين الفاجرة تذرالديار بلاقع،۱۲

[2]) دا داسې گناه ده کومه چه ښهرونو او ابادو لره تباه کونکې ده، قلت وفى الحديث اليمين الفاجرة تذر الديار بلاقع)

[۲۱٦٤]()حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى أَبُو الْأَصْبَغِ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "إِنَّ ابْنَ عُمَرَ وَاللَّهُ يَغْفِرُ لَهُ أَوْهَمَ إِنَّمَا كَانَ هَذَا الْحَيُّ مِنَ الْأَنْصَارِ وَهُمْ أَهْلُ وَثَنٍ مَعَ هَذَا الْحَيِّ مِنْ يَهُودَ وَهُمْ أَهْلُ كِتَابٍ، وَكَانُوا يَرَوْنَ لَهُمْ فَضْلًا عَلَيْهِمْ فِي الْعِلْمِ فَكَانُوا يَقْتَدُونَ بِكَثِيرٍ مِنْ فِعْلِهِمْ، وَكَانَ مِنْ أَمْرِ أَهْلِ الْكِتَابِ أَنْ لَا يَأْتُوا النِّسَاءَ إِلَّا عَلَى حَرْفٍ وَذَلِكَ أَسْتَرُ مَا تَكُونُ الْمَرْأَةُ، فَكَانَ هَذَا الْحَيُّ مِنَ الْأَنْصَارِ قَدْ أَخَذُوا بِذَلِكَ مِنْ فِعْلِهِمْ، وَكَانَ هَذَا الْحَيُّ مِنْ قُرَيْشٍ يَشْرَحُونَ النِّسَاءَ شَرْحًا مُنْكَرًا وَيَتَلَذَّذُونَ مِنْهُنَّ مُقْبِلَاتٍ وَمُدْبِرَاتٍ وَمُسْتَلْقِيَاتٍ، فَلَمَّا قَدِمَ الْمُهَاجِرُونَ الْمَدِينَةَ تَزَوَّجَ رَجُلٌ مِنْهُمُ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ فَذَهَبَ يَصْنَعُ بِهَا ذَلِكَ فَأَنْكَرَتْهُ عَلَيْهِ، وَقَالَتْ: إِنَّمَا كُنَّا نُؤْتَى عَلَى حَرْفٍ، فَاصْنَعْ ذَلِكَ وَإِلَّا فَاجْتَنِبْنِي، حَتَّى شَرِيَ أَمْرُهُمَا، فَبَلَغَ ذَلِكَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ سورة البقرة آية ۲۲۳، أَيْ مُقْبِلَاتٍ وَمُدْبِرَاتٍ وَمُسْتَلْقِيَاتٍ، يَعْنِي بِذَلِكَ مَوْضِعَ الْوَلَدِ.

**ترجمه:** دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه الله تعالى دي ابن عمر رضي الله عنه ته مغفرت اوكړي هغه ته په انى شئتم كښې اوهم پيداشوى وو چه دښځې سره په شاته طرف كښې جماع كول درست دي، بلكه اصل واقعه داسې ده چه په انصاروكښې يوه قبيله وه چه دبتانوعبادت به ئې كولوددوى سره يوه بله قبيله و كوم چه اهل كتاب وو او ديهوديانوبه دانصارونه ځان افضل ګڼړلوځكه چه ديهوديانو سره دتورات علم وواونصرانيانو به دبتانو عبادت كولونوپه ډيرو اموروكښې به انصارو ديهوديانواتباع كوله اوبله خبره داهم وه چه يهوديانوبه ديوى طريقې نه علاوه په بله طريقه باندې دخپلوبيبيانوسره كور والى نه كولويعنى ښځه به ئې څملوله اوكور والى به ئې ورسره اوكړوځكه چه په دې طريقې سره به دښځې شرمګاه پټ پاتې شو، نوانصارو به په دې كاركښې هم ديهوديانو و تقليد كولو اوقريشيانوسروبه دخپلو ښځونه په مختلفو طريقوسره مزې اخستلې او برېنډولې به ئې كله دمخكښې طرف نه اوكله دشا طرف نه، اوكله به ئې څملوله كله چه مهاجرين مدينې ته راغلل نو په دوى كښې يوكس يه ديوى انصارى زنانه سره نكاح اوكړله اودخپل رسم ورواج مطابق ئې ورسره كوروالي شروع كړونوښځې ئې دغسې كوروالي كول بدوګڼړل او اوئې وئيل داسې طريقې استعمالول په مونږ كښې بدګڼړلې شي اوداعمل مونږ صرف په يوه طريقه كوو، نه به هم داسې كوى ګنې زمانه جدائى اختياركړه بهرحال ددوى په مينځ كښې دې نزاع ډير كړكيچن صورت اختياركړوتردې چه نبى ﷺ ته هم دا معامله ورسيدله نو په دې وخت كښې الله تعالى دا آيت : («نساؤكم حرث لكم فأتوا حرثكم أنى شئتم») نازل كړو يعنى كه دمخامخ طرف نه كور والى كوئ اوكه شاطرف نه اوكه څملوئ ئې ليكن ولادت ددخول په ځاى كښې كوئ.

## شرح حديث

د پورته آيت كريمه ﴿نساءكم حرث لكم﴾ د شان نزول د لاندې ابن عباس رضي الله عنه د ابن عمر رضي الله عنه رائې لره رد كولو سره فرمائى چه د هغې حاصل دا دې : په مدينه منوره كښې ابادى په شروع كښې مشترک وه هلته به اهل وثن (مشركين) كوم چه د اسلام قبلولو نه روستو

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٣٧٧) (حسن)

انصار اوبللې شو هم اوسیدل او یهود کوم چه اهل کتاب وو هغوی هم هلته اوسیدل، او دا خبره هم وه چه دې مشرکانو به یهودیانو ته د هغوی د اهل کتاب کیدو د وجې نه د خپل ځان نه افضل ګڼړلو او د هغوی بعض خصلتونه به ئې د هغوی نه زده کول (د دې تمهید نه پس اوس پوهه شئ) په مدینه منوره کښې د اوسیدونکو یهودو د جماع طریقه متعین وه وذلک استر ما تکون المراة یعنی هغه طریقه د جماع ډیره مناسب او د پردې وه (په ظاهره کښې تربې مراد یعنی ألته ده) په خلاف د مشرکین مکه او قریشو چه هغوی به جماع په مختلف طریقو سره کوله کله یو شان او کله بل شان (کله زنانه نیغه سملولو سره او کله پړمخې سملولو سره خو بهر حال کولو به ئې په شرمګاه کښې) چه کوم مشرکان به په مدینه کښې اوسیدل هغوی هم د یهودیانو والا طریقه زده کړې وه او هغوی په دې باندې عادت شوې وو. ﴿فلما قدم المهاجرون المدینة﴾بیا چه کله مهاجرین (مشرکین مکه) اسلام قبلولو سره په قلاره قلاره مدینې ته راتلل شروع شو نو دا قصه ورته راپیښه شوه چه یو مهاجری د انصاری زنانه سره نکاح اوکړه، د نکاح نه پس چه کله په اوله شپه باندې هغه مهاجری دې انصاری زنانه ته راغلو نو هغه د هغې سره په داسې طریقه باندې جماع کولو اوغوښتل څنګه چه به هغوی (اهل مکه) کوله (هغه ئې پړمخې سملوله) نو دې انصاریه خپل خاوند اور ټولوکلو چه دا څه کوې زمونږ په نزد خو د جماع هم دا یوه طریقه ده که داسې ئې کوې خو صحیح ده ګینې لرې شه﴿حتی شرئ امرهما ﴾تردې چه د هغوی دا خبره خوره شوه (ښه کافی پوره قصه ترینه جوړه شوه قضیة اوشو) او خبره رسول اللهﷺ ته اورسیده ﴿فانزل الله عزوجل نساءکم حرث لکم ﴾ګویا مطلب دا شو چه دا هیڅ ضروری نه ده چه جماع دې په یو خاص طریقې سره اوکړې شي (څنګه چه یهود کوی) بلکه هر قسمه ګنجائش دې څنګه چه مهاجرین کوی او داسې هم کولې شي انتهی کلام ابن عباس. اوس کتل دا دی چه په دې شان نزول کښې چرته هم د وطی دشاه طرف نه ذکر نشته بلکه دا دې چه قریش چه څنګه جماع کوی په هغه ټولو طریقو سره جماع کولې شي چه په هغې کښې په بعض کښې ستر زیات دې او په بعض کښې کم.

## بَابٌ فِي إِتْيَانِ الْحَائِضِ وَمُبَاشَرَتِهَا

**بابه حائضه ښځې سره جماع اور هغې سره مباشرت (بدن سره د بدن ملاوولو) بیان**

دا ترجمه الباب او مسئله او هم دغه شان د دې نه روستو راتلونکې ترجمة الباب کتاب الطهارة کښې ابواب الاستحاضة کښې تیر شوې دې.

[۲۱٦۵](۱)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ الْيَهُودَ كَانَتْ إِذَا حَاضَتْ مِنْهُمُ امْرَأَةٌ أَخْرَجُوهَا مِنَ الْبَيْتِ وَلَمْ يُؤَاكِلُوهَا وَلَمْ يُشَارِبُوهَا وَلَمْ يُجَامِعُوهَا فِي الْبَيْتِ، فَسُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى: وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ فِي الْمَحِيضِ سورة البقرة آية ۲۲۲ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "جَامِعُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ

---

(۱): انظر حدیث رقم (۲۵۸)، (تحفة الأشراف: ۳۰۸) (صحیح)

وَاصْنَعُوا كُلَّ شَيْءٍ غَيْرَ النِّكَاحِ"، فَقَالَتِ الْيَهُودُ: مَا يُرِيدُ هٰذَا الرَّجُلُ أَنْ يَدَعَ شَيْئًا مِنْ أَمْرِنَا إِلَّا خَالَفَنَا فِيهِ، فَجَاءَ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ وَعَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِنَّ الْيَهُودَ تَقُولُ كَذَا وَكَذَا، أَفَلَا نَنْكِحُهُنَّ فِي الْمَحِيضِ؟ فَتَمَعَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنْ قَدْ وَجَدَ عَلَيْهِمَا، فَخَرَجَا فَاسْتَقْبَلَتْهُمَا هَدِيَّةٌ مِنْ لَبَنٍ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَبَعَثَ فِي آثَارِهِمَا، فَظَنَنَّا أَنَّهُ لَمْ يَجِدْ عَلَيْهِمَا.

**ترجمه:** دحضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی فرمائی چه کله به د په یهودیانو کښې دیوی ښځې حیض راغی نو دکورنه به ئې وخکله اوخوراك څکاك اوناسته پاسته به ئې ورسره نه کوله نو په دې باره کښې دنبی عليه السلام نه تپوس اوکړی شونو په دې وخت کښې حق تعالی دا آیت نازل کړو: «يسألونك عن المحيض قل هو أذى فاعتزلوا النساء في المحيض» الآية، نبی عليه السلام اوفرمائیل په کورونو کښې ورسره ناسته پاسته کوئ اوددوی سره ستاسو دپاره هرڅه جائز دی مګرعلاوه دکوروالی نه، په دې وخت کښې یهودیانوو وئیل چه داسړی (نبی عليه السلام) نه غواړی چه زمونږ ددین یوشی یوحال نه پریږدی مګرپه هریو کښې ئې زمونږ: مخالفت کړې دې نو په دې سلسله کښې اسید بن حضیر اوعباد بن بشر رضي الله عنهما نبی علیه و السلام ته راغلل اوعرض ئې اوکړوچه اې دالله رسوله و یهودیان داسې داسې وائی آیا مونږ دښځوسره په حیض کښې کور والی ونکړو؟ ددې په اوریدوسره دنبی عليه السلام دمخ رنګ بدل شوتردې چه مونږ ګمان اوکړوچه دوی دواړونبی عليه السلام غصه کړوپس دوی روان شول ددې نه پس نبی عليه السلام ته دپیوتحفه پیش کړی شوه نونبی عليه السلام دوی را اوغوښتل مونږته داسې نه ښکاریدل چه نبی عليه السلام دوی ته غصه شوی دی بلکه یهودیانوته غصه شوی وو.

**تشریح: قوله:** ﴿افلا ننكحهن في المحيض﴾ د دې دواړو حضرات مقصود دا وو چه د یهودو نور هم مخالفت اوکړې شی او نه صرف دا چه مونږ خلق د حائضه سره خوراک څکاک او یو شان وی بلکه د دې سره جماع هم کوی که ستاسو اجازت وی، په دې باندې مفصل کلام په مواكلة الحائض کښې تیرشوې دې. قال المنذري واخرجه مسلم والترمذي والنسائي وابن ماجة اهـ عون

[۲۱۶۶](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ جَابِرِ بْنِ صُبْحٍ، قَالَ: سَمِعْتُ خِلَاسًا الْهَجَرِيَّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، تَقُولُ: "كُنْتُ أَنَا وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيتُ فِي الشِّعَارِ الْوَاحِدِ وَأَنَا حَائِضٌ طَامِثٌ، فَإِنْ أَصَابَهُ مِنِّي شَيْءٌ غَسَلَ مَكَانَهُ وَلَمْ يَعْدُهُ، وَإِنْ أَصَابَ، تَعْنِي ثَوْبَهُ، مِنْهُ شَيْءٌ غَسَلَ مَكَانَهُ وَلَمْ يَعْدُهُ وَصَلَّى فِيهِ".

**ترجمه:** خلاس ابن عمرو هجری وائی چه دعائشې رضي الله عنها نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې ما اونبی عليه السلام به په یوه جامه کښې شپه تیروله اوزه به حائضه وم: که چرې دنبی عليه السلام په بدن څه غلاظت پریوتونو هغه به ئې وینځلو، نه چه ددې نه زیات اوکه چرې دنبی عليه السلام کپړی به ګنده شوی نو هم هغه هومره ځای به ئې وینځلو څومره چه به ګنده شوی وو ددې نه زیات نه اوبیابه پې په دې جامو کښې مونځ هم کولو.

(1): انظر حديث رقم (۲۶۹)، (تحفة الأشراف: ۱۶۰۶۷) (صحيح)

[٢١٦٧](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنِ الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ، عَنْ خَالَتِهِ مَيْمُونَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا أَرَادَ أَنْ يُبَاشِرَ امْرَأَةً مِنْ نِسَائِهِ وَهِيَ حَائِضٌ، أَمَرَهَا أَنْ تَتَّزِرَ ثُمَّ يُبَاشِرُهَا".

**ترجمه:** حضرت عبدالله بن شداد رضی الله عنه دخپلې ترورميمونة بنت الحارث رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه کله به نبی علیه السلام دخپلې يوی بی بی سره د څملاستو اراده اوکړه اوهغه به حائضه وه نوهغې ته به ئې حکم اوکړو چه لنګ وتړی اوبيابه ورسره څملاستو.

## بَابٌ فِي كَفَّارَةِ مَنْ أَتَى حَائِضًا

### باب: حائضه ښځې سره د جماع کولو د کفارې بيان

[٢١٦٨](٢)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، وَغَيْرُهُ، عَنْ سَعِيدٍ، حَدَّثَنِي الْحَكَمُ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الَّذِي يَأْتِي امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ، قَالَ: "يَتَصَدَّقُ بِدِينَارٍ أَوْ بِنِصْفِ دِينَارٍ".

**ترجمه:** دحضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دهغه چاپه باره کښې څوك چه دخپلې ښځې سره په حيض کښې کوروالی اوکړی فرمائيلی دی چه يودينار يانيم دينار دی صدقه کړي(په طور دکفارې).

[٢١٦٩](٣)حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ مُطَهَّرٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ يَعْنِي ابْنَ سُلَيْمَانَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحَكَمِ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَبِي الْحَسَنِ الْجَزَرِيِّ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "إِذَا أَصَابَهَا فِي الدَّمِ فَدِينَارٌ، وَإِذَا أَصَابَهَا فِي انْقِطَاعِ الدَّمِ فَنِصْفُ دِينَارٍ".

**ترجمه:** دحضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی وه که چرې څوك دوينو په موجودګئ کښې کوروالی اوکړی نوپوره ديناربه صدقه کوی اوکه چرې دوينودقطع کيدو په وخت کښې يعنی دحيض اختتام په وخت کښې ئې کوروالی اوکړو نونيم ديناربه صدقه کوي(يعنی کفاره ده).

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْعَزْلِ

### باب: د عزل بيان

عزل دا دې چه انسان د وطی په وخت چه کله د انزال وخت راشی نو فورا خپل اندام بهر راوباسی د دې دپاره چه حمل رانشی. د رسول الله ﷺ په زمانه کښې زيات تر خو صحابه کرامو ته د دې ضرورت د وينزو سره راتلو چه د هغې وجه دا وه چه يو طرف ته خو به حاجت وو د صحبت کولو او دويم طرف ته فديه يعنی د وينزې قيمت چه د ضرورت په وخت هغه خرڅ کړې شی او هغه دا خرڅولو سره د هغې قيمت حاصلول هم دغه شان ممکن ده چه

١): صحيح البخاري/الحيض (٣٠٣)، صحيح مسلم/الحيض ١ (٢٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٦١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٣٥، ٣٣٦) (صحيح)

٢): انظر حديث رقم: ٢٦٤، (تحفة الأشراف: ٦٤٩٠) (صحيح)

٣): انظر حديث رقم (٢٦٥)، (تحفة الأشراف: ٦٤٩٨) (صحيح)

کله د هغه په دې وطی سره بچې پیدا نه شی ځکه چه د ولادت په صورت کښې هغه وینزې ام ولد جوړه شی چه د هغې بیع ناجائز دې.

[۲۱۷۰]()حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الطَّالَقَانِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ قَزَعَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، ذُكِرَ ذَلِكَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَعْنِي الْعَزْلَ، قَالَ: "فَلِمَ يَفْعَلُ أَحَدُكُمْ، وَلَمْ يَقُلْ: فَلَا يَفْعَلْ أَحَدُكُمْ، فَإِنَّهُ لَيْسَتْ مِنْ نَفْسٍ مَخْلُوقَةٍ إِلَّا اللَّهُ خَالِقُهَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَزَعَةُ مَوْلَى زِيَادٍ.

**ترجمه:** دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دا عمل یعنی عزل نبی علیه السلام ته ذکرکړې شونو وئی فرمائیل په تاسوکښې یوکس داسې ولې کوی، اوداسې ئې ونه وئیل چه داعمل مه کوئ. ځکه چه الله چې کوم نفس پیدا کول غواړی نو هغه به هم هغه پیدا کړی. امام ابوداود فرمائی چه قزعه دزیاد آزاد کړی شوی غلام وو.

[۲۱۷۱]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ حَدَّثَهُ، أَنَّ رِفَاعَةَ حَدَّثَهُ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ لِي جَارِيَةً وَأَنَا أَعْزِلُ عَنْهَا، وَأَنَا أَكْرَهُ أَنْ تَحْمِلَ وَأَنَا أُرِيدُ مَا يُرِيدُ الرِّجَالُ، وَإِنَّ الْيَهُودَ تُحَدِّثُ أَنَّ الْعَزْلَ مَوْءُودَةُ الصُّغْرَى، قَالَ: "كَذَبَتْ يَهُودُ، لَوْ أَرَادَ اللَّهُ أَنْ يَخْلُقَهُ مَا اسْتَطَعْتَ أَنْ تَصْرِفَهُ".

**ترجمه:** دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یوکس نبی علیه السلام ته عرض اوکړو چه اې دالله رسوله زما یوه وینځه ده زه چه ورسره کوروالی کوم نوعزل کوم اوداېدګڼرم چه حامله شی اوزماهغه څه پکاروی کوم چه دنوروسرویکاروی او یهودیان وائی عزل په شان د ماشوم دخښولودی نبی علیه السلام چې اوریدل نو اوفرمائیل یهودیان دروغ وای که چرې الله اوغواړی چه پیدائی کړی نوځوك ئې مخه نشی بندولې.

## د روایات عزل تشریح او مذاهب ائمه:

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه تقریبا ټول روایات حدیثیه نه د عزل جواز خو غیر مفید کیدل ثابتیږی(۳)، دلته په ابوداود کښې چه څومره روایات دی د ټولو حاصل دا دې.

په صحیح بخاری کښې د عزل سره متعلق یو مختصر شان باب دې چه په هغې کښې دوه درې روایات دی ﴿کنا نعزل والقران ینزل ﴾د کراهة یا منع هیڅ قسم روایت په دې کښې نشته، البته په صحیح مسلم کښې یو روایت دې یعنی حدیث جدامه بنت وهب چه په هغې کښې دا دی ﴿ذلک الواد الخفی ﴾چه د هغې په وجه باندې مشکلات پیدا شو یو حکم د عزل په باره کښې ځکه چه د حدیث جدامه تقاضا دا ده چه هغه ممنوع دې او د باقی ټولو

---

[1]): صحیح البخاري/ والتوحید ۱۸ (۷۴۰۹)تعلیقًا، صحیح مسلم/النکاح ۲۲ (۱۴۳۸)، سنن الترمذي/النکاح ۴۰ (۱۱۳۸)، سنن ابن ماجه/النکاح ۳۰ (۱۹۲۶)، (تحفة الأشراف: ۴۱۴۱، ۴۲۸۰)، وقد أخرجه: سنن النسائي/النکاح ۵۵ (۳۳۲۹)، موطا امام مالك/الطلاق ۳۴ (۹۵)، مسند احمد (۳/۲۲، ۲۶، ۴۷، ۴۹، ۵۱، ۵۳، ۵۹، ۶۸)، سنن الدارمي/النکاح ۳۶ (۲۲۶۹) (صحیح)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۴۰۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۳، ۵۱، ۵۳) (صحیح)

[3]) غیر مفید په دې وجه چه سره د عزل او اخراج ذکر نه یو دوه قطرې د منی هلته غورځیدلې شی او هم هغه د حمل دپاره کافی کیدلې شی، پس داسې هم شوې دی کله چه په بعض روایاتو کښې موجود دی چه بعض صحابه کرامو عزل اوکړو خو د هغې باوجود ئې حمل شو چه د هغې خبر هغوی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورکړو، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: مونږ خو مخکښې دا خبره کړې وه)

روایاتو نه اباحت مستفاد کیږي.

دویم دا چه دا روایت په حدیث الباب کښې چه په هغې کښې دی ﴿كذبت يهود﴾ خلاف دي یهودو خو به هم دا وئیل چه عزل واد دې، د دې دویم اشکال جواب حافظ ابن القیم رحمه الله دا ورکړې دې چه الواد الخفی مطلب دا دې چه ﴿ان العزل نوع من الواد ای صورة وليس بواد حقيقيا﴾ بلکه هغه واد دې من وجه یعنی قصدا د واطی لحاظ سره چه دا غواړی چه استقرار حمل نه وی، په خلاف د یهودیانو چه هغوی دا واد حقیقی منی خو واد صغیر یعنی هغوی به یقین سره دا وئیل چه په دې کښې قطع نسل دې او رسول الله ﷺ د دې تردید اوکړو چه الله پاک که په دې وطی نه یو انسان پیدا کول غواړی نو هغه به یقینا پیدا کیږي. لهذا د اثبات او نفی تعلق د شئ واحد سره نه دې چه دې ته تعارض اوئیلې شي.

او اباحت او منع کوم چه تعارض دې د هغې مختلف توجیهات کړې شوې دی، قال البيهقي النهي محمول على التنزيه لا على التحريم واحاديث الجواز على نفي التحريم، ومنهم من رجح رواية المنع كابن حزم كما هو مسلكه وبعضهم بعكس ذلك.

**(دعزل حکم):** د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د عزل په حکم کښې د فقهاء کرامو ترمینځه دا تفصیل دې.

عند الجمهور والائمة الثلاثة د حره سره عزل کول بغیر د هغې د اجازت نه مکروه دې او د شوافعو په نزد دوه روایتونه دی کراهت او عدم کراهت وهو الراجح عند المتاخرين. او که زنانه وینزه وی نو که هغه خپله مملوکه وی نو بیا خو د هغه سره بالاتفاق جائز دې مطلقا ولو بغير الاذن. او که هغه امة مزوجه ده نو هغه په حکم کښې حره ده. لهذا د جمهورو او ائمه ثلاثه په نزد بغیر د اذن نه مکروه دې او په دې کښې معتبر اذن د سید دې عند الائمة الثلاثة على الراجح عندهم وعند الصاحبين المعتبر اذن الامة او د ابن حزم ظاهری مسلک دا دې چه عزل مطلقا حرام دې برابره خبره ده که حره وی یا امة. (من الاوجز)

[٢١٧٢] (١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ ابْنِ مُحَيْرِيزٍ، قَالَ: دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَرَأَيْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، فَجَلَسْتُ إِلَيْهِ فَسَأَلْتُهُ عَنِ الْعَزْلِ، فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ بَنِي الْمُصْطَلِقِ، فَأَصَبْنَا سَبْيًا مِنْ سَبْيِ الْعَرَبِ فَاشْتَهَيْنَا النِّسَاءَ وَاشْتَدَّتْ عَلَيْنَا الْعُزْبَةُ وَأَحْبَبْنَا الْفِدَاءَ فَأَرَدْنَا أَنْ نَعْزِلَ، ثُمَّ قُلْنَا: نَعْزِلُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا قَبْلَ أَنْ نَسْأَلَهُ عَنْ ذَلِكَ، فَسَأَلْنَاهُ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: "مَا عَلَيْكُمْ أَنْ لَا تَفْعَلُوا، مَا مِنْ نَسَمَةٍ كَائِنَةٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ إِلَّا وَهِيَ كَائِنَةٌ".

**ترجمه:** دعبدالله ابن محیرزنه روایت دې فرمائی چه جومات ته داخل شوم نو ابوسعید خدری رضی الله عنه مې اولیدونوزه ورسره کیناستم اودعزل په باره کښې مې ترې پوښتنه اوکړه ابوسعید خدری رضی الله عنه ووئیل مونږ دنبی علیه السلام سره غزوه بنی المصطلق - ته لاړونوهلته

---

(١): صحيح البخاري/البيوع ١٠٩ (٢٢٢٩)، العتق ١٣ (٢٥٤٢)، المغازي ٣٢ (٤١٣٨)، النكاح ٩٦ (٥٢١٠)، القدير ٦ (٦٦٠٣)، التوحيد ١٨ (٧٤٠٩)، صحيح مسلم/النكاح ٢٢ (١٤٣٨)، (تحفة الأشراف: ٤١١١)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/العتق (٥٠٤٤)، مسند احمد (٣/٦٣، ٦٨، ٧٢، ٨٨) (صحيح)

موعربي قيديان وليدل چه وينځې اوغلامان وو نو زمونږ زړه وغوښتل چه حاصل ئې کړو اولونړتوب مونږ تنګ کړی وو اوحامله کيدودويرې نه به مونږه عزل کولو. مونږ ووئيل مونږه خو مخکښې دتپوس کولونه عزل کوو اوحال دادی چه نبي عليه السلام په مونږ کښې موجود دې نومونږ ترې تپوس اوکړو. نبي عليه السلام اوفرمائيل عزل مه کوئ څکه تاسو ته څه نقصان دې چه دقيامته پورې چه کوم روح پيدا کيدونکې وی هغه به ضرور پيدا کيږي.

﴿فاصبنا سبايا من سبي العرب ﴾راوی وائی چه مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم په ملګرتيا کښې د بنو المصطلق سره غزوه اوکړه او په دې کښې مونږه ډير عرب قيديان قيد کړل

### استرقاق العرب مسئله:

په دې باندې شارحينو ليکلي دی چه بنو المصطلق خالص عرب وو، پس د دې نه معلومه شوه چه عربو لره په جنګ کښې قيد کول جائز دی څنګه چه عجميانو لره قيد کول جائز دی، لکه چه د جمهورو مذهب دې په خلاف د امام ابوحنيفه چه د هغه په نزد استرقاق عرب جائز نه دې، د دې جواب په بذل المجهود کښې دا ورکړې شوې دې چه مسئله دا ده چه د احنافو په نزد سړی عرب لره قيد کول جائز نه دی، نساء وصبيان لره قيد کول جائز دی او سياق حديث د نساء سره متعلق دې. اه قال المنذری واخرجه البخاری ومسلم والنسائی. اه عون زاد فی المنهل والترمذی.

[۲۱۷۳]([1])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّ لِي جَارِيَةً أَطُوفُ عَلَيْهَا وَأَنَا أَكْرَهُ أَنْ تَحْمِلَ، فَقَالَ: "اعْزِلْ عَنْهَا إِنْ شِئْتَ فَإِنَّهُ سَيَأْتِيهَا مَا قُدِّرَ لَهَا"، قَالَ: فَلَبِثَ الرَّجُلُ، ثُمَّ أَتَاهُ، فَقَالَ: إِنَّ الْجَارِيَةَ قَدْ حَمَلَتْ، قَالَ: "قَدْ أَخْبَرْتُكَ أَنَّهُ سَيَأْتِيهَا مَا قُدِّرَ لَهَا".

**ترجمه:** دحضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه يوانصاری دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضرشواوعرض ئې اوکړو چه زما يوه وينځه ده اوزه ورسره جماع کوم اوزه دابدګنړم چه هغه زمانه حامله شي نبي عليه السلام اوفرمائيل عزل ترې کوه که دی خوښه وی يقينا پيدابه شي هغه شی کوم چه الله تعالی ددې دپاره ليکلی وی راوی وائی چه دغه سړی انتظار اوکړواوبيا ورته دوباره راغی او اوئې وئيل چه هغه جينئ خوحامله شوی ده، نبي عليه السلام ورته اوفرمائيل ماخوتاته خبردرکړی ووځه چه دی په تقدير کښې ليکلی شوی وی هغه به ورته ضرور ورسيږی

## بَابُ مَا يُكْرَهُ مِنْ ذِكْرِ الرَّجُلِ مَا يَكُونُ مِنْ إِصَابَةِ أَهْلِهِ

### باب: ښځې سره د جماع حال خلقوته دوئيلو د کراهت بيان

اصابة اهل يعنی جماع، کوم کار چه انسان د شپې يواځې خپلې ښځې سره کوی، بيا د ورځې په مجلس کښې چا سره د هغې تذکره کول، د دې د کراهة بيان، کراهة د دې ظاهر دې اولا په دې وجه چه دا سراسر بې حيائی ده او دويم په دې وجه چه دا احمقانه حرکت دې چه قابل

[1]): صحيح مسلم/النكاح ۲۲ (۱۴۳۹)، (تحفة الأشراف: ۲۷۱۹)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المقدمة ۱۰ (۸۹)، مسند احمد (۳/۳۱۲،۳۸۶) (صحيح)

اخفاء کار د اخفاء (پټ) د کولو باوجود روستو هغه ظاهروی ګویاد اخفاء مصلحت لره ضائع کوی، بیا د اخفاء (پټ کول) ضرورت څه وو، شارحینو لیکلي دی چه دا کراهت هغه وخت دي چه کله دا ذکر تفریحا بغیر د ضرورت او مصلحت نه وی ګیني په وخت د حاجت او مصلحت په ذکر کولو کښې هیڅ باک نشته چه د هغې مثالونه په احادیثو کښې موجود دی.

[۲۱۷۴]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ، حَدَّثَنَا الْجُرَيْرِيُّ. ح وحَدَّثَنَا مُؤَمَّلٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، كُلُّهُمْ عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، حَدَّثَنِي شَيْخٌ مِنْ طُفَاوَةَ، قَالَ: تَثَوَّيْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ بِالْمَدِينَةِ، فَلَمْ أَرَ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدَّ تَشْمِيرًا وَلَا أَقْوَمَ عَلَى ضَيْفٍ مِنْهُ، فَبَيْنَمَا أَنَا عِنْدَهُ يَوْمًا وَهُوَ عَلَى سَرِيرٍ لَهُ وَمَعَهُ كِيسٌ فِيهِ حَصًى أَوْ نَوًى وَأَسْفَلَ مِنْهُ جَارِيَةٌ لَهُ سَوْدَاءُ وَهُوَ يُسَبِّحُ بِهَا حَتَّى إِذَا أَنْفَدَ مَا فِي الْكِيسِ، أَلْقَاهُ إِلَيْهَا فَجَمَعَتْهُ فَأَعَادَتْهُ فِي الْكِيسِ فَدَفَعَتْهُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: أَلَا أُحَدِّثُكَ عَنِّي وَعَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: قُلْتُ: بَلَى، قَالَ: بَيْنَا أَنَا أُوعَكُ فِي الْمَسْجِدِ، إِذْ جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى دَخَلَ الْمَسْجِدَ، فَقَالَ: "مَنْ أَحَسَّ الْفَتَى الدَّوْسِيَّ" ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هُوَ ذَا يُوعَكُ فِي جَانِبِ الْمَسْجِدِ، فَأَقْبَلَ يَمْشِي حَتَّى انْتَهَى إِلَيَّ فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَيَّ، فَقَالَ لِي: "مَعْرُوفًا"، فَنَهَضْتُ فَانْطَلَقَ يَمْشِي حَتَّى أَتَى مَقَامَهُ الَّذِي يُصَلِّي فِيهِ، فَأَقْبَلَ عَلَيْهِمْ وَمَعَهُ صَفَّانِ مِنْ رِجَالٍ وَصَفٌّ مِنْ نِسَاءٍ، أَوْ صَفَّانِ مِنْ نِسَاءٍ وَصَفٌّ مِنْ رِجَالٍ، فَقَالَ: "إِنْ أَنْسَانِي الشَّيْطَانُ شَيْئًا مِنْ صَلَاتِي فَلْيُسَبِّحِ الْقَوْمُ وَلْيُصَفِّقِ النِّسَاءُ"، قَالَ: فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَنْسَ مِنْ صَلَاتِهِ شَيْئًا، فَقَالَ: "مَجَالِسَكُمْ مَجَالِسَكُمْ، زَادَ مُوسَى هَا هُنَا، ثُمَّ حَمِدَ اللَّهَ تَعَالَى وَأَثْنَى عَلَيْهِ"، ثُمَّ قَالَ: "أَمَّا بَعْدُ" ثُمَّ اتَّفَقُوا، ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى الرِّجَالِ، فَقَالَ: "هَلْ مِنْكُمُ الرَّجُلُ إِذَا أَتَى أَهْلَهُ فَأَغْلَقَ عَلَيْهِ بَابَهُ وَأَلْقَى عَلَيْهِ سِتْرَهُ وَاسْتَتَرَ بِسِتْرِ اللَّهِ؟" قَالُوا: نَعَمْ، قَالَ: "ثُمَّ يَجْلِسُ بَعْدَ ذَلِكَ، فَيَقُولُ: فَعَلْتُ كَذَا فَعَلْتُ كَذَا؟" قَالَ: فَسَكَتُوا، قَالَ: فَأَقْبَلَ عَلَى النِّسَاءِ، فَقَالَ: "هَلْ مِنْكُنَّ مَنْ تُحَدِّثُ؟" فَسَكَتْنَ، فَجَثَتْ فَتَاةٌ، قَالَ مُؤَمَّلٌ فِي حَدِيثِهِ: فَتَاةٌ كَعَابٌ عَلَى إِحْدَى رُكْبَتَيْهَا، وَتَطَاوَلَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَرَاهَا وَيَسْمَعَ كَلَامَهَا، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهُمْ لَيَتَحَدَّثُونَ وَإِنَّهُنَّ لَيَتَحَدَّثْنَهُ، فَقَالَ: "هَلْ تَدْرُونَ مَا مَثَلُ ذَلِكَ؟" فَقَالَ: "إِنَّمَا مَثَلُ ذَلِكَ مَثَلُ شَيْطَانَةٍ لَقِيَتْ شَيْطَانًا فِي السِّكَّةِ فَقَضَى مِنْهَا حَاجَتَهُ وَالنَّاسُ يَنْظُرُونَ إِلَيْهِ، أَلَا وَإِنَّ طِيبَ الرِّجَالِ مَا ظَهَرَ رِيحُهُ وَلَمْ يَظْهَرْ لَوْنُهُ، أَلَا إِنَّ طِيبَ النِّسَاءِ مَا ظَهَرَ لَوْنُهُ وَلَمْ يَظْهَرْ رِيحُهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَمِنْ هَا هُنَا حَفِظْتُهُ عَنْ مُؤَمَّلٍ وَمُوسَى، أَلَا لَا يُفْضِيَنَّ رَجُلٌ إِلَى رَجُلٍ وَلَا امْرَأَةٌ إِلَى امْرَأَةٍ إِلَّا إِلَى وَلَدٍ أَوْ وَالِدٍ، وَذَكَرَ ثَالِثَةً فَأُنْسِيتُهَا، وَهُوَ فِي حَدِيثِ مُسَدَّدٍ، وَلَكِنِّي لَمْ أُتْقِنْهُ كَمَا أُحِبُّ، وقَالَ مُوسَى: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنِ الطُّفَاوِيِّ.

**ترجمه**: دابونضره نه روایت دی چه ماته د طفاده قبیلي بوکس وئیلی دی چه زه یوځل په مدینه کښې دابوهریره سره میلمه شوم، ماد نبی علیه السلام په صحابه کرامو کښې ددنه هیڅوک زیات عبادت ګذار او مهمان نواز نه وو لیدلی، څومره چه ابوهریره وو، زه یوه ورځ دهغه سره ناست وم اوهغه په یوتخت باندې ناست وو اویوه ګوتئ ئې په لاس کښې نیولی وه کومه چه دګیټونه ډکه وه اولاندې یوه توررنګی وینځه ناسته وه ابوهریره نه به په دې ګیټو باندې سبحان الله وئیل کله چه به ټولې ګیټئ ختمې شوې نووینځې به دوباره جمع کړې او به دغه ګوتئ کښې به ئې واچولې او ده ته به ئې ور پورته کړې او وربه ئې کړې نوده به

[1]): سنن الترمذي/الأدب ٣٦ (٢٧٨٧)، سنن النسائي/الزينة ٣٢ (٥١٢٠، ٥١٢١)، (تحفة الأشراف: ١٥٤٨٦) ويأتي هذا الحديث في الحمام (٤٠١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٤١/٢) (حسن لغيره)

ورباندې بیاتسبیح وئیلې شروع کړل، ماته ئې اوفرمائیل چه ایه تاته دخپل حالت متعلق دنبي عليه السلام یو واقعه بیان نکړم؟ ما ورته اووئیل ضرور ئې راته بیان کړه هغه اوفرمائیل یو ځل زه په مسجد نبوي کښې تبې نیولې ووم اولړزیدم کتل مې چه په دې وخت کښې نبي عليه السلام جومات ته تشریف راوړو او ویې فرمائیل په تاسو کښې چا ددوس قبیلې نوجوان رابوهریرة رضي الله عنه لیدلې، دې دا جمله ئې درې ځله اوفرمائیل په دې وخت کښې یو کس عرض اوکړو اې دالله رسوله هغه دلته په مسجد کښې دې اودتبې نه لړزیږي ددې په اوریدوسره نبي عليه السلام زما خواته راغې اوخپل لاس مبارك ئې په ما باندې راښکلو اوشفقت خبرې ئې راسره اوکړلې نوزه پاڅیدم اونبي عليه السلام روان شو تردې چه هغه ځائې ته ورسیدو چرته چه به هغه مونځ کولو اوخلقوته ئې خپل مخ ورستون کړو اودهغه سره دنارینوو دوه صفونو وو اویو صف دزنانوو وو اوکه دزنانوو دوه صفونه وو اودنارینو یو صف وو او وئې فرمائیل که چرې زه په مونځ کښې سهوه کیږم نونارینه به راته سبحان الله اواز راکوي اوزنانه به صرف لاس پړقوي، راوي وائي چه بیانبي عليه السلام مونځ اوکړو اوکوم ځائې ترې هیرنشو ددې نه پس ئې اوفرمائیل تاسو پخپل خپل ځائې باندې ناست وسئ اوهغه دالله تعالی حمد او ثنا بیان کړه اوبیائې وفرمائیل پس دحمد اوصلاة نه تاسوته معلومه ده اودنارینوو طرف ته متوجه شو او ویې وئیل ایاپه تاسو کښې څوك داسې شته چه خپلې بي بي ته ورغلې وي او دروازه ئې بنده کړې وي او پرده ئې اچولې وي او د الله تعالی په پرده کښې پټ شوی وي؟ خلقو عرض اوکړو، هو، نبي عليه السلام اوفرمائیل اوبیاددغه کس خلقوته وائي چه ما دخپلې ښځې سره داسې اوداسې اوکړل خلقو چه دا واوریدل نوخاموش شول، ددې نه پس بیا نبي عليه السلام زنانوته متوجه شو او اوئې فرمائیل آیا په تاسو کښې څوك داسې زنانه شته چه نورو ښځوته دخپل خاوندداسې داسې خبرې کوي (یعنې دخاوند دجماع کیفیت ورته بیانوي) زنانوچه دا واوریدل نوخاموشه شوې نو په دې وخت کښې یوې زنانه خپل زنګنونه په زمکه ولګول اوځان ئې پورته کړو ددې دپاره چه نبي عليه السلام ئې ووینې اوددې خبرې واوري، عرض ئې اوکړو چه اې دالله رسوله نارینه هم ددې خبرې خلقوته تذکره کوي او زنانه هم نبي عليه السلام اورفرمائیل آیا تاسوته معلومه ده چه ددې کس مثال څه شې دی، بیائې اوفرمائیل ددې مثال دادې چه یو شیطان دشیطان سرې سره په لاره کښې ملاوشي اوهغه خپل نفساني خواهش پوره کړي اوخلق ئې وینې خبردار دنارینودپاره خوشبوهغه ده چه بوئې خوریږي اورنګ ئې نه ښکاري اودزنانوو دپاره هغه خوشبوحلاله ده چه رنګ ئې ښکاري اوبوئې نه لري امام أبوداود وائي چه دا مؤمل أوموسی دروایت الفاظ دي چه خبردار یونارینه دې دبل نارینه سره همبستري نه کوي اونه دې یوه ښځه دبلې ښځې سره بستره کښې نه څملې داسې کوي مګرچه خپل پلار سملاستې شي راوي وائي چې د څوئې او پلار نه علاوه دوئم کس تذکره نبي صلى الله عليه وسلم کړې ده او هغه ما هیره کړې ده اوددریم ذکر رانه هیر شوی دې دمسدد په روایت کښې دی لیکن زما په نزد باندې یقیني نه دی چه موسی وئیلې دی داروایت حماد الحریري دابونضره طفاوي نه نقل کړی دې

## شرح الحدیث:

مصنف په دې باب کښې صرف یو حدیث ذکر کړې دې کوم چه لږ شان اوږد دې، چه د هغې مضمون دا دې، ابو نضره د یو شیخ طفاوی نه د هغه واقعه ذکر کوی (چه د هغه په باره کښې تحقیق اونشو چه څوک دې هغه وائی چه د یو ځل قصه ده چه زه په مدینه منوره کښې د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه میلمه جوړ شوم د هغوی خواته زما قیام وو، ما د ابوهریره رضی الله عنه نه زیات په عبادت کښې کوشش کولو والا نه دې لیدلې او نه مې د هغه نه زیات د میلمه خدمت کولو والا لیدلې دې. یوه ورځ زه د هغه سره ناست اوم او هغه په خپل تخت باندې ناست وو هغه سره یوه تهیلۍ وه چه په هغې کښې کانړی یا د کهجورو هډوکی پراته وو چه په هغې باندې هغه تسبیح (ذکر) شمار کولو سره لوستلو، د تخت د لاندې یوه وینزه د تور رنګ والا ناسته وه، چه کله به د تهیلۍ هغه ټول هډوکی ختم شو نو هغه به هغه تهیلۍ هغه وینزې ته ورکړه هغې به دا هډوکی بیا په هغه تهیلۍ کښې واچول او هغه ته به ئې واپس کړل (هغه به پرې بیا تسبیح شروع کړې) فقال الا احدثک عنی وعن رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم په دې دوران کښې د تسبیح لوستلو دوران هغه اوفرمائیل چه ایا زه تاته خپله او د رسول الله ﷺ قصه اونکړم؟ ما اووې ضرور راته واوروئ. وې فرمائیل چه یوه ورځ زه د تبې د شدت په وجه باندې د مسجد په یو ګټ کښې پروت اوم، رسول الله ﷺ مسجد ته تشریف راوړلو او زه ئې په مسجد کښې په خپل ځائې کښې نه موندلو سره اوفرمائیل چه چا زمونږ دوسی ځوان لیدلې دې؟ (ابوهریره رضی الله عنه د دوس قبیلې وو) درې کرته رسول الله ﷺ داسې تپوس اوکړو، یو سړی ورته اووې او جی یا رسول الله ﷺ هغه دا دې د مسجد په ګټ کښې په سخته تبه کښې پروت دې، رسول الله ﷺ په دې اوریدلو سره زما خواته راغلو، او خپل لاس مبارک ئې زما په بدن باندې لاس کیخودلو او زما په حق کښې ئې یوه ښه خبره اوفرمائیله (دعا والا جمله) زه فورا پاسیدم اودریدم (د رسول الله ﷺ په لاس مبارک کیخودلو سره په ما کښې طاقت پیدا شو) او د رسول الله ﷺ سره روان شوم، رسول الله ﷺ د خپل مونځ کولو ځائې ته راغلو، دې وخت کښې په مسجد کښې دوه صفونه د سړو او یو صف د زنانو وو یا د دې عکس (دوه صفونه د زنانو او یو صف د سړو) رسول الله ﷺ د مونځ شروع کولو نه مخکښې اوفرمائیل که (بالفرض) زما نه په مونځ کښې څه هیره شوې وی نو که سړی راته لقمه راکړی نو د تسبیح په ذریعه دې راکوی او که زنانه لقمه ورکونکې وی نو هغه دې تصفیق کوی (لکه چه د لقمه ورکولو طریقه ده) وړاندې راوی فرمائی چه رسول الله ﷺ مونځ ورکړو خو څه سهو پکښې پیښه نه شوه، بهرحال مونځ نه فراغ باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیلو ﴿مجالسکم، مجالسکم﴾ (ټول په خپلو خپلو ځایونو کښې ناست وی) او د حمد او ثناء نه پس رسول الله ﷺ اولا د سړو طرف ته متوجه کیدو سره اوفرمائیل چه ایا په تاسو کښې څوک د خپلې زوجې سره صحبت کول غواړی نو هغه وخت دروازه بندولو سره د پردې انتظام نه کوی؟ حاضرینو عرض اوکړو او جی! پرده وغیره کوی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل او بیا روستو څه کوی په دوستانو کښې کیناستلو سره دا

پټ فعل خورول کوی چه ما د شپې د خپلې زوجې سره داسې اوکړل او داسې مې اوکړل، په دې باندې ټول خاموشه پاتې شو، د دې نه پس رسول الله ﷺ د زنانوته طرف ته متوجه شو او د هغوی نه ئې هم د ناراضتیا په انداز کښې سوال اوفرمائیلو، هغوی هم ټول خاموش پاتې شوې ﴿ فجثت فتاة على احدى ركبتيها ﴾(خو یوې زنانه ورته د جواب اراده اوکړه) او هغه په زنګونانو باندې کیناستلو سره او لږ شان سټ راوړېدلو سره رالوړه شوه چه رسول الله ﷺ ئې ویني او د هغه خبره په آسانۍ سره واوریدلې شي هغې عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ! انهم ليتحدثون وانهن ليتحدثنه... بیشکه داسې ده کوم چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا سړي هم داسې تذکره کوی او زنانه هم داسې کوی، په دې اوریدلو سره رسول الله ﷺ د دې فعل قباحت په مثال سره بیان کړو چه دا خو داسې ده لکه چه د ټولو خلقو په وړاندې په کوڅه کښې جماع اوکړي.

جزى الله سيدنا ومولانا محمدا عنا ما هو اهله، صلوات الله وسلامه عليه وعلى اله... رسول الله ﷺ واقعي د رسالت حق پوره پوره ادا اوفرمائیلو د کامل نګرانۍ سره هره وړه خبره په ښه طریقې سره پوهه کړې ده، ماته معلومه شوه چه په دې زمانه کښې دا مرض عام طور موندلې شي د ځوانانو په دې کښې عام امتحان دې خصوصا د چا چه نوې واده کیږي که هغه ئې خپله ذکر نه کړي نو د هغه ملګري په اصرار د هغه نه تپوس کوي. فانا لله وانا اليه راجعون والى الله المشتكى. قال المنذرى اخرجه الترمذى والنسائى مختصرا لفقهة الطيب اه وزاد فى تكملة المنهل احمد والبيهقى.

وهذا اخر كتاب النكاح والحمد لله اولا واخرا.

...............................

# كتاب تفريع أبواب الطلاق

## د طلاق فروعي احکام او مسائل

## د مشروعیت طلاق حکمت

څنګه چه الله پاک نکاح مشروع کړې ده، د مصلحت بندیانو د پاره څکه چه د نکاح په ذریعه د بندګانو دیني او دنیوی مصلحتونه پوره کیږي (كما تقدم فى مبدا كتاب النكاح) هم دغه شان الله پاک طلاق هم مشروع کړې دې هم د دې مصالح د تکمله په طور څکه چه بعض وخت انسان لره چه کومه نکاح هغه کړې ده هغه موافق نه راځي نو هغه د دې نه خلاصي غواړي، پس الله پاک د هغې حل طلاق بیان کړو هم دغه شان الله پاک د طلاق هم درجات کیخودلې دی او د هغې ئې څو عدد مقرر کړې دی د دې دپاره چه نکاح ئې فورا ختم نه شي او طلاق ورکونکې خپل نفس باندې ازمیښت اوکړی چه د ښځې نه به ئې جدائي غوره وي یا نه بلکه د دې کیدل غوره دی د نه کیدلو نه، خو د طلاق د عدد پوره کیدلو نه پس که هغه دوباره په نکاح کښې ساتل غواړي نو د خاوند د اصلاح دپاره دا ناښوښه شرط مقرر شوې دې چې اوس ترڅو پورې دا ښځه دبل چا په نکاح کښې راغلې نه وي او د هغه د خوانه را نه شي تر

هغه وخته پورې هغه د هغې سره نکاح نه شي کولې (زيلعي على الكنز)ګويا د حلاله قيد تنبيها او سزا لګولې شوې دې. سبحان الله! په احکام الهيه کښې کوم کوم حکم او مصالح دی.

د دې نه پس اوس مونږ دلته د اختصار په طور صرف دوه خبرې نورې بيانوو. ۱: د طلاق لغوی او شرعی معنی، ۲: د طلاق قسمونه سره د اختلاف ائمه، د شرح حديث دپاره د هغوی د بيان احتياج زيات دې.

## بحث اول: (طلاق لغوی او اصطلاحی معنی)

طلاق اسم مصدر دې او مصدر تطليق دې لکه سلام او تسليم، د طلاق لغوی معنی حل الوثاق (غوټه پرانستل) مشتق دی د اطلاق نه په معنی د ارسال او ترک، وئيلې شی ﴿اطلق الاسير﴾ قيدی ئې پريخودلو، اطلق الناقة د اوښې رسئ ئې پرانستله، په نکاح کښې د دې استعمال د باب تفعيل نه کيږی يعنی تطليق او غير نکاح کښې د باب افعال نه.[1]

او اصطلاحی معنی ئې ده ﴿رفع الصيد الثابت شرعا بالنكاح﴾هغه تعلق او تړون ختمول[2] د کوم ثبوت چه شرعا د نکاح په ذريعه وی، د شرعا په قيد سره قيد حسی خارج شو يعنی حل الوثاق (غوټه پرانستل) او د بالنكاح په قيد سره احتراز اوشو د عتق نه ځکه چه اګر چه په عتق کښې هم د دې قيد رفع کيږی کوم چه شرعا ثابت دې خو د دې ثبوت په نکاح سره نه دې (بلکه شراء وغيره سره وی) (زيلعی)

## دويم بحث: (د طلاق اقسام)

د طلاق اول دوه قسمونه دی، سنت طلاق[3] او طلاق بدعت. بيا د اولنی دوه قسمونه دی طلاق حسن او طلاق احسن

### ۱: طلاق احسن:

دا دې چه خاوند مدخول بها ته يو طلاق ورکړی په داسې طهر کښې چه په هغې کښې د هغې سره وطی نه وی کړې تردې چه د هغې عدت پوره شی، او بس! يعنی د هغې نه روستو دويم او دريم طلاق ورنکړی.

---

[1] هم په دې وجه باندې په ﴿انت مطلقة﴾ بتشديد اللام کښې د نيت حاجت نه وی په خلاف د انت مطلقة بسکون اللام. او په دې کښې د نيت حاجت شته) ۱۲

[2] برابره خبره ده که هغه رفع فی الحال وی كما في الطلاق البائن او يا فی المال وی كما في الطلاق الرجعي بعد انقضاء العدة)

[3] دلته دا سوال مشهور دې چه طلاق خو د الله پاک په نزد مبغوض دې كما في الحديث، بيا د طلاق د سنت کيدو څه معنی ده؟ جواب دا دې چه ګويا طلاق فی حد ذاته مبغوض څيز دې خو بهرحال د ضرورت په وخت شريعت د دې اجازت ورکړې دې، بيا د واقع کيدلو دطلاق بعض طريقې خو صحيح دی او بعض غلط، پس د طلاق واقع کولو چه کومه طريقه د حديث نه ثابت ده هم هغې ته طلاق سنت وئيلې شی، يعنی د طلاق مشروع طريقه پس مسنون په معنی د مشروع (د قاعده شرعيه موافق) والله اعلم)

**۲: طلاق حسن: (۱)**

دا دې چه خاوند مدخول بها ته د طهر په زمانه کښې په داسې طهر کښې چه وطی ئې نه وی کړې يو طلاق ورکړی، بیا ورته هم دغه شان په دويم طهر کښې دويم او په دريم طهر کښې دريم طلاق ورکړی تردې چه عدت پوره شی.

د پورته ذکر شوې تعريف نه معلومه شوه چه د سنية طلاق دارومدار په دوه څيزونو باندې دې په عدد او وقت يعنی په طهر واحد کښې د يو طلاق نه دې زيات ورنکړې شی دويم دا چه د طهر په زمانه کښې دې ورکړې شی، پس که د يو نه زيات ئې ورکړل يا ئې د حيض په حالت کښې ورکړل نو هغه به طلاق بدعی وی ځکه چه د يو نه زيات، زائد از حاجت دې، حاجت په يو طلاق سره هم پوره کيږی او د طهر قيد په دې وجه دې چه د حيض په طلاق کښې احتمال دې د دې خبرې چه د ضرورت او مصلحت د وجې نه به نه وی بلکه د نفرت د وجې نه وی ځکه چه د حيض حالت د ګندګئ حالت دې او بله خرابی په هغې کښې دا ده چه د حيض په حالت کښې ورکولو سره اوږدوالي عدت لازميږی ځکه چه په کوم حيض کښې طلاق ورکولې شی هغه حيض خو په عدت کښې نه شمارلې کيږی د هغې نه علاوه به درې حيضونه عدت وی.

او دا چه کوم د عدم وطی قيد دې د دې وجه دا ده چه د وطی په صورت کښې به دا احتمال راشی د علوق (حمل) چه هغې سره به مسئله د عدت مشتبه شی، ځکه چه د حامل په دعدت کښې وضع حمل دې او د غير حامل حيض، نو اوس دا زنانه به د ظهور حمل نه وړاندې متردد وی په دې کښې چه زما عدت څه دې؟ بله دا چه د وطی نه روستو چونکه رغبة (مينه) ښځې ته فی الحال باقی نه وی په دې وجه هغه وخت طلاق ورکولو کښې احتمال دې د دې خبرې چه دا طلاق د ضرورت د وجې نه نه وی بلکه د عدم رغبت د وجې نه وی، حال دا چه طلاق سنی هغه دې کوم چه د ضرورت او مصلحت په بنياد وی.

د دې نه پس ته په دې باندې ځان پوهه کړه چه د طلاق سنی په تعريف کښې چه دا کوم د عدد قيد دې چه د يو نه زياتی نه وی دا قيد خو عام دې د مدخول بها او غير مدخول بها دواړو په حق کښې دې، خو دا دويم قيد کوم چه د وخت په لحاظ سره دې چه د طهر په زمانه کښې وی په حيض کښې نه وی دا قيد صرف د مدخول بها په حق کښې دې. که يوه زنانه غير مدخول بها وی نو بيا د طهر قيد نشته. د غير مدخول بها د حالت حيض طلاق هم طلاق سنی دې، چه د هغې عقلی دليل دا دې چه چونکه سړې د هغه زنانه نه اوسه پورې شهوت نه شی پوره کولې په دې وجه به د هغه طرف ته رغبت په هر حال کښې وی هلته د نفرت احتمال نشته، لهذا چه کله سړې سره د رغبت نه طلاق ورکوی نو دا علامت دې د

(۱) طلاق حسن ته طلاق سنت هم وئيلې شی، دلته دا سوال واردیږی چه طلاق احسن خو د طلاق سنة فرد دې نو بيا د طلاق حسن نوم ولې طلاق سنت کيخودلې شوې دې؟ جواب دا دې چه په دې کښې تعريض دې د امام مالک په مسلک باندې چه هغه درې طلاقونو ته چه په داسې طريقه ورکړې شی سنت نه منی بلکه هغه ورته بدعت وائی، طلاق سنی د هغه په نزد منحصر دې په طلاق واحد کښې، د يو نه زيات طلاق ورکول د هغه په نزد مطلقا خلاف سنت دې. ۱۲)

ضرورت او مصلحت وعليها مدار السنية.

هم دغه شان دې دا هم واضحه وی (۱) چه پورته ذکر شوې تعريف د طلاق سنی د هغه زنانو په لحاظ سره دې کوم چه ذوات الحيض وی او کومې زنانه چه خاونده دمياشتو دی (چه په چا باندې حيض نه راځی لکه صغيره، کبيره، ناامیده او حامله) د هغوی طلاق سنی دا دې چه په هره مياشت کښې يو طلاق ورکړې شی، درې طلاقه په درې مياشتو کښې ورکړې شی هم دغه شان د صحبت نه کول قيد هم نه دې، ذوات الحيض کښې عدم الوطی قيد په دې وجه وو چه د وطی په صورت کښې هلته د حمل لرېدل دې چه هغې سره د عدت مسئله مشتبه کيږی او ذوات الاشهر کښې دا احتمال نشته، په صغيره او ناامیده کښې خو ظاهر دې او د حامله نه مراد ظاهر الحمل دې، چه کله ئې حمل ظاهر شو نو بيا اشتباه چرته باقی پاتې شوه. والله تعالی اعلم. بحمد الله د طلاق سنی تعريف مع فوائد قيود پوره شو وهذا کله ماخوذ من الزيلعی... شرح الکنز ۲: د طلاق قسم ثانی يعنی طلاق بدعی تعريف د طلاق سنی تعريف کښې غور کولو سره فهم کښې راتلې شی، ابن الهمام فرمائی (کما فی هامش شرح الوقاية) طلاق بدعی هغه دې چه کوم طلاق د سنت دواړو قسمونو خلاف وی په داسې طريقه چه د يو نه زائد دوه يا درې طلاقونه ورکړې شی بکلمة واحدة يا متفرقا فی طهر واحد، يا يو طلاق چه ورکړې شی د حيض په حالت کښ، يا هغه طلاق چه ورکړې شی په داسې طهر کښې چه په هغې کښې وطی وی. اهـ

**طلاق فی الحيض نه د رجوع امر:**

د دې نه پس په دې ځان پوهه کول پکار دی چه طلاق په حيض کښې ورکړې شی د هغه ځائې نه د هغه د کمې زياتې پوره کول دپاره رجوع کولو حکم دې قيل علی الوجوب وهو الاصح وقيل علی الاستحباب... بيا د هغې نه پس که غواړی نو په طهر کښې ئې طلاق ورکړو که نه غواړی نو په نکاح کښې دې باقی اوساتی، اوس دا چه که طلاق ورکړی نو په کوم طهر کښ! د حيض نه پس متصلا راتلونکې طهر کښې يا په طهر ثانی کښې په دې کښې دحديث روايات هم مختلف دی او په روايات فقهيه کښې هم په بعض روايات ابن عمر کښې طهر اول مذکور دې او په بعض کښې دا دی چه د طهر اول د راتلو نه پس په دويم کښې طهر ورکړې شی، د صاحبين رائې د طهر ثانی ده او په ظاهر الرواية کښې هم دا ده او د امام صاحب په نزد په طهر اول کښې هم ورکولې شی، کما قال الطحاوی وقيل الاظهر ان الامام مع الصاحبين، دا اوسه پورې د طلاق په سلسله کښې چه څه ليکلې شوې دی د مذهب حنفی په رڼا کښې او د هغې مطابق ليکلې شوې دی.

**د طلاق په قسمونو کښې د ائمه ثلاثه مسلکونه:**

اوس د باقی ائمه کرامو مسلکونه واورئ.

---

(۱) ففی الکنز وفرق علی الاشهر فيمن لا تحيض وصح طلاقهن بعد الوطی اهـ)

(عند الشوافع)

د امام شافعي رحمه الله په نزد سنية طلاق مدار عدد باندې نه دې صرف په زمانه باندې ده، طلاق سنت د هغوی په نزد دا دې چه طلاق ورکړې شی د طهر په زمانه کښې داسې طهر چه په هغې کښې زوج وطی نه وی کړې، برابره خبره ده که طلاق یو وی یا درې وی په یو وخت! ففی متن ابی شجاع فالسنة ان یوقع الطلاق فی طهر غیر مجامع فیه، والبدعة ان یوقع الطلاق فی الحیض او فی طهر جامعها فیه. اهـ او دا چه د هغه زنانو په باره کښې چه کومې ذوات الحیض وی او کومې چه ذوات الاشهر دی د هغوی په باره کښې د هغوی په کتابونو کښې دا لیکلې دی چه د هغه زنانو په طلاق کښې سنت او بدعت هیڅ تقسیم نشته چه څنګه هم طلاق ورکړې شی هغه به مباح وی.

(عند الموالک)

او د مالکیانو په نزد طلاق سنت دا دې چه انسان یو طلاق ورکړی په طهر کښې داسې طهر چه په هغې کښې هغه وطی نه وی کړې تردې چه انقضاء عدت اوشی یعنی دویم او دریم طلاق ته خبره اونرسیږی، دغه شان د هغوی په مسلک کښې دا قید هم دې چه دا طهر داسې وی چه د هغې نه مخکښې والا حیض کښې طلاق ورکولو سره ئې رجعت نه وی کړې (یعنی که چا د حیض په حالت کښې طلاق ورکولو سره رجعت اوکړو بیا ئې د هغې نه پس راتلونکې طهر کښې متصلا طلاق ورکړو نو دا طلاق به طلاق سنت نه وی لهذا په حیض کښې طلاق ورکونکی ته پکار دی چه هغې ته رجعت کولو سره دوباره که طلاق ورکړی نو په طهر اول کښې دې نه ورکوی بلکه په طهر ثانی کښې دې ورکړی لکه چه د حدیث ابن عمر په بعض طرق کښې دی، الحاصل عند المالکیة طلاق سنت هغه دې کوم ته چه مونږ طلاق احسن وایو او کوم ته چه مونږ طلاق حسن وایو (چه درې طلاقه په درې طهرونو کښې ورکړې شی) دا طلاق د هغوی په نزد طلاق بدعت دې ګویا درې طلاقونه اګر چه په طهر واحد کښې ورکړې شی یا په متعدد طهرونو کښې دواړه برابر دی په بدعت کیدو کښې (په خلاف د شوافع چه د هغوی په نزد درې طلاقه طهر واحد کښې هم بدعی نه دې کما تقدم) دغه شان لکه چه د شوافعو په مسلک کښې تیر شو چه سنت او بدعت فرق په هغه زنانو کښې دې کوم چه ذوات الحیض وی په ذوات الاشهر کښې نه دی هم دغه شان مالکیان او حنابله په کتب کښې هم موجود دی.

(عند الحنابلة)

پاتې شو د حنابله مسلک پس د هغوی په اکثر کتب لکه الروض المربع، نیل المآرب، زاد المستنقع، جمع الثلاث ته طلاق بدعت او حرام لیکلې دی اګر چه متعدد اطهار کښې وی. او ابن قدامه په مغنی کښې د امام احمد په جمع الثلاث کښې دوه روایتونه نقل کړې دی اول دا چه هغه هم طلاق سنت دې (اګر چه خلاف اولی او خلاف مختار وی) وقال اختار هذه الروایة الخرقی. او دویم روایت دا دې چه جمع الثلاث حرام او بدعت دې، د ابن قدامه د کلام نه معلومیږی چه د هغه په نزد ترجیح حرمت ته حاصله ده هم

دا هغوی روایة او درایة ثابت منلې ده او جمع کول ددو اګر چې په ي، طهر کښې وی ولو فی طهر واحد لره په کتب حنابله کښې طلاق سنت منلې دې خو مکروه غیر حرام.

**د جمع الثلاث د حلت او حرمت دلائل:**

حنفیه ومالکیه واحمد فی روایةد جمع الثلاث حرمت باندې د دې احادیثو نه استدلال کړې دې چه په هغې کښې په دې باندې وعیدونه راغلې دی، کوم چه په شروح حدیث وکتب فقه کښې مذکور دی، هم دغه شان په شریعت کښې چه د کومو مصالحو په بنیاد په طلاق کښې څو عدد کیخودلې دی. (کما تقدمت الاشارة الیها فی مبدا کتاب الطلاق) یو ځل درې طلاقه ورکولو کښې دې مصالحو لره یکسر ضائع کول دی کوم چه انتهائی ناپوهه او ناشکری کیدو په بناء حرام او معصیت دې. او حضرت امام شافعی واحمد فی روایة کوم چه جمع الثلاث جائز کوی هغه په استدلال کښې عویمر عجلانی قصه لعان لره پیش کوی چه هغه د لعان نه روستو د رسول الله ﷺ په مجلس کښې خپلې بی بی ته درې طلاقه ورکړې وو په یو ځل کما فی روایة الصحیحین. او د دې باوجود رسول الله ﷺ په هغوی باندې هیڅ قسم یعننی انکار نه دې فرمائیلې، هم دغه شان د ﴿امراءة رفاعة﴾ په حدیث کښې چا چه د رسول الله ﷺ په وړاندې حاضریدو سره دا اعتراف اوکړو چه رفاعه ماته طلاق البته راکړو هم دغه شان د فاطمه بنت قیس رضی الله عنها هم د طلاق ثلاث قصه ده، په فریق اول کښې لعان والا حدیث دا جواب ورکړې دې چه لعان خو بذات خود موجب فرقت دې د هغې نه پس طلاق ورکول غیر مؤثر دی، د دې نه علاوه چه د طلاق ثلاثه نورې قصې دی هغه ټول دنبی ﷺ په وړاندې کله پیښې شوې دی یا ورکونکی د رسول الله ﷺ په وړاندې راتلو سره د دې خبرې اقرار کړې دی چه ما هغه ته درې طلاقونه ورکړې وی او بیا د رسول الله ﷺ په ترک نکیر باندې د دې په جواز باندې استدلال کړې شوې دې، هم دغه شان د څه مصلحت نه تاخیر نکیر هم احتمال دې چه د نکیر په وخت ئې فرمائیلې نه وو روستو ئې څه وخت نکیر کړې وی. والله سبحانه وتعالی اعلم بالصواب.

الحمد الله د طلاق ابتدائی بحثونه پوره شو، البته دلته یو اهم اختلافی بحث بل باقی دې او هغه دا چه جمع الثلاث اګر چه ناجائز او طلاق بدعت دې خو درې واړه واقع کیږی هم یا نه؟ دا بحث وړاندې څو بابونه پس راروان دې.

## بَابٌ فِيمَنْ خَبَّبَ امْرَأَةً عَلَى زَوْجِهَا

**بابد ښځه د خاوند په خلاف را پاره کولو اود نفرت پیدا کونکی حکم**

[٢١٧٥] (١) عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عِيسَى، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ مِنَّا مَنْ خَبَّبَ امْرَأَةً عَلَى زَوْجِهَا أَوْ عَبْدًا عَلَى سَيِّدِهِ".

**ترجمه:** دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی څوک چه

(١): ● تخريج: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٤٨١٧)، وقد أخرجه: سنن النسائي الكبري/ عشرة النساء (٩٢١٤)، ويأتي هذا الحديث في الأدب (٥١٧٠)، مسند احمد (٢/٣٩٧) (صحيح)

دچا ښځه ولمسوي يعنې دهغې په زړه کښې دهغې دخاوند بدوالي واچوي يا غلام دخپل مالك په خلاف ولمسوي نو دغه کس زمونږ د امت نه نه دې

**تشريح:** دا ترجمه بلفظ الحديث ده، د حديث مطلب دا دې چه کوم سړې د يو سړي ښځې لره د هغه د خاوند خلاف تيار کړي، (که تيارونکې سړې وي يا زنانه) هغه زمونږ نه نه دې، په تيارولو او خرابولو کښې دوه صورتونه دي يو دا چه د يوې زنانه په وړاندې د هغه خاوند بدئ بيان کړې شي د هغه عيوب اوشمارلې شي او دا چه هغه په تا باندې ډير ظلم کړې دې وغيره. دويم صورت دا دې چه د يو پردي سړي تعريفونه د هغې په وړاندې اوکړې د دې دپاره چه هغه د خپل خاوند په ځائې د هغه سړي طرف ته راغبه شي په بعض خلقو کښې دا مرض وي، په زنانو کښې زيات وي. والحديث اخرجه ايضا النسائى والحاكم وصححه اهـ تکملة المنهل.

## بَاب فِي الْمَرْأَةِ تَسْأَلُ زَوْجَهَا طَلَاقَ امْرَأَةٍ لَهُ

### باب: ښځه په د خپل (کېدونکې ) خاوند نه دا مطالبه کوي چه هغه خپلې ړومبنې ښځې ته طلاق ورکړي( نو دهغې حکم )

[۲۱۷۶]([1])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَسْأَلِ الْمَرْأَةُ طَلَاقَ أُخْتِهَا لِتَسْتَفْرِغَ صَحْفَتَهَا وَلِتَنْكِحَ، فَإِنَّمَا لَهَا مَا قُدِّرَ لَهَا".

**ترجمه:** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي کريم ﷺ فرمائيلي دي هيڅ يوې ښځې لره پکار نه دي چه هغه دخپلې خور (بن) دپاره طلاق اوغواړي ددې دپاره چه دهغې حصه هم واخلي اونکاح هم اوکړي او څه چه دهغې په قسمت کښې دي هغه دې ته ملاو شي

### د حديث الباب مکمل شرح

د حديث الباب مطلب دا دې چه يو سړې چه د هغه په نکاح کښې يوه زنانه ده هغه دويم واده کول غواړي نو د کومې زنانه سره چه ئې کول غواړي (هغه مخطوبه) د هغه سړي نه مطالبه کوي چه اول ته خپلې ړومبئ ښځې ته طلاق ورکړه هله به زه تا سره نکاح کوم، نو رسول الله ﷺ نه د دې مطالبې مذمت داسې ظاهر شوې دې ﴿لتستفرغ صحفتها ﴾([2]) چه د دې ړومبئ ښځې پليټ لره د خپل ځان دپاره فارغ کړي. يعنې کوم څيزونه د هغې په حصه کښې راځي د خوراك او څکاك او نور څيزونه هغه ټول د دې مخطوبه په حصه کښې راشي. وړاندې رسول الله ﷺ فرمائي ﴿ولتنکح فانما لها ما قدر لها ﴾بلکه هغه له پکار دي چه بغير د هغې د مطالبې نه نکاح اوکړي څومره چه د چا په مقدر کښې وي هغه ته به ملاويږي.

د دې حديث مزيد تشريح دا ده چه په دې کښې د ﴿امراءة ﴾نه څه مراد دې په دې

---

[1]): صحيح البخاري/البيوع ٥٨ (٢١٠٤)، والشروط ٨ (٢٧٢٣)، والنكاح ٤٥ (٥١٤٤)، سنن النسائي/النكاح ٢٠ (٣٢٤٢)، (تحفة الأشراف:١٣٨١٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/النكاح ٤ (١٤٠٨)، سنن الترمذي/الطلاق ١٤ (١١٩٠)، سنن ابن ماجه/النكاح ١٠ (١٨٦٧)، موطا امام مالك/النكاح ١(١)، مسند احمد (٢/٢٣٨، ٢٧٤، ٣١١، ٣١٨، ٣٩٤) (صحيح)

[2]) د استفراغ معنى يو څيز لره فارغ يعنې خالي کول او دلته مراد دا دي چه کوم څيزونه او نعمتونه د نورو خلقو په پليټ کښې دي يعنې د هغه په حصه کښې دي هغه ټول دا مخطوبه په خپله قبضه کښې واخلي.

کښې دوه احتمالات دی هم دغه شان په ﴿ولتنکح ﴾ کښې هم دوه احتمالات دادی، د ﴿امراءة﴾ دوه احتمالات دی. ۱: د دې نه مراد مخطوبه ده یعنی هغه دویمه زنانه د چا سره چه دا زنانه واده کول غواړی. ۲: د دې نه مراد ضره ده یعنی د شخص مذکور دوه ښځو کښې یوه ښځه، ولتنکح کښې یو احتمال دې چه هغه لره منصوب اولوستلې شی ﴿لتستفرغ﴾ باندې عطف منلو سره. دویم احتمال دا دې چه دا په صیغه امر مجزوم اولوستلې شی او د دې عطف په ﴿لا تسئل ﴾باندې اومنلې شی. اوس دا ټول څلورو صورتونهشو.

۱: لتنکح لره منصوب اولوستلې شی او د مراءة نه مخطوبه اومنلې شی.

۲: لتنکح لره منصوب اولوستلې شی او د مراءة نه ضرة مراد واخستلې شی.

۳: لتنکح لره مجزوم اولوستلې شی او د مراءة نه مخطوبه مراد واخستلې شی.

۴: لتنکح مجزوم اولوستلې شی او د مراءة نه مرد ضره مراد واخستلې شی.

اوس په دې کښې د هر صورت په مطلب باندې ځان پوهه کړئ، بالکل په شروع کښې چه کوم مطلب لیکلې شوې دې هغه په دې صورتونو کښې د دریم صورت مطلب دې، د څلورم صورت مطلب به دا وی. یو بنه که د بلې بنه په باره کښې د خپل خاوند نه د طلاق مطالبه اونکړی، د هغې د حصې د څیزونو اخستلو دپاره بلکه هغې لره پکار دی چه په موجوده حالت کښې دې د هغې په نکاح کښې قائم پاتې شی د چا په تقدیر کښې چه څه وی هغه به ورته ملاویږی. په دې صورت کښې به د نکاح نه مراد تثبت فی النکاح وی یعنی په نکاح کښې باقی پاتې کیدل. او د ټولو نه په اول صورت کښې به ئې مطلب دا وی، چه مخطوبه سوال اونکړی د اولې ښځې د طلاق د دې دپاره چه د هغې د حصې څیزونه خپله واخلی او د دې دپاره چه هغه خپله نکاح د هغه سړی سره اوکړی، او په دویم صورت کښې به ئې مطلب دا وی، چه یوه بنه د بلې بنې د طلاق سوال اونکړی د هغه په حصه کښې راغلی څیزونو لره د اخستلو دپاره او د دې دپاره چه هغه بنه خپله نکاح په بل ځائې کښې اوکړی، الله پاک دې شارحین حدیث ته بهترین جزاء خیر ورکړی چه دا حضرات د حدیث د شرح حق ادا کړی، او هم دا حال د فقهاء کرام دې چه هغوی د مسائلو په استنباط کښې هیڅ کمې نه پریږدی، فجزاهم الله تعالى عنا ما هو اهله وحشرنا يوم القيامة معهم. وحديث الباب اخرجه ايضا البخارى والنسائى واخرجه مسلم من حديث محمد بن سيرين عن ابى هريرة اهـ عون ومنهل.

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الطَّلَاقِ

### باب د طلاق مکروه کیدو بیان

[۲۱۷۷](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا مُعَرِّفٌ، عَنْ مُحَارِبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أَحَلَّ اللَّهُ شَيْئًا أَبْغَضَ إِلَيْهِ مِنَ الطَّلَاقِ".

**ترجمه:** دحضرت محارب رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی دالله تعالی په نزد باندې په ټولو جائزو څیزونو کښې دټولونه زیات بد څیز طلاق دې ددې نه

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۷۷، ۱۹۲۸۱) (ضعیف)

ورته زيات مبغوض څيز بل نشته.

**تشریح:** ﴿ما احل الله شيئا ابغض اليه من الطلاق ﴾دا حديث مصنف په دوه طرق سره ذكر كړې دې اول د هغې نه مرسل دې او دويم مسند. قال المنذرى واخرجه ابن ماجة والمشهور فيه المرسل وهو غريب اهـ (عون)

طلاق سره د جائز او حلال كيدو مبغوض دې د الله پاک په نزد، معلومه شوه هر حلال څيز محبوب نه وی بلکه بعض حلال مبغوض وی.

## د طلاق د مکروه کیدو او مبغوض کیدو تشریح :

په دې حديث باندې امام خطابی رحمه الله ليكى، د طلاق كراهيت د نفس طلاق په اعتبار سره نه دې بلكه د دې بد خلقی او سوء عشرت په لحاظ سره كوم چه سبب طلاق دې ځكه چه طلاق خو مباح دې، رسول الله ﷺ سيده حفصه رضي الله عنها لره يو ځل طلاق وركړې وو بيا ئې روستو رجوع فرمائيلې وه، هم دغه شان د ابن عمر رضي الله عنهما يوه زوجه وه چه د ابن عمر رضي الله عنهما خو ورسره مينه وه خو د هغه د پلار سيدنا عمر رضي الله عنه هغه خوښه نه وه هغه نه غوښتل چه هغه دې د ابن عمر رضي الله عنهما په نكاح كښې وى، د دې خبرې شكايت ابن عمر رضي الله عنهما رسول الله ﷺ ته اوكړو نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل : ته هغې ته طلاق وركړه. په دې باندې ورته هغه طلاق وركړو. پس ظاهره ده چه ته چاته د يو داسې څيز حكم نه شې كولې كوم چه د الله پاک په نزد مكروه وى. اهـ زه وائم هم دغه شان زمونږ فقهاء كرام ليكلې دى، علامه زيلعى فرمائى بعض خلق وائى چه طلاق بغير د ضرورت نه مباح نه دې (بيا وړاندې هغه د دې په تائيد كښې څه احاديث ذكر كړې دى) د دې نه پس فرمائى او زمونږ دليل د الله پاک قول ﴿اذا طلقتم النساء فطلقوهن لعدتهن ﴾هم دغه شان د الله پاک قول ﴿لا جناح عليكم ان طلقتم النساء﴾، ﴿ وطلق رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حفصة والصحابة رضى الله عنهم كانوا يطلقون من غير نكير الخ ﴾

شيخ ابن همام فرمائى چه د هغې حاصل دا دې چه په حديث كښې د طلاق مبغوضيت سره د هغې د حلال كيدو هم تصريح كړې ده. لهذا د طلاق كراهت، كراهت بالمعنى الاصطلاحى نه دې، كه په صفت د بغض سره د حلت تصريح نه وى نو بيشكه طلاق به شرعا مكروه وې او په دې باندې به هم هغه څيز مرتب كيدو كوم چه په مكروه اصطلاحى باندې كيدو.[1] واذ ليس فليس د دې نه زيات نه شى وئيلې كيدې چه طلاق د الله پاک په نزد مبغوض او ناخوښه دې. اهـ علامه قسطلانى شرح بخارى كښې فرمائى ځنګه چه الله پاک نكاح مشروع اوفرمائيله هم دغه شان ئې طلاق مشروع اوفرمائيلو او بيا وړاندې فرمائى او هغه چه په سنن ابوداود كښې حديث دې چه په هغې كښې طلاق ته مبغوض وئيلې شوې دى هغه محمول دې په هغه طلاق باندې كوم چه بغير د څه وجې نه وركړې شوې دې، بله دا چه هسې هم په حديث كښې علة دراليرلې سبب موندلې شى د دې نه پس بيا هغه د ابن الهمام كلام مذكور نقل فرمائيلې دى، ابن عبدالبر كتاب الكافى كښې

[1] يعنى كه مكروه تنزيهى دې د ملامت مستحق او كه مكروه تريمى وى نو عقاب يعنى سزا.

كتاب الطلاق په شروع کښې تحرير فرمائي، طلاق مباح دې اګر چه زنانه ته ناخوښه وي اګر چه زنانه پرې ناخوښه وي يا خوښه وي، قبل الدخول وبعد الدخول، خو كثير الطلاق شخص مذموم (قابل مذمت) دې او دا څيز د محاسن اخلاق نه نه دې، بيا وړاندې فرمائي چه په شريعت کښې د طلاق ورکولو يوه طريقه ده چه د هغې نه تجاوز کول جائز نه دي، د الله پاک معصيت او په خپل نفس باندې ظلم دې. اهـ الحاصل كه طلاق ضرورة او مصلحة وي نو بيا د دې په جواز کښې د چا هم کلام نشته او كه بغير د ضرورت نه وي نو بيا هم د جمهورو په نزد جائز دې په دې شرط چه د قاعده شرعيه مطابق [1] او د ټولو حقونو د ادا کولو سره وي چه په هغې باندې يعنی ښکلې طريقې سره پريښودل صادق راځي. كذا يستفاد من تصريحات الفقهاء. دا ټول څيزونه ليکلې شوې دي هغه د مصنف ترجمه په باب كراهية الطلاق پيش نظر دې د دې دپاره چه معلومه شي چه طلاق کراهية څه حده پورې دې. [2]

[۲۱۷۸] [3] حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ مُعَرِّفِ بْنِ وَاصِلٍ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَبْغَضُ الْحَلَالِ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى الطَّلَاقُ".

**ترجمه:** دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي: دالله تعالى په نزد باندې په ټولو حلالو څيزونوکښې زيات يعنی ناخوښه کړې شوې څيز طلاق دې.

# بَابٌ فِي طَلَاقِ السُّنَّةِ

## باب د سنت مطابق د طلاق بيان

[۲۱۷۹] [4] حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَأَلَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا، ثُمَّ لِيُمْسِكْهَا حَتَّى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيضَ ثُمَّ تَطْهُرَ، ثُمَّ إِنْ شَاءَ أَمْسَكَ بَعْدَ ذَلِكَ وَإِنْ شَاءَ طَلَّقَ قَبْلَ أَنْ يَمَسَّ، فَتِلْكَ الْعِدَّةُ الَّتِي أَمَرَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ أَنْ تُطَلَّقَ لَهَا النِّسَاءُ".

**ترجمه:** دنافع نه روايت دې فرمائي چه ابن عمر رضي الله عنهما خپلې ښځې ته طلاق ورکړل اوهغه دبيمارۍ په حال کښې وه دنبي عليه السلام په زمانه کښې عمربن الخطاب به دنبي عليه السلام نه په دې باره کښې تپوس اوکړو نبي عليه السلام اوفرمائيل حکم ورته اوکړه چه رجوع دې ورته اوکړي او بيا دې ئې دخان سره اوساتي ترڅوچه پاکه شي اوبيابيماره شي اوبيا پاکه شي نوکه چرې

---

[1] کوم ته چه طلاق سني ونيلې شي او چه کوم طلاق خلاف شرع وي کوم ته چه بدعي ونيلې شي هغه ناجائز او حرام دې.

[2] طلاق بعض حالاتو کښې صرف مباح او بعض کښې مستحب او بعض کښې واجب کيږي، او بعض حالات کښې مکروه چه د هغې تفصيلات کتب فقه او شروح حديث کښې مذکور دي.

[3]: سنن ابن ماجه/الطلاق ۱ (۲۰۱۸)، (تحفة الأشراف: ۷۴۱۱) (ضعيف)

[4]: صحيح البخاري/تفسير سورة الطلاق (۴۹۰۸)، والطلاق ۲ (۵۲۵۲)، ۳ (۵۲۵۸)، ۴۵ (۵۳۳۳)، والأحكام ۱۳ (۷۱۶۰)، صحيح مسلم/الطلاق ۱ (۱۴۷۱)، سنن النسائي/الطلاق ۱ (۳۴۱۹)، ۵ (۳۴۲۹)، ۷۶ (۳۵۸۵)، (تحفة الأشراف: ۸۳۳۶)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطلاق ۱ (۱۱۷۵)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۲ (۲۰۱۹)، موطا امام مالك/الطلاق ۲۰ (۵۲)، مسند احمد (۲/۴۳، ۵۱، ۷۹، ۱۲۴)، سنن الدارمي/الطلاق ۱ (۲۳۰۸) (صحيح)

بیائي خوښه وه نو دغان سره دی وساتی او که خوښه ئې وی طلاق دی ورته ورکړی مخکښې دمسه کولو نه، دا هغه عدت دې کوم چه الله تعالی مونږ ته حکم کړې دې چه په دې کښې دی ښځو ته طلاق ورکړې شی او هغوی دی دا عدت پوره کړی.

**د ابن عمر رضی الله عنه په زمان حیض کښې د طلاق ورکولو قصه او د دې متعلق مسائل:**

مصنف رحمه الله په دې باب کښې د ابن عمر رضی الله عنه په زمانه حیض کښې خپلې زوجې ته د طلاق ورکولو واقعه ذکر فرمائیلې ده په پوره باب کښې صرف هم دا یوه قصه په متعدد طرق سره بیانولې شی چه دا حدیث مشهور دې په ټولوصحاح سته کښې موجود دې، مصنف د دې ټول طرق ډیر اهتمام سره ذکر کړې دې او د هغې په یو طریق باندې چه په هغې کښې یو زیادت دې کوم چه د ټولو مذاهب اربعه خلاف دې په دې باندې ئې په سختئ سره نکیر فرمائیلې دې.

د هغه د دې زوجې نوم د چا چه دا قصه بیان کړې شوې ده چه امنه ده وقیل النوار او چا وئیل چی نوار ده. ممکنه ده چه نوم ئې امنه وی او النوار ئې لقب وی. طلاق فی زمن الحیض بالاتفاق (۱) طلاق بدعی دې یوځائې متعدد طلاق ورکول په دې کښې خو اختلاف دې د شوافعو اواحمد په یو روایت کښې،داسې طلاق بدعت نه دې بلکه سنی دې (کما تقدم التفصیل)لکه وړاندې تفصیل ذکر شو خو طلاق فی په حالت دحیض کښې طلاق بدعی دې، ابن عمر رضی الله عنه ورته صرف یو طلاق ورکړې وو لکه چه په بعض طرق کښې د دې تصریح ده.

﴿ فقال رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مرة فليراجعها ثم ليمسكها حتى تطهر ثم تحيض ثم تطهر﴾
سیدنا عمر رضی الله عنه چه کله د دې تذکره رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اوکړه نو هغه عمر رضی الله عنه ته حکم اوکړو (دلته یوه مسئله اصولی ده هل الامر بالامر بالشئ امر بذلک الشئ ام لا؟ یعنی که یو سړی ته دا امر اوکړې شی چه هغه فلانی سړی ته د یوې خبرې امر اوکړی! نو دا فلانې سړې امر اول طرف نه مامور اوګڼلې شی یا نه؟ بلکه د دې درمیانی سړی طرف نه مامور وی، د دې طرف ته اشاره جلد ثانی کښې مروا اولادکم بالصلاۃ... الحدیث... کښې تیر شوې دې. (۱۲) چه هغه ابن عمر رضی الله عنه ته د دې طلاق نه د رجوع امر اوکړی، دا امر بالرجوع د وجوب دپاره دې یا صرف د استحباب دپاره په دې کښې دواړه قول دی، علامه قسطلانی فرمائی ۱۲۶/۸ دا امر د شوافعو او حنابله په نزد د استحباب دپاره دې او هم دا یو روایت د احنافو دې او د مالکیانو په نزد د وجوب دپاره دې وصححه صاحب الهدایةمن الحنفیة. د مالکیانو په نزد خو به هغه په رجوع باندې مجبور کولې شی بالضرب والسجن والتهدید. اه او وړاندې بیا د دې حدیث په دې طریق کښې دا دی چه د رجوع کولو نه پس د طهر ثانی پورې ایسار وی، په طهر ثانی کښې دې ته اختیار دې، اگر چه طلاق دې او که غواړی نو په نکاح کښې باقی اوساتی. مطلب دا شو چه په طهر اول کښې طلاق ورنکړی که ورکول دې نو طهر ثانی کښې دې ورکړی، دا طهر ثانی والا امر استحباب دپاره دې یا د وجوب دپاره په دې کښې فقهاء

(۱) په دې کښې څه قیود او تفصیل دې کوم چه به وړاندې معلوم شی

کرامو اختلاف دې د احنافو مسلک په دې کښې مخکښې (د طلاق بدعی تعریف کښې) تير شوې دې چه ظاهر الرواية د احنافو په دې کښې د وجوب دې او غير ظاهر الرواية د استحباب اصح الوجهين للشافعيه هم د وجوب دې كما قال الحافظ او امام مالک او امام احمد په نزد د استحباب دپاره دې. کماقال الدر ۳۶۳/۲ والموفق.

روایات حدیثیه هم په دې کښې مختلف دی د باب د حدیث په طریق اول کښې کوم چه طریق نافع دې، طهر ثانی ذکر دې او د دې نه پس چه کوم طریقه راروان دې یعنی طریقه سالم په دې کښې صرف طهر اول مذکور دې.

بیا د علماء کرامو په دې کښې مختلف روایات دی چه طهر ثانی پورې د انتظار څه مصلحت دې. ۱: د دې دپاره چه رجعت صرف د طلاق دپاره نه وی نو څنګه چه د طلاق په نیت سره نکاح کول مکروه او ناجائز دې هم دغه شان د طلاق په نیت سره رجعت هم نه دی کیدل پکار، لهذا د رجعت کولو نه پس څه زمانه داسې تیریدل پکار دی چه په هغې کښې طلاق ورکول جائز وی خو ور دې نه کړې شی. ۲: د دې دپاره چه د رجعت فائده ظاهره شی وهو الوطی، او چه په کوم طهر کښې وطی کولې شی په دې کښې طلاق ورکول بدعت دی. ۳: هغه سړی د تلوارې په طلاق ورکولو کښې چه په حیض کښې ئې ورکړو او د طهر انتظار دې اونکړې شی څکه چه سزا او عقوبة دا حکم کړې شوې دې چه په طهر اول کښې هم مه ورکوه او د هغې نه روستو په طهر ثانی کښې ورکول.

[۲۱۸۰](۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ طَلَّقَ امْرَأَةً لَهُ وَهِيَ حَائِضٌ تَطْلِيقَةً، بِمَعْنَى حَدِيثِ مَالِكٍ.

**ترجمه:** دنافع نه روایت دې فرمائی چه ابن عمر رضی الله عنهما خپلې ښځې ته یو طلاق ورکړو اوهغه دبیماری په حال کښې وه باقی حدیث دمالك دروایت په شان دې.

[۲۱۸۱](۲) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ مَوْلَى آلِ طَلْحَةَ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ، فَذَكَرَ ذَلِكَ عُمَرُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُطَلِّقْهَا إِذَا طَهُرَتْ، أَوْ وَهِيَ حَامِلٌ".

**ترجمه:** دسالم نه روایت دې فرمائی چه ابن عمر رضی الله عنهما خپلې ښځې ته طلاق ورکړل اوهغه دبیماری په حال کښې وه عمر رضی الله عنه دا واقعه رسول پاك ته بیان کړه نبی علیه السلام اوفرمائیل چی ورته اووایه چه رجعت اوکړی کله چه پاکه شی یاحامله شی نو پیادی ورته طلاق ورکړي.

## طلاق د حاملې او ایا حاملې ته حیض رازی

قوله: ﴿ ثم لیطلقها اذا طهرت او وهی حامل ﴾

په ظاهره کښې مطلب دا شو چه دې وخت کښې په حیض کښې چه کوم طلاق ورکړې دې د دې نه که ته رجوع اوکړې نو بیا دې راروان وخت کښې یا خو طلاق ورکړی په طهر کښې

۱): صحيح البخاري/الطلاق ٤٥ (٥٣٣٢)، صحيح مسلم/الطلاق ١ (١٤٧١)، (تحفة الأشراف: ٨٢٧٧) (صحيح)

۲): صحيح مسلم/ الطلاق ١ (١٤٧١)، سنن الترمذي/الطلاق ١ (١١٧٦)، سنن النسائي/الطلاق ٣ (٣٤٢٦)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٣ (٢٠٢٣)، (تحفة الأشراف: ٦٧٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦/٢، ٥٨) (صحيح)

(که حمل ظاهر نه شي) او که حمل ظاهر شي نو بيا د طهر قيد نشته، د دې روايت نه دوه خبرې نوې ثابت شوې اول دا چه حامله لره حيض راتلې شي دويم دا چه حاملې لره په هر حال کښې طلاق ورکولې شي اګر چه په حالت د حيض کښې وی، کذا قال الطيبی والنووی، ملا علی قاری د طيبی نقل کولو نه پس فرمائی : وعندنا ان الحامل لا تحيض وما راته من الدم فهو استحاضة. اهـ امام نووی رحمه الله فرمائی د امام شافعی رحمه الله په نزد صحيح دا ده چه حاملې حائض لره طلاق ورکول جائز دی ځکه چه غير حامل لره حيض کښې طلاق ورکولو نه مانع اوږد عدت دې او د حاملې عدت بهرحال وضع حمل دې فلا فرق فيها بين الطهر والحيض. اهـ خو په بذل المجهود کښې حضرت د دې جواب ليکلې دې چه هلته اوکتلې شی، والظاهر عندی ما قال النووی کما لا يخفی.

هم دغه شان په کتب مالکيه او حنابله کښې هم دا ذکر دی چه غير مدخول بها او هغه زنانه چه د هغې حمل ظاهره شوې وی هغه ته چه په کوم حال کښې هم طلاق ورکړې شی جائز دې.

فتلک العدة التی امر الله تعالی ان تطلق لها النساء : رسول الله ﷺ ابن عمر رضی الله عنه ته اوفرمائيل چه د حيض په طلاق سره رجوع کولو سره د طهر په زمانه کښې طلاق ورکړه، پس دا حالت طهر هغه عدت دې چه په هغې کښې د طلاق ورکولو الله پاک حکم فرمائيلې دې.

## د عدت په مصداق کښې د فريقين رائې توضيح او تشريح :

خطابی وائی د دې نه معلومه شوه چه کومه زمانه د طلاق ده هم هغه زمانه عدت دې او زمانه طلاق بالاتفاق زمانه طهر دې لهذا زمانه عدت هم طهر شو (د دې نه مخکښې هغه دا هم وئيلې دی چه ان تطلق لها النساء کښې لام په معنی د فی دې) پس ثابته شوه چه په قران کريم کښې ﴿ثلاثة قروء﴾ نه مراد ثلاثة اطهار دی کما هو مسلک الشافعية. [1]

امام طحاوی د دې جواب دا ورکړې دې دلته په دې حديث کښې لفظ عدت سره عدت اصطلاحيه مراد نه دې کوم چه د کتاب الله نه ثابت دې يعنی ﴿ثلاثة قروء﴾ بلکه د عدت نه مراد د طلاق النساء عدت يعنی د طلاق وخت پس ضروری نه دی چه کوم د طلاق عدت دې يعنی د طلاق په وخت هم هغه عدت وی د کومې د تيرولو چه زنانه مکلف دی ځکه چه د لفظ عدت ډيرې معنی راځی. اهـ (عون المعبود) پس په قاموس وغيره کتب لغت کښې د عدت معنی متعدد ليکلې دی فليراجع... لهذا د حديث د دې جملې مطلب دا شو پس دا وخت د طلاق ورکولو کښې (چه په هغې کښې مونږ وايو) هم هغه وخت دې چه په هغې کښې د طلاق ورکولو امر الله پاک فرمائيلې دې فی قوله تعالی ﴿فطلقوهن لعدتهن﴾ ګويا رسول الله ﷺ امر بالطلاق فی زمان الطهرلره مؤيد فرمائی د دې آيت کريمه نه. سبحان الله! څومره ښکلې تشريح ده.

ددې نه روستو خان پوهه کړه چه ﴿فطلقوهن لعدتهن﴾ په تفسير کښې اختلاف دې بين

---

[1] د مالکيانو مسلک هم دا دې او د امام احمد دواړه روايتونه، ابن قدامه په المغنی کښې حيض ته ترجيح ورکړې ده او هم دا نې درآية او رواية ثابت منلې ده او هم دا د احناف مسلک دې.

الحنفية والشافعية... کوم چه مفسرين او محدثين ټولو ليکلي دي په اصل کښې په دې آيت کريمه کښې يو قراءة دا دی کما سياتی فی المتن ايضا. فطلقوهن فی قبل عدتهن، بيا احناف او شوافعو د لفظ قبل په مفهوم کښې اختلاف دی، هغه دا چه شوافع د عدة بالاطهار قائل دی او احناف د عدة بالحيض قائل دی. شوافع وائی د دې معنی ابتداء او اول ده [1] يعنی زنانو ته طلاق ورکړئ د هغوی د عدت په شروع کښې او د هغې په شروع کښې [2] او احناف فرمائی د دې نه مراد راتلل او استقبال دې، يعنی طلاق ورکړه داسې وخت کښې چه کله هغه زنانه د استقبال کولو والا وی د عدت يعنی داسې وخت کښې طلاق ورکړئ چه د هغې نه روستو زمان عدت راتلو والا وی او طلاق بالاتفاق ورکولې شی په زمان طهر کښ، معلومه شوه د طهر نه پس راتلو والا زمانه د عدت زمانه ده وهو الحيض، احناف د خپلې رائې ترجيح داسې ثابتوی چه قران کريم دا وائی چه عدت ثلاثة قرؤ دې، پوره درې قرؤ تيريدل پکار دی، او که عدت طهر اومنلې شی [3] کما قالوا او حال دا چه طلاق هم په طهر کښې ورکولې شی نو اوس د خلط کيدو په وجه باندې د عدت په حساب کښې ګړبړ کمې يا زياتې واقع کيږی چه په کوم طهر کښې طلاق ورکړې شوې دې که دا مستقل شمار کولې شی نو عدد ثلاث (ثلاثة قرؤ) کښې کمې واقع کيږی (کما هو مسلک الشافعية) او که دا نه شمار کوې او د هغې نه علاوه درې طهرونه تير کړې شی نو په دې صورت کښې زيادت لازميږی په خلاف د دې چه عدت حيض اومنلې شی او طلاق طهر کښې ورکړې شی په دې کښې د عدت حساب بغير د تردد نه صحيح وی. والله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب

[٢١٨٢] ([4]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ، فَذَكَرَ ذَلِكَ عُمَرُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَتَغَيَّظَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قَالَ: "مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا، ثُمَّ لِيُمْسِكْهَا حَتَّى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيضَ فَتَطْهُرَ، ثُمَّ إِنْ شَاءَ طَلَّقَهَا طَاهِرًا قَبْلَ أَنْ يَمَسَّ، فَذَلِكَ الطَّلَاقُ لِلْعِدَّةِ كَمَا أَمَرَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ".

**ترجمه:** د سالم نه روايت دې فرمائی چه ابن عمر رضي الله عنهما خپلې ښځې ته طلاق ورکړل او هغه د بيمارۍ په حال کښې وه عمر رضي الله عنه دا واقعه رسول پاک صلى الله عليه وسلم ته بيان کړه نبی عليه السلام په غصه شو اوبيائې ورته اوفرمائيل ورته اووايه چه رجوع اوکړی اوبيا دې ئې د ځان سره اوساتی تردې چه پاکه شی اوبيابيماره شی اوبياپاکه شی ددې نه پس که دده خوښه وه نوطلاق دې ورته په پاکوالی کښې ورکړی مخکښې د مسح کولونه دا عدت دطلاق دې دکوم چه الله تعالی مونږ ته حکم کړې دې.

---

[1] ) اي طلقوهن في اول عدتهن ونحن نقول طلقوهن مستقبلات عدتهن)

[2] ) او طلاق بالاتفاق په طهر کښې ورکولې شی لهذا د عدت زمانه هم طهر شوه)

[3] ) ابن قدامه په دې باندې په معنی کښې تفصيلی کلام کولو سره ليکی چه طلاق خو په هيڅ طريقه هم د عدت په وخت نه شی کيدې ځکه چه عدت خو په طلاق باندې مرتب کيږی طلاق به ضرور په عدت باندې مقدم وی. طلاق سبب دې او عدت مسبب، سبب په مسبب باندې هميشه مقدم وی. ١٢)

[4] ): صحيح البخاري/الأحكام ١٣ (٧١٦٠)، (تحفة الأشراف: ٦٩٩٦) (صحيح)

[۲۱۸۳]([1])حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ بْنُ جُبَيْرٍ، أَنَّهُ سَأَلَ ابْنَ عُمَرَ، فَقَالَ: "كَمْ طَلَّقْتَ امْرَأَتَكَ؟" فَقَالَ: "وَاحِدَةً".

**ترجمه**: د یونس بن جبیرنه روایت دې فرمائی چه دابن عمر رضی الله عنه نه مې تپوس اوکړو چه خپلې ښځې ته دې څو طلاقه ورکړې وو؟ هغه راته اووئيل يو طلاق.

[۲۱۸۴]([2])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، حَدَّثَنِي يُونُسُ بْنُ جُبَيْرٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، قَالَ: قُلْتُ: رَجُلٌ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ، قَالَ: تَعْرِفُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ؟ قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: فَإِنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ، فَأَتَى عُمَرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ، فَقَالَ: "مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُطَلِّقْهَا فِي قُبُلِ عِدَّتِهَا"، قَالَ: قُلْتُ: فَيَعْتَدُّ بِهَا، قَالَ: فَمَهْ، أَرَأَيْتَ إِنْ عَجَزَ وَاسْتَحْمَقَ.

**ترجمه**: دیونس بن جبیرنه روایت دې فرمائی چه دابن عمر رضی الله عنهما نه مې تپوس اوکړو چه یوکس خپلې ښځې ته طلاق ورکړی دی اوهغه بیماره وه ابن عمر رضی الله عنهما ورته اوفرمائيل آیا ابن عمر پیژنې ماعرض اوکړو هو، ابن عمر اووئيل عبدالله بن عمر خپلې ښځې ته طلاق ورکړی وو اوهغه دبیمارئ په حالت کښې وه نوعمر دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شو او د مسئلې تپوس ئې اوکړو نو نبی علیه السلام اوفرمائيل ورته اووايه چه خپلې ښځې ته رجعت اوکړې او بیا ورته دعدت په شروع کښې طلاق ورکړې (یعنی دطهر دشروع کیدو سره) ما ورته اووئيل کوم طلاق چه ئې په بیماری کښې ورکړې وو آیا هغه به حسابیږی؟ ابن عمر رضی الله عنه اوفرمائيل ولی نه، که چرې دغه کس خپله ښځه نه وې واپس کړې او بې وقوفی ئې کړې وې نو آیا داطلاق به نه حسابیدل؟.

**تشریح**: ﴿فقال مره فلیراجعها ثم یطلقها فی قبل عدتها﴾ یعنی ابن عمر ته اووایه چه هغه وخت د طلاق نه رجوع اوکړه کوم چه عین د عدت په زمانه کښې ورکړې شوی دی بیا د دې نه پس چه کله طلاق ورکړی نو په داسې وخت کښې ورکړی چه په هغې کښې استقبال عدت (او دا هم احتمال دې چه د سائل مراد دا دې چه دا طلاق فی الحیض به شرعا معتبر وی یا نه؟ په دې صورت کښې به د ابن عمر رضی الله عنه د جواب مطلب دا وی چه بیان کړه که یو سړې څه ضروری کار لره د خپل حماقت او جهالت په وجه ترک کړی نو ایا هغه به معذور منلې شی؟ وی([3]) (د دې دپاره چه د عدت حساب صحیح دې)

﴿قال فیتعتد بها قال فمه ارایت ان عجز واستحمق﴾ سائل تپوس اوکړو چه ایا د رجوع کولو نه پس به دا طلاق شمارلې شی؟([4]) (یا که کالعدم به شی) هغه جواب ورکړو چه څه به وی چه شمار نه کړې شی (او بیا ئې وراندې اوفرمائيل) اوایه چه هغه یعنی مطلق فی

---

[1]: انظر حدیث رقم: ۲۱۷۹، (تحفة الأشراف: ۸۵۷۳) (صحیح)
[2]: انظر حدیث رقم: ۲۱۷۹، (تحفة الأشراف: ۸۵۷۳) (صحیح)
[3]: هذا التشریح علي مسلك الحنفية)
[4]: اودا احتمال هم شته چه دا سائل مراد دا وی چه دا طلاق فی الحیض به شرعاً معتبروی اوکه نه؟ په دې صورت کښې به د ابن عمر رضی الله عنه مطلب دا وی چه: اې دا خو اووایه چه که څوک سړې یو ضروری کار په خپل بې وقوف توب او جهالت سره پریږدی نو آیا هغه معذور ګنړلې کیدې شی

الحيض که عاجز شی او د حماقت کار اوکړی (يعنی رجوع اونکړی) نو ايا بيا به هم دا طلاق شمارلې شی که نه؟ مطلب دا دې چه طلاق په رجوع کولو سره نه کالعدم کيږی، ظاهره ده چه طلاق خو واقع شو.

### طلاق فی الحيض او طلاق ثلاث په واقع کيدو کښې اختلاف:

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه طلاق فی الحيض اګر چه د جمهورو په نزد ناجائز او حرام دی خو د دې باوجود واقع کيږی، عند جماهير العلماء سلفا وخلفا ومنهم الائمة الاربعة وعلى هذا ايقاع الثلاث دفعة، امام بخاری رحمه الله دوه مستقل ترجمة الباب د دې مقصد دپاره تړلې دی. ۱: باب اذا طلقت المراءة الحائض يعتد بذلک الطلاق. ۲: باب من اجاز الطلاق الثلاث. د اول باب د لاندې علامه قسطلانی فرمائی چه د ائمة فتوی په دې باندې اجماع ده (د حالت حيض د طلاق د وقوع نه پس) په خلاف د ظاهريه روافض، خوارج چه هغوی دا وائی چه دا طلاق نه واقع کيږی ځکه چه يعنی منع کړې شوې دې فلا يکون مشروعا. او مونږ دا وايو چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ابن عمر رضی الله عنه ته د دې طلاق نه روستو د رجوع حکم فرمائيلې دې، او ظاهره ده چه رجوع عن الطلاق بدون الطلاق رجوع دطلاق بغير دطلاق نه محال دی، او دويمه وجه دا ده چه خپله د ابن عمر رضی الله عنه نه نقل دی چه هغه دې طلاق ته اعتبار ورکړې دې لکه چه د دې تصريح وړاندې په حديث کښې راروانه ده. اه صاحب د عون المعبود ليکی چه حافظ ابن القيم رحمه الله په زاد المعاد کښې ډير اوږد کلام کړې دې په دې خبره باندې چه طلاق حائض نه دې واقع شوې. اه او شاه صاحب په فيض الباری کښې فرمائی هم دا هغه مسئله ده چه د هغې ابن تيميه نه انکار کړې دې چه د حالت حيض طلاق نه دې واقع شوې حال دا چه ابن عمر کوم چه صاحب واقعه ده هه د دې طلاق د وقوع اقرار اوکړو الى اخر ما ذکر. زه وايم هم دغه شان ابن القيم په دې مسئله باندې تفصيلی کلام د سنن ابوداود په شرح "تهذيب السنن" کښې هم کړې دې او د جمهور د مسلک خلاف ئې فضول زور لګولې دې. اوس پاتې شوه مسئله د ايقاع الثلاث يعنی دريو وقعې کيدل فی مجلس واحد پس د هغې په وقوع کښې خو د ائمه اربعه هيڅ اختلاف نشته البته په دې کښې اختلاف دې چه هغه طلاق سنی دې يا بدعی؟

د شوافعو په نزد خو دا طلاق خلاف سنت هم نه دې د نورو ائمه کرامو په نزد خلاف سنت دې کما تقدم الخلاف فی ذلک فی مبدا کتاب الطلاق، البته د بعض نورو علماء کرامو د دې په وقوع کښې اختلاف دې چه د هغې دپاره مصنف وړاندې مستقل باب قائم فرمائيلې دې په دې باندې کلام به هم په هغه باب کښې راشی.

[۲۱۸۵] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَيْمَنَ مَوْلَى عُرْوَةَ يَسْأَلُ ابْنَ عُمَرَ وَأَبُو الزُّبَيْرِ يَسْمَعُ، قَالَ: كَيْفَ تَرَى فِي رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ حَائِضًا؟ قَالَ:

(۱): صحيح مسلم/الطلاق ۱ (۱۴۷۱)، سنن النسائي/الطلاق ۱ (۳۴۲۱)، (وليس عندهما قوله «لَمْ يَرَهَا شَيْئًا») (تحفة الأشراف: ۷۴۴۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶۱/۲، ۸۰، ۸۱، ۱۳۹) (صحيح)

طَلَّقَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَأَلَ عُمَرُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ، قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ: فَرَدَّهَا عَلَيَّ وَلَمْ يَرَهَا شَيْئًا، وَقَالَ: "إِذَا طَهُرَتْ فَلْيُطَلِّقْ أَوْ لِيُمْسِكْ"، قَالَ ابْنُ عُمَرَ: وَقَرَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ فِي قُبُلِ عِدَّتِهِنَّ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ يُونُسُ بْنُ جُبَيْرٍ وَأَنَسُ بْنُ سِيرِينَ وَسَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ وَزَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ وَأَبُو الزُّبَيْرِ وَمَنْصُورٌ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، مَعْنَاهُمْ كُلُّهُمْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَهُ أَنْ يُرَاجِعَهَا حَتَّى تَطْهُرَ ثُمَّ إِنْ شَاءَ طَلَّقَ وَإِنْ شَاءَ أَمْسَكَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَمَّا رِوَايَةُ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، وَنَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَمَرَهُ أَنْ يُرَاجِعَهَا حَتَّى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيضَ ثُمَّ تَطْهُرَ ثُمَّ إِنْ شَاءَ طَلَّقَ وَإِنْ شَاءَ أَمْسَكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرُوِيَ عَنْ عَطَاءٍ الْخُرَاسَانِيِّ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، نَحْوَ رِوَايَةِ نَافِعٍ وَالزُّهْرِيِّ، وَالْأَحَادِيثُ كُلُّهَا عَلَى خِلَافِ مَا قَالَ أَبُو الزُّبَيْرِ.

**ترجمه**: دعبدالرحمن بن ایمن (دعروه آزاد کړي شوي غلام) نه روایت دي فرمائي چه دابن عمر رضی الله عنه نه مي تپوس اوکړو او ابوزبیر اوریدل ستاځه خیال دي دهغه سړي په باره کښې چه طلاق ئې ورکړی وی خپلې ښځې ته دبیمارئ په حالت کښې هغه اووئیل عبدالله بن عمر رضی الله عنه دنبی علیه السلام په زمانه کښې خپله ښځه دبیمارئ په حالت کښې طلاقه کړی وه نو په دې باره کښې عمرفاروق نه دنبی علیه السلام نه تپوس اوکړو او عرض ئې اوکړو چه عبدالله بن عمر رضی الله عنه خپله ښځه دبیمارئ په حال کښې طلاقه کړی وه په دې وخت کښې ابن عمر رضی الله عنه اووئیل چه نبی علیه السلام هغه ښځه ماته واپس کړی وه یعني رجعت مې ورته کړې وو او طلاقوله ئې اعتبارنه وو ا ورکړئ اونبی علیه السلام فرمائیلي وو چه کله : داپاکه شي نوطلاق ورته ورکړه اویائې دځان سره . وساته عبدالله ابن عمر رضی الله عنه اووئیل بیانبی علیه السلام دا آیت : («یا أیها النبي إذا طلقتم النساء فطلقوهن») تلاوت کړو ابوداود وائی داحدیث ابن عمرنه، یونس بن زبیر دهغه نه انس بن سیرین دهغه نه سعید بن جبیر دهغه نه زید بن اسلم دهغه نه ابوزبیر او دهغه نه منصور وغیره نقل کړي دي اوپه دی تماموروایاتو کښې دا بیان دې چه نبی علیه السلام تر پاکیدو پورې درجعت حکم فرمائیلي دې، بیا د پاکیدونه وروسته اختیاردې که خوښه ئې وی ز نوطلاق دی ورکړی اوکه خوښه ئې وی نو دځان سره دې وساتي، همدارنګی احمد بن عبدالرحمن اوسالم دابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړې دې او د زهری روایت دسالم نه اوهغه دنافع نه اوهغه دابن عمر رضی الله عنه نه هم داسې دې چه نبی علیه السلام درجعت حکم کړې وو ترهغه وختنه پورې چه دا پاکه شوی نه وی بیاچه بیماری راشی اوبیاپاکه شي نویادی طلاق ورکړی اویادی وساتي، اودعطاء خراساني رضی الله عنه نه روایت دې هغه دحسن نه نقل کړی دی اوهغه دابن عمرنه دنافع اودزهری دروایت په شان او د ابو زبیر تمام روایات دروایت (لم یَرها شیئًا) په خلاف دي

**تشریح**: ﴿ ولم یرها شیئا ﴾د دې حدیث په سند کښې یو راوی دې ابو الزبیر، دا زیادت صرف د هغه په روایت کښې دې [1] او دا دلیل دې د هغه علماء کرامو کوم چه دا وائی چه طلاق

[1] د ابو الزبیر روایت په مسلم کښې هم شته خو هلته دا جمله نشته دا جمله په ابوداؤد او نسائی کښې ده.

حائض نه واقع کیږی، خطابی فرمائی چه محدثین دا فرمائی چه ابو الزبیر کله هم په یو روایت کښې د دې لفظ نه زیات منکر یو لفظ نه دې ذکر کړې. خپله مصنف هم وړاندې تلو سره دا فرمائیلې دی ﴿والاحادیث کلها علی خلاف ما قال ابو الزبیر اهـ﴾دویم صورت دا دې چه د دې جملې تاویل اوکړې شی ای لم یرها شیئا مشروعا او دا مطلب نه دې چه ﴿لم یرها شیئا معتبرا واقعا﴾یعنی د معتبر کیدو نفی مقصود نه ده بلکه د جائز او مباح کیدو نفی مراد ده.
﴿قال ابوداود روی هذا الحدیث عن ابن عمر الخ﴾دا چه کوم حدیث ابن عمر رضی الله عنه روان دې طلاق الحیض والی په دې کښې د راویانو دا اختلاف دې چه بعض په دې کښې صرف یو طهر ذکر کړې دې او بعض دوه طهرونه چه د رجوع کولو نه پس که طلاق ورکول غواړې په طهر اول کښې نه بلکه په طهر ثانی کښې ورکړی. هم دا اختلاف مصنف دلته ذکر فرمائیلې دې په دې کښې د فقهاء کرامو هم اختلاف دې کوم چه مونږ په شروع کښې بیان کړې دې.

## بَابٌ فِي نَسْخِ الْمُرَاجَعَةِ بَعْدَ التَّطْلِيقَاتِ الثَّلَاثِ [1]

### باب د دریو طلاقونو نه پس د رجوع د منسوخ کیدو بیان

د دې باب حدیث ثانی د ترجمة الباب مطابق دې، خو حدیث اول مناسب نه دې کما لا یخفی، هم دغه شان په بعض نسخو کښې دلته ترجمة الباب بالکل شته دې نه، په دې صورت کښې به خو به حدیث اول د ترجمه سابقه یعنی طلاق السنة مطابق وی، خو حدیث ثانی به ورسره مطابق نه وی فهذا من تصرف الناسخین.

[۲۱۸۶] ([2]) حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ هِلَالٍ، أَنَّ جَعْفَرَ بْنَ سُلَيْمَانَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ يَزِيدَ الرِّشْكِ، عَنْ مُطَرِّفِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ سُئِلَ عَنِ الرَّجُلِ يُطَلِّقُ امْرَأَتَهُ ثُمَّ يَقَعُ بِهَا وَلَمْ يُشْهِدْ عَلَى طَلَاقِهَا وَلَا عَلَى رَجْعَتِهَا، فَقَالَ: "طَلَّقْتَ لِغَيْرِ سُنَّةٍ وَرَاجَعْتَ لِغَيْرِ سُنَّةٍ، أَشْهِدْ عَلَى طَلَاقِهَا وَعَلَى رَجْعَتِهَا، وَلَا تَعُدْ".

: سنن ابن ماجه/الطلاق ۵ (۲۰۲۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۶۰) (صحیح)

**ترجمه:** د مطرف بن عبدالله نه روایت دې چه دعمران بن حصین رضی الله عنه نه دهغه سړی په باره کښې تپوس اوکړې شو چه خپلې ښځې ته طلاق ورکړی اوبیا جماع اوکړی اونه ئې دطلاقو په وخت کښې څوك گواه کړې وی اونه ئې درجعت په وخت کښې څوك گواه کړې وی هغه ورته اوفرمائیل چه داطلاق هم خلاف سنت دی اودارجعت هم خلاف سنت دی تاسوبه دطلاق ورکولو په وخت کښې اودرجعت کولو په وخت کښې هم گواهان قائموئ اوپه اینده کښې به داسې نه کوئ.

**تشریح:** ﴿ان عمران بن حصین سئل عن الرجل یطلق عن الرجل یطلق امراته ثم یقع بها ولم یشهد علی طلاقها الخ﴾د دې روایت نه معلومیږی چه انسان لره په طلاق باندې هم گواهان جوړول پکار دی او په رجوع باندې هم، اشهاد یعنی په طلاق گواه کول علی الطلاق خو د

---

[1] ) نوټ: په حمصی نسخه کښې ددې باب عنوان داسې ذکر دې: باب الرجل یراجع ولا یشهد

[2] ): صحیح مسلم/الطلاق ۱ (۱۴۷۱)، سنن النسائي/الطلاق ۱ (۳۴۲۲)، (ولیس عندهما قوله «لم یرها شیئا») (تحفة الأشراف: ۷۴۴۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۶۱، ۸۰، ۸۱، ۱۳۹) (صحیح)

چا په نزد هم واجب نه دي صرف مستحب دي خو اشهاد على الرجعة والا مسئله مختلف فيه يعنى اختلاف دي پكښي ده، د احنافو په نزد خو غير واجب ده صرف مستحب ده او د شوافعو مسلک په شرح اقناع كښې سنت كيدل ليكلي دي او په هغې كښې دا هم دي ﴿خلافا لمالک ﴾د هغه په نزد واجب دي او ليكلي ئې دى چه قول قديم د شافعي هم دا دي كما في الام... وعن احمد روايتان الوجوب والاستحباب. اهـ

زه وايم چه شوكانى هم د امام مالک مسلک وجوب الاشهاد على الرجعة ليكي دي خو په كتاب الكافى (لابن عبدالبر) كښې ليكلي دى چه ﴿يستحب الاشهاد على الطلاق وكذا على الرجعة وقيل الاشهاد على الرجعة اوكد اهـ ﴾هم دغه شان په تكمله د منهل كښې هم استحباب ليكلي دي، لهذا صحيح دا ده چه ځنګه د احنافو په نزد مستحب دي دغه شان د مالكيانو په نزد هم مستحب دي او د امام شافعي دوه اقوال دى قول جديد د استحباب او قديم د وجوب، او د امام احمد نه هم دواړه اقوال منقول دى. [1] او اشهاد على الطلاق د چا په نزد هم واجب نه دي بلكه صرف مستحب دي، والله تعالى اعلم بالصواب.

والحديث اخرجه ابن ماجة قاله المنذرى... اهـ عون

[2] (*) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ سورة البقرة آية ٢٢٨ الْآيَةَ، وَذَلِكَ أَنَّ الرَّجُلَ كَانَ إِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ، فَهُوَ أَحَقُّ بِرَجْعَتِهَا، وَإِنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا فَنُسِخَ ذَلِكَ، وَقَالَ: الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ سورة البقرة آية ٢٢٩".

**ترجمه**: عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وائي: د الله فرمان دي: «والمطلقات يتربصن بأنفسهن ثلاثة قروء ولا يحل لهن أن يكتمن ما خلق الله في أرحامهن» " او كومو ښځو ته چه طلاق وركړې شوې دي هغوى دې درې حيضو پورې انتظار اوكړى اوهغوى دپاره حلال نه دى چه الله تعالى دهغوى په رحم كښې كوم څه پيدا كړى دى هغه پټ كړى" (سورة البقرة: ٢٢٨) دا په دې وجه چه كله به سړې خپلې ښځې ته طلاق وركولو نو د رجعت به هغه زيات حقدار وو اګرچه هغه به درې طلاقه وركړى وو، نو دا منسوخ كړې شو او ارشاد اوشو: «الطلاق مرتان» يعنى د طلاق اختيار صرف دوه ځله دي.

**تشريح**: وذلک الرجل كان اذا طلق امراته... دا د باب حديث ثاني دي چه د هغې مضمون دا دي چه د جاهليت په زمانه كښې د طلاق عدد محدود او متعين نه وو بلكه انسان كه هر څومره طلاقونه وركړى په عدت كښې دننه رجوع كولې شوه، د آيت كريمه ﴿الطلاق مرتان ﴾د نزول

---

[1] ) خلاصه دا شوه چه اشهاد علي الرجعة د امام ابوحنيفه، مالک او شافعى في قوله الجديد مستحب دي (عن احمد روايتان)

[٢١٨٧] [2] ) ددې تشريح تعلق دې حديث سره وو څكه دا حديث دلته ذكر كړې شو او نمبر ورنكړې شو څكه چه دا حديث روسته بيا راروان دى هلته نمبر وركړې شوى دې.مترجم

[3] : سنن النسائي/الطلاق ٥٤ (٣٥٢٩)، ٧٥ (٣٥٨٤)، (تحفة الأشراف: ٦٢٥٣) ويأتي هذا الحديث برقم (٢٢٨٢) (حسن صحيح)

نه د طلاق تحدید شوې دې دا حدیث په ترمذی شریف کښې هم دې، په روایه د عائشې رضي الله عنها چه په هغې کښې د دې نه زیات تفصیل دې هغه دې اوکتلې شي.

## بَابٌ فِي سُنَّةِ طَلَاقِ الْعَبْدِ

### باب: د غلام په طلاق کښې د سنت بیان

(١) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ مُعَتِّبٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أَبَا حَسَنٍ مَوْلَى بَنِي نَوْفَلٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ اسْتَفْتَى ابْنَ عَبَّاسٍ فِي مَمْلُوكٍ كَانَتْ تَحْتَهُ مَمْلُوكَةٌ فَطَلَّقَهَا تَطْلِيقَتَيْنِ ثُمَّ عُتِقَا بَعْدَ ذَلِكَ، هَلْ يَصْلُحُ لَهُ أَنْ يَخْطُبَهَا؟ قَالَ: "نَعَمْ، قَضَى بِذَلِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** دابوحسن (دبنی نوفل آزاد کړې شوې غلام) روایت دې فرمائی چه داِبن عباس نه مې دهغه غلام په باره کښې تپوس اوکړو دچاپه نکاح کښې چه وینځه وی اوهغه ورته دوه طلاقه ورکړی دطلاق ورکولونه پس دواړه آزاد کړې شی، نوایادده دپاره جائزدی چه ددې سره دوباره نکاح اوکړی هغه اووئیل هو، نبی علیه السلام هم داسې فیصله کړې وه.

[٢١٨٨] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، أَخْبَرَنَا عَلِيٌّ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ بِلَا إِخْبَارٍ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: "بَقِيَتْ لَكَ وَاحِدَةٌ، قَضَى بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ: قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ لِمَعْمَرٍ: مَنْ أَبُو الْحَسَنِ هَذَا؟ لَقَدْ تَحَمَّلَ صَخْرَةً عَظِيمَةً، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو الْحَسَنِ هَذَا رَوَى عَنْهُ الزُّهْرِيُّ، قَالَ الزُّهْرِيُّ: وَكَانَ مِنَ الْفُقَهَاءِ، رَوَى الزُّهْرِيُّ، عَنْ أَبِي الْحَسَنِ أَحَادِيثَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو الْحَسَنِ مَعْرُوفٌ وَلَيْسَ الْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** عثمان بن عمر وائی چه مونږ ته علی خبر راکړې دې وړیسې په تیرشوی سند سره هم ددې مفهوم روایت ذکردې خو د عنعنه په صیغې سره دې د أخبرنا صیغې سره نه دې، په هغې کښې دی چه ابن عباس رضی الله عنهما اووئیل ستا دپاره یوطلاق باقی پاتې دې، دالله رسول صلی الله علیه وسلم هم دغسې فیصله فرمائیلې ده. ابوداؤد وائی چه ما د احمد بن حنبل نه واؤریدل چه عبدالرزاق وائی چه ابن مبارک د معمر نه تپوس اوکړو چه دا ابو الحسن څوک دې؟ هغوی یو دروند کانړې اوچت کړې دې، ابوداؤد وائی ابوالحسن هغه دې دچا نه چه زهری روایت کړې دې، زهری وائی چه دهغه فقهاؤ څینې وو زهری د ابوالحسن نه ډیر حدیثونه روایت کړی دی. ابوداؤد وائی: ابوالحسن معروف دې اوپه دې حدیث باندې عمل نشته دې.

**تشریح:** د حدیث الباب مضمون دا دې چه یو سړی د ابن عباس رضي الله عنهما نه تپوس اوکړو چه یو مملوک چه د هغه په نکاح کښې مملوکه وه دې مملوک (خاوند) خپلې ښځې ته دوه طلاقونه ورکړل د هغې نه روستو ئې هغوی دواړه ازاد کړل، نو ایا د هغه زنانه خاوند د ازادیدو نه پس هغې سره بغیر د حلالې نه نکاح کولې شی؟ هغه اوفرمائیل او نکاح کولې شي.

---

(١): سنن النسائي/الطلاق ١٩ (٣٤٥٧)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٣٢ (٢٠٨٢)، (تحفة الأشراف: ٦٥٦١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٢٩، ٣٣٤) (ضعيف)

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٥٦١، ١٨٩٣٤) (ضعيف)

## په طلاق کښې د سړي حالت لره اعتبار دې يا د زنانه حالت لره؟

دا حديث د ائمه اربعه خلاف دې البته د ابن حزم ظاهري مسلک هم دا دې ونسب الى ابن عباس ورواية احمد، خلاف په دې وجه دې چه د جمهوررو په نزد خو د طلاق مدار په رجال باندې دې که سړې ازاد وی نو د هغه د طلاق نصاب درې طلاقه دې او که هغه عبد وی نو بيا ئې نصاب دوه طلاقه دې او احناف دا وائی چه څنګه په عدت کښې بالاتفاق زنانه لره اعتبار دې هم دغه شان په طلاق کښې هم زنانه لره اعتبار دې که هغه حره وی نو د هغې طلاقه به درې وی او که وينزه وی نو بيا به ئې صرف دوه وی، په دې مسئله کښې دوه غير حر دی لهذا بالاتفاق به د طلاق نصاب صرف دوه طلاقه وی، لهذا بغير د تحليل نه دوباره د هغه سره نکاح نه شي کولې

د دې جواب دا دې چه دا حديث ضعيف دې د عمر بن معتب د وجې نه، يا به داسې وئيلې شي چه دا حديث منسوخ دې دا د هغه زمانې خبره ده چه کله به طلاق ثلاثه يو شمارلې شو. (كما سياتي في الباب الاتي) وحديث ابن عباس هذا اخرجه احمد والنسائي والبيهقي اهـ تكملة المنهل.

[٢١٨٩](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَسْعُودٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ مُظَاهِرٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "طَلَاقُ الْأَمَةِ تَطْلِيقَتَانِ، وَقُرْؤُهَا حَيْضَتَانِ". قَالَ أَبُو عَاصِمٍ: حَدَّثَنِي مُظَاهِرٌ، حَدَّثَنِي الْقَاسِمُ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: "وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ حَدِيثٌ مَجْهُولٌ. قَالَ أَبُو دَاوُد: الْحَدِيثَانِ جَمِيعًا لَيْسَ الْعَمَلُ عَلَيْهِمَا. قَالَ أَبُو دَاوُد: مُظَاهِرٌ لَيْسَ بِمَعْرُوفٍ. قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا حَدِيثٌ مَجْهُولٌ.

**ترجمه**: د ام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې: فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلې دی دوينځې دپاره طلاق دوه دی اوددی عدت هم دوه حيضه دی.ابوعاصم دمظاهر نه اوهغه دقاسم نه اوهغه دعائشه رضي الله عنها هغې دنبی صلی الله علیه وسلم نه ددې روايت په شان روايت نقل کړی دی مګردا اضافه ئې کړی ده، چه عدت ئې دوه حيضه دی. ابوداود وائی دا روايت مجهول دې-

**تشريح**:﴿عن عائشة عن النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال طلاق الامة تطليقتان وقروها حيضتان﴾ حضرت شيخ الهند په تقرير ترمذی کښې ليکلې دی چه په دې حديث کښې دوه مسئلې ذکر شوې دی او هغه دواړه د احنافو موافق دی. اول دا چه په طلاق کښې زنانه لره اعتبار دې څنګه چه په عدت کښې دې لره اعتبار دې (كما سبق انفا) دويم دا چه دا عدت بالحيض دې نه بالاطهار خو دا حديث ضعيف دې د دې په سند کښې مظاهر بن اسلم راوی ضعيف دې، اکثر محدثينو د هغه تضعيف کړې دې، البته ابن حبان هغه په ثقات کښې ذکر کړې دې.

**تنبيه**: خو د تعجب خبره دا ده چه د دې حديث د ذکر کولو نه پس امام ترمذی رحمه الله فرمائی والعمل على هذا عند اهل العلم من اصحاب النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وغيرهم وهو قول سفيان الثوري والشافعي واحمد واسحاق. اهـ حال دا چه د امام شافعي رحمه الله خو په دواړو مسئلو کښې دا حديث خلاف دې صاحب الكوكب الدرى د دې توجيه دا کړې ده چه په دې حديث

(١): سنن الترمذي/الطلاق ٧ (١١٨٢)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٣٠ (٢٠٨٠)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٥٥)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطلاق ١٧ (٢٣٤٠) (ضعيف)

کښي دوه اجزاء دي يو طلاق او دويم عدت، د امام ترمذي رحمه الله اشاره على هذا نه صرف جزء ثاني يعنې د عدت د مسئلې نه دې چه په دې کښې چه په دې کښې د ټولو په نزد د زنانه حالت لره اعتبار دې ګيني د طلاق مسئله کښې خو د علماء کرامو اختلاف دې د شوافعو په نزد وغيره... الطلاق بالرجال وعندنا الحنفية الطلاق بالنساء اهـ په دې توجيه سره څومره په يعنې اعتراض کښې کمې راغلو خو بيا ئې هم اشکال باقی دې [1] ځکه چه د وينزې عدت اگر چه بالاتفاق دوه قرء دې خو د قرء مصداق د شوافعو په نزد طهر دې نه حيض او دلته حديث کښې د حيض تصريح يعنې وضاحت دې ، والله تعالى اعلم... وحديث عائشة هذا اخرجه البيهقي والدراقطني وابن ماجة والحاكم وصححه الترمذي. اهـ منهل.

## بَابٌ فِي الطَّلَاقِ قَبْلَ النِّكَاحِ

### باب د نکاح نه مخکښې د طلاق ورکولو بيان

[۲۱۹۰] [2] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ، قَالَا: حَدَّثَنَا مَطَرٌ الْوَرَّاقُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا طَلَاقَ إِلَّا فِيمَا تَمْلِكُ، وَلَا عِتْقَ إِلَّا فِيمَا تَمْلِكُ، وَلَا بَيْعَ إِلَّا فِيمَا تَمْلِكُ"، زَادَ ابْنُ الصَّبَّاحِ: "وَلَا وَفَاءَ نَذْرٍ إِلَّا فِيمَا تَمْلِكُ".

**ترجمه:** عمرو بن شعيب د خپل پلار نه هغه دده د نيکه نه عبد روايت کوی فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی طلاق هغې ښځې ته ورکول کيدې شی دکومې چه ته مالك ئې اوهمدارنګی ازادول هم په هغه مملوك کښې کيدې شی دکوم چه ته مالك ئې. ابن الصباح په روايت کښې دومره زياتی ده چی ستا په ذمه هغه پوره کول دی دکومې چې ته قدرت لرې، ابن الصباح زياتی دا وئيلی دی چه: اونذر پوره کول ضروری نه دی کله چه دقدرت نه بهر وي.

### د حديث په شرح کښې مذاهب ائمه مفصلا:

د دې حديث صرف اول جزء د دې باب سره متعلق دې، يعنې طلاق قبل النکاح، الا فيما تملك کښې د ملك نه ملك متعه مراد دې کوم چه د نکاح په ذريعه سره حاصليږی پس مطلب هم دا شو چه طلاق قبل النکاح يعنې دنکاح نه وړاندې معتبر نه دې، مسئله اختلافی ده، شوافع او حنابله هم دا وائی، احناف وائی چه د طلاق قبل النکاح دوه صورتونه دی.

---

[1] د دې اشکال جواب په څه درجه کښې دا هم کيدې شی چه په اصل کښې د امام ترمذي رحمه الله معمول تقريبا هر ځائې کښې دا دې چه هغه د احنافو، شافعيه وغيره ټولو مذاهبو بيانوی او ډير کرته د دويمې ډلې د دليل طرف ته اشاره هم کوی چه کله دلته مصنف دا حديث ذکر کړو کوم چه د احنافو موافق او د شوافعو خلاف دې نو د مصنف ذهن د شوافعو د دليل طرف ته لاړو خو تر اوسه پورې ئې هغه دليل په ذهن کښې وو خو د ليکلو موقع ئې نه وه راغلې چه د هغې طرف ته مصنف اشاره کولو سره اوفرمائيل (والعمل على هذا عند اهل العلم الخ) امام ترمذي چه کله د حديث الباب د ذکر کولو نه پس (والعمل على هذا) فرمائي په هغې کښې ئې اکثر ځايونو کښې ډير د توسع نه کار اخستلې دې، ډيرځله د هغې د حديث الباب سره تعلق نه وی بلکه د جانب مخالف د دليل سره ئې تعلق وی. کما لا يخفي على من امعن النظر في كتابه. ۱۲)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷۳۶، ۸۸۰٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۹/۲، ۱۹۰)، سنن الترمذي/الطلاق ٦ (۱۱۸۱)، ق ۱۷ (۲۰٤۷) (حسن)

۱: چه پردئ ښځې ته اوائي انت طالق ۲: يوې زنانه ته اوائي چه ان نكحتك فانت طالق، يعنى كه چرته تاسره مې نكاح اوكړه نو ته دې طلاق ئې يعنى نكاح خو اګر چه تر اوسه پورې نه ده شوې خو طلاق ئې معلق کړو اضافة الى النكاح سره، اول صورت زمونږ په نزد هم باطل دې او احناف حديث لره هم په دې باندې محمول کوى، دويم تعبير د دې داسې هم کولې شي چه د تطليق دوه صورتونه دى تنجيزاً او تعليقايعنى فوراً او مشروط كول، په حديث كښې د اول نفى ده چه فى الواقع طلاق قبل النكاح يعنى واقع كيدل وړاندې دنكاح هم هغه دې نه ثانى ځكه چه په دې كښې طلاق قبل النكاح چرته دې. د امام مالک رائې هم دا ده خو زمونږ او د هغوى په مسلک کښې فرق دې هغه وايى چه اضافة الى النكاح په صورت كښې د طلاق د واقع كديو دپاره دا هم شرط دې چه په دې كښې عموم نه وى بلكه څه قسم تخصيص وى مثلاً يوې زنانه ته خطاب کولو سره اوائي چه ﴿ان نكحتك فانت طالق﴾ يا د يو ښهر يا قبيلې نوم اخستلو سره اوائي چه د فلانى ښهر يا قبيلې زنانه سره نكاح اوكړم نو هغه دې طلاقه وى يا د زمانې لحاظ سره تخصيص اوكړى چه ان نكحت اليوم فهى طالق، كه ما چرته نكاح اوكړه نو هغه دې طلاقه وى او كه عموم وى لكه ﴿ايما امراءة نكحتها فهى طالق ﴾ هريوه زنانه چې زه ئې په نكاح واخلم هغه دې طلاقه وى دا باطل دې ځكه چه په دې صورت كښې هغه د خپل ځان دپاره د نكاح دروازه بالكل بنده کړې ده كومه چه د شارع د مرضئ بالكل خلاف ده، د احنافو په نزد دا د تخصيص قيد نشته په تعميم او تخصيص دواړو صورتونو كښې د هغه دا كلام معتبر دې، په بذل المجهود كښې ليكلې دى چه ومذهبنا مروى عن عمرو بن مسعود وابن عمر. اهـ

وړاندې په حديث كښې د عتق مسئله ذكر شوې ده په هغې كښې د احنافو او شوافعو هم دا اختلاف دې خو امام احمد [1] د عتق په مسئله كښې د احنافو سره دې، او د طلاق په مسئله كښې د شوافعو سره دې، بيا په حديث كښې د دې نه روستو د بيع مسئله مذكور ده چه ملک د غير بيع جائز نه دې، كوم ته چه بيع فضولى وئيلې شى، د احنافو او مالكيانو په نزد د نفى جواز تعلق بيع بات يعنى قطع بيع نه دې ګينې بيع موقوفا على اجازة المالک صحيح ده، د مالكيانو په نزد خو بيع او شراء دواړه جائز دى او د احنافو په نزد صرف بيع جائز ده نه شراء، او د امام شافعى په قول جديد كښې بيع فضولى ناجائز ده او قول قديم كښې جائز ده ورجح النووى. په حاشيه د كوكب كښې دى چه ابن الهمام د امام مالک او احمد دواړو لره د احنافو نه شمار کړې دې. اهـ خو په نيل المآرب او الروض المربع (فى فقه الحنابله) كښې د عدم جواز تصريح ده، د احنافو دليل د حكيم بن حزام د شراء اضحيه قصه ده (وسياتى فى البيوع) د دې نه پس په حديث كښې د نذر مسئله ده كه نذر فيما لا يملک تنجيزا يعنى نذر په هغه څه چې فورا مالک نه جوړيږى نو بيا خو بالاتفاق

[1] په دې كښې د هغه نه درې روايتونه دى، يو د احنافو په شان، يو د شوافعو په شان او دريم الفرق بين الطلاق والعتق ورجح الموفق الرواية الثانية، والخرقي لرواية الثالثة اهـ من الابواب والتراجم ۲۶۳/۵)

باطل دي او که تعليقا دې په اضافة الى الملک سره په دې کښې هم هغه مذاهب دی کوم چه په مسئله د طلاق کښې تیر شو (کذا فی الابواب والتراجم ۱۹۷/۶، وص ۲۰۱)

قال المنذری واخرجه الترمذی وابن ماجة بنحوه الی اخر ما قال.

[۲۱۹۱](1)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ كَثِيرٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، زَادَ: "مَنْ حَلَفَ عَلَى مَعْصِيَةٍ فَلَا يَمِينَ لَهُ، وَمَنْ حَلَفَ عَلَى قَطِيعَةِ رَحِمٍ فَلَا يَمِينَ لَهُ".

**ترجمه:** دعمرو بن شعيب نه دتير شوی روايت په شان روايت من نقل شوي دي مگر په دې کښې دا اضافه ده چه که څوك دګناه په کارباندې قسم اوکړی نودده قسم نه کيږی او څوك چه درشتې د ختمولو قسم اوکړی نودده قسم هم نه کيږي.

**تشریح:** ﴿ ومن حلف على معصية فلا يمين له ﴾ د احنافو په نزد په دې کښې کفاره واجب ده که مطلق يمين وی يا په طريق د نذر وی، خطابی د شوافعو مسلک دا ليکلې دي چه که مطلق يمين وی نو بيا خو به کفاره وی، او که د نذر صورت وی نو بيا په دې کښې کفاره واجب نه ده ځکه چه نذر معصيت نه منعقد کيږی، اهـ د نذر معصيت مسئله مشهور اختلافی مسئله ده چه د دې پوره کول خو د چا په نزد هم جائز نه دی اوس دا چه کفاره هم واجب ده يا نه؟ په دې کښې د احنافو مسلک دا دې چه نذر معصيت خو منعقد کيږی خو د دې ايفاء جائز نه ده لهذا کفاره واجب ده او هم دا يو روايت د امام احمد نه دې او د شوافعو او مالکيانو په نزد کفاره واجب نه ده، کذا فی المغنی وفيه وعن احمد ما يدل على انه لا كفارة عليه. اهـ د مغنی نه معلومه شوه چه په دې کښې امام احمد دوه روايتونه دی خو په نيل المارب او الروض المربع کښې د وجوب کفاره تصريح ده، دويم روايت ئې نه دې ذکر کړې.

[۲۱۹۲](2)حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَالِمٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ الْمَخْزُومِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي هَذَا الْخَبَرِ: زَادَ: "وَلَا نَذْرَ إِلَّا فِيمَا ابْتُغِيَ بِهِ وَجْهُ اللَّهِ تَعَالَى ذِكْرُهُ".

**ترجمه:** عمرو بن شعيب دخپل پلارنه هغه دده دنيکه نه روايت کوی فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی دپورتنی حديث په شان البته په دې کښې دا اضافه ده چه نذرنه صحيح کيږی مگر په هغه کارکښې په کوم چه الله تعالی رضا کيږی (يعنی دګناه د کارنذرمنل جائز نه دی).

## بَابُ الطَّلَاقِ عَلَى غَيْظٍ

### باب د غصې په حالت کښې د طلاق ورکولو بيان

اکثر نسخو کښې په ځائې د غلط غيظ دې، او د حديث الباب تقاضه هم دا ده، او يو شارح دغلط تفسير داکړې دې چه په داسې حالت کښې دغلطئ امکان وی يعنی فی حال الغضب. طلاق فی حال الغضب عند الجمهور واقع دې امام احمد فی رواية نه واقع کيږی، په ظاهره کښې د مصنف ميلان هم دې طرف ته دې.

(1): سنن لبن ماجه/الطلاق ۱۷ (۲۰٤۷)، (تحفة الأشراف: ۸۷۳٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۵/۲) (حسن)

(2): انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ۸۷۳٦)، ويأتي هذا الحديث في الأيمان برقم: (۳۲۷۳) (حسن)

[۲۱۹۳]([1])حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ سَعْدٍ الزُّهْرِيُّ، أَنَّ يَعْقُوبَ بْنَ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ الْحِمْصِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُبَيْدِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ الَّذِي كَانَ يَسْكُنُ إِيلِيَا، قَالَ: خَرَجْتُ مَعَ عَدِيِّ بْنِ عَدِيٍّ الْكِنْدِيِّ حَتَّى قَدِمْنَا مَكَّةَ فَبَعَثَنِي إِلَى صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ وَكَانَتْ قَدْ حَفِظَتْ مِنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ، تَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا طَلَاقَ وَلَا عَتَاقَ فِي غِلَاقٍ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: الْغِلَاقُ أَظُنُّهُ فِي الْغَضَبِ.

**ترجمه**: محمد بن عبید بن ابوصالح (چه په ایلیاء کښې اوسیدو) وائی چه: زه د عدی بن عدی کندی سره اووتلم تردې چه زه مکې ته راغلم نو هغوی زه صفیه بنت شیبه ته اولیږلم، هغوی د ام المؤمنین عائشه رضي الله عنها نه احادیث یاد کړی وو، هغه وائی: ما دعائشې رضي الله عنها نه واؤریدل چه ما د رسول الله ﷺ نه واؤریدل چه: د زبردستئ په صورت کښې به د طلاق ورکولو او آزادولو اعتبار نه وی،، ابوداؤد وائی: زما خیال دې چه د غلاق مطلب غصه ده.

**تشریح**: قوله: ﴿لا طلاق ولا عتاق فی اغلاق﴾ یعنی نشته دې نه آزادول او نه طلاق په غصه کښې مصنف د اغلاق تفسیر په غضب سره کړې دې چه د امام احمد نه هم دا تفسیر منقول دې. په دې باندې دا نقد کړې شوې دې چه طلاق خو د غضب په بناء ورکولې شی چه د امام احمد نه هم دا تفسیر منقول دې، په دې باندې دا نقد کړې شوې دې چه طلاق خو د غصې په وجه باندې ورکولې شی، د دې مطلب خو دا شو چه هیڅ قسم طلاق هم واقع نه شی خو اکثر علماء د دې تفسیر په اکراه سره یعنی زبردستی سره کړې دې او په لیونتوب سره هم کړې شوې دې.

### طلاق مکره کښې اختلاف ائمه:

بیا په طلاق مکره کښې هم اختلاف دې د احنافو په نزد واقع کیږی، د ائمه ثلاثه په نزد نه واقع کیږی، لحدیث رفع عن امتی الخطاء والنسیان وما استکرهوا علیه، د احنافو استدلال د عمومات نصوص نه دې کقوله عليه السلام کل طلاق جائز الا الطلاق الصبی والمعتوه. او دلیل عقلی دا دې چه د اکراه په صورت کښې د زوج د طرف نه ایقاع طلاق خو بهرحال موندلې شی اګر چه طبعی رضا ئې نه ده او د رضا موندلې کیدل د طلاق دپاره شرط نه دی کما فی الهازل (بذل)
قال المنذری والحدیث اخرجه ابن ماجة وفی اسناده محمد بن عبید بن ابی صالح وهو ضعیف. اهـ (عون) زاد فی المنهل احمد والبیهقی والحاکم وقال صحیح علی شرط مسلم ورد بان فی سنده محمد بن عبید بن ابی صالح. اهـ

## بَابُ الطَّلَاقِ عَلَى الْهَزْلِ

### باب: په ټوقو ټوقو کښې د طلاق ورکولو بیان

[۲۱۹۴]([2])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَبِيبٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ ابْنِ مَاهَكَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "ثَلَاثٌ جِدُّهُنَّ جِدٌّ وَهَزْلُهُنَّ جِدٌّ:

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٨٥٥)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطلاق ١٦ (٢٠٤٦)، مسند احمد (٦/٢٧٦) (حسن)
[2]: سنن الترمذي/الطلاق ٩ (١١٨٤)، سنن ابن ماجه/الطلاق ١٣ (٢٠٣٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٥٤) (حسن)

النِّكَاحُ وَالطَّلاَقُ وَالرَّجْعَةُ".

**ترجمه:** دابوهریره نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دری څیزونه داسې دی چه په توقه کښې یاپه رشتیاسره اوکړې شی نوهغه درست دی یونکاح دویم طلاق دریم رجعت.

**تشریح:** ﴿ثلاث جدهن جد وهزلهن جد﴾ طلاق هازل یعنی په توقه کښې په اتفاق سره واقع دې پس امام ترمذی د دې حدیث نه پس فرمائی چه ﴿والعمل علی هذا عند اهل العلم من اصحاب النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وغیرهم اه﴾ په بذل المجهود کښې د علامه شوکانی نه د طلاق په مسئله کښې د امام احمد او امام مالک اختلاف نقل کړې دې چه د هغوی په نزد طلاق هازل نه واقع کیږی، خو دا خبره صحیح نه ده، د ائمه اربعه په نزد په دې مسئله کښې هیڅ اختلاف نشته، پس خپله په بذل المجهود کښې وړاندې تلو سره د قاضی عیاض نه په دې کښې د علماء کرامو اتفاق نقل کړې دې، حضرت شیخ هم په حاشیه بذل کښې په دې باندې تنبیه فرمائیلې ده. والحدیث اخرجه ابن ماجه والترمذی والحاکم وصححه اه ملخصا من المنهل.

## بَاب بَقِيَّةِ نَسْخِ الْمُرَاجَعَةِ بَعْدَ التَّطْلِيقَاتِ الثَّلاَثِ

### د طلاق ثلاثه نه پس د رجعت د منسوخ کیدو بیان

د دې مضمون باب د دې نه مخکښې هم تیر شوې دی هم په دې وجه مصنف دلته لفظ د بقیه زیاتوالې فرمائیلې ده.

خو په دې باب کښې او تیر باب کښې فرق دې هغه دا چه په تیر شوی باب کښې خو دا بیان کول پکار دی چه په زمانه جاهلیت کښې په طلاق کښې حد نې نه وو یعنی په دریو کښې د دې انحصار نه وو د درې نه په زیات کښې د طلاق ورکولو باوجود زوج د خپلې ښځې نه په عدت کښې دننه رجوع کولې شوه، اسلام راتلو سره دا د جاهلیت طریقه ختمه کړه، او په دې دویم باب سره مقصود دا دې چه ابتداء اسلام کښې طلقات ثلاث یو طلاق شمار کیږی یعنی که یو سړې دفعة درې طلاقونه ورکړی نو هغه درې واړه نه واقع کیږی بلکه صرف یو واقع کیږی، روستو دا منسوخ شوه او درې واړه به شمارلې شی.

### د طلاق ثلاث په وقوع او عدم وقوع باندې مفصل بحث:

د جمهور علماء او ائمه اربعه مسلک دا دې چه اگر چه ائمه په دې کښې خو اختلاف دې چه دفعة درې طلاقه ورکول د سنت خلاف دی یا نه؟ خو په وقوع کښې هیڅ اختلاف نشته البته د بعض نورو علماء کرامو په دې کښې اختلاف دې. ۱: لا یقع اصلا عند الرافضة وبعض الظاهریة وعند بعضهم لا یقع کل طلاق منهی عنه کطلاق الحائض. ۲: یقع واحد رجعی عند عکرمة وغیره ونسب الی ابن عباس. ۳: للمدخول بها ثلاث ولغیرها واحدة بائنة عند اسحاق بن راهویة.

د دې اختلافاتو وجه دوه روایتونه دی. ۱: قصه طلاق رکانة کوم چه په دې باب کښې اولنې حدیث دې. ۲: حدیث ابن عباس کوم چه حکما مرفوع دې، او هم د دې باب په اخر کښې راروان دې، په هر یو روایت باندې کلام وړاندې راروان دې.

[۲۱۹۵]( )حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ سورة البقرة آية ۲۲۸ الْآيَةَ، وَذَلِكَ أَنَّ الرَّجُلَ كَانَ إِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ، فَهُوَ أَحَقُّ بِرَجْعَتِهَا، وَإِنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا فَنُسِخَ ذَلِكَ، وَقَالَ: الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ سورة البقرة آية ۲۲۹".

**ترجمه**: عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وائی: د الله فرمان دي: «والمطلقات يتربصن بأنفسهن ثلاثة قروء ولا يحل لهن أن يكتمن ما خلق الله في أرحامهن» " او کومو ښځو ته چه طلاق ورکړې شوي دي هغوی دي درې حيضو پورې انتظار اوکړی اوهغوی دپاره حلال نه دی چه الله تعالی دهغوی په رحم کښې کوم څه پيدا کړی دی هغه پټ کړی" (سورة البقرة: ۲۲۸) دا په دې وجه چه کله به سړې خپلې ښځې ته طلاق ورکولو نو د رجعت به هغه زيات حقدار وو اګرچه هغه به درې طلاقه ورکړی وو، نو دا منسوخ کړې شو او ارشاد اوشو: «الطلاق مرتان» يعنی د طلاق اختيار صرف دوه ځله دي.

[۲۱۹۶]( )حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي بَعْضُ بَنِي أَبِي رَافِعٍ مَوْلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنْ عِكْرِمَةَ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: طَلَّقَ عَبْدُ يَزِيدَ أَبُو رُكَانَةَ وَإِخْوَتِهِ أُمَّ رُكَانَةَ وَنَكَحَ امْرَأَةً مِنْ مُزَيْنَةَ، فَجَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: مَا يُغْنِي عَنِّي إِلَّا كَمَا تُغْنِي هَذِهِ الشَّعْرَةُ لِشَعْرَةٍ أَخَذَتْهَا مِنْ رَأْسِهَا فَفَرِّقْ بَيْنِي وَبَيْنَهُ، فَأَخَذَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَمِيَّةٌ فَدَعَا بِرُكَانَةَ وَإِخْوَتِهِ، ثُمَّ قَالَ لِجُلَسَائِهِ: "أَتَرَوْنَ فُلَانًا يُشْبِهُ مِنْهُ كَذَا وَكَذَا مِنْ عَبْدِ يَزِيدَ، وَفُلَانًا يُشْبِهُ مِنْهُ كَذَا وَكَذَا؟" قَالُوا: نَعَمْ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَبْدِ يَزِيدَ: "طَلِّقْهَا"، فَفَعَلَ، ثُمَّ قَالَ: "رَاجِعِ امْرَأَتَكَ أُمَّ رُكَانَةَ وَإِخْوَتِهِ"، فَقَالَ: إِنِّي طَلَّقْتُهَا ثَلَاثًا يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "قَدْ عَلِمْتُ، رَاجِعْهَا"، وَتَلَا: يَأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ سورة الطلاق آية ۱". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ نَافِعِ بْنِ عُجَيْرٍ وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ يَزِيدَ بْنِ رُكَانَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رُكَانَةَ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ الْبَتَّةَ، فَرَدَّهَا إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَحُّ، لِأَنَّ وَلَدَ الرَّجُلِ وَأَهْلَهُ أَعْلَمُ بِهِ إِنَّ رُكَانَةَ، إِنَّمَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ الْبَتَّةَ، فَجَعَلَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاحِدَةً.

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه عبد يزيد څوك چه درکانه پلار دې خپلې ښځې ام رکانه ته طلاق ورکړو اودمزينه قبيلې ديوزنانه سره ئې نکاح وکړه هغه زنانه دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضره شوه اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله ابورکانه زما دکار سړې نه دې هغه نه دې مګر دويخته په شان دې اودخپل سرنه ئې يوويختنه وويستلونبی عليه السلام چه دا واوريدل نوخفه شو اورکانه اودهغه رونړه ئې را اوغوښتل اياتاسوفلانئ فلانئ جينئ وينئ دابورکانه سره څومره مشابهت لری؟هغوی ووئيل هو نبی عليه السلام اوفرمائيل ته دې ښځې ته طلاق ورکړه نوهغه ورته طلاق ورکړل نبی عليه السلام اوفرمائيل چه ام رکانه اودهغې رونړوته رجعت اوکړه، ابورکانه عرض اوکړو اې دالله رسوله ما ورته درې طلاق ورکړې دې ماته پته ده څوته ورته رجعت اوکړه او ددې نه پس ئې دا ايت تلاوت کړو: «يا أيها النبي إذا

( ): سنن النسائي/الطلاق ٥٤ (٣٥٢٩)، ٧٥ (٣٥٨٤)، (تحفة الأشراف: ٦٢٥٣) ويأتي هذا الحديث برقم (٢٢٨٢) (حسن صحيح)

( ): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٦٢٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٦٥) (عنده «داود بن حصين» مكان «بعض بني أبي رافع» (حسن)

طلقتم النساء فطلقوهن لعدتهن» (سورة الطلاق: ۱)) امام ابوداود فرمائی چه دا روایت نافع بن عجیر دعبدالله بن علی بن یزید بن رکانه اوهغه دخپل پلارنه بیان کړې دې هغه دده دنیکه نه نقل کړی دی چه رکانه خپلې ښځې ته طلاق ورکړل اونبی علیه السلام ورته هغه ښځه بیا ور واپس کړه اوداقول اصح دې چونکه اولاد او اهل رکانه به ددې واقعې نه ښه واقف وې ځکه چه هغه خپلې ښځې ته درې طلاق ورکړې ووا و نبی علیه السلام هغه یوطلاق حساب کړو.

**تشریح:** ﴿ عن ابن عباس قال طلق عبد یزید ابو رکانة واخوته ﴾ یعنی عبد یزید کوم چه د رکانه او د هغه د نورو رونړو پلار دې (عبد یزید د یو سړی نوم دې اضافی معنی مراد نه ده) او د ابو رکانه دا کنیت نه دې بلکه اضافی معنی مراد ده) حاصل دا دې چه عبد یزید کوم چه صاحب اولاد سړې وو هغه خپلې ښځې ام رکانة [۱] ته طلاق ورکړو او د هغې نه روستو ئې د قبیله مزینه د یوې زنانه سره واده اوکړو، د هغې نه روستو داسې اوشوه چه هغه نوې ښځې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلو او د خپل خاوند عبد یزید شکایت ئې اوکړو چه هغه زما د کار نه دې، نامرده دې (حال دا چه د هغه صاحب اولاد کیدل مخکښې معلوم شو) رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د هغې په خبره باندې ډیر غیرت او غصه راغله، پس رسول الله صلی الله علیه وسلم د عبد یزید اولاد رکانه وغیره لره راوبلل او د حاضرین مجلس په وړاندې تپوس اوکړو چه دا اوګوره دا د خپل پلار سره په دې ځیز کښې مشابه دې او دې په دې ځیز کښې مشابه دې (مطلب دا چه د مشاهدې نه معلومیږی چه دا ټول فی الواقع د عبد یزید ځامن دی، لهذا دا زنانه په خپله دعوی کښې دروغژنه ده) بهرحال رسول الله صلی الله علیه وسلم عبد یزید ته اوفرمائیل چه دې زنانه ته طلاق ورکړه هغه دې ته طلاق ورکړو هغه عبد یزید ته اوفرمائیل چه اوس ته خپلې سابقه ښځې ته رجوع اوکړه، عبد یزید عرض اوکړو چه ما خو هغې ته درې طلاقه ورکړې دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ماته معلومه ده بیا هم ته هغې ته رجوع اوکړه.

وړاندې اوس امام ابوداود د دې روایت په باره کښې تحقیق ذکر کوی ﴿قال ابوداود وحدیث نافع بن عجیر وعبدالله بن علی بن یزید بن رکانة عن ابیه عن جده الخ ﴾ د دې حدیث د کومو طریقه طرف ته چه مصنف اشاره فرمائیلې ده هغه په راروان باب کښې یقینا راځی، مصنف رحمه الله دلته دوه خبرې کړې دی اول دا چه دا قصه طلاق د عبد یزید سره متعلق نه دې بلکه د هغه ځوئې رکانة دې، بله خبره چه په دې قصه کښې درې طلاقه نه وو بلکه طلاق بته وو، او بیا د دې دواړو خبرو دلیل دا بیان فرمائیلې دې لانهم ولد الرجل واهله... یعنی زه چه وایم هغه په دې وجه اصح دې چه دغه شان بیانونولو والا د صاحب واقعه اهل او د هغه اولاد دې اوظاهره خبره ده چه دانسان کوروالا دهغه خبره زیاته پیژندلو والادې په نسبت د نورو خلقو.

زه وائم هم په دې وجه مصنف وړاندې په باب فی البتة کښې دا قصه دوباره ذکر کړې ده، هم دغه شان امام ترمذی رحمه الله هم دا حدیث من طریق عبدالله بن علی بن یزید بن رکانة په باب فی البتة کښې ذکر فرمائیلې دې، معلومه شوه چه امام ابوداود او امام ترمذی دواړو حضراتو تحقیق کښې دا قصه د طلاق بته ده د طلاق ثلاث نه ده، هم دغه شان امام بیهقی

[۱] قیل اسمها عجلة بنت عجلان)

۳۳۹/۷ هم د دې قصې تخريج کړي دې او بيا اخر کښې هغوی دا هم وئيلې دی چه صحيح هم دا ده چه رکانة طلاق واحده ورکړې وو ځکه چه اولاد رکانة د رکانة نه هم داسې روايت کړې دې. والحديث اخرجه النسائي وفي اسناده علي بن حسين بن واقد وفيه مقال. اهـ عون

مونږ د باب په شروع کښې وئيلې وو چه کوم خلق طلاق ثلاثه ته يو وائی د هغوی د دې قول مطلب دوه روايتونه دی يو قصه رکانة، د قصه رکانة خو دا جواب شو، دويمه وجه د دې حديث ابن عباس دې، کوم چه وړاندې په کتاب کښې داسې راروان دې.

(¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَرْوَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ، عَنْ طَاوُسٍ، أَنَّ رَجُلًا يُقَالُ لَهُ: أَبُو الصَّهْبَاءِ، كَانَ كَثِيرَ السُّؤَالِ لِابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ الرَّجُلَ كَانَ إِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، جَعَلُوهَا وَاحِدَةً عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَصَدْرًا مِنْ إِمَارَةِ عُمَرَ؟" قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: "بَلَى، كَانَ الرَّجُلُ إِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، جَعَلُوهَا وَاحِدَةً عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَصَدْرًا مِنْ إِمَارَةِ عُمَرَ، فَلَمَّا رَأَى النَّاسَ قَدْ تَتَابَعُوا فِيهَا، قَالَ: أَجِيزُوهُنَّ عَلَيْهِمْ".

**ترجمه:** طاوس ديو سړي نه روايت کوی څوک چه په ابو الصهباء باندې يادېږی، او وئيلې شوی دی چه ده به دابن عباس نه ډير تپوسونه کول دې وائی اياتاته پته نشته کله چه به يو سړې خپلې ښځې ته درې طلاق ورکړل مخکښې ددخول نه نوصحابه کرامو به دغه يو طلاق ګرځولو (يعنی دنبی عليه السلام په زمانه کښې به يو طلاق ګڼل شود ابوبکرصديق رضي الله عنه په دور کښې اودعمر فاروق ددور په شروع کښې هم، ابن عباس رضي الله عنه اووئيل. کله چه به يو سړې خپلې ښځې ته مخکښې ددخول نه درې طلاق ورکړل نو هغه به يو طلاق شماريدو نبی عليه السلام اوصديق اکبرنه اودعمرفاروق رضي الله عنه دابتدائی دور پورې کله چه فاروق اعظم اوليدل چه خلقو طلاق ورکول زيات کړل نووئې فرمائيل چه زه دادرې واړه په دوی باندې نافذوم

## توضيح الحديث

قوله: عَنْ طَاوُسٍ، أَنَّ رَجُلًا يُقَالُ لَهُ: أَبُو الصَّهْبَاءِ، كَانَ كَثِيرَ السُّؤَالِ لِابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ الرَّجُلَ كَانَ إِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، جَعَلُوهَا وَاحِدَةً:

د ابن عباس په دې روايت کښې دی چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه کښې چه به کوم سړي غير مدخول بها ته درې طلاقه ورکول نو هغه به يو شمار کيدل، د صديق اکبر په زمانه کښې به هم داسې کيدل او د خلافت فاروقی په شروع کښې هم داسې کيدل بيا روستو چه کله عمر رضي الله عنه اوکتل چه خلق مسلسل طلاقونه ورکوی (په طلاق ورکولو کښې جری شو) نو هغوی درې طلاقونه نافذ کړل

د دې حديث چه څومره حصه مرفوع ده هغه خو هم دا ده چه طلاق ثلاث به يو شمار کيدلو، او د ابن عباس رضي الله عنه په دې طريق کښې دا قيد هم دې چه دا حکم هغه وخت د مدخول بها وو، د دې نه پس دا حديث په يو بل طريق سره راروان دې په هغې کښې د مدخول بها او

¹) داحديث روسته بيا راروان دې په دې وجه دلته نمبر ورنکړې شو مترجم
²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۷۶۳) (ضعيف)

غیر مدخول بها هیڅ تعرض نشته، دا حدیث په صحیح مسلم کښې هم په متعدد طرق سره دې په دې کښې هم د غیر مدخول بها قید نشته.
لهذا یو جواب خو د جمهورو د طرف نه دا کیدې شي چه دا حکم د غیر مدخول بها وو، د دې نه پس ځان پوهه کړه چه غیر مدخول بها ته د طلاق ورکولو درې صورتونه دی. ۱: بکلمة واحدة، انت طالق ثلاثا، په دې صورت کښې خو د ائمه اربعه په نزد درې واړه واقع کیږی. ۲: متفرقا، انت طالق، انت طالق، انت طالق... په دې صورت کښې د جمهورو په نزد صرف یو طلاق واقع کیږی او هم په دې سره بینونة کیږی د دې نه پس بیا هغه زنانه د طلاق محل نه پاتې کیږی په دې وجه روستو کلام لغو کیږی. لهذا د ابن عباس دا حدیث هم په دې صورت باندې محمول دې، بل جواب د دې دا ورکړې شوې دې چه دا حدیث طلاق ثلاث په یو خاص صورت باندې محمول دې هغه دا چه د رسول اللهﷺ په زمانه کښې چه کله یو سړې د خپلې ښځې سره وئیلې وې ﴿انت طالق، انت طالق، انت طالق ﴾او زوج د دې نه تاکید یا تاسیس هیڅ اراده نه وې نو په وجه د دې حضراتو سلامتی صدور د هغه دې کلام لره په تاکید باندې محمول کوی یو طلاق منلې شي، خو بیا روستو د خلقو په احوال یعنی حالاتو کښې چه کله تغیر پیدا شو او په طلاق ورکولو کښې خلق بیباکه شو نو په ځائې د تاکید کښې دې کلام لره په تاسیس باندې محمول کوی درې طلاقونه واقع کیږی، امام نووی رحمه الله په شرح مسلم ص ۴۷۸ کښې هم دا جواب خوښ کړې دې، امام نووی رحمه الله د دې یو جواب دا هم نقل کړې دې چه د ابن عباس مراد تغیر فی الحکم لره بیانول مقصود نه دی بلکه تغیر عادت لره بیانول دی چه په شروع زمانه کښې چه په کوم حالت کښې خلق یو طلاق ورکولو اوس په دې حالت کښې په ځائې د یو درې طلاق ورکوی، هم دا هغوی داسې تعبیر اوفرمائیلو چه د زمانې په شروع کښې درې طلاقه یو طلاقه وو. یعنی د درې په ځائې په یو باندې اکتفاء کولو (نه دا چه د درې ورکولو باوجود هغه یو وو) حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل المجهود کښې د دې حدیث اته توجیهات د شراح حدیث نه نقل کړې دې پورته والا درې په هغوی کښې شامل دی، حضرت ډیرپه تفصیل سره په دې باندې کلام فرمائیلې دې.
د دې نه پس ځان پوهه کړه چه ابن عباس دا حدیث صحاح سته نه صحیح مسلم او سنن ابی داود کښې راغلې دې، امام بیهقی په السنن الکبری ۳۳۷/۷ کښې فرمائی چه دا حدیث د هغه احادیثو نه دې چه په هغې کښې امام بخاری او امام مسلم مختلف دی، امام مسلم د دې تخریج کړې دې، امام بخاری د دې تخریج نه دې کړې چه د هغې وجه ظاهره دا ده چه دا حدیث د ابن عباس د باقی ټولو روایاتو نه خلاف دې (یعنی د هغه د فتوې خلاف دې) او بیا هغه په متعدد طرق سره د ابن عباس رضی الله عنه فتوی د وقوع الثلاث بیان کړې ده، زه وائم هم دا رائې د امام ابوداود ده هغه هم په ډیر طرق سره د ابن عباس فتوی ډیره په زور دار طریقې سره د هغه فیصله وقوع ثلاث په متعدد سندونو سره بیان کړې ده، او په کوم طریق کښې چه وقوع واحده راغلې دې یعنی طریق عکرمه مصنف په هغې کښې اضطراب ثابتولو سره هغه غیر معتبر منلې دې لکه چه وړاندې د هغې تفصیل راروان دې.

[۲۱۹۷](1) حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ، فَجَاءَ رَجُلٌ، فَقَالَ: إِنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا، قَالَ: فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ رَادُّهَا إِلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: "يَنْطَلِقُ أَحَدُكُمْ فَيَرْكَبُ الْحُمُوقَةَ، ثُمَّ يَقُولُ: يَا ابْنَ عَبَّاسٍ، يَا ابْنَ عَبَّاسٍ، وَإِنَّ اللهَ قَالَ: وَمَنْ يَتَّقِ اللهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا سورة الطلاق آية ۲، وَإِنَّكَ لَمْ تَتَّقِ اللهَ، فَلَمْ أَجِدْ لَكَ مَخْرَجًا، عَصَيْتَ رَبَّكَ وَبَانَتْ مِنْكَ امْرَأَتُكَ، وَإِنَّ اللهَ قَالَ: يَأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ سورة الطلاق آية ۱ فِي قُبُلِ عِدَّتِهِنَّ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ حُمَيْدٌ الْأَعْرَجُ وَغَيْرُهُ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ. وَرَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَيُّوبُ، وَابْنُ جُرَيْجٍ، جَمِيعًا عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ. وَرَوَاهُ الْأَعْمَشُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، كُلُّهُمْ قَالُوا فِي الطَّلَاقِ الثَّلَاثِ: "أَنَّهُ أَجَازَهَا"، قَالَ: "وَبَانَتْ مِنْكَ" نَحْوَ حَدِيثِ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ كَثِيرٍ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَى حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، "إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ، ثَلَاثًا بِفَمٍ وَاحِدٍ، فَهِيَ وَاحِدَةٌ". وَرَوَاهُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ هَذَا قَوْلُهُ، لَمْ يَذْكُرِ ابْنَ عَبَّاسٍ، وَجَعَلَهُ قَوْلَ عِكْرِمَةَ.

**ترجمه:** د مجاهد نه روایت دي فرمائي چه زه دابن عباس رضي الله عنهما سره موجود وم یوکس دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئي اوکړو چه ما په یوځل باندې خپلې ښځې ته درې طلاق ورکړي دی ابن عباس چه دا واوریدل نوخاموش شودده دخاموشی نه ما دا وګنړل چه عبدالله بن عباس دې سړي ته دا ښځه واپس کوي یعنی د رجعت خبره به ورته کوي، بیا هغه اوونیل په تاسوکښې چه یوکس پاځي اوپه حماقت باندې سورشي اوبیا اوازونه کوي اي ابن عباس اي ابن عباس (یعنی ددې مشکل نه نجات تدبیر وښایه) الله تعالی فرمائی څوك چه دالله نه ویریږي نوهغه به د مشکلاتونه وویستلی شي خو تاسو دالله نه نهٔ ویریږئ (چه درې طلاقه په یوځائې ورکوئ زماسره ستادپاره هیڅ لارنشته چه درته ئې وښایم تادالله تعالی نافرمانی کړې ده ستا ښځه ستانه جداشوله الله تعالی فرمائي: (یاایها النبی اذا طلقتم النساء ..الخ) یعنی اې خلقو کله چه تاسو خپلو ښځولره طلاق ورکوئ نودعدت په شروع کښې ورکوئ. حمید دشعبه نه اوهغه دایوب نه هغه دابن جریج نه اوهغه دابن عباس نه ددې روایت په شان روایت نقل کړې دې، اوحماد بن زید هم دابن عباس رضي الله عنه نه روایت بیانوي چه کله یوسړي خپلې ښځې ته په یوه ساه کښې اووائی چه ته په درې طلاق طلاقه شوي نو دده په ښځه یوطلاق واقع شو. امام ابوداود وائی حمید الأعرج وغیره دمجاهد او ابن عباس په واسطه نقل کړې دې، او ایوب دابن جریج نه هغه دعکرمه بن خالد نه اوهغه دسعید بن زبیرنه اوهغه دابن عباس نه هم داسې روایت بیان کړې دې او ابن جریج دعبدالحمید بن رافع نه اوهغه دابن عباس نه، اعمش دمالك بن حارث نه اوهغه دابن عباس نه، ابن جریج دعمرو بن دینار نه اوهغه دابن عباس نه ټولو راویانو روایت بیان کړې دې چه په یوه ساه کښې درې طلاقو ورکولوسره درې واړه طلاق واقع کیږي اوفرمائیلي ئې دي چه ښځه دې درنه جداشوه. لکه څنګه چه اسماعیل دایوب نه اوهغه دعبدالله بن کثیر نه

(1): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ٦٤٠١)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/التفسير (١١٦٠٢) (صحيح)

بیان کړې دي، امام ابوداود فرمائي حماد بن زيد دايوب نه اوهغه دعکرمه نه اوهغه دابن عباس نه هم روايت بيان کړې دي ليکن ددې روايت مضمون داسې دی چه په يوه ساه کښې په درې طلاقو ورکولوسره يو طلاق واقع کيږي، او اسماعيل بن ابراهيم هم دايوب نه روايت بيان کړې دي چه دعکرمه قول دې په دې کښې دابن عباس ذکرنشته دې امام ابوداود وايي ابن عباس قول په بله صفحه کښې مذکوردې.

[۲۱۹۸] ()وَصَارَقَوْلُ وَصَارَقَوْلُ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيمَا حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، وَهَذَا حَدِيثُ أَحْمَدَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَمُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِيَاسٍ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ، وَأَبَا هُرَيْرَةَ، وَعَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ سُئِلُوا عَنِ الْبِكْرِ يُطَلِّقُهَا زَوْجُهَا ثَلَاثًا، فَكُلُّهُمْ قَالُوا: "لَا تَحِلُّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى مَالِكٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي عَيَّاشٍ، أَنَّهُ شَهِدَ هَذِهِ الْقِصَّةَ حِينَ جَاءَ مُحَمَّدُ بْنُ إِيَاسِ بْنِ الْبُكَيْرِ إِلَى ابْنِ الزُّبَيْرِ وَعَاصِمِ بْنِ عُمَرَ، فَسَأَلَهُمَا عَنْ ذَلِكَ. فَقَالَا: اذْهَبْ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ، فَإِنِّي تَرَكْتُهُمَا عِنْدَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، ثُمَّ سَاقَ هَذَا الْخَبَرَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَوْلُ ابْنِ عَبَّاسٍ هُوَ: "أَنَّ الطَّلَاقَ الثَّلَاثَ تَبِينُ مِنْ زَوْجِهَا مَدْخُولًا بِهَا وَغَيْرَ مَدْخُولٍ بِهَا، لَا تَحِلُّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ". هَذَا مِثْلُ خَبَرِ الصَّرْفِ، قَالَ فِيهِ: ثُمَّ إِنَّهُ رَجَعَ عَنْهُ يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** د محمد بن اياس نه روايت دې فرمائي چه دابن عباس اوابوهريرة اوعمروبن العاص رضي الله عنهم نه دپيغلې جينئ متعلق تپوس اوکړې شوچه کله ورته خپل خاوند درې طلاق ورکړی نو دوی ټولو وئيلی دی چه ترهغه پورې خپل خاوند ته نه شي حلاليدې ترڅوچه دې دبل خاوند سره نکاح نه وی (اوبيائي هغه طلاقه کړې او اولنې ئې دوباره په نکاح کړې). امام ابوداود فرمائي داحديث مالك يحيى بن سعيد نه يحيى بن بکير نه او بکير دمعاويه بن أبی عياش نه بيان کړې دې اوهغه په دې واقعه کښې موجود وو په کوم وخت کښې چه کله محمدبن عياش، ابن زبير اوعاصم بن عمرو ته د تپوس دپاره ورغلې ووهغه اووئيل چه ابن عباس او ابوهريره ته لاړ شئ اوما هغوی دام المومنين عائشې (رضي الله عنها) خواته پريخودل باقي روايت ئې تراخره بيان کړو. ابوداؤد وائي: او د ابن عباس رضي الله عنهما دا قول چه درې طلاقو سره ښځه په خپل خاوند باندې بائنه کيږي، که هغې سره ئې دخول شوی وی يا ئې تر اوسه پورې دخول نه وی شوې، اوهغه به دده دپاره ترهغه وخته پورې حلال نه وی چه ترڅو پورې بل چا سره نکاح اونه کړی ددې مثال د «صَرْف» والا حديث په شان دې په هغې کښې دی چه بيا هغوی يعنی ابن عباس رضي الله عنهما ددې نه رجوع اوکړه.

## توضيح الحديث

دا ده هغه فتوی د ابن عباس، کومه چه هغه ډيره په زور او شور او مبالغې سره بيان فرمائي، مجاهد فرمائي چه يوه ورځ زه د ابن عباس سره ناست اوم چه هغه ته يو سړې راغلو او عرض ئې اوکړو چه ما خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړې دی (مطلب ئې دا وو چه د دې حل څه دې)، د هغه په دې سوال باندې هغه خاموش وو، مجاهد فرمائي چه زما دا خيال وو چه کيدې شي د رجوع اجازت به ورکړي. (خو د هغې خلاف اوشوه او د خفګان

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٤٣٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المغازي ١٠ (٣٩٩١ تعليقًا) (صحيح)

اظهار ئې اوفرمائيلو، ورته ئې اوفرمائيل چه په تاسو کښې د بعض حال دا دې چه روان وی او د کم عقل توب په سورلۍ باندې سور شی، او بيا وائی يا ابن عباس يا ابن عباس (اوس ابن عباس څه اوکړی) الله پاک فرمائی ﴿ومن يتق الله يجعل له مخرجا﴾، د نجات لاره خو د هغه سړی دپاره وی کوم چه د الله پاک نه ويره کوی، او تا د تقوی خلاف کار کړې دې لهذا ستا دپاره اوس بالکل کاميابی نشته ستا زوجه ستا نه جدا شوې ده او په هغه باندې طلاق بائن راغلو. ﴿قال ابوداود وهذا الحديث﴾ مصنف دا ثابتول غواړی چه د ابن عباس رضی الله عنه دا فتوی ډيره مشهوره ده د هغه ډير شاګردان د هغه نه روايت کوی پس د مجاهد نه علاوه سعيد بن جبير، عطاء، مالک بن الحارث، عمرو بن دينار دا څلور واړه هم د ابن عباس نه دا روايت کوی. ﴿قال ابوداود روی حماد بن زيد﴾ مصنف فرمائی چه د ابن عباس په شاګردانو کښې صرف عکرمه داسې دې چا چه د دې خلاف نقل کړې دې يعنی دا چه په ﴿انت طالق ثلاثا﴾ سره صرف يو طلاق واقع کيږی، خو مصنف فرمائی چه د عکرمه روايت په دې وجه معتبر نه دې چه د راويانو اختلاف واقع شوې دې، پس بعض راويانو دا ابن عباس ته د رسولو په ځائې خپله دې ته د عکرمه قول وئيلې دې لهذا د عکرمه روايت د تعارض په وجه باندې کالعدم شو. او د ابن عباس فتوی هم دا پاتې شوه چه هغه د وقوع ثلاث قائل دې.

[۲۱۹۹] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَرْوَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ، عَنْ طَاوُسٍ، أَنَّ رَجُلًا يُقَالُ لَهُ: أَبُو الصَّهْبَاءِ، كَانَ كَثِيرَ السُّؤَالِ لِابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ الرَّجُلَ كَانَ إِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، جَعَلُوهَا وَاحِدَةً عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَصَدْرًا مِنْ إِمَارَةِ عُمَرَ؟" قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: "بَلَى، كَانَ الرَّجُلُ إِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، جَعَلُوهَا وَاحِدَةً عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَصَدْرًا مِنْ إِمَارَةِ عُمَرَ، فَلَمَّا رَأَى النَّاسَ قَدْ تَتَابَعُوا فِيهَا، قَالَ: أَجِيزُوهُنَّ عَلَيْهِمْ".

**ترجمه:** طاوس ديوسړي نه روايت کوی څوک چه په ابو الصهباء باندې يادېږی، او وئيلې شوی دی چه ده به دابن عباس نه ډير تپوسونه کول دې وائی اياتاته پته نشته کله چه به يوسړي خپلې ښځې ته درې طلاق ورکړل مخکښې ددخول نه نوصحابه کرامو به دغه يو طلاق ګرځولو (يعنی دنبی عليه السلام په زمانه کښې به يو طلاق ګڼړل شو د ابوبکرصديق رضی الله عنه په دور کښې اودعمر فاروق ددور په شروع کښې هم، ابن عباس رضی الله عنه اووئيل. کله چه به يوسړي خپلې ښځې ته مخکښې ددخول نه درې طلاق ورکړل نو هغه به يو طلاق شماريدو نبی عليه السلام اوصديق اکبرنه اودعمرفاروق رضی الله عنه دابتدائی دور پورې کله چه فاروق اعظم اوليدل چه خلقو طلاق ورکول زيات کړل نوونې فرمائيل چه زه دادرې واړه په دوی باندې نافذوم.

**تشريح:** پس فرمائی ﴿وصار قول ابن عباس فيما حدثنا﴾ يعنی وړاندې چه کوم روايت مونږ ذکر کوو د هغې نه دا خبره صفا معلوميږی چه د ابن عباس مسلک وقوع ثلاث دې.

﴿حدثنا محمد بن عبدالملک﴾ اوس مصنف د ابن عباس هغه روايت مرفوعه ذکر

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۷۶۳) (ضعيف)

کوی چه د هغې حواله مونږ سره په شروع کښې ډير کرته راغلې ده او د هغې توجيهات هم تير شوي دی. د ابن عباس د دې روايت مرفوعه راوی د هغه په شاګردانو کښې هغه دې کوم ته چه ابو الصهباء وئيلې شی.

[٢١٠٠] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ أَبَا الصَّهْبَاءِ، قَالَ لِابْنِ عَبَّاسٍ: "أَتَعْلَمُ أَنَّمَا كَانَتْ الثَّلَاثُ تُجْعَلُ وَاحِدَةً عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَثَلَاثًا مِنْ إِمَارَةِ عُمَرَ؟" قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: "نَعَمْ".

**ترجمه**: طاوس د خپل پلارنه روايت کوی چه ابو الصهباء ابن عباس ته اووئيل چه نبی ﷺ اوابوبکر صديق اوعمرفاروق رضی الله عنهما په دور خلافت کښې تردرې کالو پورې درې طلاق به يوشماريد و ابن عباس رضی الله عنهما اووئيل هو.

**تشريح**: الحمد لله د وقوع طلاق يعنی واقع کيدو دطلاق ثلاث بحث پوره شو کوم چه انتهائی مرتب او منقح دې دا په غور سره اولولئ. والله الموفق

## بَابٌ فِيمَا عُنِيَ بِهِ الطَّلَاقُ وَالنِّيَّاتُ

### په نيت باندې داحکامو د مرتب کيدو او د کنايی طلاقو بيان

د ﴿والنيات﴾ عطف په ﴿ما عنی﴾ باندې دې لهذا د ﴿فی﴾ ماتحت کيدو د وجې نه به دا مجرور لوستلې شی، يعنی د دې الفاظو په بيان کښې چه د کوم نه طلاق مراد کولې شی او د نيات په بيان کښې، چونکه کنايات طلاق کښې نيت لره اعتبار وی په دې وجه دې مناسبت سره په ترجمة الباب کښې ئې هغه هم ذکر کړو.

[٢٢٠١] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ اللَّيْثِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ، وَإِنَّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوَى، فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ فَهِجْرَتُهُ إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ، وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ لِدُنْيَا يُصِيبُهَا أَوِ امْرَأَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهُ إِلَى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ".

**ترجمه**: د علقمه بن وقاص الليثي نه روايت دې چه دعمر فاروق رضی الله عنه نه مې واوريدل چه فرمائيل ئې نبی ﷺ فرمائيلی دی داعمالو (دصحت اوفساد) دارو مدار په نيت باندې دې اوهريو کس ته به هغه شې ملاويږي دکوم شي چه هغه نيت کړې وي نود چاهجرت چه دالله اودرسول دپاره وي نودهغه هجرت دالله اودرسول دپاره شو اودچاهجرت چه ددنيا يادېوې ښځې دحصول دپاره وي چه دهغې سره نکاح اوکړي نودده نيت دهغه شي دپاره شو دکوم شي چه ده نيت کړې دې.

(١): صحيح مسلم/الطلاق ٢ (١٤٧٢)، سنن النسائي/الطلاق ٨ (٣٤٣٥)، (تحفة الأشراف: ٥٧١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٤/١) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/بدء الوحي ١ (١)، الايمان ٤١ (٥٤)، العتق ٦ (٢٥٢٩)، مناقب الأنصار ٤٥ (٣٨٩٨)، النكاح ٥ (٥٠٧٠)، النذور ٢٣ (٦٦٨٩)، الحيل ١ (٦٩٥٣)، صحيح مسلم/الإمارة ٤٥ (١٩٠٧)، سنن الترمذي/فضائل الجهاد ١٦ (١٦٤٧)، سنن النسائي/الطهارة ٦٠ (٧٥)، الطلاق ٢٤ (٣٤٦٧)، الأيمان والنذور ١٩ (٣٨٢٥)، سنن ابن ماجه/الزهد ٢٦ (٤٢٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٦١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥/١، ٤٣) (صحيح)

**تشریح:** ﴿انما الاعمال بالنیات وانما لامرئ ما نوی﴾ د اعمالو اعتبار شرعا په نیت باندې دې وجود مراد نه دې، وجود خو بغیر د نیت هم کیږی، لکه چه یو سړې د استیشن په لاره باندې روان شی او قصد د هغه استیشن ته رسیدل نه وی بلکه صرف سیر او تفریح مقصود وی نو دا سړې په تلو تلو کښې استیشن ته رسیږی حال دا چه د هغه مقصود ستیشن ته تلل نه وو. هم دغه شان که یو سړې د اودس ټول اندامونه وینځی د تنظیف یا تبرید په نیت سره نو د جمهورو په نزد د هغه اودس اونشو هم د دې حدیث په وجه باندې په دې کښې د احنافو اختلاف مشهور دې کوم چه په خپل مقام باندې تیر شو د هغې د دوباره ذکر کولو حاجت نشته. ﴿وانما لامرئ ما نوی﴾ نه مقصد یا خو د ماقبل تاکید دې یا دا تاسیس دې وړاندې خبره بیانوی چه هر کله دا معلومه شوه چه بغیر د نیت نه عمل معتبر نه دې نو انسان لره پکار دی چه خپل نیت متعین کړی، یعنی تعیین منوی یعنی چی څه ئې نیت کړې وی ضروری دې. لهذا کله چه انسان مثلا مونځ کوی نو مطلق د مونځ نیت کافی نه دې بلکه د دې تعیین دې هم اوکړی چه کوم مونځ کوی د ماسپخین یا د مازیګر. هم دغه شان د قضاء مونځ مسئله هم ده په دې کښې هم تعیین ضروری دې، او وئیلې شوې دی چه په دې جملې سره مقصود د تعدد منوی یعنی ډیرو څیزونو نیت کولو طرف ته اشاره کول دی چه مکلف چه د کوم څیز نیت هم کوی هغه ته به هغه څیز ملاویږی. که په یو عمل سره ډیر نیتونه اوکړې شو نو د ټولو ثواب به ورته حاصلیږی چه د هغې مثال په مظاهر حق کښې لیکلې دی یو مثال ئې د دې مسجد ته د تلو لیکلې دې چه اوګورئ دا یو عمل دې په دې کښې ډیر نیتونه کیدې شی او بیا په کښې هغه د دولسو اعمالو نیتونه لیکلې دی پس په اخر کښې لیکی چه دا دولس نیتونه صرف مسجد ته د راتلو کیدې شی چه د هر یو به جدا جدا ثواب بیا مومی. اهـ

**(یو اشکال او دهغې جواب)**

﴿ فمن کانت هجرته الی الله ورسوله فهجرته الی الله ورسوله ﴾ دلته د شرط او جزاء د اتحاد یعنی دیووالی اشکال مشهور دې، او جواب ئې هم مشهور دې هغه دا چه دلته په دواړو جملو کښې فرق اعتباری لحاظ ساتلې شوې دې، په اوله جمله کښې نیة او په دویمه جمله کښې ثوابا وحکما وشرعا... یعنی د کوم سړی هجرت چه د خپل نیت د لحاظ نه د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ طرف ته وی نو د هغه دا هجرت به حکما، شرعا او د اجر او ثواب په اعتبار سره د الله پاک طرف ته وی، یعنی یقینا به هغه د ثواب مستحق وی.

بله توجیه ئې دا کړې شوې ده چه بعض وخت تکرار د افاده یعنی فائده پوره کیدو کمال دپاره وی، لکه ﴿انا ابو النجم شعری شعری ﴾ په دې دواړو مثالونو کښې هم د مبتدا او خبر اتحاد دې خو د دې باوجود جائز دې، د فصحاء په کلام کښې موندلې شی ځکه چه مقصود په دې سره کمال لره بیانول دی، یعنی زه واقعی ابو النجم او اسم بامسمی یم هم دغه شان دویم مثال چه زما شعر واقعی شعر دې یعنی شعر مې د وئیلو مستحق دې نو مطلب دا شو چه کوم سړې په اخلاص سره هجرت کوی نو د هغه هجرت واقعی قابل تعریف او مقبول یعنی قبول دې.

﴿ومن كانت هجرته لدنيا يصيبها او امراءة يتزوجها فهجرته الى ما هاجر اليه﴾ بعض شارحينو ليکلي دي چه د شرط او جزاء او کله کله د مبتدا او خبر اتحاد د مبالغې دپاره وي يا خو مبالغه فی التعظیم يعنی دپاره دلوئي والی لکه دلته په حديث کښې په اوله جمله کښې او يا مبالغه فی التحقیر يعنی سپکوالي، لکه د حديث په دې جمله کښې، پس مطلب دا شو چه چا د دنيوی غرض د حصول دپاره يا يوې زنانه سره د واده کولو دپاره هجرت اوکړو نو د هغه د هجرت ډير بيکاره درجه ده (دا د هغه هجرت برابر نه شی کيدې کوم چه خالص د الله پاک دپاره شوې وی) او بعض ليکلي دي چه ﴿فهجرته﴾ ترکيب کښې مبتدا او ﴿الى ما هاجر اليه﴾ جار مجرور د هغې متعلق او خبر د دې مبتدا محذوف دې ای قبيحة غير مقبولة. ترجمه به دا وی چه د داسې سړی هجرت د کوم طرف ته چه هغه کړې دې غير مقبول او مردود دې. خو په دې باندې بعض نورو شارحينو اعتراض کړې دې چه داسې هجرت لره مطلقا غير مقبول منل صحيح نه دی، ځکه چه کوم سړې خپل وطن لره ترک کوی د هغه د دار الکفر کيدو د وجې نه او په دې وجه باندې چه هغه بل ځائې کښې واده کوی دا هجرت غير مقبول او مردود نه دې. او دا جدا خبره ده چه دا هجرت د هغه هجرت نه کوم چه خالص د الله پاک دپاره وی د هغې نه کمتر دې ډير زيات کم. (كذا فی القسطلانی) د دې حديث نه د نيت ډير لوئې اهميت معلوميږی، لهذا انسان لره د هر عمل نه مخکښې خپل نيت ته کتل پکار دی چه په هغې کښې څه نقص خو نشته، بعض وخت په شروع کښې نيت يو څه وی او روستو په هغې کښې د نفس او شيطان په تصرف سره تغير راشی، په دې وجه چه کوم عمل داسې وی چه په هغې کښې امتداد وی هلته دې په مينځ کښې تجديد نيت کوی، د دې حديث په تشريح کښې شارحينو ډير تفصيلی کلام فرمائيلي دې مونږ د خپل عادت مطابق مختصر شان ليکلي دې، زمونږ حضرت شيخ رحمه الله به فرمائيل چه د دې حديث حاصل تصحيح نيت دې کوم چه د تصوف ابتداء ده، او د تصوف انتهاء هغه ده کوم چه په حديث جبرائيل عليه السلام کښې راغې يعنی احسان چه د هغې تفسير داسې کړې شوې دې ﴿ان تعبدالله كانك تراه﴾ چه مونږ به د الله پاک عبادت داسې کوو ګويا مونږ هغه لره وينو. والله الموفق والميسر

والحديث اخرجه الجماعة اهـ (عون)

[۲۲۰۲] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ كَعْبٍ وَكَانَ قَائِدَ كَعْبٍ مِنْ بَنِيهِ حِينَ عَمِيَ، قَالَ: سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ، فَسَاقَ قِصَّتَهُ فِي تَبُوكَ، قَالَ: "حَتَّى إِذَا مَضَتْ أَرْبَعُونَ مِنَ الْخَمْسِينَ، إِذَا رَسُولُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُكَ أَنْ تَعْتَزِلَ

(١): صحيح البخاري/الوصايا ٢٦ (٢٧٥٧)، والجهاد ١٠٣ (٢٩٤٧)، ١٩٨ (٣٠٨٨)، وتفسير سورة البراءة ١٤ (٤٦٧٣)، ١٧ (٤٦٧٧)، ١٨ (٤٦٧٧)، ١٩ (٤٦٧٨)، والاستئذان ٢١ (٦٢٥٥)، والأيمان والنذور ٢٤ (٦٦٩١)، والأحكام ٥٣ (٧٢٢٥)، صحيح مسلم/التوبة ٩ (٢٧٦٩)، سنن النسائي/المساجد ٣٨ (٧٣٢)، والطلاق ١٨ (٣٤٥٣)، والأيمان والنذور ٣٦ (٣٨٥٤)، ٣٧ (٣٨٥٧)، (تحفة الأشراف: ١١١٣١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/تفسير سورة التوبة (٣١٠١)، مسند احمد (٣/٤٥٥، ٤٥٧، ٤٥٩، ٣٨٨/٦)، سنن الدارمي/الصلاة ١٨٤ (١٥٦١) (صحيح)

امْرَأَتَكَ، قَالَ: فَقُلْتُ: أُطَلِّقُهَا أَمْ مَاذَا أَفْعَلُ؟ قَالَ: لَا، بَلِ اعْتَزِلْهَا، فَلَا تَقْرَبَنَّهَا، فَقُلْتُ لِامْرَأَتِي: الْحَقِي بِأَهْلِكِ فَكُونِي عِنْدَهُمْ حَتَّى يَقْضِيَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ فِي هَذَا الْأَمْرِ.

**ترجمه**: دعبدالله بن كعب چاچه به كعب بن مالك دروند والی په وخت كښې ګرځولو فرمائی دكعب بن مالك نه مې اوريدلی دی چه دغزوه تبوك واقعه ئې بيان كړه او وېې فرمائيل كله چه په پنځوس ورځو كښې خلويښت تيرې شوې اونبی ﷺ كعب بن مالك هلال بن اميه وغيره خلق ځوك چه ورسره تبوك ته نه ووتلې هغوی ته نبی ﷺ دا سزا وركړې وه چه خلق به ورسره خبرې نه كوې، دنبی ﷺ قاصد راغی اووئې وئيل چه نبی ﷺ حكم كړې دې چه ستاسونه دې خپلې ښځې جدا شې ماعرض اوكړو چه ايا طلاق ورته وركړم او كه بل حكم دې چه پوره ئې كړم؟ هغه اووئيل نه دښځوسره يوځائې كيږئ مه او ددوی نه جدا جدا شئ، كعب وائی ماخپلې ښځې ته اووئيل چه دموركره لاړه شه اوهلته اوسيږه ترڅوچه الله تعالی ددې معاملې فيصله نه وی كړې.

**تشريح**: ددې نه روستو مصنف د سيدنا كعب بن مالک رضی الله عنه د روايت يوه ټكړه ذكر فرمائيلې ده چه په هغې كښې دی ﴿الحقی باهلک﴾ دا لفظ كنايه ده د طلاق نه خو چونكه هغه دا د طلاق په نيت سره نه وه وئيلې په دې وجه طلاق واقع نه شو.

## بَابٌ فِي الْخِيَارِ

### ښځې ته د طلاق د اختيار وركولو بيان

[۲۲۰۳] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "خَيَّرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاخْتَرْنَاهُ، فَلَمْ يَعُدَّ ذَلِكَ شَيْئًا".

**ترجمه**: دام المومنين عائشة رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ مونږ ته اختيار راكړو نومونږ هغه غوره كړو بيانبی ﷺ ددې څه شمار اونه كړو (يعنی طلاق ئې ونه ګڼړل).

### په مسئلة الباب كښې اختلاف علماء:

كه يو سړې خپلې ښځې ته اختيار وركړی، هغه سره د اوسيدو يا نه اوسيدو، نو په دې سره طلاق واقع كيږی يا نه؟ عند الجمهور لا طلاق في التخيير اذا اختارت الزوج خلافا لعلى وزيد بن ثابت (۲) امام ترمذی په دې باب كښې اختلاف علماء بالتفصيل بيان كړې دې، د سيدنا علی رضی الله عنه نه ئې نقل كړې دی چه كه زنانه خپل نفس لره اختيار كړی نو بيا خو به بائنه واحده واقع كيږی او كه زوج اختيار كړی نو واحده رجيعه، او د سيدنا زيد بن ثابت رضی الله عنه نه نقل كړې شوې دی چه كه زوج اختيار كړی نو واحده بائنه او كه نفس اختيار كی نو بيا به درې طلاقه واقع وی، په دې حديث كښې سيده عائشه رضی الله عنها په دې خلقو باندې رد كوی كوم چه

(۱): صحيح البخاري/الطلاق ٥ (٥٢٦٢)، صحيح مسلم/الطلاق ٤ (١٤٧٧)، سنن الترمذي/الطلاق ٤ (١١٧٩)، سنن النسائي/النكاح ٢ (٣٢٠٤) والطلاق ٢٧ (٣٤٧٤)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٢٠ (٢٠٥٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٦٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٥/٦، ٤٧، ١٧١، ١٧٣، ١٨٥، ٢٠٢، ٢٠٥، ٢٣٩)، سنن الدارمي/الطلاق ٥ (٢٣١٥) (صحيح)

(۲) او كه خپل نفس لره اختيار كړی نو په دې كښې تفصيل دې كوم چه په راروان باب "امرك بيدك" د لاندې راروان دې)

وائي چه نفس تخيير طلاق دي، په دې حديث کښې چه عائشه رضي الله عنها کوم تخيير لره بيان فرمائي دا هم هغه تخيير دې چه د هغې ذکر په قران کريم کښې په دې آيت کريمه کښې مذکور دي ﴿يَاأَيُّهَاالنَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ۝ وَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ فَإِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَاتِ مِنْكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا ۝﴾

د دې تخيير وجه څه وه؟ په دې کښې روايات مختلف دی، د مسلم په روايت کښې تصريح ده چه د دې سبب په نفقه کښې زيادت طلب کول وو چه په هغې باندې رسول الله ﷺ د خپلو ازواجو نه يوه مياشت لرې والې کړې وو، د مسلم په رويت کښې دی ﴿ثم نزلت هذه الاية، يا ايها النبى قل لازواجک الاية ﴾ والحديث اخرجه ايضا احمد مطولا، وباقى الستة بلفظ المصنف، قال الترمذى: هذا حديث حسن صحيح. (قاله فى المنهل)

## بَاب فِي أَمْرُكِ بِيَدِكِ[1]

### باب: ښځې ته داوئيل چه: ستا معامله ستا په لاس کښې ده

په باب سابق والامسئله کښې اوپه دې مسئله کښې څه فرق دې هغه په حاشيه کښې اوګورئ د دې نه روستو ځان پوهه کړئ چه د خاوند خپلې ښځې ته دا وئيل چه ﴿امرک بيدک﴾ دتوکيل يعنى وکيل جوړول او تفويض يعنى سپارل دقبيل نه دې اودا تطليق نه دې. [2]

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه:

لهذا چه ترڅو پورې چه هغه خپل نفس لره اختيار نه کړی نو طلاق به واقع نه وی، د ائمه اربعه په نزد البته په دې کښې د ربيعه الرائى اختلاف دې، او چه کله خپل نفس لره اختيار کړی نو کوم طلاق به واقع کيږی؟ مسئله اختلافی ده، د جمهورو په نزد که هغه څه نيت نه وو کړې يا ئې د يو طلاق نيت کړې وو نو په دواړو صورتونو کښې به يو طلاق واقع شوې وی، د ائمه ثلاثه په نزد رجعيه او د احنافو په نزد بائنه، او که زنانه د يو نه زيات نيت

---

[1] ) دې طريقه تطليق نه فقهاء کرام په تمليک سره تعبير کوی، او کومې زنانه ته چه دا اوئيلې شی هغې ته مملکه وئيلې شی. بيا پوهه شئ چه په باب سابق کښې مسئله تخيير مذکور ده او په دې کښې مسئله تمليک، په ظاهره کښې دې دواړو کښې هيڅ قسم فرق نه معلوميږی، خو د فقهاء کرامو په نزد دې دواړو کښې فرق دې، علامه ابن رشد مالکی په بداية المجتهد کښې په دې باندې کلام کړې دې، په دې کښې هغوی د مالکيانو او شوافعو اختلاف بيان کړې دې او دا چه د مالکيانو په نزد په دې دواړو کښې فرق دې په خلاف د امام شافعی چه هغه په ﴿اختاري﴾ او په ﴿امرك بيدك﴾ کښې د هيڅ قسم فرق قائل نه دی، د هغوی د کلام نه معلوميږی چه د امام مالک رحمه الله په نزد په دې دواړو کښې فرق دا دې چه تمليک (امرك بيدك) کښې تعدد طلاق او عدم تعدد دواړو ګنجائش او احتمال دې هم دا وجه ده چه په دې کښې زوج د زوجه سره اختلاف کولې شی ما فوق الواحده کښې. او په تخيير کښې دا ده چه زنانه يا خو زوج لره اختيار کړی يا بيا بالکل د عصمة نکاح يعنى پاکدامنې د نکاح نه جدا شی، د درې طلاقو په ذريعه.

[2] ) قال الفقهاء ان لفظ "امرك بيدك" "وطلقي نفسك" و "انت طالق ان شئت" من الفاظ التوكيل لا التطليق فيقع الطلاق بعد اختيار المرامة، وذكرها في الكنايات يوهم انها من الكنايات، واختلف ابو حنيفة والشافعي في ارادة الثنتين (من العرف الشذي)

اوکړی نو دا هم صحیح ده په شرط د موافقة نیة الزوج، برابره خبره ده که د دوه نیت کوی یا د دریو، او دا د ائمه ثلاث په نزد دي، او د احنافو په نزد لکه چه د هغوی مسلک مشهور دي لا یصح نیة الاثنتین، البته که د درې نیت کول درست دي کما تقرر فی اصول الفقه،اوکه چرې د دواړو په نیتونو کښې اختلاف شی مثلا ښځه د دریو طلاقو نیت اوکړی او سړې د یو طلاق، نو په دې صورت کښې د ائمه ثلاث په نزد چه په هغې کښې احناف هم دی د القضاء ما قضی الزوج یعنی د زوج نیت لره په اعتبار وی، وعند احمد القضاء ما قضت المراءة. (اه ملخصا من الاوجز)

[۲۲۰۴]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: قُلْتُ لِأَيُّوبَ: "هَلْ تَعْلَمُ أَحَدًا قَالَ بِقَوْلِ الْحَسَنِ فِي أَمْرُكِ بِيَدِكِ؟" قَالَ: "لَا، إِلَّا شَيْئًا حَدَّثَنَاهُ قَتَادَةُ، عَنْ كَثِيرٍ مَوْلَى ابْنِ سَمُرَةَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِنَحْوِهِ". قَالَ أَيُّوبُ: فَقَدِمَ عَلَيْنَا كَثِيرٌ فَسَأَلْتُهُ. فَقَالَ: مَا حَدَّثْتُ بِهَذَا قَطُّ. فَذَكَرْتُهُ لِقَتَادَةَ، فَقَالَ: بَلَى، وَلَكِنَّهُ نَسِيَ.

**ترجمه**: سلیمان بن حرب وائی چه حماد ﷫ ایوب نه تپوس اوکړو ایاداسې کس درته معلوم دې چه هغه د أمرك بیدك قول دحسن نه نقل کړې وي؟ هغه جواب ورنکړو لیکن دکثیر نه قتاده روایت نقل کړې دې اوهغه دابوسلمه نه اوهغه دابوهریره فه نه اوهغه دنبی ﷺ نه، ایوب اووئیل کثیر ماته راغې ما ترې تپوس اوکړو هغه اووئیل داحدیث ماهیڅ کله نه دې بیان کړې ماچه دا واوریدل نودقتاده نه مې تپوس اوکړو داحدیث ماته کثیر بیان کړې دې لیکن دهغه نه هیر شوې دې.

## شرح الحدیث :

د ابوداود په دې روایت کښې اختصار دې د ترمذی روایت په دې کښې صفا او واضح دې، چه په هغې کښې تصریح ده چه د امام حسن په نزد ﴿امرک بیدک﴾کښې درې طلاقونه دی نو په دې روایت کښې حماد د ایوب سختیانی نه تپوس کوی چه ایا د حسن نه علاوه هم څوک د دې قائل دې؟ هغه انکار اوکړو چه د هغه نه علاوه ئې څوک هم قائل نه دې، بیا هغه ته یو روایت رایاد شو کوم چه هغه ته د قتاده نه رارسیدلې وو چه د هغې نه معلومه شوه چه ﴿امرک بیدک ﴾سره درې طلاقه واقع کیږی نو گویا هغه د قتاده استثناء اوکړه چه هغه د درې کیدو قائل دی

قوله: قَالَ أَيُّوبُ: فَقَدِمَ عَلَيْنَا كَثِيرٌ فَسَأَلْتُهُ. فَقَالَ: مَا حَدَّثْتُ بِهَذَا قَطُّ. فَذَكَرْتُهُ لِقَتَادَةَ، فَقَالَ: بَلَى، وَلَكِنَّهُ نَسِيَ:

## شرح السند :

د دې شرح دا ده چه پورته ایوب چه د ابوهریره ﵁ کوم حدیث د قتاده نه روایت کوی، او قتاده د کثیر نه روایت کوی، اوس ایوب فرمائی چه روستو ما دا حدیث براه راست د کثیر نه تپوسلې وو نو هغه د دې نه انکار اوکړو چه ما دا حدیث قتاده ته بیان کړې وو، ایوب

(): سنن الترمذي/الطلاق ۳(۱۱۷۸)، سنن النسائي/الطلاق ۱۱(۳۴۳۹)، (تحفة الأشراف: ۱۴۹۹۲) (ضعيف)

فرمائی چه بیا ما قتاده ته د دې ذکر اوکړو نو هغه اوفرمائیل چه نه! کثیر ماته دا حدیث بیان کړې وو، د هغه نه هیره شوې ده.

**فائده** : ځان پوهه کړه چه دا حدیث د ﴿من حدث ونسی﴾ د قبیل نه دې، کوم چه د اصول حدیث یو مستقل قسم دې، د محدثینو مسلک دې باره کښې دا دې چه د شیخ انکار د خپل مروی نه که بالجزم یعنی یقین سره دې نو بیا خو هغه حدیث معتبر نه دې، او که د دې انکار احتمالا وی نو بیا به قابل قبول وی، په اصح قول کښې.

د ابوداود خو په دې روایت کښې انکار بالجزم دې، خو د ترمذی او نسائی الفاظ په دې کښې مختلف دی په هغې کښې د صریح انکار په ځائې داسې دی ﴿فسالته فلم یعرفه﴾ لهذا په دې صورت کښې به دا معتبر وی.

**تنبیه** : دا حدیث کوم چه د ابوهریره رضی الله عنه نه مرفوعا روایت دې دا غیر صحیح دې، صحیح دا دې چه دا حدیث په ابوهریره رضی الله عنه باندې موقوف دې، پس امام ترمذی رحمه الله فرمائی ﴿هذا حدیث لا نعرفه الا من حدیث سلیمان بن حرب عن حماد بن زید، وانما هو عن ابی هریرة موقوف﴾ هم دغه شان امام نسائی رحمه الله فرمائی : هذا حدیث منکر. (من المنهل)

[۲۲۰۵]([1])حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ الْحَسَنِ، فِي أَمْرُكِ بِيَدِكِ، قَالَ: "ثَلَاثٌ".

**ترجمه**: قتاده دحسن نه نقل کړي دي چه په داسې وئیلو سره ستامعامله ستاپه لاس کښې ده، درې طلاق واقع کیږی.

## بَاب فِي الْبَتَّةِ

### بابد د طلاق بته (یعنی د قطعی طلاق) بیان

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه :

که یو سړې خپلې ښځې ته داسې اوائی چه ﴿انت طالق البتة﴾ نو په دې کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې، د امام مالک رحمه الله په نزد په دې سره درې طلاقه واقع کیږی او هم دغه شان د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په نزد هم. پس امام مالک په موطاء کښې د هغه نه نقل کړې دی چه هغه ورته اوفرمائیل ﴿من قال لامراته انت طالق البتة فقد رمی الغاية القصوی﴾ هغه طلاق خپل اخری حد ته اورسولو، او د امام شافعی رحمه الله مذهب دا دې ﴿ان نوی فما نوی والا فواحدة رجعية﴾ چه څنګه ئې نیت وی هم هغه شان به طلاق واقع کیږی، او که څه نیت ئې نه وی نو واحده رجعیه به واقع کیږی، او د احنافو په نزد به واحده بائنه واقع کیږی، وان نوی الثلاث فصحیح ولا یصح نية الاثنين. او د امام احمد نه په دې کښې دوه روایتونه دی، یو د امام مالک په شان، او دویم دا چه په دې کښې نیت لره اعتبار دې. (کذا فی العدة) او خطابی د امام احمد نه نقل کړې دی ﴿ اخی ان یکون ثلاث ولا اجتری افتی به ﴾ یعنی ماته خو د درې طلاقو ویره ده اګر چه د دې فتوی د ورکولو جراءت نه کوم. (منهل)

[1]: تفرد به أبو داود وانظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٤٩٩٢، ١٨٥٣٧) (صحیح)

[۲۲۰۶](١) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ خَالِدٍ الْكَلْبِيُّ أَبُو ثَوْرٍ فِي آخَرِينَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِدْرِيسَ الشَّافِعِيُّ، حَدَّثَنِي عَمِّي مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ شَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ نَافِعِ بْنِ عُجَيْرِ بْنِ عَبْدِ يَزِيدَ بْنِ رُكَانَةَ، أَنَّ رُكَانَةَ بْنَ عَبْدِ يَزِيدَ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ سُهَيْمَةَ الْبَتَّةَ، فَأَخْبَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَلِكَ، وَقَالَ: وَاللَّهِ مَا أَرَدْتُ إِلَّا وَاحِدَةً، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَاللَّهِ مَا أَرَدْتَ إِلَّا وَاحِدَةً؟" فَقَالَ رُكَانَةُ: وَاللَّهِ مَا أَرَدْتُ إِلَّا وَاحِدَةً، فَرَدَّهَا إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَطَلَّقَهَا الثَّانِيَةَ فِي زَمَانِ عُمَرَ وَالثَّالِثَةَ فِي زَمَانِ عُثْمَانَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: أَوَّلُهُ لَفْظُ إِبْرَاهِيمَ وَآخِرُهُ لَفْظُ ابْنِ السَّرْحِ.

**ترجمه:** دنافع بن جبير بن عبديزيد بن ركانه نه روايت دي فرمائي چه ركانه بن عبديزيد خپله ښځه سهيمه په طلاقو البته اوكړې وو اوبيائې نبي ﷺ په دې باندې خبركړو ركانه اووئيل په الله مې دې قسم وي چه زما ديو طلاق نيت وونبي ﷺ اوفرمائيل په الله قسم ستانيت نه وو مكرديو ركانه بيا اووئيل په الله قسم ماديوطلاق نيت كړې وو نونبي ﷺ ورته دغه ښځه واپس كړه دويم طلاق ئې ورته دعمرفاروق رضي الله عنه په دور كښې وركړو او دريم طلاق ئې ورته دعثمان بن عفان نه په دور كښې وركړو. امام ابوداود فرمائي په دې روايت كښې اولنې لفظ دابراهيم دې او اخرنې لفظ دابن السرح دې.

**تشريح:** بيا د دې نه پس ځان پوهه كړئ چه مصنف رحمه الله د طلاق ركانة روايت ذكر كړې دې چه په هغې باندې تفصيلي كلام مونږ سره دلته تير شوې دې چه د مصنف علام تحقيق دا دې چه دا قصه د طلاق ثلاث نه ده بلكه د طلاق بته ده، هم په دې وجه باندې مصنف دا واقعه دلته په دې باب كښې راوړې ده.

[۲۲۰۷](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُونُسَ النَّسَائِيُّ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُمْ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِدْرِيسَ، حَدَّثَنِي عَمِّي مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنِ ابْنِ السَّائِبِ، عَنْ نَافِعِ بْنِ عُجَيْرٍ، عَنْ رُكَانَةَ بْنِ عَبْدِ يَزِيدَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** نافع بن عجير دركانه بن عبديزيدنه ددې په مثل يومرفوع روايت بيان كړې دې.

[۲۲۰۸](٣) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ يَزِيدَ بْنِ رُكَانَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ الْبَتَّةَ، فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "مَا أَرَدْتَ؟" قَالَ: وَاحِدَةً، قَالَ: "آللَّهِ؟" قَالَ: آللَّهِ؟ قَالَ: "هُوَ عَلَى مَا أَرَدْتَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَنَّ رُكَانَةَ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا، لِأَنَّهُمْ أَهْلُ بَيْتِهِ وَهُمْ أَعْلَمُ بِهِ. وَحَدِيثُ ابْنِ جُرَيْجٍ رَوَاهُ عَنْ بَعْضِ بَنِي أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** دعبدالله بن علي بن يزيد بن ركانه دخپل پلارنه روايت كوى چه هغه خپلې ښځې ته بته طلاق وركړو اودنبي ﷺ په خدمت كښې حاضرشونبي ﷺ ترې تپوس اوكړو چه دطلاق وركولو په وخت كښې دې نيت څه وو؟ هغه عرض اوكړو ديوطلاق نبي ﷺ

---

(١): سنن الترمذي/الطلاق ٢ (١١٧٧)، ق / الطلاق ١٩ (٢٠٥١)، (تحفة الأشراف: ٣٦١٣)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/ الطلاق ٨ (٢٣١٨) (ضعيف)

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣٦١٣) (ضعيف)

(٣): انظر حديث رقم (٢٢٠٦)، (تحفة الأشراف: ٣٦١٣) (ضعيف)

اوفرمائیل ستادي په الله قسم وي واقعي تادیوطلاق نیت کړي وو؟ هغه عرض اوکړو زما دي په الله قسم وي زماصرف دیوطلاق نیت وو نبی عليه السلام اوفرمائیل بیاخو ستا په ښځه باندې یو طلاق واقع شوې دې، امام ابوداود فرمائی داروایت دابن جریج دروایت نه زیات صحیح دې، دابن جریج په روایت کښې داسې دي چه رکانه درې طلاقه ورکړل، داځکه چه دکور افراد دداسې معاملاتونه زیات واقف دي اودابن جریج روایت دبنورافع دبعضو افرادونه منقول دی، او د عکرمه اوابن عباس نه

## په متن کښې یو غلطی او د هغې تصحیح

ځان پوهه کړه چه په حدیث الباب کښې دا دی چه رکانه خپلې ښځې ته طلاق بته ورکړې وو، او حدیث ابن جریج کوم چه په "باب نسخ المراجعة بعد التطليقات الثلاث" کښې تیر شوې دې په هغې کښې دا دی چه ابو رکانة یعنی عبد یزید خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړې وو، د مصنف تحقیق چونکه دا دې چه طلاق ورکولو والا رکانه دې لکه چه په حدیث الباب کښې دی نه ابو رکانه. په دې وجه مصنف دلته د ابن جریج د تیر شوی روایت په باره کښې فرمائی چه هغه غلط دې یعنی ﴿ان ابا رکانة طلق﴾ خو زمونږ په دې نسخه کښې د مصنف د کلام په ځائې ﴿ان ابا رکانة طلاق امراته ثلاثا﴾ په ځائې ﴿ان رکانة الخ﴾ واقع دې، دا د نسخې غلطی ده کما هو ظاهر بين، په دې باندې حضرت په بذل المجهود کښې تنبیه فرمائیلې ده او هم دغه شان صاحب منهل هم، د مصنف د رائې کامل وضاحت دې په باب سابق کښې اوکتلې شي.

## بَابٌ فِي الْوَسْوَسَةِ بِالطَّلَاقِ

### باب: په زړه کښې د طلاق خیال راتلو بیان

د طلاق په وسوسې سره طلاق نه واقع کیږی، كما هو مقتضى حديث الباب. یعنی لکه څنګه چې حدیث الباب تقاضا کوی خو بعض علماء کرام د طلاق د وقوع قائل دی، پس امام زهری رحمه الله فرمائی چه ﴿اذا طلق زوجته في نفسه ولم يتكلم به لزمه الطلاق﴾ په بذل او منهل کښې لیکلې دی چه د اشهب روایت هم د امام مالک نه هم دا دې، ابن العربی هم دې قول ته ترجیح ورکړې ده، هغه دا په کفر بالقلب او اصرار على المعصيت یعنی چې زړه کښې کفر او همیشوالې په ګناه عمل طور نه کول او مراءاة بالعمل وغیره کارونو باندې قیاس کړې دې چه اوګورئ دلته صرف عمل بالقلب موندلې شوې دې دون اللسان. قال الخطابی والحديث حجة عليهم، لهذا حدیث الباب د جمهورو دلیل دی.

[۲۲۰۹]([1]) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ تَجَاوَزَ لِأُمَّتِي عَمَّا لَمْ تَتَكَلَّمْ بِهِ أَوْ تَعْمَلْ بِهِ، وَبِمَا حَدَّثَتْ بِهِ أَنْفُسَهَا".

**ترجمه:** دابوهریره نه روایت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائیلی دی الله تعالی خیالات

---

[1]: صحيح البخاري/العتق ٦ (٢٥٢٨)، والطلاق ١١ (٥٢٦٩)، والأيمان والنذور ١٥ (٦٦٦٤)، صحيح مسلم/الإيمان ٥٨ (١٢٧)، سنن الترمذي/الطلاق ٨ (١١٨٣)، سنن النسائي/الطلاق ٢٢ (٣٤٦٤، ٣٤٦٥)، سنن ابن ماجه/الطلاق ١٤ (٢٠٤٠)، (تحفة الأشراف: ١٢٨٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٩٣، ٣٩٨، ٤٢٥، ٤٧٤، ٤٨١، ٤٩١) (صحيح)

اوتصورات زما امت ته معاف کړي دي کوم چه په زړه کښې تيريږي ترڅوچه ئې په ژبه وئيلي نه وي اوعمل ئې ورباندې نه وي کړې.
والحديث اخرجه ايضا باقي الستة، وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح. (كذا في المنهل)

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَقُولُ لِامْرَأَتِهِ يَا أُخْتِي

### باب: د سړي خپلې ښځې ته خورونيل څنګه دي؟

[۲۲۱۰] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، وَخَالِدٌ الطَّحَّانُ الْمَعْنَى، كُلُّهُمْ عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ الْهُجَيْمِيِّ، أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِامْرَأَتِهِ: يَا أُخَيَّةُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُخْتُكَ هِيَ"، فَكَرِهَ ذَلِكَ وَنَهَى عَنْهُ.

**ترجمه:** دابوتميمه هجيمي نه روايت دې يوكس خپلې ښځې ته اووئيل اې خوري نبی عليه السلام داخبره بده وګڼړله اودداسې الفاظو وئيلونه ئې منع اوفرمائيله.

### توضيح الحديث

﴿اختية﴾ تصغير دې د ﴿احت﴾ رسول الله صلى الله عليه وسلم خپلې ښځې ته د خور وئيلو نه منع کړې ده ځکه چه قرابت اخوة محرم دې لهذا خپلې ښځې ته داسې وئيلو کښې مظنه تحريم يعنی د حراموالی ګمان دې، هم داوجه ده چه دبعض علماء کرامو په نزد په دې باندې ظهار واقع کيږي

### مسئله فقهيه:

اصل کښې په دې کښې تفصيل دې، که يو سړې خپلې ښځې ته داسې اوائی چه انت کاختی نو په دې کښې څو صورتونه دی، که د هغه دا وينا د ظهار په نيت ده نو بيا خو به د اکثرو په نزد ظهار واقع شي، او که د کرامت په نيت اوائی نو په دې کښې هيڅ ضرر نشته صرف د احتياط خلاف ده او که څه نيت ئې نه وی نو په دې کښې اختلاف دې، د اکثر علماء کرامو په نزد خو په دې کښې هيڅ ضرر نشته، او امام ابويوسف رحمه الله فرمائی چه د هغه داسې وئيل تحريم دې او د امام محمد رحمه الله په نزد ظهار دې. (منهل عن الخطابی) (۲)

[۲۲۱۱] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ يَعْنِي ابْنَ حَرْبٍ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ قَوْمِهِ، أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ لِامْرَأَتِهِ: يَا أُخَيَّةُ، فَنَهَاهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ الْمُخْتَارِ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۹۹، ۱۸۸۴۶) (ضعيف)

(۲) وفي البدائع ۲۳۱/۳: ولو قال لها انت علي كامي او مثل امي يرجع الي نيته، فان نوي به الظهار كان مظاهرا، وان نوي به الكرامة كان كرامة، وان نوي به الطلاق كان طلاقا، وان نوي به اليمين كان ايلاء لان اللفظ يحتمل كل ذلك اذ هو تشبية المراءة بالام فيحتمل التشبيه في الكرامة والمنزلة، ويحتمل التشبيه في الحرمة الي ان قال: وان لم يكن له نية لا يكون ظهارا عند ابي حنيفة وهو قول ابي يوسف، الا ان: عند ابي حنيفة لا يكون شيئا وعند ابي يوسف يكون التحريم اليمين، وعند محمد يكون ظهارا. اهـ د بدائع د دې عبارت تعلق اګر چه د ﴿ام﴾ سره دې خو په باب ظهار کښې د ام او اخت دواړو حکم يو شان دې)

(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۹۹، ۱۸۸۴۶) (ضعيف)

**ترجمه:** ابوتمیمه دخپل قوم دیوکس نه روایت کوی فرمائی چه دنبی ﷺ نه ئې اوریدلي وو اونبی ﷺ دیوکس نه واوریدل چه خپلې ښځې ته ئې اووئیل اې خورې نونبی ﷺ هغه لره منع کړو، امام ابوداود فرمائی داروایت عبدالعزیز بن مختار دخالد نه اوهغه دابوعثمان نه هغه دابوتمیمه نه هغه دنبی ﷺ نه مرسلاً بیان کړې دې همدارنګې شعبه دخالد نه اوهغه دیوکس نه هغه دابوتمیمه نه هغه دنبی ﷺ نه نقل کړې وو.

**تشریح:** عن ابی تمیمة عن رجل من قومه انه سمع النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :

اولنې سند مرسل وو، ابو تمیمه طریق بن مجالد تابعی دې، او دا دویم روایت مسند دې، د ﴿رجل مبهم﴾ نه مراد ابو جری دې کما قال الحافظ فی التقریب فی باب المبهمات، ونقله عنه فی البذل.

**قوله:** قال ابوداود : ورواه عبدالعزیز بن المختار عن خالد الخ :

مصنف دا روایت په څلور طرق سره ذکر کړې دې(۱) طریق حماد عن خالد(۲) طریق عبدالسلام عن خالد(۳) عبدالعزیز عن خالد(۴) شعبه عن خالد، په دې څلوروو واړو کښې صرف طریق عبدالسلام مسند متصل دې باقی درې واړه مرسل دی، په ﴿قال ابوداود﴾ سره د مصنف غرض د طریق مرسل ترجیح ده، ورسره دلته مصنف د یو بل اختلاف طرف ته هم اشاره کوی، هغه دا چه د حماد او عبدالسلام روایت کښې خالد او ابو تمیمه ترمینځه هیڅ قسم واسطه نشته، په خلاف د طریقین اخیرین چه په دې کښې د خالد او ابو تمیمه ترمینځه د یوې واسطې زیادت دې، یو د ابو عثمان او دویم د رجل مبهم، کیدې شی چه د دې رجل مبهم نه مراد ابو عثمان وی، حاصل دا دې چه د دې حدیث په سند کښې دوه اختلافه شو یو د ارسال او اسناد او دویم د واسطې او عدم واسطې، حضرت په بذل کښې په دې طرق مختلفه کښې تطبیق او عدم تعارض لیکلې دې.

[۲۲۱۲](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّ إِبْرَاهِيمَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكْذِبْ قَطُّ إِلَّا ثَلَاثًا: ثِنْتَانِ فِي ذَاتِ اللَّهِ تَعَالَى، قَوْلُهُ: إِنِّي سَقِيمٌ سورة الصافات آية ۸۹، وَقَوْلُهُ: بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا سورة الأنبياء آية ۶۳، وَبَيْنَمَا هُوَ يَسِيرُ فِي أَرْضِ جَبَّارٍ مِنَ الْجَبَابِرَةِ، إِذْ نَزَلَ مَنْزِلًا فَأُتِيَ الْجَبَّارُ، فَقِيلَ لَهُ: إِنَّهُ نَزَلَ هَاهُنَا رَجُلٌ مَعَهُ امْرَأَةٌ هِيَ أَحْسَنُ النَّاسِ، قَالَ: فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ، فَسَأَلَهُ عَنْهَا، فَقَالَ: إِنَّهَا أُخْتِي، فَلَمَّا رَجَعَ إِلَيْهَا، قَالَ: إِنَّ هَذَا سَأَلَنِي عَنْكِ فَأَنْبَأْتُهُ أَنَّكِ أُخْتِي، وَإِنَّهُ لَيْسَ الْيَوْمَ مُسْلِمٌ غَيْرِي وَغَيْرُكِ، وَإِنَّكِ أُخْتِي فِي كِتَابِ اللَّهِ فَلَا تُكَذِّبِينِي عِنْدَهُ" وَسَاقَ الْحَدِيثَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْخَبَرَ شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ.

**ترجمه:** ابوهریره دنبی ﷺ نه روایت بیانوي چه فرمائیلي ئې وو یقینا ابراهیم ﷺ چرته دروغ نه وو وئیلي مګر درې پیرې دوه ځل هغه دالله تعالی دپاره انې سقیم وئیلي وو او په دویم ځل (بل فعله کبیرهم) ئې وئیلي وو او یوځل هغه دیوظالم بادشاه ملك ته تلې وو (هغه ظالم بادشاه به دخلقونه ښځې په زوره اخستلې) ابراهیم ﷺ یوځائې ته راغې اوهغه ظالم

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۵۳۹)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/أحاديث الأنبياء ۸ (۳۳۵۷)، والنكاح ۱۲ (۵۰۱۲)، صحيح مسلم/الفضائل ۴۱ (۲۳۷۱)، سنن الترمذي/تفسير سورة الأنبياء (۳۱۶۵)، مسند احمد (۴۰۳/۲) (صحيح)

بادشاه هم راغې خلقو ورته اووئیل چه دلته یو کس راغلې دې او ډېره ښائسته ښځه ئې ده، چنانچه دې ظالم بادشاه دابراهیم علیه السلام په طلب کولو پسې خپل یو کس اولیږلو ابراهیم علیه السلام چه بادشاه ته ورغې نوونې وئیل چه هغه زما خورده کله چه ابراهیم علیه السلام واپس راغې نوخپلې بی بی ته ئې ووئیل بادشاه رانه ستا په باره کښې تپوس اوکړو ما ورته اووئیل چه خور مې ده اوننن ورځ زما اوستانه علاوه په دنیاکښې څوك بل مسلمان موجود نه دې نو په دې وجه باندې ته زما خورکیږې نو په دې وجه باندې ته ماددې ظالم بادشاه په مخکښې دروغژن مه ګڼړه. امام ابوداود فرمائی همدارنګې شعیب بن أبی حمزه دابوالزناد نه اوهغه اعرج نه هغه دابوهریره نه داروایت مرفوعا بیان کړې دې.

**شرح حدیث:**

دا حدیث مشهور دې، د ابوداود نه علاوه په صحیحین او مسند احمد کښې هم دې، او په ترمذی کښې مختصرا دې. رسول الله ﷺ فرمائی چه د سیدنا ابراهیم علیه السلام نه په ټول عمر کښې صرف درې کرته د کذب صدور شوې دې چه په هغې کښې دوه خالص د الله پاک دپاره وو، یو د هغه قول ﴿انی سقیم﴾ په آیت کریمه کښې داسې دی ﴿فنظر نظرة فی النجوم فقال انی سقیم﴾ چه د هغې حاصل دا دې چه د سیدنا ابراهیم قوم هغه په خپل څه مذهبی میله کښې بوتلل غوښتل نو هغه د ستورو طرف ته کتلو سره اوفرمائیل (ځکه چه د هغه قوم د علم نجوم قائل وو) چه زما طبیعت خو صحیح نه دې زه تاسو سره د تلو نه معذور یم، او کذب ثانی کوم چه په دې حدیث کښې بیان کړې شوې دې هغه د هغوی قول دې ﴿بل فعله کبیرهم هذا﴾ آیت کریمه داسې دې ﴿وَتَاللَّهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَامَكُمْ بَعْدَ أَنْ تُوَلُّوا مُدْبِرِينَ ۝ فَجَعَلَهُمْ جُذَاذًا إِلَّا كَبِيرًا لَهُمْ لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُونَ ۝ قَالُوا مَنْ فَعَلَ هَذَا بِآلِهَتِنَا إِنَّهُ لَمِنَ الظَّالِمِينَ ۝ قَالُوا أَأَنْتَ فَعَلْتَ هَذَا بِآلِهَتِنَا يَا إِبْرَاهِيمُ ۝ قَالَ بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا فَاسْأَلُوهُمْ إِنْ كَانُوا يَنْطِقُونَ ۝﴾ شوې داسې وه چه کله د هغه قوم دې خپلې میلې ته لاړو چه کوم ته هغوی سیدنا ابراهیم علیه السلام بوتلل غوښتل، سیدنا ابراهیم علیه السلام د هغوی د تلو نه روستو د هغوی چه کوم واړه واړه بتان وو هغه ئې په یو تبر باندې مات کړل او هغه ئې د لوئې بت په غاړه کښې زوړند کړو، هم د دې خبرې طرف ته اشاره کولو دپاره چه دا عمل د دې لوئې بت دې، پس اوس د هغوی قوم واپس راغلو نو په دې منظر کتلو سره پریشانه شو او په دې تلاش کښې اولګیدل چه دا د چا حرکت دې تردې چه د ابراهیم علیه السلام نه هم تپوس اوکړې شو چه دا کار تاسو کړې دې؟ هغوی ورته جواب ورکړو چه دا هر څه خو د دې مشر حرکت معلومیږی لهذا تاسو هم د دې (اصنام صغار) نه تپوس اوکړئ که دوی جواب درکولې شی، د دریم کذب بیان وړاندې راروان دې.

په دې روایت کښې دا فرمائیلې شوې دی ﴿ثنتان فی ذات الله﴾ یعنی صرف د دوه په باره کښې وئیلې شی چه په دې کښې دوه کذب د الله پاک دپاره وو، حال دا چه دریم کذب هم د الله پاک دپاره وو، حافظ فرمائی چه د دوه تخصیص په دې وجه دې چه اګر چه قصه ساره هم د الله پاک د ذات دپاره وه، لکن تضمنت حظا لنفسه ونفعا له. یعنی په دې قصه کښې چونکه فی الجمله حظ نفس هم وو یعنی خپله ذاتی فائده، په خلاف د رومبو دواړو چه په

هغې کښې د حظ نفس شائبه نه وه، هم دا وجه ده چه په بعض روایاتو کښې راغلې دی. ﴿الا ثلاث کذبات کل ذلک فی ذات الله تعالی﴾، او د ترمذی په روایت کښې دی ﴿ما منها کذبة الا ما حل بها عن دین الله تعالی﴾یعنی په دې کذبات کښې یو کذب هم داسې نه وو کوم چه هغه حیله او ذریعه نه وی جوړه کړې د الله پاک د دین د حفاظت دپاره.

## د کذب اطلاق په نبی باندې :

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه په دې حدیث شریف کښې د ابراهیم علیه السلام په حق کښې د کذب اطلاق کړې شوې دې چه په هغې باندې دا اشکال ظاهر دې (١) خو ټول شارحین په دې خبره باندې متفق دی چه په دې حدیث شریف کښې د کذب نه مراد کذب حقیقی نه دې ځکه چه هغه خو معصیت او حرام دې، هغه د الله پاک دپاره نه شی کیدې بلکه د دې نه مراد معاریض او توریه ده او په توریه کښې صورت کذب موندلې شی. ای من حیث السامع لا من حیث المتکلم. او د توریه مطلب دا وی چه د یو کلام دوه معنی وی یو ظاهری او بله باطنی، یا داسې اوایئ چه یو متبادر او بله غیر متبادر. د متکلم مراد خو غیر متبادر معنی وی او د سامع په ذهن کښې معنی متبادر وی کوم چه د واقع خلاف دی، او غیر متبادر معنی د واقعې مطابق وی، کوم چه متکلم مراد کړې دې، پس دلته که کذب واقع شوې وی نو هغه د سامع په لحاظ سره شوې دې نه د متکلم، لهذا د دې توجیه په وجه باندې نظر سقیم چه هغه غیر متبادر معنی کومه چه ابراهیم علیه السلام مراد کړې ده هغه مختلف کیدې شی، یا داسې اوئیلې شی چه هغه د سقیم نه مراد ﴿سقیم الحجة فی خروج مهم﴾ اخستلې وی (٢) او دا هم وئیلې شوې دی چه په دې ورځو کښې سیدنا ابراهیم علیه السلام په حمی نوبتی کښې اخته وو خو دا ورځ ئې د تبې نه وه بلکه د راحت وه، پس یو لحاظ سره دروغ شو او بل لحاظ سره نه، هم دغه شان په ﴿بل فعله کبیرهم﴾کښې توریه خو په داسې طریقه ده چه د سیدنا ابراهیم علیه السلام مراد په ﴿بل فعله کبیرهم﴾سره دا دې چه په موجوده صورت کښې چه کومه نقشه مخې ته ده هغه دا بیانوی چه دا کار د دې لوئې بت حرکت دې، او د هغه مراد دا نه وو چه واقعة هغه داسې اوکړل. والله تعالی اعلم

وړاندې په حدیث کښې دریم کذب دا بیان کړې شوې دې چه یو ځل ابراهیم علیه السلام د یو جابر او ظالم بادشاه په دور کښې سفر کولو (٣) په مینځ کښې په یو منزل باندې کوز شو

---

(١) په دې وجه باندې بعض خلقو د دې حدیث د صحت نه انکار کړې دې کوم چه سراسر غلط دې، ځکه چه دا حدیث په صحیحین کښې موجود دې، د هغې نه علاوه هم د حدیث په ډیرو معتبر او مستند کتابونو کښې په اسانید صحیحه سره مذکور دی، مولانا محمد ادریس کاندهلوی لیکی چه د دې حدیث په صحت کښې تر نن پورې د حدیث یو امام هم کلام نه دې کړې او نه د کلام گنجائش شته اهـ معارف القرآن)

(٢) یعنی زما دپاره تاسو سره وتلو کښې د جواز څه وجه نشته)

(٣) دا بادشاه عمرو بن امرؤا القیس د مصر بادشاه وو، ابراهیم علیه السلام چه کله بابل او خپل قوم لره د پریخودلو سره د سفر اراده اوفرمائیله د حران کنعان (د فلسطین علاقه) ته راورسیدل نو په حران کښې د هغه واده د ساره رضی الله عنها سره اوشو، د هغه ځائې نه ئې مصر ته سفر اوکړو چه د هغه ځائې د بادشاه سره دا قصه پیښه شوه)

هغه سره په دې وخت کښې د هغه حريم سيده ساره رضي الله عنها وه، يو سړي لاړو او هغه جبار ته ئې خبر ورکړو چه دلته يو سړې داسې ديره شوې دې چه هغې سره يوه ښکلې زنانه ده، هغه جابر سړې په ښکلې زنانو باندې مئين وو په هغې باندې ئې قبضه کړې وه چه کله هغه ته خبر اوشو نو هغه ابراهيم عليه السلام ته خپل قاصد اوليږلو او هغه ئې راطلب کړو، د راغوښتلو نه پس بادشاه د ابراهيم عليه السلام نه د هغه زنانه متعلق تپوس اوکړو نو هغه اوفرمائيل: ﴿ اختى ﴾، او د هغه ځائې نه واپس راتلو سره ئې سيده ساره رضي الله عنها ته اوفرمائيل چه هغه جبار زما نه ستا متعلق سوال کړې وو نو ما ورته دا جواب ورکړو چه هغه زما خور ده، او ته زما دينى لحاظ سره خور ئې، لهذا که ستا نه تپوس اوکړى نو ته هم دغه شان اوايه.

د دې حديث د ترجمة الباب سره مطابقت هم د دې جزء په لحاظ سره دې، لهذا د دې نه معلومه شوه چه خپلې ښځې ته بغير د څه ضرورت يا مصلحت نه خو ﴿يا اختى ﴾نه دى وئيل پکار. کما مر فى الحديث السابق، خو که ضرورة يا مصلحة اوئيلې شي نو دا جدا خبره ده.

﴿وانه ليس اليوم مسلم غيرى وغيرک ﴾په دې باندې دا اشکال دې چه د سيده ساره نه علاوه په دې زمانه کښې د ابراهيم عليه السلام سره په ايمان راوړلو والا کښې سيدنا لوط عليه السلام هم وو کما قال الله تعالى ﴿ فامن له لوط ﴾د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه په دې علاقه کښې چرته چه دا واقعه پيښه شوې وه بل څوک مومن نه وو، اګر چه لوط عليه السلام وو خو هغه بل ځائې کښې وو.

شارحينو ليکلې دى چه د دې بادشاه عادت دا وو چه د خاوند والا ښځې ته به ئې تعرض کولو هم په دې وجه ابراهيم عليه السلام هغه پوهه کړه چه ته هغه ته داسې مه وايه چه زه د هغه ښځه يم بلکه وايه چه زه ئې خور يم

﴿وساق الحديث ﴾ مصنف فرمائى چه زما استاذ خو واقعه د اخره پورې بيان کړې وه خو زه وړاندې اختصار کوم، حضرت په بذل المجهود کښې فرمائى چه ټوله قصه په صحيح بخارى کښې ده چه په هغې کښې دا دى چه بيا هغه جبار بادشاه سيده ساره خپل محل ته طلب کړه چه کله هغه هلته اورسيده نو هغه ورته لاس ور واچولو خو فورا ئې لاس شل شو، بادشاه پوهه شو چه دا د هغې په بد دعا سره داسې اوشو هغه سيده ساره رضي الله عنها ته اووې چه زما دپاره دعا اوکړه زه به تاته ضرر نه درکوم، هغې الله پاک نه دعا اوکړه او د هغه لاس روغ شو، خو بيا ئې دوباره د هغې طرف ته لاس ور اوږد کړو، د هغه لاس دوباره شل شو، او بيا هم دغه شان د هغې په دعا سره صحيح شو، بيا هغې خپل دربان راطلب کړو او وې وئيل چه دا تا ماته څوک راوستلې دى؟ هغه انسان نه معلوميږى کيدې شى چه څوک جن وى، او بيا ئې د سيده ساره رضي الله عنها په خدمت کښې يوه وينزه سيده هاجر رضي الله عنها هبه کړه او شغوى ئې رخصت کړل

والحديث اخرجه ايضا احمد والشيخان، وكذا الترمذى مختصرا، قاله فى المنهل

# بَابٌ فِي الظِّهَارِ

## باب: د ظهار بيان

ظهار د اهل جاهليت والا د طلاق نه دي، د اهل جاهليت په نزد خو ظهار سبب تحريم وو، الله پاک په اسلام کښې نفس ظهار خو باقي اوساتلو خو د هغې په حکم کښې ئې تغير اوکړو، د تحريم مؤبد نه د تحريم مؤقت طرف ته، يعني الى اداء الکفارة، د کفاره د ادا کولو نه پس هغه زنانه د مخکښې په شان حلاليږي، په اسلام کښې د ټولو نه وړاندې چه کوم ظهار واقع شوې دې هغه د اوس بن الصامت ظهار دې، کوم چه د باب په دويم حديث کښې مذکور دې.

**د ظهار سره متعلق مباحث اربعه :**

دلته څلور بحثونه دي، حقيقت ظهار او په دې کښې اختلاف علماء، دويم حکم ظهار، دريم که قبل التکفير جماع اوکړه نو د دې څه حکم دې، څلورم توقيت فى الظهار صحيح دې يا نه دې.

**بحث اول :**

د ظهار تعريف زمونږ په "کنز الدقائق" کښې داسې ليکلې شوې دې : **تشبيه المحللة بالمحرمة على التابيد...** يعني خاوند خپلې ښځې ته د داسې څيز سره تشبيه ورکول کوم چه په هغه باندې د هميشه دپاره حرام وي، تشبيه که د ذات سره وي، يا د يو داسې جزء سره وي د کوم نه چه په صبا سره تعبير کولې شي. لکه ماسپحين مثلا.

د پورته ذکر شوی تعريف نه معلومه شوه چه د ظهار حقيقت تشبيه بالام کښې منحصر نه دې بلکه چه کومه زنانه هم په هغه باندې د هميشه دپاره حرام وی برابره خبره ده که هغه د حرمت رضاع د وجې نه وی يا د مصاهرت د وجې نه وی، هم دغه شان د امام مالک رحمه الله په نزد هم ظهار د تشبيه بالام سره خاص نه دې، امام شافعي او امام احمد نه دواړه روايتونه دی، د امام شافعي په قول قديم کښې ﴿ام﴾ سره خاص دې او قول جديد کښې ﴿ام﴾ سره خاص نه دې.

**بحث ثاني :**

د ظهار حکم دا دې چه د دې وجې نه سړې د خپلې ښځې سره جماع حراميږی تردې چه کفاره ادا کړی دواعی جماع مس او تقبيل وغيره هم حرام دی يا نه؟ په دې کښې اختلاف دې، د احنافو په نزد هغه هم حراميږی هم دا مذهب د امام مالک رحمه الله دې، د شوافعو او حنابله په دې کښې دوه روايتونه دی، حرمت او عدم حرمت. (من الاوجز)

**بحث ثالث :**

دا دې چه که مظاهر قبل التکفير جماع اوکړی نو په دې کښې اختلاف دې، د احنافو په نزد په هغه باندې توبه او استغفار دې، او دا چه د بيا دپاره دې قبل التکفير جماع نه کوی، امام ترمذی په دې مسئله باندې مستقل باب تړلې دې، **باب ما جاء في المظاهر يواقع قبل ان**

يکفر. په دې کښې هغه د اکثر علماء کرامو هم دا مسلک نقل فرمائيلې دې، د ائمه ثلاث مسلک هم دا ليکلې شوې دې، او د عبدالرحمن بن مهدی قول دا ليکلې شوې دې چه په دې صورت کښې د هغوی په نزد په هغه باندې دوه کفارې واجب دی. او په اوجز کښې د حسن بصری او نخعی نه دا نقل کړې دی چه د هغوی په نزد درې کفارې واجب دی، او د مغنی نه ئې نقل کړې دی چه د بعض علماء کرامو نه منقول دی چه په دې صورت کښې به کفاره مطلقا ساقط شی. لانه فات وقتها.

## بحث رابع:

يعنی ظهار موقت لکه چه په حديث الباب کښې يعنی سلمه بن صخر په قصه کښې واقع دې، دا مسئله هم مختلف فيه ده د احنافو په نزد ظهار موقت صحيح دې او هم دا د امام احمد رائې ده، او د امام شافعی په دې کښې دوه اقوال دی. الاول يکون ظهارا والاخر لا يکون ظهاراً. او د امام مالک رحمه الله په نزد به وخت لره اعتبار نه وی بلکه ظهار به مطلق شی. (کما فی هامش البذل عن الاوجز)

[۲۲۱۳]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، قَالَ ابْنُ الْعَلَاءِ ابْنِ عَلْقَمَةَ بْنِ عَيَّاشٍ: عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ صَخْرٍ، قَالَ ابْنُ الْعَلَاءِ الْبَيَاضِيِّ، قَالَ: كُنْتُ امْرَأً أُصِيبُ مِنَ النِّسَاءِ مَا لَا يُصِيبُ غَيْرِي، فَلَمَّا دَخَلَ شَهْرُ رَمَضَانَ خِفْتُ أَنْ أُصِيبَ مِنَ امْرَأَتِي شَيْئًا يُتَابَعُ بِي حَتَّى أُصْبِحَ، فَظَاهَرْتُ مِنْهَا حَتَّى يَنْسَلِخَ شَهْرُ رَمَضَانَ، فَبَيْنَمَا هِيَ تَخْدُمُنِي ذَاتَ لَيْلَةٍ إِذْ تَكَشَّفَ لِي مِنْهَا شَيْءٌ، فَلَمْ أَلْبَثْ أَنْ نَزَوْتُ عَلَيْهَا، فَلَمَّا أَصْبَحْتُ خَرَجْتُ إِلَى قَوْمِي فَأَخْبَرْتُهُمُ الْخَبَرَ، وَقُلْتُ: امْشُوا مَعِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: لَا وَاللَّهِ، فَانْطَلَقْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ، فَقَالَ: "أَنْتَ بِذَاكَ يَا سَلَمَةُ"، قُلْتُ: أَنَا بِذَاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَرَّتَيْنِ، وَأَنَا صَابِرٌ لِأَمْرِ اللَّهِ، فَاحْكُمْ فِيَّ مَا أَرَاكَ اللَّهُ، قَالَ: "حَرِّرْ رَقَبَةً"، قُلْتُ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا أَمْلِكُ رَقَبَةً غَيْرَهَا وَضَرَبْتُ صَفْحَةَ رَقَبَتِي، قَالَ: "فَصُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ"، قَالَ: وَهَلْ أَصَبْتُ الَّذِي أَصَبْتُ إِلَّا مِنَ الصِّيَامِ، قَالَ: "فَأَطْعِمْ وَسْقًا مِنْ تَمْرٍ بَيْنَ سِتِّينَ مِسْكِينًا"، قُلْتُ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ، لَقَدْ بِتْنَا وَحْشَيْنِ مَا لَنَا طَعَامٌ، قَالَ: "فَانْطَلِقْ إِلَى صَاحِبِ صَدَقَةِ بَنِي زُرَيْقٍ فَلْيَدْفَعْهَا إِلَيْكَ، فَأَطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا وَسْقًا مِنْ تَمْرٍ، وَكُلْ أَنْتَ وَعِيَالُكَ بَقِيَّتَهَا"، فَرَجَعْتُ إِلَى قَوْمِي، فَقُلْتُ: وَجَدْتُ عِنْدَكُمُ الضِّيقَ وَسُوءَ الرَّأْيِ، وَوَجَدْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّعَةَ وَحُسْنَ الرَّأْيِ، وَقَدْ أَمَرَنِي، أَوْ أَمَرَ لِي، بِصَدَقَتِكُمْ، زَادَ ابْنُ الْعَلَاءِ، قَالَ ابْنُ إِدْرِيسَ: بَيَاضَةُ بَطْنٌ مِنْ بَنِي زُرَيْقٍ.

**ترجمه:** دابن العلاء البياضي نه روايت دې فرمائی چه زه يوداسې سړې وم چه ښځې به مې ډيرې خوښې وې زما هومره به دبل چا نه وې خوښې (يعنی جماع به مې ډيره کوله) کله چه درمضان مياشت راغله نوزما سره دا انديښنه پيداشوه چه چرې داسې و نه شی چه په رمضان کښې دخپلې ښځې سره دورځې کوروالې ونکړم نوبدقسمتئ زه ترسحره پرې نه خودو اودرمضان ترآخره پورې مې ظهاروکړويوه شپه هغه ښځه زماپه خوا کښې تيريدله

[1]: سنن الترمذي/الطلاق ۲۰ (۱۱۹۸)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۲۵ (۲۰۶۲)، (تحفة الأشراف: ٤٥٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۷/٤، ٤٣٦/٥)، سنن الدارمي/الطلاق ۹ (۲۳۱۹) (حسن صحيح) (ملاحظه هو الإرواء: ۲۰۹۱) ويأتي هذا الحديث برقم (۲۲۱۳)

اوزه مشغول وم اچانك دهغې جسم بربنډشو اوزمانه صبراونشواوصحبت مې ورسره اوکړو، کله چه سحر شو نوزه خپل قوم ته ورغلم اودغه خلقوته مې پوره واقعه بيان کړه او ورته مې اووئيل چه تاسو زماسره نبی عليه السلام ته لاړ شئ هغوی اووئيل په الله قسم مونږ درسره نه ځونوزه يواځې دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شوم او پوره واقعه مې ورته بيان کړه نبی عليه السلام تپوس اوکړو اې ابوسلمه تا واقعې دا کار کړې دې؟ ماعرض اوکړو هو، دا کار ئې کړې دې، نبی عليه السلام ددې خبرې دوباره تپوس اوکړو نوماورته اووئيل دالله تعالی په حکم باندې صابر يم اوس چه دالله تعالی څه حکم وي هغه صادر کړه نبی عليه السلام اوفرمائيل يرغلام آزاد کړه ماعرض اوکړو دالله په ذات مې دې قسم وي چاچه ته په حقه رالیږلې وې زه ددې خپل څټ نه علاوه دبل هيڅ شي مالك نه يم او په خپل څټ مې لاس کيخودونبی عليه السلام اوفرمائيل بيا دوه مياشتې مسلسل روژې اونيسه ماعرض اوکړو په ما باندې دا پريشانې د يوې روژې په وجه راغلې ده شپيته خو درکنار) نبی عليه السلام اوفرمائيل شپيته صاع کجورې مسکينانوته په صدقه کښې ورکړه ماعرض اوکړو په هغه ذات مې دې قسم وي چاچه په حق سره ته په رسالت رالیږلې يې مونږ دواړه ښځه خاوند شپه په نهره تيره وو زمونږ سره دخوراك دپاره څه موجود نه وي چه وئې خورې نبی عليه السلام اوفرمائيل دبنې زريق قبيلې صدقه کونکوته ورشه هغوی به درته کجورې درکړې ته په هغې کښې شپيته صاع غريبانوته ورکړه اوباقی کجورې ستا اوستادښځې شوې چنانچه زه خپل قوم ته واپس راغلم او ورته مې اووئيل ستاسو سره مې بده مشوره او تنګوالې اوموندو اودنبی عليه السلام سره مې توسع اونيکه مشوره اوموندله اونبی عليه السلام زما دپاره دصدقې حکم اوکړو، ابن العلاء دا اضافه کړې ده چه ابن ادريس وئيلي دې چه قبيله بياضه دبنې زريق يوشاخ دې.

## توضيح الحديث

مصنف په دې باب کښې دوه احاديث ذکر فرمائيلې دی، اولاً د سلمه بن صخر البياضی حديث کوم ته چه سلمان بن صخر هم وئيلې شی، په دې حديث کښې کفاره ظهار هم بالتفصيل مذکور دې کما هو مذکور فی القران. بيا ئې دويم نمبر کښې د اوس بن صامت حديث ذکر اوفرمائيلو چا چه د خپلې ښځې خويله سره ظهار کړې وو او هم په دې قصه کښې د آيت ظهار نزول شوې وو. په ظاهره کښې د قياس تقاضه دا وه چه دا دويم حديث مصنف اول ذکر کړې وې. زما په خيال ئې د دې برعکس په دې وجه اوکړل چه په دې اول حديث کښې کفاره ظهار کښې مذکور دې کوم چه حکم ظهار دې، او معرفت حکم اهم او مقصود دې، په دې وجه مصنف هغه مقدم کړې دې.

## مضمون حديث

مضمون حديث دا دې چه سلمه بن صخر وائی چه چونکه ما باندې به د جماع مواقع زياتې راتلې چه دومره به کيدې شی په چا نه راتلې (د قوت او شهوت د زيادت د وجې نه) نو کله چه به د رمضان مياشت شروع شوه نو زما د ځان نه دا ويره پيدا شوه چه هسې نه د رمضان په مياشت کښې د خپلې ښځې سره داسې مشغول شم چه د هغې نه جدا نه شم تردې چه

صبا شي «دا ترجمه د ﴿يتابع بي﴾دي چه د هغې معنى لزوم ده، لهذا ما د هغې نه د رمضان د خرپوري ظهار اوکړو، وړاندې د حديث مضمون واضح دې.

د ظهار ظهار موقت يعنى وخت ئې مقرر شو، د دې حکم په ابتدائي مباحث کښې تير شوې دې.

وړاندې دلته په حديث الباب کښې د کفاره ظهار تفصيل مذكور دې يعنى ﴿الاعتاق﴾ يا ﴿صوم ستين يوما يا اطعام ستين مسكينا﴾اعتاق رقبه د احنافو په نزد مطلق دې او د جمهورو په نزد په دې کښې د مومنه قيد دې، بيا د اطعام ستين په مقدار کښې اختلاف دې، د احنافو په نزد مقدار طعام د هر يو مسکين دپاره د صدقة الفطر برابر دې، من التمر صاع لكل مسكين ومن البر نصف صاع، وعند الشافعي لكل مسكين ربع صاع من كل شئ فالمجموع خمسة عشر صاعا، وعند مالک نصف صاع من كل شئ، فالمجموع ثلاثون صاعا وعند الامام احمد من البر ربع صاع ومن غيره نصف صاع. د دې اختلاف وجه اختلاف روايات دي چه خپله دلته په سنن ابوداود کښې موجود دي.

والحديث اخرجه ايضا احمد وابن ماجة والحاكم وقال هذا حديث صحيح على شرط مسلم، واخرجه البيهقي والترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح وصححه ابن خزيمة قاله في المنهل.

[۲۲۱۴](1) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مَعْمَرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْظَلَةَ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، عَنْ خُوَيْلَةَ بِنْتِ مَالِكِ بْنِ ثَعْلَبَةَ، قَالَتْ: ظَاهَرَ مِنِّي زَوْجِي أَوْسُ بْنُ الصَّامِتِ، فَجِئْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْكُو إِلَيْهِ، وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُجَادِلُنِي فِيهِ، وَيَقُولُ: "اتَّقِي اللَّهَ، فَإِنَّهُ ابْنُ عَمِّكِ"، فَمَا بَرِحْتُ حَتَّى نَزَلَ الْقُرْآنُ: قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا سورة المجادلة آية، إِلَى الْفَرْضِ، فَقَالَ: "يُعْتِقُ رَقَبَةً"، قَالَتْ: لَا يَجِدُ، قَالَ: "فَيَصُومُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ"، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهُ شَيْخٌ كَبِيرٌ مَا بِهِ مِنْ صِيَامٍ، قَالَ: "فَلْيُطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا"، قَالَتْ: مَا عِنْدَهُ مِنْ شَيْءٍ يَتَصَدَّقُ بِهِ، قَالَتْ: فَأُتِيَ سَاعَتَئِذٍ بِعَرَقٍ مِنْ تَمْرٍ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَإِنِّي أُعِينُهُ بِعَرَقٍ آخَرَ، قَالَ: "قَدْ أَحْسَنْتِ، اذْهَبِي فَأَطْعِمِي بِهَا عَنْهُ سِتِّينَ مِسْكِينًا وَارْجِعِي إِلَى ابْنِ عَمِّكِ"، قَالَ: وَالْعَرَقُ سِتُّونَ صَاعًا. قَالَ أَبُو دَاوُد فِي هَذَا: إِنَّهَا كَفَّرَتْ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ أَنْ تَسْتَأْمِرَهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا أَخُو عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ.

**ترجمه**: دخويلة بنت مالک بن ثعلبه نه روايت دې فرمائي چه زما خاوند اوس بن الصامت زماسره ظهار وکړو اودشکايت کولو دپاره دنبي ﷺ په خدمت کښې حاضره شوم اونبي ﷺ زماسره زمادخاوند په باره کښې په جګړه شو وئيل کې دالله نه ويريږه دئره خوي دې زه لاناسته وم چه د قرآن دا آيت («قد سمع الله قول التي تجادلك في زوجها») نازل شو نبي ﷺ اوفرمائيل هغه دې يوغلام آزاد کړي خويله اووئيل ددې طاقت ئې نشته نبي ﷺ اوفرمائيل دوه مياشتې مسلسل روژې دې اونيسي خويله عرض اوکړو اې دالله رسوله هغه بوډا اوکمزورې دې روژې هم نه شي نيولې نونبي ﷺ بيااوفرمائيل چه شپيته مسکينان دې ماړه کړي خويله عرض اوکړو هيڅ ورسره نشته چه صدقه ئې کړي، په دې وخت کښې

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۲۵)، وقد أخرجه: مسند إحمد (۶/ ۴۱۰) (حسن)

يوه بوجۍ کجورې راغلي خويله عرض اوکړو اې دالله رسوله زه به ورته يوه بله بوجۍ کجورې ورکړم نبی ﷺ اوفرمائيل ښه خبره دې اوکړه لاړه شه اودهغه دطرف نه ئې شپيته مسکينانوته ورکړه اودتره خوې ته دې واپس شه، راوې وائی عرق په عربو کښې هغه بوجۍ ته وئيلې شي په کومه کښې چه شپيته صاع کجورې راځي، امام ابوداود فرمائی چه دغه ښځې دخپل خاوند نه دتپوس کولوبغير کفاره ادا کړه.

**شرح حديث :**

دا هغه حديث ثانی دې چه په هغې کښې د اوس بن الصامت ظهار مذکور دې چه د هغې نه پس د آيات ظهار نزول شوې دې د هغه د ښځې په نوم کښې اختلاف دې دلته په دې روايت کښې خو د هغې نوم خويله مذکور دې او وړاندې په بل طريق کښې ﴿ان جميلة كانت تحت اوس بن الصامت ﴾راروان دې چه د هغې نه معلوميږی چه د هغې نوم جميله دې، حافظ فرمائی ابو نعيم دې ته تصحيف وئيلې دې، حافظ فرمائی ﴿وليس كما زعم ﴾ځکه چه دا تسميه په مسند احمد کښې په حديث عائشه کښې هم واقع ده خو معروف خويله دې، پس کيدې شی چه جميله ئې لقب وی.

په دې روايت کښې خويله خپله واقعه خپله بيانوی چه زما خاوند چه کله ما سره ظهار اوکړو نو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوم د خپل خاوند د شکايت کولو دپاره، يعنی د هغه د بدو اخلاقو او د سخت طبيعت د شکايت دپاره، خو رسول الله ﷺ به ما سره د هغه په باره کښې بحث کولو او فرمائيل به ئې چه د الله پاک نه اويريږه، ستا خاوند ستا د تره ځوئې دې، په دې روايت کښې وړاندې دا دی چه بيا د دې په باره کښې د قران کريم آيت نازل شو، د ابوداود په دې روايت کښې اختصار دې، د مجموعی رواياتو نه دا معلوميږی چه په شروع کښې خويله رسول الله ﷺ ته د خپل خاوند د بد اخلاقۍ شکايت کولو، بيا چه کله رسول الله ﷺ ورته په جواب کښې اوفرمائيل چه ﴿انک حرمت عليه ﴾نو بيا هغه پريشانه شوه او په ژړا شوه او د خپل فقر وفاقه او يواځې والی گله ئې شروع کړه، او وې وئيل ﴿اشكو الى الله فاقتى ووحدتى ﴾، د دې نه پس بيا آيت ظهار نازل شو چه په هغې سره د هغوی مشکل حل شو، ځکه چه په شروع کښې خو په ظهار تحريم مؤبد کيږی هم د دې په وجه باندې رسول الله ﷺ هغې ته فرمائيلې هم وو ﴿حرمت عليه ﴾ لکه چه په شروع کښې تير شو چه په ظهار جاهليت کښې په تحريم مؤبد يعنی هميشه وو، په اسلام کښې راتلو سره په دې کښې ترميم يعنی بدليدل کړې شوې دې.

﴿قال فاتى ساعتئذ بعرق من تمر قلت يا رسول الله فانى اعينه بعرق اخر قال قد احسنت ﴾

رسول الله ﷺ سيده خويله رضی الله عنها ته فرمائيلې وو چه ستا خاوند له پکار دی چه هغه د ظهار په کفاره کښې په شپيتو مسکينانو باندې خوراک اوکړی، په دې باندې هغه عرض اوکړو چه زما خاوند سره خو هيڅ هم نشته، وړاندې هغه فرمائی چه هم په دې وخت کښې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې يو لوئې زنبيل د کهجورو راورسيدو، رسول الله ﷺ هغه زنبيل په کفاره کښې د ورکولو دپاره خوله ته ورکړو، هغه فرمائی چه ما عرض اوکړو چه په دې

کښې یو زنبیل نور شامل کړم، رسول اللهﷺ اوفرمائیل غوره خبره ده. او دا یوسه او په شپیتو مسکینانو باندې ئې اوخره، او خپل خاوند کوم چه ستا د تره ځوئې دې هغه ته واپس شه. (او په ارام اوسیږه).

والحديث اخرجه البيهقي من طريق المصنف واخرجه مطولا قاله في المنهل

﴿ قال : والعرق ستون صاعا ﴾دا مخکښې تیر شو چه په مقدار عرق کښې روایات مختلف دی، په دې روایت کښې ﴿ستون صاعا ﴾دې او د دې نه په وړاندې روایت کښې ﴿ثلاثين صاعا﴾ راروان دې کوم چه مصنف فرمائی ﴿وهذا اصح ﴾معلومه شوه چه دستین صاعا روایت صحیح نه دې، ځکه چه که هغه صحیح منو نو بیا په هغې کښې د عرق اخر د شاملولو څه حاجت باقی پاتې کیږی د طعام مقدار خو ستین صاعا نه زائد د چا په نزد هم نه دې د هغې نه په وړاندې روایت کښې راځی قال : يعني بالعرق زنبيلا ياخذ خمسة عشر صاعا... دې ته د امام شافعیؒ دلیل وئیلې شی، په مقدار طعام کښې د علماء کرامو اختلاف مخکښې تیر شوې دې

[۲۲۱۵]([1])حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى أَبُو الْأَصْبَغِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، بِهَذَا الْإِسْنَادِ نَحْوَهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: وَالْعَرَقُ مِكْتَلٌ يَسَعُ ثَلَاثِينَ صَاعًا. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ آدَمَ.

**ترجمه:** محمدبن سلمه هم دابن اسحق نه ددې په شان روایت بیان کړې دې البته دااضافه ئې کړې ده چه عرق د یوې پیمانې نوم دې په کومه کښې چه دیرش صاع راځې امام ابوداود فرمائی داحدیث دیحی بن ادم حدیث نه زیات صحیح دې.

[۲۲۱۶]([2])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: يَعْنِي بِالْعَرَقِ زِنْبِيلًا يَأْخُذُ خَمْسَةَ عَشَرَ صَاعًا.

**ترجمه:** ابوسلمه بن عبدالرحمن وئیلی دی چه عرق دپنځلس صاعو والا یوه ټوکری وي.

[۲۲۱۷]([3])حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ لَهِيعَةَ، وَعَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَأُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرٍ، فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ وَهُوَ قَرِيبٌ مِنْ خَمْسَةَ عَشَرَ صَاعًا، قَالَ: "تَصَدَّقْ بِهَذَا"، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، عَلَى أَفْقَرَ مِنِّي وَمِنْ أَهْلِي؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلْهُ أَنْتَ وَأَهْلُكَ".

**ترجمه:** دسلیمان بن یسارنه هم داروایت نقل شوې دې فرمائی چه نبیﷺ ته کجورې راوړې شوې اوده ته ئې ورکړی تقریبا پنځلس صاع وې نبیﷺ ورته اوفرمائیل داپه صدقه کښې ورکړه هغه ووئیل اې دالله رسوله اياهغه غریبانوته ئې ورکړم کوم چه زما اوزمادکورنۍ نه

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٥٨٢٥) (حسن)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٥٨٦) (صحيح)
[3]: انظر حديث رقم (٢٢١٣)، (تحفة الأشراف: ١٨٧٩٠) (حسن)

زيات محتاج وي؟ نبی علیه السلام اوفرمائيل بيا خو دا کجورې تاسو اوخورئ اوخپل کورنئ ته ئې دخوراك دپاره ورکړه.

**تشريح:** ﴿قال يا رسول الله اعلى افقرمني ومن اهلي﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه لاړ شئ دا صدقه کړئ، په دې باندې هغوی اوئيل چه آيا د خپل ځان نه په زيات محتاج ئې صدقه کړم، مطلب دا وو چه زه د ټولو نه زيات فقير او محتاج يم، رسول الله ﷺ اوفرمائيل ښه دا هم ته اوخوره، د دې مطلب دې دا وانخستلې شي چه د غريبئ او فقيرئ د وجې نه کفاره ساقط کيږي بلکه مطلب دا دې چه في الحال ته دا خرچ کړه او کفاره به دې په ذمه باندې باقی وی، چه کله دې قدرت اوشی بيا ئې ادا کړه.

**قوله:** قال ابوداود : هذا انما كفرت عنه من غير ان تستامره: مصنف فرمائی چه د دې روايت د ظاهر نه معلوميږي چه خويله کفاره ظهار د خپل خاوند د طرف نه بغير د خاوند د اطلاع نه ادا کړه، خو ظاهره ده چه هر کله د کفارې وجوب په خاوند بدې نو په هغې کښې کم از کم د هغه اجازت ضروري دې، بغير د هغه نه به کفاره څنګه ادا کيږی، او دا د مصنف خپله رائې ده ګينې شارحينو ليکلې دی چه د رواياتو نه معلوميږی چه د رسول الله ﷺ په مجلس کښې دې وخت کښې دواړه موجود وو لهذا د مصنف رائې تسليم نه ده.

[۲۲۱۸] (۱) قَرَأْتُ عَلَى مُحَمَّدِ بْنِ وَزِيرٍ الْمِصْرِيِّ، قُلْتُ لَهُ: حَدَّثَكُمْ بِشْرُ بْنُ بَكْرٍ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنَا عَطَاءٌ، عَنْ أَوْسٍ أَخِي عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَعْطَاهُ خَمْسَةَ عَشَرَ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ إِطْعَامَ سِتِّينَ مِسْكِينًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَعَطَاءٌ لَمْ يُدْرِكْ أَوْسًا، وَهُوَ مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ قَدِيمُ الْمَوْتِ. وَالْحَدِيثُ مُرْسَلٌ، وَإِنَّمَا رَوَوْهُ عَنْ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ عَطَاءٍ، أَنَّ أَوْسًا.

**ترجمه:** امام ابوداود فرمائی چه ما محمد بن الوزير ته اووئيل چه بشر بن بكر اوزاعي دعطاء نه نقل کړی دی اوهغه د عباده بن صامت دورور اوس نه چه نبی علیه السلام ورته په شپيته صاعو کښې پينځلس دمسکينانو دخوراك دپاره ورکړې، امام ابوداود فرمائی دعطاء ملاقات داوس سره ثابت نه دې ځکه چه اوس بدری دې دعطاء دپيدائش نه مخکښې وفات شوې وو اوداحديث مرسل دې.

[۲۲۱۹] (۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، أَنَّ جَمِيلَةَ كَانَتْ تَحْتَ أَوْسِ بْنِ الصَّامِتِ وَكَانَ رَجُلًا بِهِ لَمَمٌ، فَكَانَ إِذَا اشْتَدَّ لَمَمُهُ ظَاهَرَ مِنَ امْرَأَتِهِ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى فِيهِ كَفَّارَةَ الظِّهَارِ".

**ترجمه:** دهشام بن عروه نه روايت دې فرمائی چه جميله رضي الله عنها داوس بن صامت رضي الله عنه په نکاح کښې وه او اوس يو ليونې سړې وو چه کله به ئې ليونتوب زيات شو نودخپلې ښځې سره به ئې ظهار اوکړونو په دې وجه باندې الله تعالی دظهار دکفارې حکم نازل کړو.

**قوله:** ﴿ان جميلة كانت تحت اوس بن الصامت وكان رجلا به لمم فكان اذا اشتد لممه ظاهر من امراته الخ﴾: جميله د اوس بن صامت په نکاح کښې وه او هغه داسې سړې وو چه په هغه کښې لمم

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۴۳) (صحيح)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۸۸۴) (صحيح)

وو چه کله به په دغه لمم کښې شدت پيدا شو نو هغه به د خپلې ښځې سره ظهار کولو.

## شرح حديث:

دلته د لمم په تفسير کښې د شارحينو اختلاف دې، بعض د دې تفسير په المام بالنساء سره کړې دې، يعني شدة الحرص على الجماع... خو په دې باندې اشکال دا دې چه هر کله د لمم معنی دا ده نو بيا د دې مقتضی خو ظهار نه ده، د ظهار ترتب خو په دې معنی باندې صحيح نه دې، يو قول دا دې چه د دې نه مراد جنون دې، په دې باندې اشکال دې چه د جنون حالت خو ظهار يا بل يو عمل کول چه هم وی معتبر نه دې، د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه د هغه جنون مطلق نه وو بلکه کله کله به روغ وو او دا د ظهار واقعه د روغ والی په حالت کښې راپيښه شوې وه، او د شاه ولی الله صاحب رائې په دې کښې دا ده چه ﴿ان المراد باللمم سور الفکر الغضب فيما لا يغضب فيه الناس﴾ يعني د طبيعت غصه او تيزی او د انجام نه بې خبر کيدل، هذا الاثر مرسل وقد اخرجه عن عائشة الحاکم وصححه البيهقی. قاله فی المنهل.

[۲۲۲۰](1) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، مِثْلَهُ.

**ترجمه:** عروه هم دام المومنين عائشة رضی الله عنها نه ددې روايت په شان روايت بيان کړې دې.

[۲۲۲۱](2) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الطَّالَقَانِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ أَبَانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّ رَجُلًا ظَاهَرَ مِنِ امْرَأَتِهِ ثُمَّ وَاقَعَهَا قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ، فَقَالَ: "مَا حَمَلَكَ عَلَى مَا صَنَعْتَ"، قَالَ: رَأَيْتُ بَيَاضَ سَاقِهَا فِي الْقَمَرِ، قَالَ: "فَاعْتَزِلْهَا حَتَّى تُكَفِّرَ عَنْكَ".

**ترجمه:** دعکرمه رحمه الله نه روايت دې فرمائی چه يو سړي دخپلې ښځې سره ظهاروکړو اوظهار دکفارې دادا کولونه مخکښې ئې صحبت اوکړواوددې نه پس دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو اوتوله واقعه ئې ورته بيان کړه نبی عليه السلام تپوس اوکړو تاداسې ولې کړې دې؟ هغه عرض اوکړو اې دالله رسوله ماپه سپوږمۍ کښې دهغې دپندو سپنوالې اوليدو نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل ځان ترې جدا کړه ترڅوچه دې کفاره نه وې ورکړې.

[۲۲۲۲](3) حَدَّثَنَا الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ أَبَانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّ رَجُلًا ظَاهَرَ مِنِ امْرَأَتِهِ فَرَأَى بَرِيقَ سَاقِهَا فِي الْقَمَرِ، فَوَقَعَ عَلَيْهَا، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فَأَمَرَهُ أَنْ يُكَفِّرَ".

**ترجمه:** عکرمه رحمه الله نه روايت دې فرمائی چه يو سړي دخپلې ښځې سره ظهاروکړو اودهغې دپندو سپنوالې ئې دسپوږمۍ په رڼرا کښې اوليدو اوجماع ئې ورسره اوکړه بيا نبی عليه السلام ته ورغې نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل کفاره ادا کړه.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٨٨٤) (صحيح)

(2): سنن الترمذي/الطلاق ١٩ (١١٩٩)، سنن النسائي/الطلاق ٣٣ (٣٤٨٧)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٢٦ (٢٠٦٥)، (تحفة الأشراف: ٦٠٣٦) (صحيح)

(3): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٠٣٦) (صحيح)

[۲۲۲۳]()حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ أَبَانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرِ السَّاقَ.

**ترجمه:** عکرمه دابن عباس رضی الله عنه نه ددې روایت په شان روایت بیان کړې دې اود ساق لفظ ئې نه دې ذکرکړې.

[۲۲۲٤]()حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، أَنَّ عَبْدَ الْعَزِيزِ بْنَ الْمُخْتَارِ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، حَدَّثَنِي مُحَدِّثٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِنَحْوِ حَدِيثِ سُفْيَانَ.

**ترجمه:** عکرمه دابن عباس رضی الله عنه نه دسفیان روایت په شان روایت بیان کړې دې.

[۲۲۲۵]()قَالَ أَبُو دَاوُد: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ عِيسَى يُحَدِّثُ بِهِ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحَكَمَ بْنَ أَبَانَ يُحَدِّثُ بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَلَمْ يَذْكُرِ ابْنَ عَبَّاسٍ، قَالَ: عَنْ عِكْرِمَةَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: كَتَبَ إِلَيَّ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ أَبَانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ بِمَعْنَاهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** معتمروائی ماد حکم بن ابان نه واوریدل چه دا حدیث ئې بیانولو اودابن عباس رضی الله عنه ذکرئې ونکړو اوداسې ئې اووئیل عن عکرمه. امام ابوداود وائی حسین بن حریث ولیکل چه ماته فضل بن موسی خبر راکړو هغه دمعمر هغه دحکم بن امان او هغه دعکرمه او هغه دعبدالله بن عباس نه او هغه دنبی کریم صلی الله علیه وسلم ددې په شان روایت بیان کړې دې.

**تشریح:** ﴿کتب الی الحسین بن حریث قال﴾دا د سند شروع ده هم په دې وجه په بعض نسخو کښې لفظ ﴿کتب﴾په واضحه حروفو سره لیکلې شوې دې، ﴿حسین بن حریث﴾د مصنف استاذ دې، د کتاب النکاح په شروع کښې هم مصنف د هغه نه یو روایت بیان کړې دې هلته هم داسې دی، ﴿کتب الی﴾ممکنه ده چه مصنف د حسین بن حریث نه مخامخ په مخامخ روایت نه کوی بلکه په طریق د مکاتبت ئې د هغه نه روایات اخستلې وی.

## بَابٌ فِي الْخُلْعِ

### د خلع داحکامو بیان

د خلع لغوی معنی ﴿النزعه والازالة﴾ده، د خلع استعمال چه کله په باب الطلاق کښې کیږی نو خاء ته ضمه ورکولې شی او کله چه په لباس وغیره کښې استعمالولې شی نو هلته خاء مفتوح وی، تفرقة بین حسی والمعنوی.

### د خلع تعریف او د هغې حقیقت کښې د فقهاء کرامو اختلاف:

فی المنهل الخلع لغة النزع والازالة وشرعا ازالة ملک النکاح ببدل بلفظ الخلع ونحوه کالمباراة والبیع والشراء... ابن قدامه فرمائی چه کله د یوې زنانه خپل خاوند خوښ نه وی د څه وجې نه د بد اخلاقئ، عدم تدین یا ضعف وغیره په وجه باندې او د هغې ویره وی د خاوند د حقوق ضائع کولو نو د هغه دپاره خلع بعوض جائز دې لقوله تعالی فان خفتم ان لا یقیما حدود الله فلا

(۱): انظر حدیث رقم: ۲۲۲۱، (تحفة الأشراف: ٦٠٣٦) (صحیح)
(۲): انظر حدیث رقم: ۲۲۲۱، (تحفة الأشراف: ٦٠٣٦) (صحیح)
(۳): انظر حدیث رقم: ۲۲۲۱، (تحفة الأشراف: ٦٠٣٦) (صحیح)

جناح عليهما فيما افتدت به، ولقصة حبيبة بنت سهل وهو حديث صحيح ثابت الاسناد رواه الائمة مالک واحمد وغيرهما ولرواية البخاری قصة امراءة ثابت بن قيس ﴾بیا وړاندې لیکی چه د حجاز او شام فقهاء هم د دې خبرې قائل دی، زمونږ په علم کښې نه ده چه چا د دې مشروعيت انکار اوکړو سوا د بکر بن عبدالله المزنی چه هغه دا جائز نه ګڼړی، هغه دا وائی چه آيت خلع منسوخ دې په يو بل آيت سره يعنی د الله پاک قول ﴿وان اردتم استبدال زوج مكان زوج واتيتم احداهن قنطارا فلا تاخذوا منه شيئا الى اخر ما قال ﴾ واجاب عنه فارجع اليه ان شئت. په بذل المجهود کښې ليکلي دی چه د خلع په ماهيت کښې د علماء کرامو اختلاف دې د احنافو په نزد هغه طلاق دې او د امام شافعی دوه اقوال دی، يو قول د احنافو په شان او دويم قول دا چه هغه طلاق نه دې بلکه فسخ دې او د ثمره اختلاف به دا وی چه د خلع نه روستو که د هغه سره نکاح اوکړی نو صرف د دوه طلاقو اختيار به باقی وی زمونږ په نزد. او د امام شافعیؒ په نزد به د درې طلاقو حق وی، پس زمونږ په نزد د خلع نه پس دوه طلاق ورکولو سره حرمت غليظه واقع کيږی، د هغوی په نزد په دوه سره نه بلکه درې سره کيږی. اهـ او په اوجز المسالک کښې دی چه خلع د احنافو او مالکيانو په نزد طلاق بائن دې، د امام شافعی او احمد نه دوه روايتونه دی، خو اصح د امام شافعیؒ په نزد دا ده چه دا طلاق دې او د امام احمدؒ مشهور مذهب دا دې چه دا فسخ ده، هم دغه شان يوه بله ثمره د اختلاف د خلع د طلاق يا فسخ نکاح کيدو کښې دا هم ده چه د جمهورو په نزد کوم چه د دې د طلاق کيدو قائل دی د هغوی په نزد به مختلعه عدة ثلاثة قرؤ دې، او کوم چه د فسخ قائل دی د هغوی په نزد حيضه واحده لکه چه د ابن عباسؓ په حديث کښې وړاندې راځی، خو د امام احمدؒ په نزد باوجود د دې چه هغه د فسخ قائل دی مختلعه عدت د هغوی په نزد هم ﴿ثلاثة قرؤ ﴾دې، صرح به الحافظ فی الفتح، حافظ فرمائی چه د دې نه معلومه شوه چه د امام احمدؒ په نزد فسخ او نقص عدت کښې تلازم نشته، يعنی دا ضروری نه ده چه فسخ د طلاق د عدت نه کم وی.

[۲۲۲۶]()حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ، عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ سَأَلَتْ زَوْجَهَا طَلَاقًا فِي غَيْرِ مَا بَأْسٍ، فَحَرَامٌ عَلَيْهَا رَائِحَةُ الْجَنَّةِ".

**ترجمه:** د ثوبانؓ نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی: هره يوه زنانه چه د خپل خاوند نه د طلاقو مطالبه اوکړي بغير د ضرورته نو په هغې باندې د جنت بوئی حرام دې.

## توضيح الحديث

**قوله:** عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ سَأَلَتْ زَوْجَهَا طَلَاقًا فِي غَيْرِ مَا بَأْسٍ، فَحَرَامٌ عَلَيْهَا رَائِحَةُ الْجَنَّةِ".

کومه زنانه چه بغير د څه وجې نه د خپل خاوند نه د خلع مطالبه کوی په هغې باندې

[1]: سنن الترمذي/الطلاق ۱۱(۱۱۸۷)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۲۱ (۲۰۵۵)، (تحفة الأشراف: ۲۱۰۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۷۷/۵، ۲۸۳)، سنن الدارمي/الطلاق ٦(۲۳۱٦) (صحيح)

جنت حرام دي، او د ترمذی په روایت کښې داسې زنانو ته منافقه وئيلې شوې ده، ځکه چه د نکاح تقاضه محبت دې او خلع وی د نفرت په بناء، او د ترمذی په روایت کښې چه کوم د ثوبان رضي الله عنه نه مرفوعا روایت دې "المختلعات هن المنافقات" قال الترمذی، هذا حديث غريب من هذا الوجه، د دې نه پس بیا امام ترمذی د ابوداود والا روایت تخرج نه پس فرمائيل : وهذا حديث حسن، والحديث اخرجه ايضا ابن ماجة والترمذی وحسنه والبيهقی والحاكم وقال هذا حديث صحيح على شرط الشيخين. قاله في المنهل

[۲۲۲۷]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَعْدِ بْنِ زُرَارَةَ، أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ، عَنْ حَبِيبَةَ بِنْتِ سَهْلٍ الْأَنْصَارِيَّةِ، أَنَّهَا كَانَتْ تَحْتَ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ، وَأَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ إِلَى الصُّبْحِ فَوَجَدَ حَبِيبَةَ بِنْتَ سَهْلٍ عِنْدَ بَابِهِ فِي الْغَلَسِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ هَذِهِ؟" فَقَالَتْ: أَنَا حَبِيبَةُ بِنْتُ سَهْلٍ، قَالَ: "مَا شَأْنُكِ؟" قَالَتْ: لَا أَنَا وَلَا ثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ لِزَوْجِهَا، فَلَمَّا جَاءَ ثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ، قَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَذِهِ حَبِيبَةُ بِنْتُ سَهْلٍ، وَذَكَرَتْ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَذْكُرَ"، وَقَالَتْ حَبِيبَةُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كُلُّ مَا أَعْطَانِي عِنْدِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ: "خُذْ مِنْهَا"، فَأَخَذَ مِنْهَا، وَجَلَسَتْ هِيَ فِي أَهْلِهَا.

**ترجمه**: دحبیبه بنت سهل انصاریه (څوک چه دثابت بن قیس په نکاح کښې وه) نه روایت دې فرمائی چه یوه ورځ نبی علیه السلام په تیاره کښې دکور نه اووتو او حبیبه بنت سهل ئی ددروازې سره اولیدله تپوس ئی اوکړو چه څوک ئی؟ هغې ووئیل حبیبه بنت سهل څه خیره ده؟ هغې عرض اوکړو چه یاخوبه زه نه یم یابه ثابت بن قیس نه وی یعنی زمونږ یوځای اوسیدل مشکل دی کله چه ثابت بن قیس راغی نو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل دا زنا نه حبیبه بنت سهل ده الله تعالی ته چه څه منظور وو هغه ئی ماته بیان کړل حبیبه ووئیل ثابت بن قیس چه ماته څه راکړی دی هغه زما سره موجود دی نبی علیه السلام ثابت بن قیس ته ووئیل څه چه دی ورکړی هغه ورنه واخله چنانچه ثابت ورنه هغه څیزونه واپس واخستل ددینه حبیبه دمور په کور کښې کیناسته (نکاح منسوخ شوه).

**مضمون د حديث :**

حبیبه بنت سهل رضي الله عنها د خپل زوج ثابت بن قیس رضي الله عنه نه د خلع واقعه خپله بیانوی چه یو ځل زما خاوند زه ډیره اوهلم نو زه د سحر مانځه نه په تیاره کښې د رسول الله ﷺ په دروازه باندې کیناستلم (چه کله رسول الله ﷺ د مونځ دپاره په دې دروازه باندې بهر تشریف راوړی نو خپله قصه به هغه ته بیانوم) پس چه کله رسول الله ﷺ بهر تشریف راوړلو نو هغه ترې تپوس اوکړو چه څوک ئې؟ هغه فرمائی چه ما عرض اوکړو چه حبیبه بنت سهل دې، د رسول الله ﷺ په تپوسلو باندې ما عرض اوکړو چه (لا انا ولا ثابت بن قيس) چه زه د خپل خاوند ثابت بن قیس سره نه شم اوسیدې، بیا چه کله ثابت بن قیس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ مجلس ته حاضر شو نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه دا ستا ښځه ده چه ستا نه شکایت

[1]): سنن النسائي/الطلاق ٣٤ (٣٤٩٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٩٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطلاق ١١(٣١)، مسند احمد (٤٣٤/٦)، سنن الدارمي/الطلاق ٧ (٢٣١٧) (صحيح)

کوی او خلع کول غواړی، حبیبه فرمائی چه ما دا عرض هم اوکړو چه هغه ماته څه مهر راکړې دې هغه ما سره موجود دې، رسول الله ﷺ ثابت رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه دې سره خلع اوکړه او څه چه ستا دې سره دی هغه تړې واخله، ﴿وجلست فی اهلها﴾ پس هغه د هغې نه بدل خلع وصول کړو او د هغه ښځه په خپل کور کښې په ارام سره کیناستله، په منهل کښې لیکلې دی چه د انقضاء عدت نه روستو د هغې سره ابی بن کعب رضی الله عنه نکاح اوکړه. والحدیث اخرجه ایضا الائمة والنسائی والبیهقی وصححه خزیمة وابن حبان قاله فی المنهل. وړاندې په روایت کښې دی ﴿فانی اصدقتها حدیقتین وهما بیدها﴾ چه ما هغه ته په مهر کښې دوه باغونه ورکړی دی کوم چه هغې سره موجود دی.

**تنبیه** : د ابوداود په دې روایت کښې دا دې چه ثابت بن قیس د خپلې ښځې سره خلع کړې وه هغه حبیبه بنت سهل ده، په دې کښې دوه روایتونه دی، د نسائی په یو روایت کښې خو داسې دی او په یو روایت کښې په ځائې د حبیبه جمیله راغلې دې، پس بعض محدثین خو دا اختلاف په اختلاف فی التسمیة (یعنی په نامه کښې اختلاف) باندې حمل کړې دې، او حافظ د ابن عبدلبر نه د هغه رائې دا نقل کړې ده چه ظاهره ده چه دا دوه قصې دی کومې چه د زنانو سره جدا جدا پیښې شوې وې ، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې فرمائی چه چونکه د ثابت بن قیس په طبعیت کښې شدت او سختی وه په دې وجه کیدې شی چه هغه د خپلو دواړو ښځو سره جدا جدا وخت کښې خلع کړې وی.

**فائده** : د ابوداود د دې روایت نه معلومیږی چه سبب خلع په دې قصه کښې د هغه خاوند بد اخلاقی او مزاج سختی ده، او د ابن ماجه د روایت نه معلومیږی چه د دې ظاهری سبب د هغه بد شکله کیدل دی، پس د ابن ماجه په روایت کښې دی من حدیث عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده کانت حبیبة بنت سهل عند ثابت بن قیس وکان رجلا دمیما فقالت والله لولا مخافة الله اذا دخل علی لبصقت فی وجهه... دې باره کښې نور مختلف روایات حضرت شیخ په اوجز المسالک کښې ذکر فرمائیلې دې، د بخاری په یو روایت کښې داسې دې هغه وائی ﴿ما اعتب علیه فی خلق ولا دین ولکنی اکره الکفر فی الاسلام، قال الحافظ ای لکنی اکره ان اقمت عنده ان اقع فیما یقتضی الکفر﴾ [1]

[۲۲۲۸] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا أَبُو عَمْرٍو السَّدُوسِيُّ الْمَدِينِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ حَبِيبَةَ بِنْتَ سَهْلٍ كَانَتْ عِنْدَ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ، فَضَرَبَهَا فَكَسَرَ بَعْضَهَا، فَأَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الصُّبْحِ فَاشْتَكَتْهُ إِلَيْهِ، فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَابِتًا، فَقَالَ: "خُذْ بَعْضَ مَالِهَا وَفَارِقْهَا"، فَقَالَ: وَيَصْلُحُ ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "نَعَمْ"، قَالَ: فَإِنِّي أَصْدَقْتُهَا حَدِيقَتَيْنِ، وَهُمَا بِيَدِهَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خُذْهُمَا فَفَارِقْهَا"، فَفَعَلَ.

[۲۲۲۹] [1] ماته غصه نه خو د هغه په اخلاقو ده او نه د هغه په دین باندې بلکه خبره دا ده چه ماته د خپل کفر ویره ده په اسلام کښې یعنی د هغې سره په اوسیدو کښې ماته دا ویره ده چه په یو داسې فعل کښې اخته نه شم چه د هغې نه کفر لازم شی.

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۰۳) (صحيح)

**ترجمه**: دام المومنین عائشه رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه حبیبه بنت سهل دثابت بن قیس بن شماس په نکاح کښې وه دومره ئې وهلې وه چه هډوکی ئې ورله مات کړی وو، نو دسحرنه پس دنبی علیه السلام په خدمت حاضره شوه او دخپل خاوندنه ئې ورته شکایت اوکړو نو نبی علیه السلام ثابت را اوغوښتو اوورته ئې اوفرمائیل ددې مال نه بعضې واخله او جدا شه ورنه ، ثابت عرض اوکړو ایا دا جائز دی ؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل هو هغه ووئیل چه دوه باغونه مې ورته په مهر کښې ورکړی وو او هغه ورسره دی نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل هغه واخله او ددې نه جدا شه نو ده همدغسې اوکړل.

(١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ بَحْرٍ الْقَطَّانُ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ امْرَأَةَ ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ اخْتَلَعَتْ مِنْهُ، فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِدَّتَهَا حَيْضَةً". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا الْحَدِيثُ رَوَاهُ عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مُرْسَلًا.

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دی فرمائی چه دثابت بن قیس ښځې دخپل خاوند سره خلع کړې وه او نبی علیه السلام دهغې عدت یو حیض تیریدل مقرر کړل. امام ابوداود فرمائی چه دا روایت عبدالرزاق هم دمعمر نه او هغه دعمرو بن مسلم نه او هغه دعکرمه نه او هغه دنبی علیه السلام نه مرسل بیان کړی دی.

[٢٢٣٠] (٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "عِدَّةُ الْمُخْتَلِعَةِ حَيْضَةٌ".

**ترجمه**: نافع وائی چه ابن عمر رضی الله عنه به فرمائیل د مختلعی (چاچه خلع کړې وی) عدت یو حیض دی.

## بَابٌ فِي الْمَمْلُوكَةِ تَعْتِقُ وَهِيَ تَحْتَ حُرٍّ أَوْ عَبْدٍ

### باب: دآزاد یا دغلام په نکاح کښې موجوده وینځې د آزادۍ بیان

په دې ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله مذکور ده د هغې نوم دې خیار عتق، او امام مالک په موطاء کښې باب قائم کړې دې، ﴿ما جاء فی الخیار﴾.

### په نکاح کښې د خیار قسمونه

او حضرت شیخ په اوجز کښې د زنانه د نکاح په باره کښې چه کوم خیار حاصل وی د هغې څو قسمونه لیکلې دی، یو ﴿لاجل العیب فی الزوج﴾، او یو خیار هغه دې کوم چه حره ته حاصل وی او د هغې خاوند په هغې باندې د وینزې سره نکاح اوکړی چه د هغې صرف امام مالک قائل دې، او یو قسم دې خیار البلوغ، یعنی خیار الزوجین بعد البلوغ، او یو خیار هغه دې کوم چه اوس نزدې تیر شو یعنی تخییر الطلاق، او یو خیار عتق کوم چه مصنف دلته بیانوی، مصنف په دې باب کښې قصه بریره ذکر فرمائیلې ده او چونکه د هغې د خاوند په باره کښې روایات مختلف دی چه هغه د عتق بریره په وخت د هغه نه مخکښې

(١): سنن الترمذي/الطلاق ١٠ (١١٨٥)، (تحفة الأشراف: ٦١٨٢) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٣٩٥) (صحيح)

ازاد شوي وو یا نه بلکه روستو شو، هم په دې بناء مصنف دلته په ترجمة الباب کښې ﴿وهی تحت حر او عبد﴾ فرمائیلې دی.

## په خیار عتق کښې اختلاف ائمه:

د دې نه روستو ځان پوهه کړه چه د خیار عتق مسئله د ائمه کرامو ترمینځه مختلف ده، د احنافو مسلک دا دې چه امة مزوجه که ازاد کړې شي نو د هغې د ازادیدو نه پس په هر حال کښې خیار حاصل وی برابره خبره ده که د هغې خاوند حر وی یا عبد وی چه د هغې دلیل وړاندې راروان دې، او د ائمه ثلاث په نزد معتقه وینزې ته دا اختیار هغه وخت حاصل وی چه کله د هغې خاوند عبد وی او که ازاد وی نو بیا نه، د جمهورو په نزد د دې خیار علت کفاءت یعنی کفوه برابر نه دې چه هغه زنانه اول وینزه وه اوس حره شوه، او عدم کفاءت هم په هغه صورت کښې موندلې شي چه کله د هغې خاوند عبد وو، او د احنافو په نزد د دې علت د ملک زیادت دې چه د دې وینزې خاوند ته اول صرف دوه طلاقه ورکولو اختیار وو هم د دې نه بینونت واقع کیږی او اوس د هغې د ازادیدو نه پس خاوند ته د درې طلاقه ورکولو اختیار کیږی نو شریعت د زنانه رعایت کولو سره اوئیل چه کیدې شی که هغه ته دا خبره ناخوښه وی ځکه چه هغه ته دا اختیار ورکړو، د سابق خاوند په نکاح کښې د اوسیدو او نه اوسیدو، دا دلیل خو نظری او عقلی دې.

## عتق بریره کښې اختلافات روایات:

او دلیل نقلی د احنافو په نزد قصه بریره ده چه د هغه د ازادیدو نه روستو رسول الله ﷺ هغوی ته خیار یع اختیار ورکړو او د هغې خاوند د احنافو په تحقیق کښې د عتق بریره په وخت حر یعنی اصیل وو او د شافعیه تحقیق دا دې چه د عتق بریره په وخت باندې د هغې خاوند عبد وو نه حر، په دې کښې شک نشته چه روایات په دې کښې دواړه قسمه دی، مصنف په دې باب کښې دوه روایتونه ذکر فرمائیلې دی یو د ابن عباس او دویم د عائشې رضی الله عنها، د ابن عباس رضی الله عنهما مصنف په دوه طریق سره سره ذکر کړې دې، په دې دواړو کښې خو د زوج بریره رضی الله عنها په باره کښې دا دی چه هغه عبد وو او چه د هغه نوم مغیث دې، او د عائشې رضی الله عنها په حدیث کښې اختلاف دې د هغه د حدیث په یو طریق کښې دا دی چه ﴿کان زوجها عبدا﴾ او په بل کښې دی ﴿کان حرا﴾

ابن الهمام فرمائی چه په حدیث عائشه رضی الله عنها کښې راجح هغه دې چه په هغې کښې دی ﴿انه کان حرا﴾ ځکه چه دا روایت د عائشې رضی الله عنها نه روایت کونکی درې کسان دی، اسود، عروه، ابن القاسم، د اسود روایت خو صرف دا دې چه ﴿انه کان حرا﴾، او د عروه نه دوه روایتونه دی کوم چه دواړه صحیح دی، ﴿احدهما انه کان حرا والاخری انه کان عبدا﴾ (لهذا د تعارض د وجې نه د عروه روایت خو ساقط شو) او د ابن القاسم نه هم دوه روایتونه دی په یو کښې دی بالجزم انه کان حرا، او دویم روایت شک سره دې، لهذا د جزم والا روایت په مقابله کښې د شک والا روایت ساقط کیږی، اوس نتیجة دا ثابته شوه چه ﴿ انه کان حرا ﴾ (من الاوجز)

حضرت شيخ دا مضمون په اوجز کښې د ابن الهمام نه نقل کولو نه پس ليکی. وهکذا حکی الشيخ فی البذل عن ابن القيم عن عائشة، د دې نه پس په اوجز کښې په دې باندې مزيد کلام دې د علامه عينی وغيره نه.

[۲۲۳۱](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ مُغِيثًا كَانَ عَبْدًا، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، اشْفَعْ لِي إِلَيْهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا بَرِيرَةُ، اتَّقِي اللَّهَ، فَإِنَّهُ زَوْجُكِ وَأَبُو وَلَدِكِ". فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَتَأْمُرُنِي بِذَلِكَ؟ قَالَ: "لَا، إِنَّمَا أَنَا شَافِعٌ". فَكَانَ دُمُوعُهُ تَسِيلُ عَلَى خَدِّهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْعَبَّاسِ: "أَلَا تَعْجَبُ مِنْ حُبِّ مُغِيثٍ بَرِيرَةَ وَبُغْضِهَا إِيَّاهُ".

**ترجمه**: دابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه مغيث (بريری خاوند) يو غلام وو عرض ئې اوکړو ای دالله رسوله بريری ته مې سفارش اوکړه . نبی عليه السلام اوفرمائيل ای بريری دالله نه ويره اوکړه داخو ستا خاوند دی او ستا دبچو پلار دې بريری عرض اوکړو ای دالله رسوله ايا ته پدی باندی حکم کوی؟نبی عليه السلام اوفرمائيل نه بلکه زه سفارش کوم او مغيث او خکی په مخ باندی رابهيدلی نبی عليه السلام عباس رضی الله عنه ته اوفرمائيل دمغيث محبت ته دی خيال دی دبريری سره او دبريری بغض ته دده سره چه دتعجب قابل دی؟

﴿ عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما ان مغيثا کان عبدا فقال يا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشفع لی اليها ﴾

### مضمون حديث:

د سيده بريره رضی الله عنها خاوند سيدنا مغيث رضی الله عنه رسول الله صلی الله عليه وسلم ته عرض اوکړو چه يا رسول الله صلی الله عليه وسلم زما په باره کښې بريره ته سفارش اوکړئ، په دې باندې رسول الله صلی الله عليه وسلم بريره پوهه کړه، په دې باندې هغې عرض اوکړو يا رسول الله صلی الله عليه وسلم دا تاسو چه ماته څه وايئ دا ستا حکم دې؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل نه سفارش دې، مطلب دا وو چه که حکم وی نو بيا خو ئې پوره کول ضروری دی، او که صرف د سفارش درجه ده نو بيا ماته اختيار دې.

وړاندې په روايت کښې د مغيث د بې قرارئ حال مذکور دې چه هغه به د بريره په جدائئ کښې ژړل، رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغه په ليدو باندې عباس رضی الله عنه ته اوفرمائيل: الا تعجب من حب مغيث بريرة وبغضها اياه... ايا ته نه ګورې چه د مغيث خو د بريره سره دومره محبت دې او د بريره ترې څومره نفرت دې.

والحديث اخرج نحوه البخاری وابن ماجة والترمذی. (المنهل)

[۲۲۳۲](۲) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ زَوْجَ بَرِيرَةَ كَانَ عَبْدًا أَسْوَدَ يُسَمَّى مُغِيثًا، فَخَيَّرَهَا يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمَرَهَا أَنْ تَعْتَدَّ".

**ترجمه**: دابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه دبريری خاوند يو تور غلام وو مغيث نوم

(۱): صحيح البخاري/الطلاق ۱۵ (۵۲۸۲)، ۱٦ (۵۲۸۳)، سنن النسائي/ آداب القضاء ۲۷ (۵٤۱۹)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۲۹ (۲۰۷۵)، (تحفة الأشراف: ٦۰٤۸)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الرضاع ۷ (۱۱۵٤)، مسند احمد (۲۱۵/۱)، سنن الدارمي/الطلاق ۱۵ (۲۳۳۸) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الطلاق ۱۵ (۵۲۸۰)، (تحفة الأشراف: ٦۱۸۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۸۱/۱، ۳٦۱) (صحيح)

ئې وو نبی ﷺ بريرې ته اختيار ورکړې وو (يعنی ستا خوښه ده چه ورته جدا کيږې او که ورسره اوسيږې) چنانچه بريره رضی الله عنها پريخودله او نبی ﷺ ورته دعدت تيرولو حکم اوکړو.

[۲۲۳۳]( )حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ فِي قِصَّةِ بَرِيرَةَ، قَالَتْ: "كَانَ زَوْجُهَا عَبْدًا فَخَيَّرَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا، وَلَوْ كَانَ حُرًّا لَمْ يُخَيِّرْهَا".

**ترجمه:** عروه دخپل پلارنه هغه دعائشې رضی الله عنها نه دبريرې په قصه کښې نقل کړې دی چه فرمائيل ئې دبريرې خاوند يوغلام وونبی ﷺ بريرې ته اختيار ورکړې وو (يعنی ستا خوښه ده چه ترې جدا کيږې او که ورسره اوسيږې) نو بريره رضی الله عنها اختيارقبول کړوپه خپل حق (اوخاوند ئې خوښ نکړو) که چرې ددې خاوند ازاد وې نونبی ﷺ به بريرې ته اختيار نه وو ورکړې.

[۲۲۳۴]( )حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَالْوَلِيدُ بْنُ عُقْبَةَ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ بَرِيرَةَ خَيَّرَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ زَوْجُهَا عَبْدًا".

**ترجمه:** دام المومنين عائشة رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ بريرې ته اختيار ورکړې وو (يعنی ستا خوښه ده چه ترې جدا کيږې او که ورسره اوسيږې او دهغې خاوند يو غلام وو.

## باب مَنْ قَالَ كَانَ حُرًّا

### دهغه خلقو د قول بيان چه د بريرې خاوند ازاد وو

اوګورئ مصنف د زوجه بريره په حر کيدو باندې مستقل باب قائم کوی، دا هم په ذهن کښې ساتئ چه په دې روايات مختلفه کښې يو روايت هم د احنافو د مسلک خلاف نه دې، ځکه چه دا ټول روايات په دې باندې خو متفق دی چه بريره ته د هغې د عتق نه پس خو اختيار ورکړې شوې وو هغه وخت د هغې خاوند څه وو، اوس د احنافو په نزد اختيار په هر حال کښې وی برابره خبره ده که هغه عبد وو يا حر، خو په دې رواياتو کښې به يو قسم روايات د جمهورو خلاف وی، چه په هغې کښې دا دی «کان حرا »او دا جدا خبره ده چه که «کان حرا »ثابتيږی نو د احنافو په حق کښې نوره هم مفيده خبره ده. كما هو ظاهر

[۲۲۳۵]( )حَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ زَوْجَ بَرِيرَةَ كَانَ حُرًّا حِينَ أُعْتِقَتْ، وَأَنَّهَا خُيِّرَتْ"، فَقَالَتْ: مَا أُحِبُّ أَنْ أَكُونَ مَعَهُ وَأَنَّ لِي كَذَا وَكَذَا.

---

[۱]: صحيح مسلم/العتق ۲ (۱۵۰۴)، سنن الترمذي/الرضاع ۷ (۱۱۵۴)، والبيوع ۳۳ (۱۲۵۶)، والوصايا ۷۱ (۲۱۲۴)، والولاء ۱ (۲۱۲۵)، سنن النسائي/الزكاة ۹۹ (۲۶۱۵)، والطلاق ۲۹ (۳۴۷۷)، ۳۰ (۳۴۸۰)، ۳۱ (۳۴۸۳، ۳۴۸۴)، والبيوع ۷۸ (۴۶۴۶، ۷۴۶۴)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۲۹ (۲۰۷۴)، والأحكام ۳ (۲۳۲۴)، (تحفة الأشراف: ۱۶۷۷۰)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العتق ۱۰ (۲۵۳۶)، والهبة ۷ (۲۵۸۷)، والنكاح ۱۸ (۵۰۹۷)، والطلاق ۱۴ (۵۲۷۹)، ۱۷ (۵۲۸۴)، والأطعمة ۳۱ (۵۰۳۰)، والأيمان ۸ (۶۷۱۷)، والفرائض ۲۲ (۶۷۵۱)، ۲۳ (۶۷۵۴)، موطا امام مالك/الطلاق ۱۰ (۲۵)، مسند احمد (۴۶/۶، ۱۱۵، ۱۲۳، ۱۷۲، ۱۷۵، ۱۷۸، ۱۹۱، ۲۰۷)، سنن الدارمي/الطلاق ۱۵ (۲۳۳۷) (صحيح)

[۲]: صحيح مسلم/ العتق ۲ (۱۵۰۴)، الزكاة ۵۲ (۱۰۷۵)، سنن النسائي/الكبري/ الفرائض (۶۴۰۶)، (تحفة الأشراف: ۱۷۴۹۰) (صحيح)

[۳]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۹۹۷) (صحيح)

**ترجمه**: دام المومنین عائشة رضي الله عنها نه روایت دي فرمائی چه دبریري خاوند ازاد وو کله چه دا ازادیدله اودې ته اختیار ورکړې شوې وو اووئې وئیل زما خوښه نه ده چه زه دي دده سره یم اګرچه ماته دومره دومره مال راکړي.

**تشریح**: عن الاسود عن عائشة رضی الله تعالی عنها ان زوج بريرة كان حرا حين اعتقت.

دا مخکښې تیر شو چه د اسود نه په ټولو روایاتو کښې د زوج بریره حر کیدل روایت شوې دی. وقد اخرج الحديث البيهقی والترمذی، واخرجه النسائی مطولا (المنهل مختصرا)

## بَابٌ حَتَّى مَتَى يَكُونُ لَهَا الْخِيَارُ

### باب دې په بیان ددې کښې چه ښځې سره اختیار څومره پورې وی؟

یعنی خیار عتق کوم چه د عتق نه روستو وینزې ته حاصل وی هغه هغې ته تر کومې وی، په مسئله کښې فی الجمله اختلاف دې چه د هغې خلاصه دا ده چه د ائمه ثلاث په نزد دا خیار علی التراخی یعنی اختیار روسته کول دې تردې چه هغه قدرت ورکړی زوج لره په خپل نفس باندې ﴿فان وطئها فلا خيار لها﴾ او د امام شافعی رحمه الله په یو قول کښې دا خیار علی الفور دې، وعنه الی ثلاثة ايام، او عند الحنفية معتقه ته دا خیار حاصل وی چه ترڅو پورې هغه د مجلس نه اوندریږی، یعنی په مجلس عتق کښې دننه دننه اوسیږی، د هغې نه روستو باقی نه پاتې کیږی مګر دا چه په مجلس کښې یو څیز د زنانه د طرف نه داسې بیا موندلې شی کوم چه په اعراض باندې دلالت کوی نو بیا سره د قیام مجلس به هم خیار باقی نه وی.

[۲۲۳٦][1] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ، وَعَنْ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، وَعَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ بَرِيرَةَ أُعْتِقَتْ وَهِيَ عِنْدَ مُغِيثٍ عَبْدٍ لِآلِ أَبِي أَحْمَدَ، فَخَيَّرَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ لَهَا: "إِنْ قَرِبَكِ فَلَا خِيَارَ لَكِ".

**ترجمه**: د ام المؤمنین عائشه رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه بریره آزاده شوه او د مغیث په نکاح کښې وه او مغیث په دغه وخت کښې د أبو احمد په خاندان کښې د یوکس غلام وو نبی علیه السلام ورته اختیار ورکړو او ورته ئې اووئیل که چرې نزدیکت ئې درته اوکړو نو اختیار دې ختم شو.

## بَابٌ فِي الْمَمْلُوكَيْنِ يُعْتَقَانِ مَعًا هَلْ تُخَيَّرُ امْرَأَتُهُ

### کله چه ښځه خاوند په یو ځائ آزاد شی نو ښځې ته به اختیار وی او که نه؟

یعنی که زوجین دواړه مملوک وی او یوه وینزه ده او دویم غلام، که د هغوی مالک یوځائې ازاد کړې شی، نو ایا په دې صورت کښې خیار عتق حاصل وی؟ په تیر شوی باب کښې چه مونږ کومه ضابطه بیان کړې ده د هغې نه دا خبره فهم ته راځی چه عند الحنفية خو به خیار حاصل وی او د ائمه ثلاث په نزد به حاصل نه وی، خو د امام احمد نه په دې صورت کښې دوه روایتونه نقل شوې دی، یو خو دا چه لا خيار لها وهو الاصح، والثانية لها الخيار، قاله ابن قدامة. (تکملة المنهل)

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۱۸٤، ۱۹۲٦۰) (حسن)

[۲۲۳۷](¹)حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، وَنَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَ زُهَيْرٌ: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَوْهَبٍ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّهَا أَرَادَتْ أَنْ تُعْتِقَ مَمْلُوكَيْنِ لَهَا زَوْجٌ، قَالَ: فَسَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَأَمَرَهَا أَنْ تَبْدَأَ بِالرَّجُلِ قَبْلَ الْمَرْأَةِ". قَالَ نَصْرٌ: أَخْبَرَنِي أَبُو عَلِيٍّ الْحَنَفِيُّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ.

**ترجمه:** دقاسم نه روايت دي فرمائي چه ام المومنين عائشه رضي الله عنها دا اراده اوکړه چه خپل غلام او وينځه آزاد کړي کوم چه پخپل مينځ کښي ښځه اوخاوند وو نبی عليه السلام نه ئي تپوس اوکړونونبی عليه السلام ورته اوفرمائيل چه اول خاوند آزاد کړه (ددې دپاره چه ښځې ته دنکاح د ماتولو اختيار حاصل نه شي) نصربن علی وئيلي دي چه دا روايت ماته ابوعلی الحنفي دعبيدالله نه بيان کړي دي.

**شرح حديث :**

په دې حديث کښې د ترجمة الباب والا صورت مذکور دې، سيده عائشه رضي الله عنها د دې دواړو د ازادولو اراده اوفرمائيله نو هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو چه د اعتاق شروع د چا نه اوکړم؛ د غلام نه يا د وينزې نه؟ هغه اوفرمائيل د سړی نه ابتداء اوکړئ. احناف خو د دې مصلحت دا بيانوی ﴿ انما قدم الرجل لشرفه ﴾او جمهور د خپل مسلک د وجې نه مصلحت دا بيانوی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د تقديم رجل مشهور په دې وجه ورکړه چه د حره تحت العبد والا شکل بيا نه موندلې شی او نکاح قائم او باقی پاتې شی او زنانه ته خيار حاصل نه وی ګينې د دې برعکس صورت کښې به زنانه ته خيار حاصل وی. دا مصلحت جمهورو د خپل مسلک د وجې نه او د هغې په رعايت او تائيد کښې بيان کړې دې، زمونږ بعض استاذانو د دې جواب دا ورکړې دې چه که دا خبره وې ځه چه تاسو وايئ يعنی د تقديم مراءة په صورت کښې زنانه ته خيار حاصل وې نو مونږ به وايو چه بيا به رسول الله صلى الله عليه وسلم د تقديم رجل مشوره نه ورکوله ځکه چه په دې سره د زنانه حق ضائع کيږی، او رسول الله صلى الله عليه وسلم چاته داسې مشوره نه ورکوی چه په هغې سره د چا حق ضائع شی.

والحديث اخرجه نحوه النسائي وابن ماجة (تكملة المنهل)

## بَابُ إِذَا أَسْلَمَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ

### باب په ښځه او خاوند کښې يو کس مسلمان شی ددې د حکم بيان

[۲۲۳۸](²)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَجُلًا جَاءَ مُسْلِمًا عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ جَاءَتِ امْرَأَتُهُ مُسْلِمَةً بَعْدَهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهَا قَدْ كَانَتْ أَسْلَمَتْ مَعِي فَرُدَّهَا عَلَيَّ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه دنبی عليه السلام په زمانه کښې يوکس اسلام قبول کړو اونبی عليه السلام ته راغې اوددې نه پس دهغه ښځه مسلمانه شوه ده عرض اوکړو

¹): سنن النسائي/الطلاق ٢٨ (٣٤٧٦)، سنن ابن ماجه/العتق ١٠ (٢٥٣٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٣٤) (ضعيف)

²): سنن الترمذي/النكاح ٤٢ (١١٤٤)، سنن ابن ماجه/النكاح ٦٠ (٢٠٠٨)، (تحفة الأشراف: ٦١٠٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٢، ٣٢٣) (ضعيف)

اې دالله رسوله زمابنځې زماسره یوځائې اسلام قبول کړې دې نبی ﷺ دهغه ښځه هم هغه ته ورکړه.

**په تباین یعنی چې جداجدا دارین کښې د جمهورو او احنافو مسلک:**

که احد الزوجین اسلام راوړلو سره د دار الحرب نه دار الاسلام ته راشي نو په دې سره د احنافو په نزد دلته فرقت واقع کیږي، ځکه چه د احنافو په نزد تباین دارین موجب یعنی جداوالې واجب کوی فرقت دې په خلاف د جمهورو چه د هغوی په نزد تباین موجب فرقت نه دې بلکه سبی الزوجین یا سبی احد الزوجین یعنی دواړه یا چې یو کس قیدی کړې شی موجب فرقت دې یعنی مسلمان د زوجین مشرکین نه دواړو لره یا په دواړو کښې یو لره قید کړې نو په دې سره د هغوی په نزد نکاح فسخ کیدو سره فرقت یعنی جدا والې واقع کیږي.

د پورته حدیث مضمون دا دې چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د زوجین مشرکین نه سړې اسلام قبولولو سره د دار الحرب نه دار الاسلام ته راغلو بیا څو ورځې پس د هغه ښځې هم اسلام قبول کړو او هلته لاړه، زوج رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ زما ښځې ما سره اسلام قبول کړې وو (خو په هجرت کولو کښې وړاندې روستو شو) رسول الله ﷺ د هغه ښځې لره هم د هغه طرف ته واپس کړو، یعنی نکاح ئې برقرار اوساتله.

**توجیه الحدیث علی مسلک الحنفیة:**

دلته دا سوال کیدې شی چه په دې واقعه کښې تباین دارین اوموندلې شو خو د هغې باوجود په دواړو کښې فرقت نه واقع کیږي ګویا حدیث د احنافو خلاف شو، د دې جواب دا دې چه دلته تباین دارین صرف صورة اوموندلې شو، صورة او حکما نه دې موندلې شوې، ځکه چه هر کله زنانه هم دخاوند سره اسلام قبول کړې وو نو اګر چه هغه ته مدینې منورې ته رسیدو کښې تاخیر راغلې وو خو د اسلام د قبولولو نه پس هغه علی شرف الهجرة وو، د هجرت موقع ئې کتله پس دلته تباین دارین صورة خو شو خو حکما نه شو، او زمونږ په نزد تباین دارین هغه د جدایئ سبب دې کوم چه صورة او حکما دواړه وی. فلا اشکال.

والحدیث اخرجه ایضا الترمذی (تکملة المنهل)

[۲۲۳۹] ([1]) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنِي أَبُو أَحْمَدَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: أَسْلَمَتِ امْرَأَةٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَتَزَوَّجَتْ، فَجَاءَ زَوْجُهَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي قَدْ كُنْتُ أَسْلَمْتُ وَعَلِمَتْ بِإِسْلَامِي، فَانْتَزَعَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ زَوْجِهَا الْآخَرِ وَرَدَّهَا إِلَى زَوْجِهَا الْأَوَّلِ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضی الله عنه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ په زمانه کښې یوې ښځې اسلام قبول کړو اود یو مسلمان سره ئې نکاح اوکړله بیا ددې خاوند نبی ﷺ ته راغې اوعرض ئې اوکړوچه اې دالله رسوله ماهم اسلام قبول کړې وو اوهغې ته زما داسلام پته وه (یعنی ددې معلومات باوجود ئې دبل چاسره نکاح کړې ده) نونبی ﷺ ددویم خاوندنه ازاده کړه او اولنې خاوند ته ئې حواله کړه.

---

[1] : انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۶۱۰۷)

**تشریح:** د دې نه روستو چه بل کوم حدیث راروان دې د هغې راوی هم ابن عباس دې د هغې مضمون هم تقريبا دا دې خو هلته د هجرت معامله برعکس ده، يعنى اسلام راوړلو سره زنانه مخکښې مدينې منورې ته راغله او د هغې خاوند روستو راورسيدو، او يو فرق دا هم دې هغه دا چه په اول روايت کښې خو د دې خبرې تصريح ده چه دواړوو په يوځائې اسلام قبول کړې وو او په دې دويم روايت کښې د يو ځائې اسلام قبلولو تصريح نشته، اوس يا خو به دا هم په معيت باندې محمول کړې شی، او که معيت او نه منلې شی نو بيا به دا حديث د احنافو خلاف وی، خو د جمهورو د مسلک پيش نظر دې دا هم اوئيلې شی چه د سړی اسلام د انقضاء عدت نه مخکښې وو ځکه چه انقضاء يعنی عدت پوره کيدو عدت قبل اسلام الاخر بالاجماع موجب فرقت دې.

## بَاب إِلَى مَتَى تُرَدُّ عَلَيْهِ امْرَأَتُهُ إِذَا أَسْلَمَ بَعْدَهَا

**باب: کله چه سړې د ښځې نه پس اسلام قبول کړی نو تر کومې پورې به ښځه هغه ته واپس کولې شی؟**

د ترجمې حاصل دا دې چه په زوجين مشرکين که يو د بل نه مخکښې اسلام راوړی يعنی د دواړو په اسلام کښې فصل بيا موندلې شی نو اخر څو پورې به هغه زنانه لره دې سړی ته واپس کولې شی، يعنی ترڅو پورې به د هغه په نکاح کښې باقی وی؟ د دې مسئلې اجمالی جواب خو دا دې چه اسلام اخر قبل انقضاء العدة دې نو د دواړو ترمينځه به نکاح باقی وی، او که اسلام اخر بعد انقضاء العدة دې نو بيا نه.

[۲۲۴۰](1)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ الْفَضْلِ، ح وحَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ الْمَعْنَى، كُلُّهُمْ عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ الْحُصَيْنِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "رَدَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْنَتَهُ زَيْنَبَ عَلَى أَبِي الْعَاصِ بِالنِّكَاحِ الْأَوَّلِ لَمْ يُحْدِثْ شَيْئًا". قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو فِي حَدِيثِهِ: "بَعْدَ سِتِّ سِنِينَ"، وَقَالَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ: "بَعْدَ سَنَتَيْنِ".

**ترجمه:** عکرمه دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت کوی اوهغه دنبی عليه السلام نه روايت کوی چه نبی عليه السلام خپله لور زينب رضی الله عنها ابوالعاص رضی الله عنه ته په اولنې نکاح باندې واپس کړه اوکومه نوې نکاح ئې ونکړه، محمدبن عمرو په خپل روايت کښې دا اضافه کړې ده چه شپږ کاله پس اوحسن بن علی رحمه الله فرمائيلې دې چه دوه کاله پس.

### شرح الحديث:

د پورته ذکر شوی ترجمة الباب د لاندې مصنف د زينب رضی الله عنها د واپس کولو واقعه راوړې ده، د دې واقعې شرح دا ده چه د رسول الله صلی الله عليه وسلم مشره لور سيده زينب رضی الله عنها د سيدنا ابو العاص بن الربيع رضی الله عنه په نکاح کښې وه کوم چه د هغه وخته پورې غير مسلم وو، او دا قصه قبل الهجرة ده، د اسلام په ابتداء کښې مسلمه تحت المشرک جائز وو، يعنی د مسلمانې زنانه واده د غير مسلم سره جائز وو، هم په دې بنياد باندې د سيده زينب واده هم د رسول الله صلی الله عليه وسلم

(1): سنن الترمذي/النكاح ۴۲ (۱۱۴۳)، سنن ابن ماجه/النكاح ۶۰ (۲۰۰۹)، (تحفة الأشراف: ۶۰۷۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۱۷، ۲۶۱، ۳۵۱) (صحيح)

د ابو العاص بن الربيع رضي الله عنه سره کړې وو بيا د هغې نه روستو د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو د هجرت واقعه پيښه شوه، او بيا د هجرت په دويم کال د بدر غزوه پيښه شوه، د بدر د قيديانو مسئله پيښه شوه چه هغوی سره څه معامله اوکړې شي، د مشورې نه روستو فيصله اوشوه لکه چه مشهور او معروف دی چه د هر يو نه فديه واخستلې شي او هغه پريخودلې شي. ټولو قيديانو د فديه انتظام اوکړو، په دې قيديانو کښې د رسول الله ﷺ زوم ابو العاص بن الربيع هم شامل وو، هغه په فديه کښې د پيش کولو دپاره د خپلې زوجې محترمې زينب رضي الله عنها اميل د مکې مکرمې نه راطلب کړو او هغه ئې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې پيش کړو، دا اميل د سيده خديجه رضي الله عنها وو کوم چه هغې په جهيز کښې سيده زينب رضي الله عنها ته ورکړې وو، رسول الله ﷺ چه کله هغه اوليدو نو ﴿فرق لها رقة شديدة﴾ په رسول الله ﷺ باندې سخت رقت راغلو، د سيده خديجه رضي الله عنها دور ورته راياد شو نو د صحابه کرامو نه ئې د دې خبرې مشوره او اجازت اوغوښتلو چه که تاسو ټول متفق يئ نو زه به دا اميل کوم چه په فديه کښې پيش کوی دا به زه واپس کړم، صحابه کرامو ورته په خوشحالئ اجازت ورکړو، پس هغه دغه اميل ابو العاص رضي الله عنه ته حواله کړو او هغه سره ئې دا معاهده اوشوه چه مکې ته رسيدو سره په زينب رضي الله عنها لره د مدينې طرف ته ليږې، پس ابو العاص رضي الله عنه دا وعده پوره کړه او مکې ته رسيدو سره ئې سيده زينب رضي الله عنها د مدينې طرف ته اوليږله. [1] د دې نه تقريبا شپږ کاله روستو ابو العاص رضي الله عنه اسلام قبول کړو او هجرت کولو سره مدينې ته راغلو، نو اوس په دې حديث الباب کښې په حديث ابن عباس کښې دا دی چه رسول الله ﷺ زينب لره د ابو العاص طرف ته واپس کړو. ﴿ بالنكاح الاول لم يحدث شيئا﴾ يعنی دوباره ئې نکاح اونکړه.

## په احنافو باندې اشکال او د هغې جواب :

په دې قصه کښې په احنافو باندې دا اشکال راځي چه اوګورئ په دې واقعه کښې تباين دارين بيا موندلې شو او د هغې باوجود هم فرقت نه دې واقع شوې، زمونږ د طرف نه دا جواب کړې شوې دې چه دا حديث نه صرف زمونږ بلکه ستاسو هم خلاف دې، ځکه چه زينب رضي الله عنها د ابو العاص رضي الله عنه طرف ته شپږ کاله پس واپس کړې شوه نو ايا د شپږو کالو په موده کښې انقضاء عدت نه وو شوې، حال دا چه دا مسئله ده چه اسلام احد الزوجين په صورت کښې که بل د انقضاء عدت نه پس اسلام قبول کړی نو بالاتفاق فرقت واقع کيږی، په دې وجه په دې حديث ابن عباس باندې عمل نه زمونږ دپاره ممکن دې او نه ستاسو دپاره، لهذا د دې سلسلې چه کوم دويم حديث دې کوم چه امام ترمذی روايت کړې دې من حديث عمروبن شعيب عن ابيه عن جده ان النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رد ابنته زينب علی ابی العاص

---

[1] رسول الله ﷺ په يوه موقع باندې د هغه د دې وعدې پوره کولو تعريف فرمائيلې وو، هغه داسې چه يو ځل سيدنا علی رضي الله عنه د سيده فاطمه رضي الله عنها په نکاح کښې د کيدو باوجود د ابوجهل د لور سره د نکاح اراده اوکړه چه په هغې باندې رسول الله ﷺ سخت خفه شو او په دې موقع باندې ئې د علی رضي الله عنه په وړاندې د دې خپل زوم تعريف کړې وو، دا واقعه په ابوداود کښې تيره شوه، هغه فرمائيلې وو ﴿حدثني فصدقني ووعدني فوفالي﴾... تقدم في باب ما يكره ان يجمع بينهن من النساء. ٢ واخرجه ابن ماجة ايضا)

بن الربيع بمهر جديد ونكاح جديد ﴾(واخرجه ابن ماجة ايضاً) په دې باندې به عمل کولې شي.
د دې مقام د حل کولو د پاره دې په سنن ترمذی کښې دا مقام او کتلې شي، د دې سره حقیقت ښه منکشف شو، امام ترمذی رحمه الله په دې ځائې کښې ښه واضح کلام فرمائیلې دې، امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه اګر چه د عمرو بن شعیب والا حدیث د ابن عباس د حدیث په مقابله کښې ضعیف دې خو عمل عمرو بن شعیب حدیث باندې دې، او د حدیث ابن عباس په باره کښې هغه فرمائی چه لا یعرف وجهه، حاصل دا شو چه د ﴿رد زينب على ابى العاص﴾ په باره کښې دوه متعارض احادیث راغلې دی، حديث ابن عباس وحديث عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده. د دواړو مضمون مختلف دې یعنی تجدید نکاح او عدم تجدید والا روایات باندې قوی اشکال کیدو د وجې نه هغه لره ترک کولو سره بل حدیث اختیار کړې شی. امام ترمذی رحمه الله خو د قوت اشکال په بناء باندې حدیث ابن عباس ترک کړو، خو بعض شراح شافعیه لکه خطابی وغیره هغه حدیث ابن عباس لره اختیار کړې دې لقوة سنده. او په هغې باندې چه کوم عقلی اشکال دې د هغې هغه تاویل کړې دې، تاویل دا دې[1] چه صورت حال دا دې چه د هجرت زینب نه ځلور کاله پس نو آیت التحریم ﴿لا هن حل لهم ولا هم يحلون لهن﴾ نازل شو، لهذا دا ځلور کاله خو به په عدت کښې نه شی شمارلې ځکه چه تر هغه وخته پورې خو مسلمه تحت المشرك یعنی لاندې دمشرک جائز وه، د عدت ابتداء به د نزول آیت نه روستو وی، وړاندې نزول آیت او اسلام زوج کښې صرف دوه کاله پاتې کیږی، او دوه کاله څه لویه خبره نه ده، بعض وخت د څه عارض د وجې نه د عدة تطاول اوږدوالې تر دومره زمانې پورې ممکن دې، د امام بیهقی میلان هم د توجیه خطابی طرف ته دې، او د امام ابن عبدالبر رائې دا ده چه عمل خو به وی په حدیث د عمرو بن شعیب باندې خو هغه فرمائی چه حدیث ابن عباس رضی الله عنه د دې خلاف نه دې بلکه هغه مؤول دې او جمع بین الحدیثین اولی دې د یو حدیث د مهمل پریخودلو نه، هم دا وجه ده چه هغه فرمائی چه په حدیث ابن عباس کښې ﴿بالنكاح الاول﴾ نه مراد دې، اى بشروط النكاح الاول، یعنی کوم شرطونه چه په اوله نکاح کښې کړې شوې وو هم د هغې سره د هغوی نکاح کړې شوې ده، لهذا اوس دلته درې مسلکونه شو، یو د امام ترمذی رحمه الله والا رائې یعنی صرف عمرو بن شعیب والا حدیث اعتبار، دویم مسلک خطابی او بیهقی یعنی حدیث ابن عباس ترجیح، دریمه رائې د ابن عبدالبر جمع بین الروایتین یعنی د دواړو روایتونو جمع کیدل.

## د اسلام احد الزوجين په مسئله باندې تفصيلي بحث:

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د اسلام احد الزوجین والا مسئله ډیر تفصیل طلب دې چه په هغې کښې دوه مسلکونه دی، مسلک الاحناف او مسلک الجهمور، احناف دا وائی چه د اسلام احد الزوجین اولا دوه صورتونه دی، هغوی دواړه په د اسلام په وخت په دار الاسلام

[1] ) په دې باندې د پوهیدو د پاره دې دا په ذهن کښې وی چه د زینب هجرت د هجرت په دویم کال شوې وو او دا آیت کریمه د هجرت په شپږم کال نازل شوې وو، او اسلام ابو العاص او د زینب واپس کول د هجرت په اتم کال شوې وو قبل الفتح)

کښې وی یا به په دار الحرب کښې وی، که دواړه دار الاسلام کښې وی نو په دویم سړی باندې به اسلام پیش کوی، که هغه اسلام قبول کړو نو صحیح ده وهما علی نکاحهما. او که هغه د اسلام راوړلو نه انکار اوکړو نو د دې انکار علی الاسلام د وجې نه به د واړو ترمینځه جدائی واقع شی، او که دواړه په دار الحرب کښې وی نو د اسلام احد الزوجین نه پس دوه شکلونه دی یو دا چه هغه هم د انقضاء عدت نه مخکښې اسلام قبول کړی فهما علی نکاحهما. او که هغه د انقضاء عدت پورې اسلام قبول نه کړو، یا اسلام راوړلو والا هجرت کولو سره د دار الحرب نه دار الاسلام ته لاړ شی نو په دې دواړو صورتونو (انقضاء عدت او تباین دارین) کښې جدائی واقع کیږی.

او د جمهورو په نزد دا تفصیل نه دې بلکه هغوی وائی چه د اسلام احد الزوجین په وخت به دا کتلې شی چه زنانه مدخول بها ده یا غیر مدخول بها، که غیر مدخول بها ده نو د یو په اسلام راوړلو سره به فورا فرقت واقع شی، او که زنانه مدخول بها ده نو که د انقضاء عدت نه مخکښې بل اسلام قبول کړی فهما علی نکاحهما والا وقعت الفرقة بانقضاء العدة. برابره خبره ده که دواړه په دار الحرب کښې وی یا په دار الاسلام کښ، د هغوی په نزد په دې کښې هیڅ فرق نشته.

بیا د دې نه روستو په دې باندې ځان پوهه کړئ چه دا خبره مخکښې څو کرته راغلې ده چه د احنافو په نزد تباین دارین موجب فرقت دې د دې بالمقابل د جمهورو رائې داده چه تباین دارین موجب فرقت نه دې بلکه سبی الزوجین یا سبی احد الزوجین دا څیز موجب فرقت دې، اوس دا د احنافو او جمهور علماء کرامو اختلاف لره مخې ته اړدلو سره څلور صورتونه پیدا کیږی، دوه اتفاقی او دوه اختلافی. ۱: سبی بهما : په دې صورت کښې د جمهورو په نزد دلته فرقت واقع کیږی، د احنافو په نزد نه واقع کیږی د عدم تبیان د وجې نه. ۲: جاء احدهما بنفسه یعنی احد الزوجین اسلام قبلولو سره یا امن طلب کولو سره د دار الحرب نه دار الاسلام ته راغلو بغیر د قید نه، زمونږ په نزد په فرقت واقع شی د جمهورو په نزد نه. ۳: انتقال بغیر سبی یعنی زوجین بغیر د قید نه دار الاسلام ته لاړل، ۴: سبی احدهما احد الزوجین لره قید کولو سره دلته راوړلې شو، دا دواړه صورتونه اتفاقی دی، په دریم کښې به بالاتفاق فرقت نه واقع کیږی او څلورم صورت کښې به بالاتفاق فرقت واقع شی،د شروع دوه صورتونه اختلافی وو، دا څلورو واړه صورتونه په بذل کښې د شیخ ابن الهمام د کلام نه منقول دی فارجع الیه ان شئت.

**ست سنین او د سنتین توجیه** :

د حدیث ابن عباس رضی الله عنهما په اخر کښې مصنف د خپلو استاذانو دا اختلاف د لاندې دا ذکر کړې دی چه په بعض روایاتو کښې دی بعد ست سنین. او د بعض روایت کښې دی بعد سنتین یعنی رد زینب الی ابی العاص، بعض وائی چه شپږ کاله پس شوې وو او بعض وائی دوه کاله پس، د دې اختلاف توجیه دا هم کیدې شی چه چا د شپږ کلونو نه پس اوئیل د هغه مراد بین هجرة زینب واسلام زوجها دې، او چا چه بعد سنتین اووې د هغوی مراد دا دې یعنی بعد

سنتين من نزول اية التحريم، د سابق حاشيه مضمون په ذهن کښې ساتلو سره دا جواب په سهولت سره ذهن ته راتلې شي. والحديث اخرجه ايضا احمد، والحاكم وصححه ابن ماجة والبيهقي، والترمذى (تكملة المنهل) الحمد لله دا حديث پوره شو کوم چه په سبق کښې هميشه ماته ګران معلوميدو.

## بَابٌ فِي مَنْ أَسْلَمَ وَعِنْدَهُ نِسَاءٌ أَكْثَرُ مِنْ أَرْبَعٍ أَوْ أُخْتَانِ

### باب: د قبول اسلام په وقت سرې سره د څلورو نه زياتې ښځې يا دوه خويندې په نکاح کښې وي نو ددې د حکم بيان

[۲۲۴۱](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. ح وحَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ حُمَيْضَةَ بِنِ الشَّمَرْدَلِ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ قَيْسٍ، قَالَ مُسَدَّدٌ، ابْنِ عُمَيْرَةَ: وَقَالَ وَهْبٌ، الأَسَدِيِّ: قَالَ: أَسْلَمْتُ وَعِنْدِي ثَمَانُ نِسْوَةٍ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اخْتَرْ مِنْهُنَّ أَرْبَعًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: وحَدَّثَنَا بِهِ أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ بِهَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: قَيْسُ بْنُ الْحَارِثِ مَكَانَ الْحَارِثِ بْنِ قَيْسٍ. قَالَ أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ: هَذَا هُوَ الصَّوَابُ يَعْنِي قَيْسَ بْنَ الْحَارِثِ.

**ترجمه:** وهب اسدي وئيلي دي ماچه کله اسلام قبول کړو نوزما اته ښځې وې نبی عليه السلام ته مې عرض اوکړو هغه اوفرمائيل چه څلور پکښې منتخب کړه اوباقی پريږده، دابراهيم بن هشيم نه حارث بن قيس په ځائې باندې قيس بن الحارث نقل کړې دې احمد بن ابراهيم وئيلي دي چه داسې درست دې.

### توضيح الحديث

په دې طريق کښې حارث بن قيس دې او وړاندې په روايت کښې دی چه صحيح قيس بن الحارث دې، ګويا په دې کښې نوم کښې قلب واقع شوې دې، دا مقلوب الاسماء نه دی مضمون حديث دا دې چه قيس بن الحارث فرمائی چه کله په اسلام کښې داخل شو نو هغه وخت زما په نکاح کښې اته زنانه وې، ما د هغه په باره کښې د رسول الله ﷺ نه ئې تپوس اوکړو، په هغې کښې دې څلور اختيار کړی.

### د حديث تشريح د فقهاء کرامو د مسلک پيش نظر:

ائمه ثلاث او امام محمد په نزد خو دا حديث مطلق دې او په ظاهر باندې دې، او شيخين (ابوحنيفه او ابويوسف) په نزد په دی صورت کښې حکم دا دې چه دلته به دا کتلې شی چه هغه سړی د څلور نه زيات سره نکاح په عقد واحد کښې کړې دې يا په مختلف عقود کښې که په عقد واحد کښې کړې دې نو دا ټوله نکاح فاسد او غير صحيح ده، لهذا اوس به د نوی سر نه نکاح ضروری وی صرف د څلورو سره. او که نکاح په مختلف عقود کښې شوې وې پرلپسې نو په دې صورت کښې به دا سړې د اسلام قبلولو نه پس د اتو ښځو نه اولنو څلورو لره په خپله نکاح کښې ساتلې شی بغير د تجديد نکاح نه.

(۱): سنن ابن ماجه/النكاح ۴۰ (۱۹۵۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۸۹) (صحيح)

**د امام محمد او شیخینو یو اصولی اختلاف:**

دا اختلاف د دې حضراتو په یو اصولی اختلاف باندې متفرع دې، هغه دا چه د ائمه ثلاث او امام محمد په نزد د مشرکینو هغه معاملات او مناکحات کوم چه هغوی د کفر په حالت کښې کړې دی که هغه زمونږ د شریعت مطابق یا مخالف، د اسلام راوړلو نه پس بهر صورت هغه معتبر وی، او د حضرات شیخین مسلک دا دې چه د مشرکانو سابق معاملات که د شریعت مطابق وی نو د هغوی د اسلام راوړلو نه پس به هغه معتبر وی، او که د شریعت خلاف وی نو بیا هغه لره اعتبار نشته، هغه به فاسد منلې شی ځکه چه دا حدیث د ائمه ثلاث په نزد خو په خپل عموم او اطلاق باندې دې او د حضرت شیخین مسلک خو چونکه په دې کښې مطلق نه دې او حدیث د خپل ظاهر په اعتبار سره مطلق دې ځکه چه د مسلک په وجه باندې به د حدیث معنی دا وی ﴿اختر منهن اربعا للنکاح﴾، یعنی اوس تاسو په هغوی کښې صرف څلور د خپلې نکاح دپاره اختیار کړئ او دا مطلب نه دې چه څلور په نکاح کښې باقی اوساتئ. والله تعالی اعلم بالصواب والحدیث اخرجه البیهقی (تکملة المنهل)

[۲۲۴۲]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَاضِي الْكُوفَةِ، عَنْ عِيسَى بْنِ الْمُخْتَارِ، عَنْ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ حُمَيْضَةَ بْنِ الشَّمَرْدَلِ، عَنْ قَيْسِ بْنِ الْحَارِثِ، بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه:** حمیضة بن شمردل دقیس بن حارث نه ددې روایت په شان روایت نقل کړې دې.

[۲۲۴۳]([2])حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ أَيُّوبَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجَيْشَانِيِّ، عَنْ الضَّحَّاكِ بْنِ فَيْرُوزَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَسْلَمْتُ وَتَحْتِي أُخْتَانِ، قَالَ: "طَلِّقْ أَيَّتَهُمَا شِئْتَ".

**ترجمه:** ضحاک بن فیروز د خپل پلار نه روایت کوی فرمائی ما عرض اوکړو اې دالله رسوله ما اسلام قبول کړې دې او زما په نکاح کښې دوه خویندې دی نبی ﷺ اوفرمائیل هره یوه چه پکښې طلاقوې هغه طلاقه کړه ستا خپله خوښه ده.

**تشریح:** ﴿عن الضحاک بن فیروز ([3])عن ابیه قال قلت یا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انی اسلمت وتحتی اختان، قال طلق ایتهما شئت﴾ضحاک بن فیروز دیلمی د خپل پلار فیروز رضی الله عنه نه روایت کوی چه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه ما په داسې حالت کښې اسلام قبول کړې دې چه زما په نکاح کښې دوه خویندې دی، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ته په هغوی کښې یو ته طلاق ورکړه او یوه اوساته.

د طلاق د لفظ نه معلومیږی چه دا دواړه نکاح صحیح وې ځکه چه طلاق خو په صحیح نکاح کښې وی، حال دا چه جمع بین الاختین حرام ده، نو د دې توجیه به دا کولې

[1]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۸۹) (صحیح)

[2]): سنن الترمذي/النکاح ۳۳ (۱۱۲۹)، سنن ابن ماجه/النکاح ۳۹ (۱۹۵۱)، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۶۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۳۲/۴) (حسن)

[3]) د ضحاک بن فیروز رور عبدالله هم د خپل پلار نه روایت کوی چه د هغه روایت په ابواب الاستنجاء کښې تیر شوې دې، خوهلته ئې دخپل پلار نه نه دې کړې بلکه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه ئې کړې دې

شي چه دا جمع بين الاختين به هغه په داسې زمانه کښې کړې وي چه کوم وخت په اسلام کښې د جمع بين الاختين تحريم نه وو نازل شوې په دې وجه نکاح صحيح شوه، او دا هم ممکنه ده چه داسې اوئيلې شي چه دلته مراد د تطليق نه تفريق دې، او مطلب دا دې چه په هغوی کښې يوه جدا کړه او بله په نکاح کښې پريږده.

دا حديث په سنن ترمذی او ابن ماجه کښې هم دې خو د ترمذی په روايت کښې داسې دی ﴿اختر ايتهما شئت ﴾په دې کښې د ﴿طلق ﴾په ځائې ﴿اختر ﴾دې او د دې تشريح هم على اختلاف المسلکين داسې کولې شی کوم چه د باب په حديث اول کښې اوکړې شوه، يعنی د ائمه ثلاثه په نزد خو دا حديث په خپل عموم باندې دې، او د شيخين په نزد د هغه د مسلک مطابق په يو صورت کښې خو به دواړه نکاحونه فاسد وی لهذا د تجديد نکاح ضرورت به راځی او په يو صورت صرف اولی لره په خپله نکاح کښې ساتلې شی نه ثانيه لره. والحديث اخرجه ايضا احمد وابن ماجة والبيهقی، واخرجه الترمذی من طريق ابن لهيعة. (قاله فی تکملة المنهل)

## بَابٌ إِذَا أَسْلَمَ أَحَدُ الْأَبَوَيْنِ مَعَ مَنْ يَكُونُ الْوَلَدُ

### بيان ددې چه په مور او پلار کښې چه يو کس مسلمان شی نو بچې به دچا سره وی؟

ځان پوهه کړه چه مسئله حضانت يعنی پرورش هم د علماء ترمينځه مختلف فيه ده چه د هغې تفصيل به په دې باب کښې راځی کوم چه وړاندې په کتاب کښې تقريبا لس بابونه پس راروان دې، "باب من احق بالولد" هلته دا حديث راروان دې چه رسول الله ﷺ د ماشوم مور ته اوفرمائيل: ﴿انت احق به ما لم تنکحی ﴾ پس دا مسئله اتفاقی ده چه ان الام احق بالحضانة ما لم تنکح. خو دلته په مسئله د حضانة کښې يو بل اختلاف دې هل للکافر حق الحضانة على المسلم، د مسئله مختلف فيه ده. د امام شافعی او احمد په نزد کافرې مور ته په ولد مسلم باندې حق حضانت حاصل نه دې، لان الحضانة ولاية ولا ولاية للکافر على المسلم، وعن مالک روايتان، او د احنافو په نزد په حق حضانت کښې د مسلمه او کافره هيڅ فرق نشته، د هغوی په نزد مور ته حق حضانت حاصل دې مطلقا، که مسلمه وی يا کافره وی.

### حديث الباب د احنافو دليل دې

په دې سلسله کښې د احنافو دليل حديث الباب دې يعنی رافع بن سنان والا حديث چه د هغې مضمون وړاندې راروان دې، هم دا وجه ده چه ابن قدامه د دې حديث جواب دا ورکړې دې چه فيه مقال.[1]

[۲۲۴۴](۲) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ جَعْفَرٍ، أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي رَافِعِ بْنِ سِنَانٍ، أَنَّهُ أَسْلَمَ وَأَبَتِ امْرَأَتُهُ أَنْ تُسْلِمَ، فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: ابْنَتِي وَهِيَ فَطِيمٌ أَوْ شَبَهُهُ، وَقَالَ رَافِعٌ: ابْنَتِي، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْعُدْ نَاحِيَةً"، وَقَالَ لَهَا: "اقْعُدِي نَاحِيَةً"،

[1] په دې باندې مزيد کلام د باب په اخر کښې راروان دې.

[2]: سنن الترمذي/الطلاق ٥٢ (٣٤٩٥)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٢٢ (٢٣٥٢)، (تحفة الأشراف: ٣٥٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤٦/٥، ٤٤٧) (صحيح)

قَالَ: "وَأَقْعَدَ الصَّبِيَّةَ بَيْنَهُمَا"، ثُمَّ قَالَ: "ادْعُوَاهَا"، فَمَالَتِ الصَّبِيَّةُ إِلَى أُمِّهَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اللَّهُمَّ اهْدِهَا"، فَمَالَتِ الصَّبِيَّةُ إِلَى أَبِيهَا فَأَخَذَهَا.

**ترجمه:** عبد الحمید بن جعفر دخپل پلار نه اوهغه دده د نیکه رافع بن سنان نه روایت کوی فرمائی چه هغه اسلام قبول کړو و ښځې ئې انکار اوکړو نبی ﷺ ته راغله اوونې وئیل آیا ماته به زما بچې راکړئ؟ اوهغه ماشوم د تی نه پرې کړې شوې وو یا د تی نه د پریکولو قابل وو، رافع اووئیل آیا ماته به زما لور راکړئ؟ نو نبی ﷺ رافع ته اوفرمائیل ته په یو ګوټ کښې کینه او ښځې ته ئې اوفرمائیل ته په بل ګوټ کښې کینه اوماشوم ئې په مینځ کښې کښنولو بیانبی ﷺ دواړوته اووئیل چه ماشومې ته اواز اوکړئ چه کله ئې ورته اواز اوکړو نوهغه دمور طرف ته مائله شوه، نبی ﷺ اوفرمائیل اې الله دې ته هدایت اوکړې نوماشومه دخپل پلارطرف ته راغله نوپه دې شان سره هغه خپل پلار واخستله.

**مضمون حدیث** :

سیدنا رافع بن سنان رضی الله عنه فرمائی چه ما خو اسلام قبول کړو خو زما ښځې د اسلام قبلولو نه انکار اوکړو (د هغوی دواړو ترمینځه یوه وړه ماشومه وه چه د هغې په باره کښې د هغوی دواړو اختلاف شو) د جینئ مور وئیل چه دا ماشومه زما ده ما سره به اوسیږی، او رافع وئیل چه دا زما لور ده دا به ما سره وی، رسول الله ﷺ د هغوی دواړو ترمینځه فیصله داسې اوکړه چه دواړه یعنی مور او پلار ئې یو بل ته مخامخ په فاصله باندې کینول او هغه ماشومه ئې د هغوی ترمینځه کینوله او دواړو ته ئې اوفرمائیل چه تاسو کښې هر دا ماشوم خپل ځان ته راوبلئ (د چا طرف ته چه ماشومه لاړه هم هغه ته به حق حاصل شی) پس هغوی دواړو هغه ماشومه په اشارې سره راوبلله، هغه ماشوم فطرتا د خپل مور طرف ته مائله کیدله (چه غیر مسلمه وه) رسول الله ﷺ د الله پاک نه اوغوښتله چه هغې ته هدایت اوکړه د رسول الله ﷺ د دعا نه پس هغه د مور په ځائې د پلار طرف ته مائله شوه او پلار هغه بوتله.

د احنافو طریقه د استدلال د دې حدیث نه دا دې چه که قاعده دا وې چه د کافر دپاره حق حضانت نه وی نو رسول الله ﷺ به صفا فرمائیلې وو، د دې تدبیر د اختیارولو څه ضرورت وو کوم چه هغه اختیار اوفرمائیلو خو چونکه رسول الله ﷺ مصلحت په دې کښې اوګڼړلو چه هغه ماشومه دې د پلار سره وی په دې وجه ئې دعا اوفرمائیله، هم په دې وجه ابن قدامه ته د دې حدیث د جواب ورکولو ضرورت راغلو.

**فائده** : مسئله حضانت چه د هغې تفصیل او اختلاف بین الائمه په خپل محل کښې راروان دې، هلته به دا هم راشی چه احناف په دې مسئله کښې د تخییر قائل نه دی په خلاف د شوافعو او حنابله چه د هغوی په نزد تخییر دې، او د حدیث الباب نه هم په ظاهره کښې تخییر معلومیږی لهذا د دې نه دې دا خیال اونکړې شی چه دا حدیث په مسئله د تخییر کښې د احنافو خلاف دې ځکه چه د هغه حضراتو په نزد تخییر د تمیز یعنی اختیار د جدا کول عمر ته رسیدلو نه پس د چه کله ماشوم لوئې شی، وههنا لیس کذلک. ځکه چه په روایت کښې دی وهی فیطم او شبهه فتدبر وتشکر، خو تعجب دې چه زمونږ د فقه په مشهور

کتابونو کښې بدائع او فتح القدير او زيلعي على الکنز کښې دا مسئله د مسئله تخير د لاندې راوړلې ده او بيا ئې د احنافو د طرف نه جواب او توجيه ليکلې ده البته ابن قدامه په مغنی کښې دا حديث حضانة کافرة على ولدها المسلم د لاندې ليکلو سره او هغې لره داحنافو دليل منلو سره د دې جواب کړې دې "في سنده مقال"وغيره وئيلو سره. فلله دره.
والحديث اخرجه ايضاً احمد والدارقطني (تکملة المنهل)

# بَابٌ فِي اللِّعَانِ

## دلعان داحکامو بيان

عام قاعده خو دا ده چه که يو سړې په چا باندې د زنا تهمت اولګوی نو هغه تهمت لګونکې دې د ګواهانو په ذريعه خپله دعوی ثابته کړی او که ثابته نه کړې شی نو بيا په هغه باندې حد قذف جاری کيږی، خو د زوجين حکم دا نه دې، سړې که په خپله ښځه باندې د زنا تهمت اولګوی او څلور ګواهان پيش نه کړې شی نو بيا د حد قذف په ځائې په خاوندباندې لعان واجب دې، او که هغه د لعان دپاره تيار نه شی نو هغه به قيد کولې شی تردې چه لعان اوکړی يا بيا د خپل نفس تکذيب اوکړی، او د تکذيب نفس په صورت کښې د زنانه په مطالبه باندې به په هغې باندې حد قذف جاری کيږی، نو دلته حد قذف د تکذيب په صورت کښې دې چه زوج خپله خپل تکذيب اوکړی، بهرحال لعان د سړی په حق کښې ګويا د حد قذف قائم مقام دې، او د زنانه په حق کښې د حد زنا قائم مقام دې. کما في الهداية.

### د لعان په حقيقت کښې د جمهورو او احنافو اختلاف :

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د لعان د حقيقت په باره کښې د احنافو او جمهورو اختلاف دې، د احنافو په نزد د لعان حقيقت شهادات مؤکدات بالايمان دې، د جمهورو په نزد د دې حقيقت ايمان مؤکدات بلفظ الشهادت دې يعنی زمونږ په نزد خو د شهادت د قبيل نه دې او د جمهورو په نزد د ايمان د قبيل نه دې، هم دا وجه زمونږ په نزد په زوجين کښې اهليت شهادت کيدل ضروری دی.

"فيجرى اللعان عندنا بين المسلمين الحرين العاقلين البالغين" وعند الجمهور يجرى بين المسلم وامراته الکافرة الکتابية، وبين العبد وامراته وبالعکس. د احنافو تائيد د قران کريم د ظاهر نه کيږی لقوله تعالى والذين يرمون ازواجهم.... فشهادة احدهم اربع شهادات بالله. الاية

### د لعان کيفيت :

د لعان کيفيت دا وی چه زوج په شروع کښې قسم اوخوری او داسې ګواهی به ورکړی چه ﴿انه لمن الصادقين ﴾څلور کرته، ﴿والخامسة ان لعنة الله عليه ان کان من الکاذبين ﴾ بيا به دښځې نمبر وی هغه به وائی دخپل خاوند په باره کښې او پنځم کرته باندې به وائی : ﴿ان غضب الله عليها ان کان من الصادقين ﴾دلته چونکه د سړی په کلام کښې د لعنت لفظ وی او د زنانه په کلام کښې د غضب، په دې وجه د سړی کلام ته ترجيح ورکولو سره د دې نوم لعان کيخودلې شو نه غضاب.

## د لعان په حکم کښې د علماء کرامو اختلاف :

هم دغه شان ځان پوهه کړئ چه د لعان نه روستو او جمهورو په نزد په نفس لعان سره جدائی واقع کیږي او د احنافو په نزد په نفس لعان سره فرقت نه واقع کیږی بلکه د لعان نه پس په تطلیق زوج نه یا تفریق قاضی نه، او بیا دویم اختلاف دلته دا دې چه طرفین (ابوحنیفه او محمد) په نزد دا فرقت د طلاق بائن په حکم کښې وی اود جمهور علماء ائمه ثلاث په نزد او امام ابویوسف او امام زفر په نزد په لعان سره فرقت مؤبده پیدا کیږی، د هغوی په نزد دا طلاق نه دې بلکه فسخ دې، جمهورو استدلال کړې دې د دې لفظ نه کوم چه په حدیث لعان کښې راځی ﴿ثم لا يجتمعان ابدا﴾ او احناف وائی چه مطلب دا دې چه ترڅو پورې هغه دواړه په خپل لعان باندې قائم دی نو جمع به نه شی خو په دې کښې یو خپل تکذیب اوکړی نو بیا دا حکم نه دې.

[۲۲۴۵](1)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِيَّ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عُوَيْمِرَ بْنَ أَشْقَرَ الْعَجْلَانِيَّ جَاءَ إِلَى عَاصِمِ بْنِ عَدِيٍّ، فَقَالَ لَهُ: يَا عَاصِمُ، أَرَأَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا أَيَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُونَهُ؟ أَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ؟ سَلْ لِي يَا عَاصِمُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَسَأَلَ عَاصِمٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَرِهَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسَائِلَ وَعَابَهَا، حَتَّى كَبُرَ عَلَى عَاصِمٍ مَا سَمِعَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا رَجَعَ عَاصِمٌ إِلَى أَهْلِهِ جَاءَهُ عُوَيْمِرٌ، فَقَالَ لَهُ: يَا عَاصِمُ، مَاذَا قَالَ لَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقَالَ عَاصِمٌ: لَمْ تَأْتِنِي بِخَيْرٍ، قَدْ كَرِهَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْأَلَةَ الَّتِي سَأَلْتُهُ عَنْهَا، فَقَالَ عُوَيْمِرٌ: وَاللَّهِ لَا أَنْتَهِي حَتَّى أَسْأَلَهُ عَنْهَا، فَأَقْبَلَ عُوَيْمِرٌ حَتَّى أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ وَسْطَ النَّاسِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا أَيَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُونَهُ؟ أَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَدْ أُنْزِلَ فِيكَ وَفِي صَاحِبَتِكَ قُرْآنٌ، فَاذْهَبْ فَأْتِ بِهَا"، قَالَ سَهْلٌ: فَتَلَاعَنَا وَأَنَا مَعَ النَّاسِ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا فَرَغَا، قَالَ عُوَيْمِرٌ: كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ أَمْسَكْتُهَا، فَطَلَّقَهَا عُوَيْمِرٌ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَأْمُرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: فَكَانَتْ تِلْكَ سُنَّةَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ.

**ترجمه:** د سهل بن سعد الساعدي نه روایت دې فرمائی چه عویمر بن اشقر عجلاني عاصم بن عدي ته راغې او وئې وئیل اې عاصم که چرې څوك دخپلې ښځې سره پردې سړې اووینې ایا وژني به ئې؟ که مرئې کړو نوخلق به بیا ده لره په بدل کښې مړ کړي اوکه قتل کوی ئې نه نوڅه به کوي زما دپاره ددې مسئلې تپوس دنبی ﷺ نه اوکړه نوعاصم دنبی ﷺ نه مسئله معلومه کړه نبی ﷺ داسوال خوښ نکړو اودائې بد وګڼلو عاصم ته هم داخبره ګرانه شوه کله چه کور ته واپس راغې نو عویمر دده خواته راغې اوتپوس ئې اوکړو چه نبی ﷺ درته څه جواب درکړې دې عاصم اووئیل تاماته هیڅ کله خیر نه دې رسولې ځکه چه نبی ﷺ دا سوال خوښ نکړو دکوم چه تا زمانه تپوس کړې وو، عویمر اووئیل په الله مې دې قسم وي ترهغې به

(1): صحيح البخاري/الصلاة ٤٤ (٤٢٣)، تفسير سورة النور ١ (٤٧٤٥)، ٢ (٤٧٤٦)، الطلاق ٤ (٥٢٥٩)، ٢٩ (٥٣٠٨)، ٣٠ (٥٣٠٩)، الحدود ٤٣ (٦٨٥٤)، الأحكام ١٨ (٧١٦٦)، الاعتصام ٥ (٧٣٠٤)، صحيح مسلم/اللعان ١ (١٤٩٢)، سنن النسائي/الطلاق ٣٥ (٣٤٩٦)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٢٧ (٢٠٦٦)، (تحفة الأشراف: ٤٨٠٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطلاق ١٣ (٣٤)، مسند احمد (٥/٣٣٠، ٣٣٤، ٣٣٦، ٣٣٧) (صحيح)

واپس لاړ نشم ترڅوچه مې دنبی ﷺ نه دا مسئله نه وي معلومه کړي، نوددې نه پس عویمر ځپله دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو په دې وخت کښې رسول پاك و دخلقو په مینځ کښې ناست وو عویمر عرض اوکړو اې دالله رسوله ماته دهغې چاپه باره کښې فتوي راکړه څوك چه دخپلې ښځې سره یوغیر محرم اووینې اوقتل ئې کړي نوایادې به په قصاص کښې قتل کیږي اوکه نه بل صورت به اختیاریږي؟ نبی ﷺ اورفرمائیل چه ستا اوستادښځې په باره کښې وحي نازله شوي ده خپله ښځه دې راوله، سهل وئیلي دي چه دواړو لعان اوکړو، اوزه دنورو کسانو په موجودګئ کښې دنبی ﷺ سره وم کله چه دواړو لعان اوکړو عویمر اووئیل اې دالله رسوله که چرې زه دادځان سره وساتم نوایا زه به دروغژن کړې شم اوددې نه پس ئې ورته درې طلاق ورکړل مخکښې ددې نه چه نبی ﷺ ورته امر اوکړي ابن شهاب وئیلي دي ددې نه پس بیادلعان کونکو په مینځ کښې دا طریقه رائج شوه.

## د احادیث الباب تجزیه او تشریح علی اتم په پوره وجې سره وجه :

مصنف په دې باب کښې د لعان سره متعلق دوه قصې ذکر کړې شوې دی، اولا د عومیر بن اشقر العجلانی قصه، ثانیا هلال بن امیه قصه. داسې معلومیږی چه عویمر لره د خپلې ښځې په باره کښې مخکښې د څه بعض قرائن د وجې نه شك او شبهه وه خو تر اوسه پورې د فاحشه وقوع نه وه شوې په دې وجه هغه د خپلې ښځې د حال ته کتلو سره نظر یو سړی چه د هغه نوم عاصم بن عدی دې کوم چه د قبیله عجلان د سردارانو نه وو، عویمر د هغه نه د خپل شك او شبهې اظهار اوکړو او دا ئې اووې چه که یو سړې د خپلې ښځې سره څوك په زنا کولو باندې وینی نو اوس که هغه سړې هغه لره قتل کړی نو خلق په قصاص کښې هغه لره قتل کړی چه اوس ئې څه اوکړی نو څه اوکړی، وړاندې په روایت کښې دی چه که هغه سړې څه اوائی نو ته به په هغه باندې حد قذف جاری کړې او که هغه ئې قتل کړی نو ته به ئې قتل کړې، وان سکت سکت علی غیظ. یعنی که خاموش به وو نو هغه دننه ځان خوری.

﴿سل لی یا عاصم رسول الله ﴾چه اې عاصم! زما دا مسئله د رسول اللهﷺ نه اوتپوسه نو په دې باندې عاصم بن عدی رضی الله عنه د رسول اللهﷺ د دې مسئلې په باره کښې تپوس اوکړو، په روایت کښې دی چه په رسول اللهﷺ باندې د هغه دا تپوس بد اولګیدو، په ظاهره کښې وجه دا وه چه دا سوال د وخت نه مخکښ، د حاجت پیښیدو نه مخکښې وه، او د دې تعلق هم د یو قبیح څیز سره وو چه په هغې کښې د یو مسلمان بې عزتی او پرده خرابیدل دی، د روایت نه معلومیږی چه هغه د عاصم نه ډیر د خفګان اظهار اوکړو کوم چه عاصم محسوس کړو، چه کله عاصم واپس کیدو سره خپل کور ته لاړو نو عویمر لاړو او د هغه نه ئې تپوس اوکړو چه رسول اللهﷺ څه اوفرمائیل، عاصم جواب ورکړو، تا زما سره ښه معامله نه ده کړې او زما په ذریعه داسې خبره د رسول اللهﷺ نه اوتپوسله چه په هغه باندې بده اولګیده، په دې باندې عویمر اووې چه هر څه چې وی زه خو به دا حکم د رسول اللهﷺ نه تپوسم پس وړاندې په روایت کښې دی چه عویمر هم دا خبره د رسول اللهﷺ نه د تپوسلو دپاره د رسول اللهﷺ په مجلس کښې راورسیدو او هلته نور خلق هم موجود وو، او هلته

تلو سره ئې هم هغه تپوس اوکړو کوم چه ئې د عاصم په ذریعه کړې وو، د دې نه پس په دې روایت کښې دی ﴿فقال رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قد انزل فیک وفی صاحبتک قران ﴾یعنی د عویمر په سوال کولو باندې رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه ستا او ستا د ښځې په معامله کښې قران نازل شوې دې. لهذا ته خپله ښځه راوله.

ځان پوهه کړه چه رسول الله ﷺ باندې د دې نه مخکښې د عاصم تپوس کول بد لګیدلې وو او دې ځل خپله د عویمر په تپوس کولو باندې په هغه باندې بد اونه لګیدو، چه د هغې وجه دا وه چه د عاصم سوال د وقوع فاحشه نه مخکښې وو، او خپله د عویمر سوال وقوع فاحشه نه پس وو.

## د ایات لعان نزول په کومه قصه کښې شوې دې؟

بیا د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه دې باره کښې روایات مختلف دی چه د آیات لعان نزول د څه وجې نه شوې دې، د موجوده روایت نه معلومیږی چه د قصه عویمر د وجې نه اوشو، او وړاندې د څو روایاتو نه پس د ابن عباس د حدیث نه معلومیږی چه نزول لعان د هلال بن امیه د قصې د وجې نه اوشو، د دې اختلاف توجیه حافظ ابن حجر رحمه الله داسې بیان کړې ده چه صورت حال دا دې چه اول دې باره کښې د رسول الله ﷺ نه تپوس عاصم کړې وو چه هغه په رسول الله ﷺ باندې بد اولګیدو، د هغې نه روستو د هلال بن امیه د ښځې د زنا قصه راپیښه شوه هغه چه دا قصه اولیده نو د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، چونکه دې وخته پورې هم د لعان نزول نه وو شوې په دې وجه رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائیل لکه چه وړاندې په روایت کښې راځی ﴿البینة او حد فی ظهرک ﴾چه یا خو په زنا باندې ګواهان پیش کړه ګینې په تا باندې به حد قذف جاری کیږی، په دې باندې هغه عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ دا څنګه کیدې شی چه د یو سړی ښځه دې زنا کوی او هغه دې ګواه لټوی د عینی شهادت دپاره، رسول الله ﷺ بیا هم هغه اوفرمائیل ﴿البینة والا حد فی ظهرک ﴾په دې باندې هغه عرض اوکړو ﴿والذی بعثک بالحق انی لصادق ولینزلن الله فی امری ما یبرئ ظهری من الحد فنزلت والذین یرمون ازواجهم الخ ﴾یعنی هلال رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه والله زه رشتیا وایم (د ښځې د زنا په باره کښې) او زما د الله پاک د ذات نه دا امید دې چه هغه به دې باره کښې یو داسې حکم نازل فرمائی چه د هغې په وجه باندې به زه دحد قذف نه بری شم، پس فورا آیت لعان نازل شو.

تاسو اوکتل چه په دې روایت کښې تصریح ده چه د هلال تپوس د فاحشه د راتلونه پس شوې وو، او په دې باندې د لعان نزول فورا اوشو، لهذا کوم روایت چه مونږ سره دلته راغلې دې د عویمر د قصې په دې کښې به دا وئیلې شی چه عاصم چه کله د رسول الله ﷺ نه تپوس کولو نو اوس د هغه او دوباره د عویمر د تپوس کولو ترمینځه د هلال واقعه راپیښه شوه چه په هغې کښې نزول حکم اوشو، د دې نه روستو چه کله عویمر په دې قصه کښې اخته شو یعنی د ښځې د زنا کولو او بیا د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو خپله مسئله راوړلو سره نو په دې باندې رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائیل کوم چه دلته په

روایت کښې دی ﴿قد انزل فیک وفی صاحبتک قران﴾ یعنی ستاسو په شان قصې باره کښې قران کریم نازل شوې دې، حاصل دا چه د عاصم او عویمر دواړو د تپوس کولو ترمینځه د هلال بن امیه واقعه راپیښه شوه چه په هغې کښې نزول لعان اوشو او دا په مینځ کښې راپیښیدلو والا واقعه دلته په روای کښې اختصاراً د ذکر نه پاتې شوه.

د دې نه پس پوهه شه چه د هلال بن امیه د ښځې د قصې په باره کښې خو تصریح ده چه هغه د شریک بن سحماء سره پیښه شوې وه خو د عویمر بن اشقر د ښځې د زنا په باره کښې د زانی تصریح دلته په یو روایت کښې هم نشته خو د حضرت ګنګوهی په یو تقریر کښې دی چه په دواړو قصو کښې زانی شریک بن سحماء دې. والله تعالی اعلم... بل په دې هم ځان پوهه کړئ چه د عویمر په سوال کښې دا دی ﴿ایقتله فیقتلونه﴾، په دې باندې په بذل المجهود کښې دا لیکلې دی چه که یو سړې خپلې ښځې سره څوک په زنا کولو باندې وینی او هغه دغه زانی قتل کړی نو په دې صورت کښې د جمهورو رائې دا ده چه هغه قاتل دې هم قصاصا قتل کړې شی ځکه چه دا قتل بغیر د شهود یعنی ګواهانو نه دې، او! که بینه قائم شی یا د زانې وارثان اعتراف اوکړی د زنا نو بیا په دې صورت کښې قصاص نشته، دا حکم خو قضاءً وو، او دیانة وفیما بینه وبین الله تعالی... په هغه باندې د قتل هیڅ قسم ګناه نشته، د هغه د صادق کیدو په صورت کښې.

﴿فلما فرغا قال عویمر : کذبت علیها یا رسول الله ان امسکتها فطلقها عویمر ثلاث الخ﴾

یعنی د لعان نه د فارغ کیدو نه پس عویمر بن اشقر رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه دا هر څه (زنا ولعان) راپیښیدو نه پس هم که دا زنانه زه د ځان سره ساتم نو د دې معنی به دا شی چه ما پرې د خپلې زنا غلط الزام لګولې وو، مطلب دا دې چه اوس زه دا زنانه د ځان سره بالکل نه شم ساتلې هغه اوس د دې قابله نه ده، پس د دې نه روستو عویمر هغې ته درې طلاقه ورکړل، د دې روایت نه د طرفین تائید کیږی په هغه مسئله کښې کومه چه په شروع کښې تیره شوې وه چه د جمهورو او ابویوسف په نزد په لعان سره فرقت واقع کیږی، او د طرفین په نزد یا خو به قاضی خپله تفریق کوی یا به زوج خپله طلاق ورکوی. پس امام بخاری رحمه الله په دې حدیث باندې باب قائم کړې دې "باب اللعان ومن طلق بعد اللعان" حافظ لیکی چه په ترجمة الباب کښې اشاره ده د هغه اختلاف طرف ته چه په لعان کښې نفس لعان سره فرقت واقع کیږی یا په تفریق حاکم سره یه په تطلیق زوج سره؟ امام مالک او امام شافعی فرمائی چه فرقت په نفس لعان سره واقع کیږی، او سفیان ثوری، ابوحنیفه او د هغوی متبعین فرمائی چه بغیر د تفریق حاکم نه فرقت نه واقع کیږی، وعن احمد روایتان، او عثمان بتی فرمائی چه فرقت صرف په ایقاع زوج سره واقع کیږی.

په اوجز کښې د بدائع نه ﴿فکانت تلک سنة المتلاعنین﴾ په شرح کښې لیکلې دی یعنی شو د زوج طلاق ورکول د لعان نه روستو د متلاعنین طریقه، ځکه چه عویمر د لعان نه روستو خپلې زوجې ته درې طلاقه ورکړل د رسول الله ﷺ په وړاندې، پس هغه دا تطلیق نافذ کړو، لهذا په هر ملاعن باندې واجب ده دا خبره چه هغه طلاق ورکړی او که هغه طلاق

ورنکړو نو په دې صورت کښې به قاضی د زوج قائم مقام وی په تفریق کښې، او دا د قاضی تفریق به په حکم د طلاق کښې وی.

والحدیث اخرجه الائمة وباقي الستة الا الترمذي (تکملة المنهل)

[۲۲۴۶] (¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي عَبَّاسُ بْنُ سَهْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِعَاصِمِ بْنِ عَدِيٍّ: "أَمْسِكِ الْمَرْأَةَ عِنْدَكَ حَتَّى تَلِدَ".

**ترجمه:** عباس بن سهل رضی الله عنه دخپل پلارنه روایت کوی چه نبی علیه السلام عاصم بن عدي ته اوفرمائیل دولادت پورې دا ښځه دځان سره اوساته.

## توضیح الحدیث

رسول الله صلی الله علیه وسلم عاصم بن عدی رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه زوجه عویمر چا چه لعان کړې دې هغه د ځان سره اوساته تردې چه د ولادت نه فارغه شي، رسول الله صلی الله علیه وسلم عاصم ته د دې خبرې حکم په دې وجه اوکړو چه هغه د خپل قوم مشر او سردار وو، بله دا چه د هغه زنانه خپلوان وو. والحدیث اخرجه احمد مطولا (تکملة المنهل)

[۲۲۴۷] (²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: حَضَرْتُ لِعَانَهُمَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، قَالَ فِيهِ: ثُمَّ خَرَجَتْ حَامِلًا، فَكَانَ الْوَلَدُ يُدْعَى إِلَى أُمِّهِ.

**ترجمه:** دابن شهاب نه روایت دې فرمائی چه سهل بن سعد الساعدي رضی الله عنه وئیلي دي ددوی دلعان په وخت کښې زه دنبی علیه السلام خواته حاضرشوي وم اوزه دپنځلسو کالوهلك وم. اوحدیث ئې تراخره پورې بیان کړو اوپکښې ئې دا اضافه کړې وه چه اوښځه حامله ثابته شوه او بیا به دبچي نسبت خپل مور ته کیدو.

**تشریح:** ﴿فكان الولد يدعى الى امه﴾ د لعان نه روستو چه د هغه زنانه نه کوم ماشوم پیدا کیږی د هغه نسب صرف د ملاعنه نه ثابتیږی او د پلار نه ئې نسب نه ثابتیږی هم په دې وجه باندې ورته ولد الملاعنه وئیلې شي، میراث وغیره هم صرف په دې دواړو کښې جاری کیږی.

[۲۲۴۸] (³) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ الْوَرْكَانِيُّ، أَخْبَرَنَا إِبْرَاهِيمُ يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ فِي خَبَرِ الْمُتَلَاعِنَيْنِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَبْصِرُوهَا، فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ أَدْعَجَ الْعَيْنَيْنِ عَظِيمَ الْأَلْيَتَيْنِ، فَلَا أُرَاهُ إِلَّا قَدْ صَدَقَ، وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ أُحَيْمِرَ كَأَنَّهُ وَحَرَةٌ، فَلَا أُرَاهُ إِلَّا كَاذِبًا"، قَالَ: فَجَاءَتْ بِهِ عَلَى النَّعْتِ الْمَكْرُوهِ.

**ترجمه:** زهري دسهل بن سعد نه دمتلاعنینو په واقعه کښې نقل کړي دي چه نبی علیه السلام اوفرمائیل که چرې ددې ښځې داسې بچي پیداشي چه رنګ ئې تور وي اوسترګې ئې هم تورې وي اوکوناټې ئې غټې وي نوبیازه عویمرربښتوني ګڼرم، اوکه چرې سور رنګې ماشوم

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٧٩٦)، وقد أخرجه: (حم ٥/٣٣٥) (حسن)
²): تفرد به أبو داود، وانظر حديث رقم (٢٢٤٥)، (تحفة الأشراف: ٤٨٠٥) (صحيح)
³): انظر حديث رقم (٢٢٤٥)، (تحفة الأشراف: ٤٨٠٥) (صحيح)

پيداشي نوبيا عويمر دروغژن دي بهرحال بياهغه ماشوم په بده طريقه پيداشو(يعنی دعويمر الزام رښتياوو).

## توضيح الحديث

د لعان نه د فارغ کيدو نه پس د ملاعنه په باره کښې رسول اللهﷺ بعض خلقو ته اوفرمائيل چه اوس چه کله د هغې ماشوم پيدا شی نو د هغه صورت او شکل وغيره او تپوسه، چه د کوم صورت او شکل ماشوم پيدا کيږی، اول ئې د زانی اوصاف بيان کړل چه که ماشوم داسې وی نو د هغې تقاضه دا ده چه سړې صادق وو، او زنانه دروغژنه، د دې نه پس بعض اوصاف خپله زوج بيان کړل او وې فرمائيل چه که ماشوم دا رنګ لری نو بيا سړې دروغژن شو او زنانه رشتينې) وړاندې راوی وائی چه کله ماشوم پيدا شو او هغه اوليدې شو نو هغه په مکروه صفت باندې وو يعنی د زانی په صفت باندې. ﴿ادعج العينين﴾ يعنی اسود العينين، ﴿احيمر﴾تصغير دې د احمر يعنی سور رنګ ﴿وحرة﴾د يو ځاروی نوم دې کوم چه د سور رنګ وی، هغه ته ګرګټ وئيلې شی کوم چه د چرمخکې مشابه وی. وهذه الرواية اخرجها الشافعی ايضا، وذکرها احمد رواية فی قصة عويمر العجلانی وکذا البيهقی وقال رواه البخاری. (تکملة المنهل)

[۲۲۴۹](١)حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، عَنْ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَكَانَ يُدْعَى يَعْنِي الْوَلَدَ لِأُمِّهِ.

**ترجمه:** دسهل بن سعد ساعدي نه ددې واقعې متعلق دسابقه روايت په شان يوروايت منقول دې. راوی وئيلې دې بيابه دددغه ماشوم نسبت مورته کيدو.

[۲۲۵۰](٢)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْفِهْرِيِّ، وَغَيْرِهِ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، فِي هَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَطَلَّقَهَا ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَنْفَذَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَانَ مَا صُنِعَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُنَّةً، قَالَ سَهْلٌ: حَضَرْتُ هَذَا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَمَضَتِ السُّنَّةُ بَعْدُ فِي الْمُتَلَاعِنَيْنِ أَنْ يُفَرَّقَ بَيْنَهُمَا ثُمَّ لَا يَجْتَمِعَانِ أَبَدًا.

**ترجمه:** دسهل بن سعد ساعدي نه ددې واقعې متعلق دسابقه روايت په شان يوروايت منقول دې، راوی وائی بيائې ورته درې طلاق ورکړل دنبی عليه السلام په وړاندې نو نبی عليه السلام نافذ کړل هريوعمل چه دنبی عليه السلام په وړاندې وشي هغه سنت وي سهل وائی په دې وخت کښې زه موجود وم بيا همداطريقه دلعان کونکو په باره کښې جاري شوه چه ددوی دواړو په مينځ کښې به تفريق کولې شي او دواړه به هيڅ کله د يوبل سره نه شی يوځائې کولې يعنی ددواړو نکاح به هيڅ کله درست نه وي).

(١): انظر حديث رقم (۲۲۴۵)، (تحفة الأشراف: ۴۸۰۵) (صحيح)
(٢): انظر حديث رقم (۲۲۴۵)، (تحفة الأشراف: ۴۸۰۵) (صحيح)

## د حديث توجيه على مسلک الطرفين :

﴿ثم لا يجتمعان ابدا﴾ يعنى متلاعنين ترمينځه هميشه دپاره فرقت واقع كيږي، دوباره د هغه سره نكاح جائز نه ده، لكه چه جمهور فرمائي، او د طرفين په نزد دا مؤول دي ﴿اى لا يجتمعان ابدا ما داما على لعانهما كما تقدم فى اول باب اللعان﴾ والحديث اخرجه ايضا الدارقطني من طريق يونس بن عبدالاعلى، واخرجه البيهقي من طريق المصنف (تكملة المنهل)

[۲۲۵۱]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَوَهْبُ بْنُ بَيَانٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، وَعَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ مُسَدَّدٌ: قَالَ: "شَهِدْتُ الْمُتَلَاعِنَيْنِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ، فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تَلَاعَنَا"، وَتَمَّ حَدِيثُ مُسَدَّدٍ، وَقَالَ الْآخَرُونَ: إِنَّهُ شَهِدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَّقَ بَيْنَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ، فَقَالَ الرَّجُلُ: كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنْ أَمْسَكْتُهَا، لَمْ يَقُلْ بَعْضُهُمْ: عَلَيْهَا. قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يُتَابِعْ ابْنَ عُيَيْنَةَ أَحَدٌ عَلَى أَنَّهُ فَرَّقَ بَيْنَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ.

**ترجمه**: دسهل بن سعد رضي الله عنه نه دمسدد په روايت كښې منقول دي چه سهل اوفرمائيل دوی دواړه لعان كونكوته زه دنبى عليه السلام په زمانه كښې دلعان په وخت كښې حاضرشوې وم او په دغه وخت كښې زما عمر پنځلس كاله وو اونبى عليه السلام ددوی په مينځ كښې جدائى راوستله كله چه دوی دواړو لعان اوكړو ترديې ځائې دمسدد حديث پوره شو، نورو راويانو وئيلي دي چه سهل نبى عليه السلام ته حاضر شوې وو چه جدائى راوستلي وه دلعان كونكوپه مينځ كښې نودغه كس عرض اوكړو كه چرې دابنځه اوس زه ساتم نوګويا دابه داسې وی لكه چه مادروغ وئيلي وي، امام ابوداود فرمائى دابن عيينه هيڅوك متابع نشته چه نبى عليه السلام په لعان كونكو كښې تفريق واقع كړې وو.

**تشريح**: ﴿ففرق بينهما رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حين تلاعنا﴾ په تيرو ټولو رواياتو كښې د تطليق زوج ذكر راغلي دي، د رسول الله صلى الله عليه وسلم تفريق كول نه دى راغلى، هم په دې وجه مصنف په دې باندې لفظ باندې كلام كړې دې.

[۲۲۵۲]([2])حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ، وَكَانَتْ حَامِلًا، فَأَنْكَرَ حَمْلَهَا، فَكَانَ ابْنُهَا يُدْعَى إِلَيْهَا، ثُمَّ جَرَتِ السُّنَّةُ فِي الْمِيرَاثِ، أَنْ يَرِثَهَا وَتَرِثَ مِنْهُ مَا فَرَضَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ لَهَا.

**ترجمه**: دسهل بن سعد ساعدي نه ددې واقعې متعلق دسابقه روايت په شان يوروايت منقول دې مګردديې اضافې سره چه اوهغه ښځه حامله وه او عويمر ددې حمل بد وګڼړلو اوددغه ماشوم نسبت به بيا مورته كيدو اوددې نه پس بيا په ميراث كښې دا طريقه جاري شوه چه هلك به دخپلې مور وارث وي اوموربه ددغه هلك وارثه وي څومره چه ورله الله تعالى مقرر كړې وي.

[1]: انظر حديث رقم (۲۲٤٥)، (تحفة الأشراف: ٤٨٠٥) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم (۲۲٤٥)، (تحفة الأشراف: ٤٨٠٥) (صحيح)

[۲۲۵۳]([1])عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: إِنَّا لَلَيْلَةَ جُمُعَةٍ فِي الْمَسْجِدِ، إِذْ دَخَلَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فِي الْمَسْجِدِ، فَقَالَ: لَوْ أَنَّ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا فَتَكَلَّمَ بِهِ، جَلَدْتُمُوهُ؟ أَوْ قَتَلَ، قَتَلْتُمُوهُ؟ فَإِنْ سَكَتَ سَكَتَ عَلَى غَيْظٍ، وَاللّٰهِ لَأَسْأَلَنَّ عَنْهُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا كَانَ مِنَ الْغَدِ، أَتَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ، فَقَالَ: لَوْ أَنَّ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا فَتَكَلَّمَ بِهِ، جَلَدْتُمُوهُ؟ أَوْ قَتَلَ، قَتَلْتُمُوهُ؟ أَوْ سَكَتَ سَكَتَ عَلَى غَيْظٍ؟ فَقَالَ: "اللّٰهُمَّ افْتَحْ"، وَجَعَلَ يَدْعُو فَنَزَلَتْ آيَةُ اللِّعَانِ: وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ سورة النور آية ۶ هَذِهِ الْآيَةَ، فَابْتُلِيَ بِهِ ذَلِكَ الرَّجُلُ مِنْ بَيْنِ النَّاسِ، فَجَاءَ هُوَ وَامْرَأَتُهُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَلَاعَنَا، فَشَهِدَ الرَّجُلُ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللّٰهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ، ثُمَّ لَعَنَ الْخَامِسَةَ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ، قَالَ: فَذَهَبَتْ لِتَلْتَعِنَ، فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَهْ"، فَأَبَتْ، فَفَعَلَتْ، فَلَمَّا أَدْبَرَا، قَالَ: "لَعَلَّهَا أَنْ تَجِيءَ بِهِ أَسْوَدَ جَعْدًا"، فَجَاءَتْ بِهِ أَسْوَدَ جَعْدًا.

**ترجمه**: دعبدالله بن مسعود نه روایت دي فرمائی چه دجمعي په شپه زه په جومات کښي ناست وم گورم چه یوانصاري جومات ته راغي اوتپوس ئي کولوکه چرې یوکس دخپلي ښځي سره کوم پردي سړي اووینې اوبیادابیان کړي (یعنی داسي اووائی چه زماښځي د زنا ارتکاب کړې دي؟) نوده اووئیل تاسو دي په کوړو اووهئ (حد قذف ورکړئ نوکه هغه چاله مړ کړو نو تاسوئې هم (په قصاص کښي) مړکړئ اوکه غلي شو نودالله دغصي سره غلي شو زه به خامخانبی عليه السلام نه په دې باره کښي تپوس کوم کله چه بله ورځ سحر شو نودنبی عليه السلام په خدمت کښي حاضر شو اوهم ددې خبري تپوس ئي اوکړو که چرې یوسړې دخپلي ښځي سره څوك اووینې اوبیاخلقو ته ددې ذکر اوکړی تاسو دي په کوړو اووهئ (حد قذف ورکړئ) نوکه هغه چالره مړ کړو نوتاسوئې هم (په قصاص کښي) مړکړئ اوکه غلی شو نودالله دغصي سره غلې شو، نونبی علیه السلام چه کله واؤریدلو نو وئې وئیل چه اې الله! ددې معاملې بیان اوفرمائې نو د لعان آیات نازل شو. نبی عليه السلام اوفرمائیل اې الله دا مشکل اسان کړې نوپه دې وخت کښي دلعان دا آیت: («والذین یرمون أزواجهم ولم یکن لهم شهداء إلا أنفسهم») نازل شو، دټولونه مخکښې هغه کس راغې څوك چه په دې مصیبت مبتلا شوې وو اودهغه ښځه هم راغله دواړو لعان اوکړو سړي دالله نوم واغستو او څلور پیرې گواهي ئې اوکړه چه زه رېښتونې یم او په پنځم ځل ئې اووئیل که چرې زه دروغژن یم نوپه مادې دالله لعنت وي ددې نه پس چه کله ښځې دلعان اراده اوکړه نونبی عليه السلام هغه دیکه کړه په دې وجه باندې که چرې دخاوند بیان رښتیاوي نودآخرت درسوایئ نه ویره اوکړه اودگناه په اقرار کولوسره حد قبول کړه مګرښځې اونه منل اولعان ئې اوکړو، اودالله نوم ئې واغستو اوڅلور پیرې گواهي ئې اوکړه چه زه رېښتونې ایم او په پنځم ځل ئې اووئیل که چرې زه دروغژنه یم نوپه مادې دالله لعنت وي کله چه دواړه لاړل نبی عليه السلام اوفرمائیل شاید چه ددې ښځې به گونجې وېښتو والاتور بچې پیداشې اوبیاهم داسې اوشول چه گونجې وېښتووالا او تور ځوي ئې پیداشوه دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روایت دي فرمائی چه هلال

---

[1]: صحیح مسلم/اللعان ۱۰ (۱۴۹۵)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۲۷ (۲۰۶۸)، (تحفة الأشراف: ۹۴۲۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۴۲۱، ۴۴۸) (صحیح)

بن امیه پخپلې ښځې باندې دزنا تهمت اولګوونبی ﷺ هلال ته اوفرمائیل که ګواه راننه ولي نو دتهمت حدبه په تاباندې جاري شي، هلال اووئیل اې دالله رسوله ایا که څرې په مونږ کښې یوکس دخپلې ښځې سره څوك اووینې نو هغه به په ګواه پسې ځي او ایادا دګواه دبوتلوځائې دې نبی ﷺ به همدا فرمائیل چه ګواه قائم کړه ګنې حد به په تاجاری کیږي هلال اووئیل په الله مې دې قسم وي چاچه ته په حقه رالیږلې یې په تحقیق سره زه رېښتونې یم الله تعالی به داسې حکم نازل کړي چه په هغې سره به ما دتهمت دحد نه بچ کړي نوپه دې وخت کښې دالله تعالی دطرف دا ایتونه : (وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ سورة النور آية ٦) تر (إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ) پورې نازل شول، ددې نه پس نبی ﷺ هلال بن امیه سره دخپلې ښځې راوغوښتو دواړه راغلل رومبې هلال بن امیه اودریدو اوګواهي ئې ورکړه اونبی ﷺ به همدا اوئیل اوګورئ الله تعالی ته معلومه ده یقینا یو کس په تاسوکښې ضروردروغژن دې ایاپه تاسوکښې کوم یوتوبه کوي، بیاښځه پاځیده اوګواهیانې ئې ورکړې کله چه دپنځم شهادت نمرراغې چه په دې دې دالله غضب وي که چرې خاوند رېښتونې وي اوخلقو ورته اووئیل چه دالله غضب به ضرور راځي نوهغه ښځه شاته شوه، ابن عباس نه وائي چه مونږ داوګڼرل چه ګویا دا ښځه دخپل بیان نه انکار کوي، اوبیائې اووئیل نه زه خپل قوم نه شرموم هیڅ کله اوبله ګواهي ئې هم ورکړه نبی ﷺ اوفرمائیل تاسودې ته خیال کوئ که چرې ددې بچې تور وي اوسترګې ئې هم تورې وي او پیرو کوناتو والا اوپندو والاوي نوداد شریك بن سحماء نه دې اوبیائې همداسې بچې پیداشو، بیانبی ﷺ اوفرمائیل که چرې دالله حکم په دې باره کښې شوې نه وې نو مابه ددې ښځې سره څه کړي وو (یعنی په دې به مې دزنا په سزاکښې حد جاري کړې وو).امام ابوداود فرمائی دا حدیث داهل مدینه دتفرداتونه دې مراد دادې چه دابن بشار حدیث ابوعدي دهشام بن حسان نه نقل کړې دې۔

**تشریح**:﴿قال ابوداود : لم یتابع ابن عیینة احد علی انه فرق بین المتلاعنین ﴾لهذا دا لفظ شاذ شو، خو په ماقبل کښې د زوج د تطلیق په باره کښې دا تیر شوې دی، ﴿فانفذه رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وکان ما صنع عند النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سنة ﴾لهذا د دې تنفیذ په اعتبار سره د رسول اللهﷺ طرف ته د تفریق نسبت کیدې شي. اخرجه الشافعی صدرها عن سفیان، واخرجه البیهقی من طریق المصنف قوله : لم یتابع ابن عیینة احد وقال یعنی بذلک فی حدیث الزهری عن سهل، الا ما روینا عن الزبیدی عن الزهری. (تکملة المنهل)

[٢٢٥٤](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنِي عِكْرِمَةُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ هِلَالَ بْنَ أُمَيَّةَ قَذَفَ امْرَأَتَهُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَرِيكِ بْنِ سَحْمَاءَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْبَيِّنَةُ، أَوْ حَدٌّ فِي ظَهْرِكَ"، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِذَا رَأَى أَحَدُنَا رَجُلًا عَلَى امْرَأَتِهِ يَلْتَمِسُ الْبَيِّنَةَ، فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "الْبَيِّنَةُ، وَإِلَّا فَحَدٌّ فِي ظَهْرِكَ"، فَقَالَ هِلَالٌ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ نَبِيًّا، إِنِّي

(1): سنن الترمذي/تفسیر سورة النور (٣١٧٩)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٢٧ (٢٠٦٧)، مسند احمد (٢٧٣/١)، (تحفة الأشراف: ٦٢٢٥)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/تفسیر سورة النور ٢ (٤٧٤٦)، الطلاق ٢٩ (٥٣٠٨) (صحیح)

لَصَادِقٌ، وَلَيُنْزِلَنَّ اللّٰهُ فِي أَمْرِي مَا يُبَرِّءُ بِهِ ظَهْرِي مِنَ الْحَدِّ، فَنَزَلَتْ: وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ فَقَرَأَ حَتَّى بَلَغَ لَمِنَ الصَّادِقِينَ سورة النور آية ٦، فَانْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِمَا، فَجَاءَا، فَقَامَ هِلَالُ بْنُ أُمَيَّةَ فَشَهِدَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "اللّٰهُ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ، فَهَلْ مِنْكُمَا مِنْ تَائِبٍ؟" ثُمَّ قَامَتْ، فَشَهِدَتْ، فَلَمَّا كَانَ عِنْدَ الْخَامِسَةِ أَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ، وَقَالُوا لَهَا: إِنَّهَا مُوجِبَةٌ، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَتَلَكَّأَتْ وَنَكَصَتْ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهَا سَتَرْجِعُ، فَقَالَتْ: لَا أَفْضَحُ قَوْمِي سَائِرَ الْيَوْمِ، فَمَضَتْ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَبْصِرُوهَا، فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ أَكْحَلَ الْعَيْنَيْنِ سَابِغَ الْأَلْيَتَيْنِ خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ فَهُوَ لِشَرِيكِ ابْنِ سَحْمَاءَ"، فَجَاءَتْ بِهِ كَذٰلِكَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْلَا مَا مَضَى مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ، لَكَانَ لِي وَلَهَا شَأْنٌ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَهٰذَا مِمَّا تَفَرَّدَ بِهِ أَهْلُ الْمَدِينَةِ، حَدِيثُ ابْنِ بَشَّارٍ، حَدِيثُ هِلَالٍ.

**ترجمه:** عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وائی چه هلال بن اميه رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته په خپله ښځه باندې د شريک بن سمحاء سره (د زنا) تهمت اولګولو، نو نبی صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: ثبوت راوړه ګینی په شا به درته کوړې لګولې شی. نو هلال اووئيل: اې دالله رسوله صلى الله عليه وسلم! کله چه په مونږ کښې يوکس څوک سړې د خپلې ښځې اوګوری، نوهغه به ګواه تلاش کولو دپاره ځی؟ په دې باندې هم نبی کريم صلى الله عليه وسلم دا اوفرمائيل چه: ګواه راوړه ګینی په شا به درته کوړې لګولې شی.نو هلال اووئيل: په هغه ذات مې دې قسم وی چاچه ته په حقه نبی جوړ کړې ئې او رالیږلې ئې، زه بالکل رشتونې يم او الله تعالی به ضرور زما په باره کښې وحی نازله کړی زما شا به د حد نه بری (خلاصه) کړی.نو دا آيت : («والذين يرمون أزواجهم ولم يكن لهم شهداء إلا أنفسهم») نازل شو، نبی کريم صلى الله عليه وسلم دا اولوستلو تردې چه تر (إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ) پورې اورسيدو، ددې نه پس نبی عليه السلام هلال بن اميه سره دخپلې ښځې راوغوښتو دواړه راغلل رومبې هلال بن اميه اودريدو اوګواهې ئې ورکړه اونبی عليه السلام به همدا وئيل اوګورئ الله تعالی ته معلومه ده يقينا يو کس په تاسو کښې ضروردروغژن دې ايا په تاسو کښې کوم يوتوبه کوې، بيا ښځه پاڅيده اوګواهيانې ئې ورکړی کله چه دپنځم شهادت نمبرراغې چه په دې دې دالله غضب وې که چرې خاوند ريښتونې وې اوخلقو ورته اووئيل چه دالله غضب به ضرور راځي، ابن عباس رضي الله عنه وائی نوهغه ښځه اوتره شوه او شاته شوه، مونږ دا وګنړل چه ګويا دا ښځه دخپل بيان نه انکار کوې، اوبيائې اووئيل نه زه خپل قوم نه شرموم هيڅ کله اوبله ګواهې ئې هم ورکړه نبی عليه السلام اوفرمائيل تاسودې ته خيال کوئ که چرې ددې بچې تور وې اوسترګې ئې هم تورې وې او پيړو کوناټو والا اوپنډو والاسوې نوداد شريک بن سحماء نه دې اوبيائې همداسې بچې پيدا شو، بيانبی عليه السلام اوفرمائيل که چرې دالله حکم په دې باره کښې شوې نه وې نو ما به ددې ښځې سره بل څه کړې وو (يعنی په دې به مې دزنا په سزاکښې حد جاري کړې وو) امام ابوداود فرمائی دا حديث داهل مدينه دتفرداتونه دې مراد دادې چه دابن بشار حديث ابوعدي دهشام بن حسان نه نقل کړې دې.

## د رجل نه څه مراد دې؟

**قوله:**﴿ عن علقمة عن عبدالله قال إنّا ليلة جمعة في المسجد اذ دخل رجل من الانصار ﴾.

د دې رجل نه څه مراد دې؟ په بذل المجهود کښې حضرت ليکلې دی چه ظاهره ده د دې نه

مراد عويمر دې چه د هغه واقعه د مخکښې نه روان دې، ﴿يا هلال بن امية ﴾چه د هغې قصه وړاندې په کتاب کښې راروان دې. اهـ او صاحب منهل احتمال ثاني لره ظاهر منلې دې د صحيح مسلم د يو روايت په وجه باندې چه په هغې کښې دا دی چه هلال بن اميه د ټولو نه مخکښې هغه سړې دې چا چه په اسلام کښې دننه لعان اوکړو. اهـ

زه وايم چه دا دې هم واضح وی چه اوسه پورې ځومره روايات د لعان په باره کښې تير شوی دی د دې تعلق عويمر بن اشقر سره وو کوم چه مصنف د سهل بن سعد نه په مختلف طرق سره روايت کړې دې، او روستو چه د هلال بن اميه د لعان کومه قصه راروانه ده هغه د ابن عباس په روايت دې او دا د مينځ والا روايت کوم چه رجل مبهم سره دې دا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روايت دې.

د دې نه روستو ځان پوهه کړه چه د باب اللعان د ټولو نه وړاندې حديث چه د هغې د لاندې د آيت لعان د نزول په باره کښې اختلاف روايات او بيا د حافظ ابن حجر نه د دې ترمينځه تطبيق بيان کړې شوې دې هلته دا هم تير شوې دی چه د سياق روايات نه دا مترشح کيږی (واضح کيږی) چه د عويمر سوال وقوع فاحشه نه مخکښې وو، او دلته په دې روايت کښې هم دا راروان دې ﴿فابتلى به ذلک الرجل من بين الناس فجاء هو وامراته الى رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الخ ﴾د دې تقاضه دا ده چه په دې روايت کښې د رجل مبهم نه مراد عويمر بن اشقر دې کما استظهره صاحب البذل. والله تعالى اعلم

والحديث اخرجه ايضا مسلم وابن ماجة واخرجه احمد مختصرا (وتكملة المنهل)

﴿ عن ابن عباس رضى الله تعالى عنهما ان هلال بن امية قذف امراته... بشريک بن سحماء ﴾

مونږ سره په شروع کښې تير شو ﴿عن تقرير الجنجوهی ﴾چه په قصه عويمر کښې هم رجل متهم شريک بن سحماء وو. فتذکر.

## شرح الحديث:

دا خبره ظاهره ده چه کله د لعان قصه پيښه شوې وه هلته سړې او زنانه دواړو کښې يو صادق وی او دويم کاذب، دا خو ممکن نه ده چه دواړه دې صادق وی يا دواړه کاذب، هم په دې وجه رسول الله ﷺ د لعان ترمينځه شفقت د وجې نه تنبيه کوله چه ګورئ په تاسو کښې يو بنده يقينا کاذب دې لهذا د الله پاک نه اوويريږئ، او په تاسو کښې چه چا دروغ وئيلې دی هغه دې د خپلې خبرې نه رجوع او توبه اوکړی هم په دې روايت کښې راځی چه کله زنانه لعان کولو نو چه کله هغې ته تنبيه اوکړې شوه نو ﴿فتلكات ﴾هغه لره مذبذبه شوه، تردې چه مونږ خيال اوکړو چه کيدې شی هغه رجوع اوکړی، خو بيا په ځائې د رجوع کولو هغې اووې ﴿لا افضح قومی سائر اليوم ﴾ چه الله پاک دې نه کړی زه رجوع کولو سره خپل قوم اوخاندان لره دټول عمر دپاره خو رسوا کولې نه شم، اويا وئيلو سره خپل لعان هغه پوره کړو.

﴿فقال النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لولا ما مضى من كتاب الله لكان لى ولها شان ﴾ يعنی چه کله پيدا کيدونکې بچې د زناکار هم شکل راوتلو بيا رسول الله ﷺ دا خبره ارشاد اوفرمائيلو

چه که د لعان حکم نه وو نازل شوي نو بيا به ما هغه زنانه په خوند پوهه کړې وه، د دې نه مراد حد زنا او رجم دې.

[۲۲۵۵](¹) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ الشَّعِيرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ رَجُلًا حِينَ أَمَرَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ أَنْ يَتَلَاعَنَا أَنْ يَضَعَ يَدَهُ عَلَى فِيهِ عِنْدَ الْخَامِسَةِ، يَقُولُ: إِنَّهَا مُوجِبَةٌ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائي کله چه نبي عليه السلام لعان کونکوته دلعان کولوحکم اوکړونويوکس ته ئې حکم اوکړو چه په پنځم ځل کښې دده په خوله باندې لاس کيږده اودا ئې اوفرمائيل چه دا پنځم ځل ګواهي دعذاب باعث دې.

[۲۲۵۶](²) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مَنْصُورٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَ هِلَالُ بْنُ أُمَيَّةَ وَهُوَ أَحَدُ الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ، فَجَاءَ مِنْ أَرْضِهِ عَشِيًّا، فَوَجَدَ عِنْدَ أَهْلِهِ رَجُلًا فَرَأَى بِعَيْنِهِ وَسَمِعَ بِأُذُنِهِ، فَلَمْ يَهِجْهُ حَتَّى أَصْبَحَ، ثُمَّ غَدَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي جِئْتُ أَهْلِي عِشَاءً فَوَجَدْتُ عِنْدَهُمْ رَجُلًا، فَرَأَيْتُ بِعَيْنَيَّ وَسَمِعْتُ بِأُذُنَيَّ، فَكَرِهَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا جَاءَ بِهِ وَاشْتَدَّ عَلَيْهِ، فَنَزَلَتْ: وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ سورة النور آية ٦، الْآيَتَيْنِ كِلْتَيْهِمَا، فَسُرِّيَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "أَبْشِرْ يَا هِلَالُ، قَدْ جَعَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ لَكَ فَرَجًا وَمَخْرَجًا"، قَالَ هِلَالٌ: قَدْ كُنْتُ أَرْجُو ذَلِكَ مِنْ رَبِّي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرْسِلُوا إِلَيْهَا"، فَجَاءَتْ، فَتَلَاهَا عَلَيْهِمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذَكَّرَهُمَا وَأَخْبَرَهُمَا أَنَّ عَذَابَ الْآخِرَةِ أَشَدُّ مِنْ عَذَابِ الدُّنْيَا، فَقَالَ هِلَالٌ: وَاللَّهِ لَقَدْ صَدَقْتُ عَلَيْهَا، فَقَالَتْ: قَدْ كَذَبَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَاعِنُوا بَيْنَهُمَا"، فَقِيلَ لِهِلَالٍ: اشْهَدْ، فَشَهِدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ، فَلَمَّا كَانَتِ الْخَامِسَةُ، قِيلَ لَهُ: يَا هِلَالُ اتَّقِ اللَّهَ، فَإِنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَنُ مِنْ عَذَابِ الْآخِرَةِ، وَإِنَّ هَذِهِ الْمُوجِبَةُ الَّتِي تُوجِبُ عَلَيْكَ الْعَذَابَ، فَقَالَ: وَاللَّهِ لَا يُعَذِّبُنِي اللَّهُ عَلَيْهَا كَمَا لَمْ يَجْلِدْنِي عَلَيْهَا، فَشَهِدَ الْخَامِسَةَ أَنَّ لَعْنَةَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ، ثُمَّ قِيلَ لَهَا: اشْهَدِي، فَشَهِدَتْ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ، فَلَمَّا كَانَتِ الْخَامِسَةُ، قِيلَ لَهَا: اتَّقِي اللَّهَ، فَإِنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَنُ مِنْ عَذَابِ الْآخِرَةِ، وَإِنَّ هَذِهِ الْمُوجِبَةُ الَّتِي تُوجِبُ عَلَيْكِ الْعَذَابَ، فَتَلَكَّأَتْ سَاعَةً، ثُمَّ قَالَتْ: وَاللَّهِ لَا أَفْضَحُ قَوْمِي، فَشَهِدَتِ الْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ، فَفَرَّقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا، وَقَضَى أَنْ لَا يُدْعَى وَلَدُهَا لِأَبٍ وَلَا تُرْمَى وَلَا يُرْمَى وَلَدُهَا، وَمَنْ رَمَاهَا أَوْ رَمَى وَلَدَهَا فَعَلَيْهِ الْحَدُّ، وَقَضَى أَنْ لَا بَيْتَ لَهَا عَلَيْهِ، وَلَا قُوتَ مِنْ أَجْلِ أَنَّهُمَا يَتَفَرَّقَانِ مِنْ غَيْرِ طَلَاقٍ وَلَا مُتَوَفًّى عَنْهَا، وَقَالَ: "إِنْ جَاءَتْ بِهِ أُصَيْهِبَ أُرَيْصِحَ أُثَيْبِجَ حَمْشَ السَّاقَيْنِ، فَهُوَ لِهِلَالٍ، وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ أَوْرَقَ جَعْدًا جُمَالِيًّا خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ سَابِغَ الْأَلْيَتَيْنِ، فَهُوَ لِلَّذِي رُمِيَتْ بِهِ"، فَجَاءَتْ بِهِ أَوْرَقَ جَعْدًا جُمَالِيًّا خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ سَابِغَ الْأَلْيَتَيْنِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْلَا الْأَيْمَانُ، لَكَانَ لِي وَلَهَا شَأْنٌ". قَالَ عِكْرِمَةُ: فَكَانَ بَعْدَ ذَلِكَ أَمِيرًا عَلَى مِصْرَ، وَمَا يُدْعَى لِأَبٍ.

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه هلال بن اميه راغې اودې يو په هغه درې کسانوکښې چې دتبوک نه پاتې شوي وو اوالله تعالى ئې توبه قبول کړې وه په دغه دوران کښې هلال بن اميه دخپلې زمکې نه دشپې کورته راغې نوهغه دخپلې ښځې سره

---

(¹): سنن النسائي/الطلاق ٤٠ (٣٥٠٣) (تحفة الأشراف: ٦٣٧٢) (صحيح)

(²): وانظر حديث رقم (٢٢٥٤)، (تحفة الأشراف: ٦١٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٨/١، ٢٤٥) (ضعيف)

پردې سرې اوليدو او په غوږونوئې هم واوريدل، هلال ددغه کس سره نه وهل ټکول اوکړل اونه ئې ورته دهمکي ورکړه، کله چه سحر شو نودنبي ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله دشپې چه زه کله کور ته راغلم نومايوکس دخپلې ښځې سره اوليدو په خپلو سترګو او په خپلو غوږونو مې واوريدل نبي ﷺ دهلال خبرې بې خونده وګڼړلې (توجه ئې ورته ونه کړه او هلال ته هم داسې رويه اودا مشکل ګران شو نوپه دې وخت کښې دا ايت کريمه : (والذين يرمون أزواجهم ولم يكن لهم شهداء إلا أنهم فشهادة أحدهم) نازل شو کله چه په نبي ﷺ باندې دوحي سختې تيره شوه اوختم شوه نوهلال ته ئې اووئيل حوشحاله شه الله تعالى ستادپاره لار کولاو کړه هلال اووئيل زمادالله تعالى نه هم دا اميد وو، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل ښځه دې راوغواړه نبي ﷺ دواړوته دا ايت کريمه بيان کړو اونصيحت ئې هم ورته اوکړو اودالله دعذاب نه ئې ويرول چه داددنيادتکليف نه ډير سخت دې هلال عرض اوکړو په الله قسم چه ددې ښځې حال ما په رښتيا سره بيان کړې دې ښځې اووئيل دې دروغژن دې نبي ﷺ صحابه کراموته اوفرمائيل په دوى باندې لعان اوکړه هلال ته اول دا ووئيلې شول چه ګواهياني ورکړه هغه څلور ځله ګواهياني ورکړې کله چه دلعان پنځم ځل شو نوهلال ته اوويلې شول اې هلال دالله نه اوويرږه ددنيا عذاب داخرت دعذاب نه ډير اسان دې اودا آخرى شهادت دې که چرې ته دروغژن ئې نودا ګواهي به په تا باندې دنياوي عذاب نافذ کړي، هلال اووئيل په الله قسم ددې ښځې په باره کښې په ما باندې هيڅ کله عذاب نه راځي لکه چه الله تعالى په ما باندې ددې د تهمت په وجه دکوړو حد جارى نکړو بهرحال اخرنۍ ګواهي ئې هم ورکړه چه که چرې زه دروغژن يم نوپه مادې دالله لعنت وي ددې نه پس ښځې ته اووئيلې شول ته ګواهياني ورکړه نوهغه ښځې هم دالله نوم واخستل او څلور ګواهياني ئې ورکړې چه زماخاوند دروغ وائى کله چه دګواهي پنځم ځل شو نوخلقو ورته اووئيل اوګوره دالله دعذاب نه ويره اوکړه ددنياعذاب دآخرت دعذاب نه اسان دې اوهمدا پنځم ځل اواخرې ګواهي ده کومه چه به په تاباندې عذاب واجبوى ښځې چه دا واوريدل نويوه شيبه متحيره شوه اوبيائې اووئيل په الله مې دې قسم وي زه خپل نوم نه شرموم او پنځم ځل ګواهي ئې هم ورکړه داچه که زما خاوند رېښتونې وي نوپه مادې دالله غضب نازل شوي ددې نه پس نبي ﷺ په دوى دواړوکښې جدائى اوکړه اودافيصله ئې اوکړه ددې ښځې په خېټه کښې چه کوم بچې دې دهغه نسبت دې پلار ته ونه کړې شي ليکن په دې ښځه دې دزنا تهمت هم ونه لګولې شي اونه په دې ماشوم باندې، اوځوك چه په دې ماشوم دزناتهمت ولګوي نوپه هغه باندې به حد قذف جارې کيږى اودافيصله کې هم اوکړه چه په خاوند باندې دا لازمى نه دى چه دې ته به ځائې ورکوي يابه ورته نفقه ورکوي ځکه چه دوى دواړه بغيردطلاق نه جدا شوى دى او همدارنګې بغيردوفات نه جداشوى دى اوبيائې اوفرمائيل که چرې ماشوم خړ رنګ والا خړ رنګ وېښتووالا او اوچ کلک اونرو پنډو والا پيداشو نودابه دهلال نه وي اوکه چرې غنمرنګ ګونجي وېښتو والا اوڅربو پنډو والا او څربو کوناټو والاوي نوبيادا دهغه

کس بچي دي په چاباندې چه تهمت لګيدلي دي، نوبيادغي ښځې بچې په ورستني بيان شوي شکل کښې پيداشو نبی علیه السلام اوفرمائيل که چرې مخکښې شهادتونه شوي نه وې نو مابه دې ښځې ته دعبرت سزاورکړې وه، عکرمه وائی بيا هغو ماشوم پيداشو اودمصر بادشاه شو ليکن دمور په نوم باندې به ورته اواز نه کيدو.

**تشریح:** الحديث اخرجه ايضا البخاری وابن ماجة (تكملة المنهل)

﴿وقضى ان لا يدعى ولدها لاب ولا يرمى ولدها ﴾يعنى د لعان نه پس هغه دا فيصله اوفرمائيله چه د هغې نه روستو پيدا کيدونکي ماشوم صرف د مور نه د هغه نسب ثابتيږي د پلار طرف ته هغه دې منسوب اونکړې شي، او هم دغه شان د راروان زنانه طرف ته يا او د هغه ماشوم طرف ته دې د زنا نسبت اونکړې شي، او که څوک کوی نو په هغه باندې به حد قذف جاري کيږي.

﴿وقضى ان لا بيت لها عليه ولا قوت من اجل انهما يتفرقان من غير طلاق ﴾د لعان په ابتدائی مباحث کښې تير شو چه طرفين په نزد لعان د طلاق بائن په حکم کښې دی، دا روايت د طرفين د مسلک خلاف دې، واجيب عنه بان فی سنده عباد بن منصور وهو ضعيف، او فی نفسه دا مسئله د مطلقه بائنه دپاره د عدت په زمانه کښې نفقه او سکنی دې يا نه؟ مختلف فيه بين الائمه دې، چه د هغې وړاندې مستقل باب راروان دې. [1]

﴿وقال : ان جاءت به اصيهب اريصح اثيبج حمش الساقين ﴾اصيهب تصغير دې د اصهب کوم چه ماخوذ دې صهبة نه، يعنى حمرة الشعر د ويښتو سره کيدل، اريصح په معنى د خفيف الاليتين، او اثيبج تصغير دې، اثيبج کوم چه ماخوذ دې د ثبج نه د ملا او سټ ترمينځه حصه چه د کوم سړي دا حصه لږه شان پيره او ډکه وی دې ته اثيج وئيلي شی، حمش الساقين يعنى يعنى د نرو خپو والا. ﴿وان جاءت به اورق جعدا جماليا خدلج الساقين﴾... اورق يعنى اسمر اللون، د تور رنګ والا، ﴿ جعد ﴾هغه سړې د چا ويښته چه ګلګوتي وی. ﴿جمالی ﴾په ضم د جيم او تشديد ياء سره، الضحم الاعضاء پيړ او مضبوطو اندامونو والا، کانه جمل خدلج بمعنى عظيم.

﴿ فقال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لولا الايمان لكان لى ولها شان ﴾په تير شوی روايت کښې په ځائې د ايمان ﴿كتاب الله ﴾لفظ وو چه د هغې نه مراد لعان دې، په دې روايت کښې ګويا د لعان نه په ايمان سره تعبير کړې شوې دې، لهذا وئيلي کيدې شی چه په ظاهره دا روايت د جمهورو مؤيد دې د حقيقت لعان په باره کښې. وقد مر الاختلاف فيه.

﴿ فكان بعد ذلك اميرا على مضر وما يدعى لاب ﴾عکرمه فرمائی چه د دې لعان نه پس پيدا کيدونکي ماشوم لوئيدو سره د قبيله مضر امير شو، خو د دې نسبت د پلار طرف ته نه کيدلو (بلکه د قاعدې مطابق د مور طرف ته منسوب کولې شو) د ابوداود په بعض

[1] هغه دا چه هغه د احنافو په نزد د هغه دپاره نفقه او سکنی دواړه دی او د حنابله په نزد دواړه نه دی، او د شوافعو او مالکيانو په نزد سکنی ده او نفقه نشته.

نسخو کښې په ځائې د مضر مصر واقع شوې دې. (١)

[٢٢٥٧](٢)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، قَالَ: سَمِعَ عَمْرٌو سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْمُتَلَاعِنَيْنِ: "حِسَابُكُمَا عَلَى اللَّهِ، أَحَدُكُمَا كَاذِبٌ لَا سَبِيلَ لَكَ عَلَيْهَا"، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَالِي؟ قَالَ: "لَا مَالَ لَكَ، إِنْ كُنْتَ صَدَقْتَ عَلَيْهَا فَهُوَ بِمَا اسْتَحْلَلْتَ مِنْ فَرْجِهَا، وَإِنْ كُنْتَ كَذَبْتَ عَلَيْهَا فَذَلِكَ أَبْعَدُ لَكَ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام لعان كونكوته اوفرمائيل چه ستاسو ددواړوحساب به دالله تعالى په وړاندې كيږى، په تاسودواړوكښې يوتن خامخا دروغژن دې، سړي ته ئې اوفرمائيل چه په ښځه باندې هيڅ قسم زور نشته ده عرض اوكړو اې دالله رسوله زما دمال به څه كيږي (يعنى مهر) نبى عليه السلام ورته اوفرمائيل كه چرې تادښځې په معامله كښې رښتيا وئيلې وي نوستامال دهغه ځيز په عوض كښې لاړوكوم چه تادد شرمګاه دهغې په ذريعه دځان دپاره حلال كړې وو، اوكه چرې تا په دې باندې ددروغو الزام لګولې وي نوستاسره نه ښائى چه دمهر مطالبه اوكړې.

[٢٢٥٨](٣)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ: قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ: رَجُلٌ قَذَفَ امْرَأَتَهُ، قَالَ: فَرَّقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَخَوَيْ بَنِي الْعَجْلَانِ، وَقَالَ: "اللَّهُ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ، فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ؟" يُرَدِّدُهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَأَبَيَا فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا.

**ترجمه:** دسعيد بن جبير نه روايت دې فرمائى چه ابن عمر رضی الله عنهما ته مې ووئيل اوتپوس مې ترې اوكړو كه چرې يوكس په خپله ښځه باندې دزنا الزام ولګوي؟ ابن عمر رضی الله عنهما اوفرمائيل چه نبى عليه السلام دبنى عجلان د وروڼو (دعويمر اودهغه دښځې په مينځ كښې جدائى راوستلې وه نبى عليه السلام ورته اوفرمائيل، الله تعالى ته معلومه ده چه په تاسو دواړوكښې يوتن خامخا دروغژن دې، آيا په تاسوكښې كوم يوتن توبه ويستل غواړي؟ اوداجمله ئې درې پيرې اوفرمائيله ليكن (په ښځه اوخاوند كښې يوتن هم توبې ته تيارنشو او دواړه په خپله خبره ټينګ وو) نونبى عليه السلام په دواړوكښې جدائى راوستله.

[٢٢٥٩](٤)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ رَجُلًا لَاعَنَ امْرَأَتَهُ فِي زَمَانِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَانْتَفَى مِنْ وَلَدِهَا، فَفَرَّقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا، وَأَلْحَقَ الْوَلَدَ بِالْمَرْأَةِ". قَالَ

---

[١]) وكذا عند احمد "اميرا علي مصر" بالصاد المهملة وعند الطيالسي قال عباد سمعت عكرمة يقول لقد رايته اميرا علي، من من الانصار، قال الحافظ وظن بعض شيوخنا انه اراد مصر البلد المشهور وفيه نظر لان امراء مصر معروفون معه ودون ليس فيهم هذا. اهـ (تكملة المنهل)

[٢]): صحيح البخاري/الطلاق ٣٢ (٥٣١٢)، صحيح مسلم/اللعان ١ (١٤٩٣)، سنن النسائي/الطلاق ٤٤ (٣٥٠٦)، (تحفة الأشراف: ٧٠٥١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطلاق ٢٢ (١٢٠٢)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٢٧ (٢٠٦٦)، مسند احمد (١٢/٢)، (٤٥٨٧)، سنن الدارمي/النكاح ٣٩ (٢٢٧٧) (صحيح)

[٣]): صحيح البخاري/الطلاق ٣٢ (٥٣٢١)، ٥٢ (٥٣٤٩)، صحيح مسلم/اللعان ١ (١٤٩٣)، سنن النسائي/الطلاق ٤٣ (٣٥٠٥)، (تحفة الأشراف: ٧٠٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٧/١، ٤/٢، ٣٧) (صحيح)

[٤]): صحيح البخاري/الطلاق ٣٥ (٥٣٥١)، الفرائض ١٧ (٦٧٤٨)، صحيح مسلم/اللعان ١ (١٤٩٤)، سنن الترمذي/الطلاق ٢٢ (١٢٠٣)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٢٢ ٢٠٦٩)، (تحفة الأشراف: ٧٠٥٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطلاق ١٣ (٣٥)، مسند احمد (٧/٢، ٣٨، ٦٤، ٧١)، دي/النكاح ٣٩ (٢٢٧٨) (صحيح)

أَبُو دَاوُد: الَّذِي تَفَرَّدَ بِهِ مَالِكٌ، قَوْلُهُ: "وَأَلْحَقَ الْوَلَدَ بِالْمَرْأَةِ". وَقَالَ يُونُسُ: عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، فِي حَدِيثِ اللِّعَانِ، "وَأَنْكَرَ حَمْلَهَا فَكَانَ ابْنُهَا يُدْعَى إِلَيْهَا".

**ترجمه:** دعبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ په زمانه کښې یوکس دخپلې ښځې سره لعان اوکړواودخپل ځوي د نسب نه ئې انکاروکړو(یعنی داسې ئې ووئیل چه دا زمانه نه دې) نونبی ﷺ ددغه سړي اوددغه ښځې په مینځ کښې جدائی راوستله اوماشوم پې ښځې ته منسوب کړو. ابوداؤد وائی چه کوم روایت کښې چه مالک منفرد دې نو هغه الحق الولد بالمرأة جمله ده او یونس د ظهری نه اوهغه د سهل بن سعد نه د لعان حدیث نقل کړې دې هغې کښې دی چه ده دهغې دحمل نه انکار اوکړو نو دهغې ځوې به هغې ښځې طرف ته منسوب کولې شو.

**تشریح:** تخریج الحدیث: والحدیث اخرجه ایضاً البیهقی من طریق المصنف، واخرجه احمد والطیالسی مطولا، واخرجه الحاکم. تکملة المنهل.

## بَاب إِذَا شَكَّ فِي الْوَلَدِ

### کله چه د ماشوم په نسب کښې شک پیدا شی

که یو سړی ته د خپل بچی نه پیدا کیدونکې ماشوم په باره کښې اختلاف لون د وجې نه شک پیدا شی نو ایا د هغه سړی دپاره د دې ماشوم د خپل ځان نه نفی کول جائز دی یا نه؟ بعض علماء کرام[1] بعض علماء کرامو د دې په عدم جواز باندې اجماع نقل کړې ده خو اجماع نقل کول صحیح نه ده ځکه چه په دې مسئله کښې اختلاف دې.

### مسئلة الباب کښې اختلاف ائمه:

هغه دا چه د احنافو په نزد خو نفی کول جائز نه دی، او د امام شافعی او احمد په نزد د زوج دپاره د اختلاف لون د وجې نه نفی کول جائز دی په دې شرط چه د اختلاف لون نه علاوه څه دویمه قرینه هم د دې مؤید موندلې شی، د امام شافعی رحمه الله په نزد خو هغه قرینه ثانیه دا ده چه د کوم رنګ ماشوم پیدا شوې دې رجل متهم نه د هغه رنګ ملاویږی، لهذا دا دوه قرینې شوې یو د نفس اختلاف لون، دویم د اتحاد اللون مع الرجل المتهم، او د امام احمد په نزد هغه دویمه قرینه مطلق دې، د اختلاف لون نه علاوه څه دویمه قرینه کیدل پکار دی برابره خبره ده که هر څه وی.

[۲۲۶۰](2) حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي خَلَفٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي فَزَارَةَ، فَقَالَ: إِنَّ امْرَأَتِي جَاءَتْ بِوَلَدٍ أَسْوَدَ، فَقَالَ: "هَلْ لَكَ مِنْ إِبِلٍ؟"، قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: "مَا أَلْوَانُهَا؟" قَالَ: حُمْرٌ، قَالَ: "فَهَلْ فِيهَا مِنْ أَوْرَقَ؟" قَالَ: إِنَّ فِيهَا لَوُرْقًا، قَالَ: "فَأَنَّى تُرَاهُ؟" قَالَ: عَسَى أَنْ يَكُونَ نَزَعَهُ عِرْقٌ، قَالَ: "وَهَذَا عَسَى أَنْ يَكُونَ نَزَعَهُ عِرْقٌ".

[1] لکه قرطبی او ابن رشد، وتعقبهما الحافظ الی اخر ما فی البذل عن الشوکانی)
[2]: صحیح مسلم/اللعان ۱ (۱۵۰۰)، سنن الترمذي/الولاء ٤ (۲۱۲۹)، سنن النسائي/الطلاق ٤٦ (۳۵۸۰)، سنن ابن ماجه/النكاح ۵۸ (۲۲۰۰)، (تحفة الأشراف: ۱۳۱۲۹)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الطلاق ۲٦ (۵۳۰۵)، الحدود ٤١ (٦٨٤٧)، الاعتصام ۱۲ (۷۳۱٤)، مسند احمد (۲/۲۳٤، ۲۳۹، ٤۰۹) (صحیح)

**ترجمه**: دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دبنې فزاره قبیلې والا یوکس دنبي ﷺ په خدمت کښې حاضرشو اوعرض ئې اوکړوچه زما دښځې یوتور هلك پیدا شوې دې نبي ﷺ ورته اوفرمائیل آیا اوښان دې شته؟هغه ووئیل هو، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل څه څه رنګونه ئې دې هغه اووئیل سره نو ورته ئې اوفرمائیل ایا خړ پکښې شته هغه ووئیل خړ هم پکښې شته نونبي ﷺ اوفرمائیل خر دکوم ځائې نه راغلې دې هغه ووئیل کیدې شي چه کوم رګ دارنګ رانیولې وي نونبي ﷺ اوفرمائیل شاید ستاد ځوي رنګ هم کوم رګ رانیولې وي.

**مضمون حدیث**:

یو صحابی چه د هغه نوم ضمضم بن قتاده دې هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، او عرض ئې اوکړو چه زما د ښځې په نزد د تور رنګ ماشوم پیدا شوې دې (په تعریض سره نفي ولد لګه چه وړاندې په روایت کښې راروان دی) رسول الله ﷺ د هغه نه تپوس اوکړو چه تا سره څه اوښان دی؟ هغه عرض اوکړو او جی دی رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه د کوم رنګ دې؟ هغه عرض اوکړو د سور رنګ دې، یعنی لوئې اوښان داسې دی، هغه تپوس اوکړو چه ایا په دې کښې څه اورق یعنی تور والی ته مائل هم دې؟ یعنی د هغه اوښانو په بچو کښ، هغه عرض اوکړو چه بیشکه بعض د دې قسم هم دی (وروق جمع اوراق) رسول الله ﷺ تپوس اوکړو داسې چه کوم دی نو ته هغه د کوم ځائې نه وینې؟ یعنی د دې رنګ والا د کوم ځائې نه راغلل.

هغوی عرض اوکړو ﴿عسی ان یکون نزعه عرق﴾چه کیدې شی چه دا قسم رنګ یو رګ راښکلې وی، یعنی موجوده اوښې چه د کومو اوښانو د نسل نه دی کیدې شی چه په هغې کښې یو د دې رنګ وی یعنی ﴿اوراق﴾، او دا رنګ د هغه ځائې نه راغلې وی، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل دلته هم داسې کیدې شی، یعنی ستا په اصول کښې څه تور رنګ وی. الحدیث اخرجه ایضا الشافعي وباقي السبعة الا الترمذي (تکملة المنهل)

[۲۲۶۱](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، وَهُوَ حِينَئِذٍ يُعَرِّضُ بِأَنْ يَنْفِيَهُ.

**ترجمه**: داروایت دتیرشوی روایت په شان دې لیکن په دې کښې دا اضافه ده چه ده ته به په دغه وخت کښې دا تعریض کیدو چه نسبت نفي کړي.

[۲۲۶۲](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ أَعْرَابِيًّا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّ امْرَأَتِي وَلَدَتْ غُلَامًا أَسْوَدَ وَإِنِّي أُنْكِرُهُ. فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

**ترجمه**: دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې دې فرمائی چه یوباندچی نبي ﷺ ته راغې اوعرض ئې اوکړو چه زمادښځې یوتور ځوي پیدا شوې دې اوزه دهغه دنسب نه انکار کوم.

١): صحيح مسلم/اللعان ١ (١٥٠٠)، سنن النسائي/الطلاق ٤٦ (٣٥٠٩)، (تحفة الأشراف: ١٣٢٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٣٣، ٢٧٩) (صحيح)

٢): صحيح البخاري/الاعتصام ١٢ (٧٣١٤)، صحيح مسلم/اللعان ١ (١٥٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٥٣١١) (صحيح)

## بَابُ التَّغْلِيظِ فِي الِانْتِفَاءِ

### باب: د بچی د نسب نه په انکار باندې د راغلی وعید بیان

[۲۲۶۳] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يُونُسَ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ حِينَ نَزَلَتْ آيَةُ الْمُتَلَاعِنَيْنِ: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَدْخَلَتْ عَلَى قَوْمٍ مَنْ لَيْسَ مِنْهُمْ، فَلَيْسَتْ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ، وَلَنْ يُدْخِلَهَا اللَّهُ جَنَّتَهُ، وَأَيُّمَا رَجُلٍ جَحَدَ وَلَدَهُ وَهُوَ يَنْظُرُ إِلَيْهِ، احْتَجَبَ اللَّهُ مِنْهُ وَفَضَحَهُ عَلَى رُءُوسِ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ".

**ترجمه:** دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلي دي چه فرمائیل ئې کله چه دلعان په سلسله کښې آیت نازل شو نبی علیه السلام اوفرمائیل هره یوه ښځه چه یوماشوم په یوقوم کښې ورداخل کړي اوهغه ماشوم دهغوی نه نوي (یعنی چه دزنانه ئې بچې پیداشي اوخاوند ته ئې منسوب کړي نوددې ښځې دالله تعالی درحمت سره هیڅ قسم تعلق پاتې نشو اوالله تعالی به ئې هیڅ کله خپل جنت ته داخل نکړي، اوکه چرې یوکس په قست سره دخپل اولاد نه منکر شي نوداسې کس ته به دقیامت په ورځ دالله تعالی دیدار نصیب نه شي اودتمامی دنیا په وړاندې به ئې ذلیل کړي.

**تشریح:** دا مخکښې تیر شو چه د لعان په صورت کښې به ضرور په دواړو کښې یو کاذب وی، په دې باب کښې چه کوم حدیث مصنف راوړې دې په دې کښې د داسې کاذب انسان په حق کښې سخت وعید مذکور دې، چه د هغې مضمون ښکاره دې.

وحديث الباب اخرجه النسائی وابن ماجة قاله المنذری.

## بَابٌ فِي ادِّعَاءِ وَلَدِ الزِّنَا

### باب: د ولد الزنا د مدعی کیدو بیان

[۲۲۶۴] (۲) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ، عَنْ سَلْمٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي الذَّيَّالِ، حَدَّثَنِي بَعْضُ أَصْحَابِنَا، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا مُسَاعَاةَ فِي الْإِسْلَامِ، مَنْ سَاعَى فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَقَدْ لَحِقَ بِعَصَبَتِهِ، وَمَنِ ادَّعَى وَلَدًا مِنْ غَيْرِ رِشْدَةٍ فَلَا يَرِثُ وَلَا يُورَثُ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی : په اسلام کښې په اجرت باندې بدکاري نشته اوچاچه دجاهلیت په وخت کښې په اجرت باندې بدکاري کړې وي اوبیا دهغې ښځې ماشوم پیداشي نوددې ماشوم نسبت به خپل مولاته کیږي، کله چه یوکس دیو ماشوم دنسب دعوی اوکړی داغیر دنکاح اودملکیت نه نونه ماشوم دده وارث جوړیږي اونه دې دماشوم وارث جوړیدې شي.

#### شرح حدیث :

د مساعاة اطلاق په زنا باندې وی او اصمعی دا مختص منی د اماء سره دون الحرائر، ځکه

(۱): سنن النسائي/الطلاق ۴۷ (۳۵۱۱)، سنن ابن ماجه/الفرائض ۱۳ (۲۷۴۳)، (تحفة الأشراف: ۱۲۹۷۲)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/النكاح ۴۲ (۲۲۸۴) (ضعيف)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۶۵۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۶۲) (ضعيف)

چه د جاهليت په زمانه کښې به خلقو په خپلو وينځو باندې د زنا په ذريعه ګټه کوله، او په هره يوه وينزه باندې يو مخصوص مقدار اجرت زنا مقرر کړې وو، ورسره به دا وه چه د ولد الزنا نسب د زاني سره منلې شو او هغه به ئې داسې بې تکلفه کول چه دا به ئې عيب نه ګڼړلو، اسلام چه راغلو نو دا څيز ئې ختم کړو لکه چه په حديث الباب کښې دی.

﴿لا مساعاة في الاسلام﴾ بيا وړاندې په حديث الباب کښې دی چه کوم سړی د اسلام نه مخکښې د جاهليت په زمانه کښې د مساعاة په ذريعه د زاني سره نسب ثابت کړو نو هغه ماشوم به د هغه سره لاحق شی (مونږ به د دې سره تعرض نه کوو) خو چه کوم سړې اوس يعنی اسلام کښې د ولد الزنا په باره کښې دا دعوی کوی يعنی زاني ئې خپل ځوئې اومنی (نو داسې به نه وی) پس د يو بل وارثان به نه وی.

والحديث اخرجه ايضا احمد في المسند (تكملة المنهل)

[۲۲٦٥](۱) حَدَّثَنَا شَيْبَانُ بْنُ فَرُّوخَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَاشِدٍ. ح وحَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَاشِدٍ وَهُوَ أَشْبَعُ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى أَنَّ كُلَّ مُسْتَلْحَقٍ اسْتُلْحِقَ بَعْدَ أَبِيهِ الَّذِي يُدْعَى لَهُ ادَّعَاهُ وَرَثَتُهُ، فَقَضَى أَنَّ كُلَّ مَنْ كَانَ مِنْ أَمَةٍ يَمْلِكُهَا يَوْمَ أَصَابَهَا فَقَدْ لَحِقَ بِمَنِ اسْتَلْحَقَهُ وَلَيْسَ لَهُ مِمَّا قُسِمَ قَبْلَهُ مِنَ الْمِيرَاثِ شَيْءٌ، وَمَا أَدْرَكَ مِنْ مِيرَاثٍ لَمْ يُقْسَمْ فَلَهُ نَصِيبُهُ، وَلَا يَلْحَقُ إِذَا كَانَ أَبُوهُ الَّذِي يُدْعَى لَهُ أَنْكَرَهُ، وَإِنْ كَانَ مِنْ أَمَةٍ لَمْ يَمْلِكْهَا أَوْ مِنْ حُرَّةٍ عَاهَرَ بِهَا فَإِنَّهُ لَا يَلْحَقُ بِهِ وَلَا يَرِثُ، وَإِنْ كَانَ الَّذِي يُدْعَى لَهُ هُوَ ادَّعَاهُ فَهُوَ وَلَدُ زِنْيَةٍ مِنْ حُرَّةٍ كَانَ أَوْ أَمَةٍ".

**ترجمه:** عمرو بن شعيب دخپل پلار نه هغه دده دنيکه نه روايت کوی فرمائي چه نبی ﷺ ددې مسئلې په باره کښې اوفرمائيل کله چه يوماشوم د خپل پلار دوفات نه پس پيداشي اودهغه په نسب کښې شامل کړې شي يعنی دکوم پلار په نوم چه دې ماشوم ته اواز کيږي اودده پلار وارثان دا وغواړي چه ده لره په نسب کښې شامل کړې ددې فيصله ئې اوکړه که چرې هغه ماشوم د وينځې نه پيداشوې وي دکوم چه مالك دصحبت په وخت کښې پلار وو نودده نسب به دشاملونکې کس سره شامليږي ليکن دده دشامليدونه مخکښې چه کومه ترکه تقسيم شوې ده په دې کښې به دده حصه نه وي البته کومه ترکه چه لانه ده تقسيم شوې په دې کښې به يې حصه وي، ليکن هغه پلار دکوم سره چه دده نسب شامليږي اودهغه په ژوند کښې دده دنسب به انکار کولو نود ورثوپه يوځائې کولوسره دې په نسب کښې نه شامليږي اوکه چرې دغه ماشوم دداسې وينځې نه پيداوي دکوي مالك چه دده پلار نه وو يا دغه ماشوم دازادې ښځې نه پيداوو دکومې سره چه دده پلار زنا کړې وه نوپه دې سره ددغه ماشوم نسب نه ثابتيږي، نه هغه ماشوم دده وارث جوړيږي اګرکه دده پلار پخپل ژوند کښې دعوه هم کړې وي چه دازماځوې دې ځکه چه هغه ماشوم دزنانه پيداشوې دې برابره خبره ده چه دوينځې دخيتې نه وي اوکه دآزادې ښځې دخيتې نه وي.

(۱): سنن ابن ماجه/الفرائض ١٤ (٢٧٤٦)، (تحفة الأشراف: ٨٧١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/ ١٨١، ٢١٩)، سنن الدارمي/الفرائض ٤٥ (٣١٥٤) (حسن)

## توضیح الحدیث

په دې پوره جمله کښې راوی صرف صورة مسئله د خپل طرف نه بیان کړې ده، څنګه چه مستفتی لیکی: څه فرمائی علماء دین په دې مسئله کښې او بیا هغه مسئله لیکی او دهغې نه روستو چه کوم عبارت راروان دې ﴿فقضی ان کل من کان من امة یملکها یوم اصابها الخ﴾ دا د رسول اللهﷺ د طرف نه جواب مسئله دې، په دې جواب مسئله کښې د صورت مسئوله تفصیلی جواب ارشاد فرمائیلې شوې دې.

## د حدیث د عبارت حل:

اوس د عبارت حل د شروع نه اوګورئ ﴿مستلحق﴾ هغه نوې پیدا شوې ماشوم دې کوم چه د زنا نه پیدا شوې وی، او د زانی او د سید د مرګ نه پس د هر یو وارثان د هغه په باره کښې جهګړه کوی او هر یو فریق د هغې انتساب خپل طرف ته کول غواړی، د عبارت ترجمه داسې ده چه هر هغه مستلحق چه د هغه د پلار د مرګ نه پس (د پلار نه مراد په ظاهره کښې زانی) استلحاق کولې شو وړاندې د استلحاق تفسیر دې چه د هغې په باره کښې د زانی وارثان دعوی کوی.

دا خو شو صورت مسئله، وړاندې د رسول اللهﷺ د طرف نه د دې فیصله ذکر ده هغه دا چه هر هغه ماشوم کوم چه د واطی د امة مملوکه نه وی چه په کومه ورځ ئې د هغې سره وطی کړې وه نو د چا استلحاق چه د هغه سره کولې شی یعنی د سید سره هغه به اوشی، او کوم میراث چه د دې استلحاق نه مخکښې تقسیم شوې وی په هغې کښې به د دې ولد هیڅ حصه نه وی، او کوم میراث چه داسې وی کوم چه لا تر اوسه تقسیم کړې شوې نه وی (او په دې وخت کښ د هغه ماشوم استلحاق د هغه د سید سره اوکړې شو) په دې صورت کښې به په میراث کښې د هغه ماشوم حصه وی.

ولا یلحق اذا کان ابوه الذی یدعی له انکره... دا جمله د ماقبل شرط دې یعنی امة موطوئة (هغه وینزه چه صحبت ورسره شوې وی) مملوکه نه پیدا کیدونکې ماشوم استلحاق (ملاویدل) د مولی نه ثابت په دې شرط باندې وی چه کله هغه په خپل ژوند کښې د هغه ماشوم نه انکار نه وی کړې، او که انکار ئې کړې وی نو بیا به د مولی د وارثانو په دعوی سره استلحاق نه وی.

﴿وان کان من امة لم یملکها﴾ یعنی که هغه نوې پیدا شوې ماشوم د واطی د غیر مملوکه وینزې نه وی یعنی د مزنیه (زناکارې) نه یا د داسې ازادې زنانه نه وی د چا سره چه هغه زنا کړې ده نو په دې دواړو صورتونو کښې (امة غیر مملوکة مزنیه او حره مزنیه نه) به د دې استلحاق صحیح نه وی (ځکه چه په اسلام کښې د زانی نه نسب نه ثابتیږی)

﴿وان کان الذی یدعی له هو ادعاه﴾ دا ﴿ان﴾ وصلیه ده، یعنی اګر چه دې سړی د چا سره چه د هغه ماشوم استلحاق کولې شی په خپل ژوند کښې د هغه ماشوم دعوی کړې وی

﴿فهو ولد زنیة من حرة کان او امة﴾ پس دا ماشوم به ولد الزنا وی په پورته ذکر شوی دواړو صورتونو کښ، په احادیثو کښې ثابت النسب ماشوم ولد رشده او غیر ثابت النسب

ته ولدزنیه سره تعبیر کولې شی د دې حدیث د لاندې.

**د اهل جاهلیت غلط عادت :**

امام خطابی رحمه الله په معالم السنن کښې فرمائی : د اهل جاهلیت دپاره به داسې وینزې وې چا چه به د هغوی دپاره ناجائزه ګټه کوله او دا هم هغه ﴿بغايا ﴾دی د کومو ذکر چه الله پاک په دې خپل قول کښې کړې دې ﴿ولا تكرهوا فتياتكم على البغاء ان اردن تحصنا الاية ﴾او کیدله به داسې چه د دې وینزو مالکانو به هم دوی سره وطی کوله پرهیز به ئې نه کولو، نو په دې صورت کښې به چه کله د دې وینزې ماشوم پیدا کیدو نو ډیر کرته به داسې کیدله چه د هغه ماشومې به زناکار هم دعوی کوله او سید هم، نو په دې حدیث کښې رسول الله ﷺ د هغه ماشوم فیصله د سید دپاره اوکړه، ځکه چه امة د هغه سید فراش دې په شان د حره، او نفی ئې اوکړه د هغه زانی نه.

والحديث اخرجه ايضا احمد (تكملة المنهل)

[۲۲۶٦](١)حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ رَاشِدٍ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، زَادَ: "وَهُوَ وَلَدُ زِنًا لِأَهْلِ أُمِّهِ مَنْ كَانُوا حُرَّةً أَوْ أَمَةً، وَذَلِكَ فِيمَا اسْتُلْحِقَ فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ، فَمَا اقْتُسِمَ مِنْ مَالٍ قَبْلَ الْإِسْلَامِ فَقَدْ مَضَى".

**ترجمه:** دا روایت دتیرشوي روایت په شان دې مګر په دې کښې دا اضافه ده چه دغه ولد زنا ماشوم دې دمور په نسب کښې داخل شي برابره خبره ده چه دازادې ښځې نه وي او که دوینځې نه، داحکم په هغه معامله کښې دې کوم چه په شروع داسلام کښې وي اوکوم چه داسلام نه مخکښې تقسیم شوي وي هغه تیرشوي دې.

## بَابٌ فِي الْقَافَةِ

### باب د قیافه پیژندلوبیان

قافه جمع د قائف ده، قائف هغه سړې دې کوم چه اثار او علامات کتلو سره فروع لره د اصول سره لاحق کړی چه فلانې د فلانی رور دې یا د هغه ځوئې دې، مونږ او تاسو داسې خلقو ته قیافه شناس وایو.

په دې کښې اختلاف دې چه د قائف قول شرعا معتبر دې یا نه، لکه چه وړاندې د حدیث په شرح کښې راځی.

[۲۲٦٧](٢)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، وَابْنُ السَّرْحِ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ مُسَدَّدٌ وَابْنُ السَّرْحِ: يَوْمًا مَسْرُورًا، وَقَالَ عُثْمَانُ: يُعْرَفُ أَسَارِيرُ وَجْهِهِ، فَقَالَ: "أَيْ عَائِشَةُ، أَلَمْ تَرَيْ أَنَّ مُجَزِّزًا الْمُدْلِجِيَّ رَأَى زَيْدًا وَأُسَامَةَ قَدْ غَطَّيَا رُءُوسَهُمَا بِقَطِيفَةٍ وَبَدَتْ أَقْدَامُهُمَا؟" فَقَالَ: "إِنَّ هَذِهِ الْأَقْدَامَ بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: كَانَ أُسَامَةُ أَسْوَدَ وَكَانَ زَيْدٌ أَبْيَضَ.

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٨٧١٢) (حسن)

(٢): صحيح البخاري/المناقب ٢٣ (٣٥٥٥)، وفضائل الصحابة ١٧ (٣٧٣١)، والفرائض ٣١ (٦٧٧٠)، صحيح مسلم/الرضاع ١١ (١٤٥٩)، سنن الترمذي/الولاء ٥ (٢١٢٩)، سنن النسائي/الطلاق ٥١ (٣٥٢٣، ٣٥٢٤)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٢١ (٢٣٤٩)، (تحفة الأشراف: ١٦٤٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٢/٦، ٢٢٦) (صحيح)

**ترجمه**: دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه رسول پاک ﷺ و زماخواته يوه ورځ تشريف راوړو دعثمان په روايت کښې دي چه دخوشحالئ نه ئې په مخ کښې کرخې معلوميدي نبی علیه السلام اوفرمائيل اې عائشې اياتاته معلومه نه ده چه مجزز مدلجي (ديو قيافه شناس نوم دې) يوځل زيد بن حارث او اوسامه بن زيد اوليدل چه سرونه ئې په څادر باندې پټ کړي وو اوخپې ئې بربنډې وې هغه اووئيل دا دواړه خپې ديو بل په شان دي يعنی يوبل نه تلی دی، امام ابوداود وائی داوسامه رنګ تور وو اودزيد رنګ سپين وو.

## مضمون حديث :

سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه يوه ورځ ماته رسول الله ﷺ تشريف راوړلو، ډير خوشحاله وو، تندي مبارک ئې روخانه وو او د خوشحالئ اثار پرې ښکاره وو، او وې فرمائيل اې عائشه! تاته خبره شته چه نن څه واقعه راپيښه شوه؟ هغه دا چه مجزز مدلجی[1] (چه يو مشهور قائف وو) اسامه او زيد په داسې حال کښې چه دواړه په يو څادر کښې ملاست وو او سر او مخ ئې پټ وو، صرف د هغوی خپې ښکاره وې نو د هغوی طرف ته کتلو سره ئې اووې (ان هذه الاقدام بعضها من بعض) چه بيشکه دا قدمونه د پلار او خوئی دی.

وراندې امام ابوداود رحمه الله فرمائي (کان اسامة اسود وکان زيد ابيض) يعنی د پلار او خوئی رنګ بالکل مختلف وو، اسامه بالکل تور وو او زيد سپين وو، ليکلي دی چه د سيدنا اسامه رضي الله عنه مور سيده ام ايمن رضي الله عنها وه چه د هغې خپل نوم برکة وو هغه حبشيه او توره وه، پس په دې وجه به مشرکينو د اسامه په نسب کښې شک کولو او عيب به ئې پرې لګولو.

## د جمهورو د دې حديث نه استدلال :

دلته د رسول الله ﷺ د مسرت وجه ظاهره ده هغه دا چه د قائف قول اګر چه شرعا حجت نه دې خو کومو خلقو چه به د اسامه په نسب کښې طعن کولو يعنی مشرکين د هغوی په نزد به د قائف قول حجت وو، خصوصا چه کله به هغه قائف هم د هغوی سړې وو، خو ډيرو شارحين شافعيه وغيره د دې واقعې نه استدلال کړې دې په دې خبره چه د قائف قول د انساب په باره کښې معتبر دې[2] او دا چه په دې قول کښې اثبات نسب لره دخل دې، ګينې رسول الله ﷺ به د هغه په قول باندې ولې خوشحاليدو؟ خو د دې جواب د پورته تقرير نه ظاهر دې، بهرحال د ائمه ثلاثه په نزد د قائف قول معتبر دې، او د امام مالک نه يو

---

[1] مجزز دميم په ضمې او د جيم په فتحې او د زاء مشدده په کسرې سره دې او په يو روايت کښې د زاء فتحه هم منقول ده يعنی مجزز او ونيلې شوې دی چه دا لفظ محرز د حاء مهمله په سکون او راء سره ده والصواب الاول، او مدلجی نسبت دې د قبيله بنو مدلج طرف ته، په دې قبيله کښې او قبيله بنو اسد کښې د علم قيافه فن د عربو په نزد مشهور او معروف وو اهـ (تکملة المنهل)

[2] هم دغه شان هغه حضراتو هم د دې نه استدلال کړې دې چه د لعان په قصه کښې د رسول الله ﷺ ارشاد راغلې دې چه که ماشوم د دې رنګ او شکل وی نو زوج دې او که د داسې صورت او شکل وی نو د زانی دې، د دې جواب زمونږ د طرف نه دا ورکړې شوې دې چه هغه خبره رسول الله ﷺ د علم قيافه په وجه نه ده کړې او نه هغه قائف وو بلکه دا خبره نې د وحی په حکم کړې وه، بله دا چه که قيافه شرعا معتبر وې نو بيا د لعان څه ضرورت وو بلکه د قائل قول ته به اعتبار وې. (من البذل)

روایت دا دي چه یعتبر فی الاماء دون الحرائر. او بل روایت د هغوی نه دا دی (یعتبر مطلقا).

د قول قائف د معتبر کیدو مثال په بذل المجهود کښې د فقهاء کرامو د کلام نه نقل کړې دي، د دې یو مثال خپله په راروان باب کښې راځي. والحدیث اخرجه ایضا باقی السبعة الا الترمذی. (تکملة المنهل)

[۲۲۶۸]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: قَالَتْ: "دَخَلَ عَلَيَّ مَسْرُورًا تَبْرُقُ أَسَارِيرُ وَجْهِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَأَسَارِيرُ وَجْهِهِ، لَمْ يَحْفَظْهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: أَسَارِيرُ وَجْهِهِ هُوَ تَدْلِيسٌ مِنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ، لَمْ يَسْمَعْهُ مِنَ الزُّهْرِيِّ، إِنَّمَا سَمِعَ الْأَسَارِيرَ مِنْ غَيْرِ الزُّهْرِيِّ. قَالَ: وَالْأَسَارِيرُ فِي حَدِيثِ اللَّيْثِ وَغَيْرِهِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَسَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ صَالِحٍ، يَقُولُ: كَانَ أُسَامَةُ أَسْوَدَ شَدِيدَ السَّوَادِ مِثْلَ الْقَارِ، وَكَانَ زَيْدٌ أَبْيَضَ مِثْلَ الْقُطْنِ.

**ترجمه:** په دې سند سره هم زهری هم په دې طریق سره د تیرشوي روایت په شان روایت بیان کړې دي چه ام المؤمنین حضرت عائشه ﷺ وائی. نبی کریم ﷺ ماته خوشحاله خوشحاله تشریف راوړو، دهغوی ﷺ د مخ کرښې خلیدلې، ابوداؤد وائی. د «أسارير وجهه» الفاظ ابن عیینه یاد نه کړې شو، ابوداؤد وائی. «أسارير وجهه» الفاظ د ابن عیینه د طرفه تدلیس دې، هغوی دا د زهری نه نه دی آوریدلی، هغوی د «أسارير وجهه» په ځائې «لأسارير من غير» الفاظ آوریدلی دی. اود «لأسارير» ذکر د لیث وغیره په حدیث کښې دې. ابوداؤد وائی ما داحمد بن صالح نه دا آوریدلی دی چه اسامه ﷺ د تارکول په شان ډیر زیات تور وو، او زید ﷺ د مالوچو په شان سپین وو.

## بَابُ مَنْ قَالَ بِالْقُرْعَةِ إِذَا تَنَازَعُوا فِي الْوَلَدِ

### کله چه د یو ماشوم مدعیان زیات شي نو قرعه به کولې شي

[۲۲۶۹]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ الْأَجْلَحِ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْخَلِيلِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْيَمَنِ، فَقَالَ: إِنَّ ثَلَاثَةَ نَفَرٍ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ أَتَوْا عَلِيًّا يَخْتَصِمُونَ إِلَيْهِ فِي وَلَدٍ وَقَدْ وَقَعُوا عَلَى امْرَأَةٍ فِي طُهْرٍ وَاحِدٍ، فَقَالَ لِاثْنَيْنِ مِنْهُمَا: طِيبَا بِالْوَلَدِ لِهَذَا فَغَلَيَا، ثُمَّ قَالَ لِاثْنَيْنِ: طِيبَا بِالْوَلَدِ، لِهَذَا فَغَلَيَا، ثُمَّ قَالَ لِاثْنَيْنِ: طِيبَا بِالْوَلَدِ، لِهَذَا فَغَلَيَا، فَقَالَ: "أَنْتُمْ شُرَكَاءُ مُتَشَاكِسُونَ، إِنِّي مُقْرِعٌ بَيْنَكُمْ، فَمَنْ قُرِعَ فَلَهُ الْوَلَدُ وَعَلَيْهِ لِصَاحِبَيْهِ ثُلُثَا الدِّيَةِ"، فَأَقْرَعَ بَيْنَهُمْ فَجَعَلَهُ لِمَنْ قُرِعَ، فَضَحِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَتْ أَضْرَاسُهُ أَوْ نَوَاجِذُهُ.

**ترجمه:** دزید بن ارقم نه روایت دې فرمائی چه مونږ دنبی ﷺ سره ناست وو کتل موچه دیمن نه یوکس راغې او عرض ئې اوکړو چه په یمن کښې درې کسانو دیو ماشوم په باره کښې جګړه علی ﷺ ته راوړله اودوي درې واړو په یو طهرکښې په یوه ښځه باندې واقع شوي وو نودوو ته ئې اووئیل چه په خوشحالئ سره داماشوم دغه دریم کس ته ورکړه دوی انکار اوکړو بیاهغه نوردوه کسان جداکړل او ورته ئې اووئیل چه داماشوم دغه بل کس ته ورکړې

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۶۵۸۱) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الطلاق ۵۰ (۳۵۱۹)، سنن ابن ماجه/الأحكام ۲۰ (۲۳۴۸)، (تحفة الأشراف: ۳۶۶۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۷۳/۴) (صحيح)

هغوی هم ونه منله او چغې سورې ئې جوړې کړې علی ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو په مینځ کښې به زه قرعه اندازي کوم نوقرع اندازي چه دچاوختله ماشوم ئې هغه ته ورکړو نونبی ﷺ چه دا واوریدل نوونئې خاندل تردې چه دنبی ﷺ غاښونه مبارک ښکاره شول.

**مضمون حدیث:**

مضمون حدیث دا دې سیدنا زید بن ارقم ﷺ فرمائی چه یوه ورځ زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر اوم نو یو سړې د یمن نه راغلو (او هغه د راتلو سره د سیدنا علی ﷺ یوه فیصله نقل کړه ځکه چه رسول الله ﷺ سیدنا علی ﷺ لره د یمن قاضی مقرر کړې وو) هغه بیان اوکړو چه درې یمنی کسان د سیدنا علی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو چا چه د هغه ماشوم په باره کښې جهګړه کوله کوم چه د دې درې واړو په وطی سره په طهر واحد کښې پیدا شوې وو یعنی داسې وینزې نه کومه چه د هغوی درې واړو ترمینځه مشترک وه، سیدنا علی ﷺ د خپلې فیصلې ابتداء داسې اوکړه چه په هغه درې کسانو کښې ئې دوه ته اوفرمائیل چه تاسو دا ماشوم په خوشحالئ سره دریم سړی ته ورکړئ، په دې باندې هغوی غصه شو او راضی نه شو د هغې نه روستو هغه نور دوه واخستل او هغوی دواړو ته ئې هم اووې نو هغوی هم راضی نه شو. د هغې نه روستو په دریم ځل دوه واخستل نو هغوی هم راضی نه شو، سیدنا علی ﷺ اوفرمائیل ﴿انتم شرکاء متشاکسون﴾ چه تاسو ټول جهګړمار یئ، اوس زه ستاسو ترمینځه قراندازی کوم د چا نوم چه په قرعه کښې راوځی دا ماشوم به د هغه دپاره وی او په هغه باندې به د خپلو دواړو ملګرو دوه ثلث د وینزې قیمت وی. د هر یو دپاره یو ثلث، پس قرعه اندازی اوکړې شوه، او په قرعه کښې چه د چا نوم راغلې وو هغه ماشوم هغه ته ورکړې شو.

وړاندې په روایت کښې دی چه په دې قصه اوریدلو سره رسول الله ﷺ ډیر اوخندل، یعنی د هغه په ذکاوت او پوهه باندې.

**په مسئلة الباب کښې د ائمه کرامو اختلاف:**

پورته ذکر شوې صورت مسئله اختلافی ده، اسحاق بن راهویه او امام شافعی فی روایة، په دې مسئله کښې د قرعه اندازئ قائل دی، او امام مالک او امام شافعی فی روایة واحمد په دې مسئله کښې د قیافه قائل دې، د امام احمد نه نقل دی حدیث القافه احب الی من حدیث ابن ارقم، او احناف خو چونکه د قرعه قائل دی او نه د قیافه ځکه چه د هغوی په نزد په دې صورت کښې هغه ماشوم د درې واړو ترمینځه مشترک وی، دغه شان په دې هم ځان پوهه کړئ چه دا درې واړه کسان به د تعزیر مستحق وی ځکه چه دا وطی حرام ده خو د ملک د شبهې د وجې نه به نسب ثابت شی او په یو سړی باندې به هم حد واجب نه وی، د دې حدیث جواب د احنافو د طرف نه خو دا دې چه د هغوی په نزد قاعده کلیه دا ده چه قرعه منسوخ شوې ده خو جمهور علماء کرام خو د حجیت قرعه قائل دی د هغوی نه دا تپوس کیدې شی چه دې حضراتو دا حدیث ولې نه دې اختیار کړې، او دلته دا هم وئیلې کیدې شی چه د سیدنا علی ﷺ دا قضاء اجتهادی وه، پس دا فیصله د هغه د قضایا او فتاوی نه وه په

طريقه د صلح.يشير اليه ضحكه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، او دا خبره به په خپل مقام راشي چه قاضي ته د خصمين (دوه جګړه کونکو) ترمينځه د صلح کولو هم حق دې او حضرت په بذل کښې د بعض علماء کرامو نه نقل کړې دی چه دا حديث غير ثابت دې. اهـ په ظاهره کښې مراد دا دې چه غير قوي دې ځکه چه مصنف دا واقعه په دوه طريق ذکر کړې ده بطريق الاجلح عن الشعبي او په طريقه د سلمه بن کهيل عن الشعبي، لکه چه دا روايت د هغې نه پس راروان دې، او د دې دواړو د روايت کافي فرق دې، پس په راتلونکې روايت کښې مصنف فرمائي، لم يذكر اليمين والا النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولا قوله طيبا بالولد، لهذا د دې اختلاف د وجې نه په حديث کښې ضعف راغلو. والله تعالى اعلم بالصواب.

والحديث اخرجه احمد والنسائي (تكملة المنهل)

[۲۲۷۰](1) حَدَّثَنَا خُشَيْشُ بْنُ أَصْرَمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا الثَّوْرِيُّ، عَنْ صَالِحٍ الْهَمْدَانِيِّ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، قَالَ: "أُتِيَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بِثَلَاثَةٍ وَهُوَ بِالْيَمَنِ وَقَعُوا عَلَى امْرَأَةٍ فِي طُهْرٍ وَاحِدٍ، فَسَأَلَ اثْنَيْنِ: أَتُقِرَّانِ لِهَذَا بِالْوَلَدِ؟ قَالَا: لَا، حَتَّى سَأَلَهُمْ جَمِيعًا، فَجَعَلَ كُلَّمَا سَأَلَ اثْنَيْنِ، قَالَا: لَا، فَأَقْرَعَ بَيْنَهُمْ، فَأَلْحَقَ الْوَلَدَ بِالَّذِي صَارَتْ عَلَيْهِ الْقُرْعَةُ وَجَعَلَ عَلَيْهِ ثُلُثَيِ الدِّيَةِ، قَالَ: فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ".

**ترجمه**: د زيد بن ارقم نه روايت دې فرمائي چه علي نه ته درې کسان راوستل شول اوهغه په يمن کښې وو او درې کسان په يوطهرکښې په يوه ښځه باندې واقع شوي وو نوهغه دوه کسانو ته اووئيل آيا تاسو ددغه بل کس دپاره په ماشوم باندې اقرار کوئ يعنې هغه ته ئې ورکوئ؟ نوهغوی دواړو اووئيل نه تردې چه دټولونه ئې تپوس اوکړو دهرځل تپوس په وخت کښې به ئې دوه کسان ددريم نه جدا کړل اوهغوی به انکارکولو بهرحال په دوی کښې ئې قرع اندازي اوکړله وماشوم هغه چاته حواله شو دچاچه قرع ختلې وه او په هغه باندې دوه ثلثه ددیت لازمي کړل، راوی وائي دهغه داعمل نبي ﷺ ته ئې ذکرکړو نوونې خاندل تردې چه دنبي ﷺ غاښونه مبارک ښکاره شول.

[۲۲۷۱](2) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَلَمَةَ سَمِعَ الشَّعْبِيَّ، عَنِ الْخَلِيلِ، أَوِ ابْنِ الْخَلِيلِ، قَالَ: "أُتِيَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فِي امْرَأَةٍ وَلَدَتْ مِنْ ثَلَاثَةٍ، نَحْوَهُ، لَمْ يَذْكُرِ الْيَمَنَ، وَلَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَا قَوْلَهُ طِيبًا بِالْوَلَدِ".

**ترجمه**: دخليل يا ابن الخليل نه روايت دې فرمائي چه علي رضي الله عنه ته درې کسان راوستلی شول دهغه ښځې په معامله کښې چه ددرې کسانونه ئې بچي راوړي وو باقي حديث دتير شوي حديث په شان دې مګر په دې کښې ديمن اودنبي ﷺ ذکر نشته اونه پکښې د (طيبا بالولد) جملې ذکرشته.

(1): سنن النسائي/الطلاق ٥٠ (٣٥١٨)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٢٠ (٢٣٤٨)، (تحفة الأشراف: ٣٦٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٧٣) (صحيح)

(2): انظر حديث رقم (٢٢٦٩)، (تحفة الأشراف: ٣٦٦٩) (ضعيف)

# بَابٌ فِي وُجُوهِ النِّكَاحِ الَّتِي كَانَ يَتَنَاكَحُ بِهَا أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ

## د جاهلیت د زمانې د نکاح بیان

[۲۲۷۲] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنِي يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، قَالَ: قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمِ بْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ، "أَنَّ النِّكَاحَ كَانَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ عَلَى أَرْبَعَةِ أَنْحَاءٍ، فَكَانَ مِنْهَا: نِكَاحُ النَّاسِ الْيَوْمَ يَخْطُبُ الرَّجُلُ إِلَى الرَّجُلِ وَلِيَّتَهُ فَيُصْدِقُهَا ثُمَّ يَنْكِحُهَا، وَنِكَاحٌ آخَرُ كَانَ الرَّجُلُ يَقُولُ لِامْرَأَتِهِ إِذَا طَهُرَتْ مِنْ طَمْثِهَا: أَرْسِلِي إِلَى فُلَانٍ فَاسْتَبْضِعِي مِنْهُ، وَيَعْتَزِلُهَا زَوْجُهَا وَلَا يَمَسُّهَا أَبَدًا حَتَّى يَتَبَيَّنَ حَمْلُهَا مِنْ ذَلِكَ الرَّجُلِ الَّذِي تَسْتَبْضِعُ مِنْهُ، فَإِذَا تَبَيَّنَ حَمْلُهَا أَصَابَهَا زَوْجُهَا إِنْ أَحَبَّ، وَإِنَّمَا يَفْعَلُ ذَلِكَ رَغْبَةً فِي نَجَابَةِ الْوَلَدِ، فَكَانَ هَذَا النِّكَاحُ يُسَمَّى نِكَاحَ الِاسْتِبْضَاعِ، وَنِكَاحٌ آخَرُ يَجْتَمِعُ الرَّهْطُ دُونَ الْعَشَرَةِ فَيَدْخُلُونَ عَلَى الْمَرْأَةِ كُلُّهُمْ يُصِيبُهَا، فَإِذَا حَمَلَتْ وَوَضَعَتْ وَمَرَّ لَيَالٍ بَعْدَ أَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا أَرْسَلَتْ إِلَيْهِمْ فَلَمْ يَسْتَطِعْ رَجُلٌ مِنْهُمْ أَنْ يَمْتَنِعَ حَتَّى يَجْتَمِعُوا عِنْدَهَا، فَتَقُولُ لَهُمْ: قَدْ عَرَفْتُمُ الَّذِي كَانَ مِنْ أَمْرِكُمْ، وَقَدْ وَلَدَتْ وَهُوَ ابْنُكَ يَا فُلَانُ، فَتُسَمِّي مَنْ أَحَبَّتْ مِنْهُمْ بِاسْمِهِ فَيُلْحَقُ بِهِ وَلَدُهَا، وَنِكَاحٌ رَابِعٌ يَجْتَمِعُ النَّاسُ الْكَثِيرُ فَيَدْخُلُونَ عَلَى الْمَرْأَةِ لَا تَمْتَنِعُ مِمَّنْ جَاءَهَا وَهُنَّ الْبَغَايَا، كُنَّ يَنْصِبْنَ عَلَى أَبْوَابِهِنَّ رَايَاتٍ يَكُنَّ عَلَمًا لِمَنْ أَرَادَهُنَّ دَخَلَ عَلَيْهِنَّ، فَإِذَا حَمَلَتْ فَوَضَعَتْ حَمْلَهَا جُمِعُوا لَهَا وَدَعَوْا لَهُمُ الْقَافَةَ، ثُمَّ أَلْحَقُوا وَلَدَهَا بِالَّذِي يَرَوْنَ فَالْتَاطَهُ، وَدُعِيَ ابْنَهُ لَا يَمْتَنِعُ مِنْ ذَلِكَ، فَلَمَّا بَعَثَ اللَّهُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدَمَ نِكَاحَ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ كُلَّهُ، إِلَّا نِكَاحَ أَهْلِ الْإِسْلَامِ الْيَوْمَ".

**ترجمه:** دعروه نه روايت فرمائی چه دنبی عليه السلام بی بی عائشه رضی الله عنها راته فرمائیلی دي چه دجاهلیت په زمانه کښې به نکاح څلور طريقوکیدله یوه طريقه داسې وه کومه چه نن صباده چه یوسړي دچا خور بالور ته پیغام ولیږي اومهر مقررکړي اوده ته ئې په نکاح ورکړي، یوه بل قسم نکاح به په دې طريقه کیده چه دیوسړي ښځه به کله دبیمارئ نه پاکه شوه نو ورته به ئې وئیل چه فلانۍ را اوغواړه اوصحبت ورسره اوکړه اوخپل خاوند به ترې جداشو اوهمبستري به ئې ورسره نه کوله تردې چه ترڅو پورې چه به ئې دایقین نه وواغلي چه اوس به ترې حامله شوي وي (دچاسره چه ئې جماع کړي وه) نوچه کله به ئې یقین راغې چه اوس حامله شوي ده نوکه چرې خاوند به ئې ورسره جماع کول غوښتل نو جماع به ئې ورسره اوکړه اوداطريقه به ئې ددې وجې نه اختیاروله چه هلك طاقتور اوښکلي اومزیداروي نو په دې وجه دغه خلقوبه داسې کس ته ښځه لیږله څوك چه به شریف النفس اوښائسته وواوخانداني اواعلی نسب والابه وو، ددې دپاره چه دهغه نه نطفه حاصله کړي اوددوی په خاندان کښې هم دغسې نسل پیداشي اودې نکاح ته به ئې نکاح استبضاع (دنطفې حاصلول) وئیل، اوددریم قسم نکاح طريقه داوه چه نهه کسان به یوې ښځې ته تلل راتلل او په دغه کسانوکښې به هریوتن ددغه زنانه سره جماع کوله ترڅوچه به ددغه ښځې بچي نه وو پیداشوي کله چه به ئې بچي پیدا شو نودغه زنانه به دغه کسان را اوغوښتل او په دوی کښې به یوتن هم انکار نشو کولي کله چه به ټول راجمع شول نودي ښځې به ورته ووئیل چه تاسوته خپل حال ښه معلوم دي او زما بچي پیدا شوی دی او په تاسوکښې داد فلاني بچي دي کله چه به هغه ښځې دچانوم واخستو نودغه بچي به بیا دهغه حسابیدو.

1): صحيح البخاري/النكاح ٣٦ (٥١٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٧١١) (صحيح)

اودي قسم ښځوته به بغايا وئيلي کيدي (يعنی رنډئ يا زانيه) اووداسي قسم ښځوپه کورونوبه جهنډي لګيدلي وې اودابه ددوی علامي وي دچا زړه چه به جماع کول غوښتل نودغلته به ورتلل، کله چه به ددې ښځو حمل پيداشو اوبچي به ئې هم پيداشونو ټول ياران به ئې راجمع شول اوقيافه شناس به ئې راوستو، قيافه شناس چه به کله چاته ووئيل چه دابچي ستاپه شان دي نوداماشوم به همدغه کس منسوب کولي شو، اودغه کس به هيڅ نه وئيل، کله چه الله تعالی نبی ﷺ په حق سره راوليږلونودجاهليت د دور نکاحونه ئې باطل کړل اوصرف هغه نکاح باقي پاتي شوه کومه چه په مسلمانانو کښې مروج ده اوباقي تمام قسم رسمونه دنکاح متعلق په اسلام کښې مردودکړي شول.

**شرح حديث:**

سيده عائشه رضي الله عنها چه لويه عالمه وه هغه د زمانه جاهليت د احوالو خبره هم لرلو د هغې خورئې حضرت عروه رحمه الله د هغې نه نقل کوی چه د جاهليت په زمانه کښې نکاح په څلور قسمه وه بيا وړاندې د هغه څلورو واړو د تفصيل بيان دې. ۱: يو خو هغه نکاح کومه چه نن صبا په خلقو کښې موندلي شی چه انسان د جينئ د ولي طرف ته د نکاح پيغام اوليږی او د هغې د منظورئ نه پس باقاعده مهر مقرر کولو سره نکاح کيږی اوس وړاندې د دې دري نکاحونو بيان دي کوم چه د جاهليت په زمانه کښې رائج وو. ۲: خاوند به خپلې ښځې ته وئيل چه د فلانئ قبيلې فلانی سړی ته لاړه شه او هغه سره وطی اوکړه، پس هغه به لاړه او داسې به ئې اوکړل، چه ترڅو پورې به استقرار حمل ظاهر شوې نه وو هغه ته به نه تلو، او د ظهور حمل نه پس به که هغه غوښتل نو هغې سره به ئې خپله هم صحبت کولو. ﴿وانما يفعل ذلک رغبة فی نجابة الولد﴾ يعنی د نجابت ولد په حرص کښې به هغه داسې کول ځکه چه کوم سړی ته به ئې د وطی دپاره ليږله هغه په د هغه په نزد د اوچت او ښه خاندان سړی وو. عائشه رضي الله عنها فرمائي چه د دې نکاح نوم په هغه زمانه کښې نکاح الاستبضاع وو. ۳: يو قسم نکاح هغه وه چه د لسو کسانو نه کم جماعت به رايوځائې شو او يوې زناکارې ته به لاړل او د هغې سره به ئې وطی کوله، بيا چه به هغه حامله شوه او د ماشوم ولادت به اوشو او د وضع حمل نه پس به څو ورځې تيرې شوې نو دې مزنيه به هغه خلق راطلب کړل، د چا به هم جراءت نه وو د انکار کولو او ټول به د هغې سره راجمع شو، د هغوی د جمع کيدو نه پس هغه زنانه دې ټولو ته خطاب کولو سره وئيل چه زما او ستاسو ترمينځه چه کوم عمل شوې وو هغه تاسو ته معلوم دې، او دا اوګورئ دا ماشوم پيدا شوې دې، او په دې حاضرينو کښې به ئې د چا دپاره چه هغې غوښتل وئيل چه ﴿هو ابنک يا فلان﴾ بيا به ماشوم هم د هغې شو، د هغې نه روستو به مجلس ختم شو او ټول به لاړل. ۴: څلورم قسم هم دغه شان دې چه ډير خلق (چه په هغوی کښې د لسو نه د کميدو قيد نشته) په طوائف (ډمو) کښې د يوې خواته تلل، د هغې سره به ئې صحبت کولو، د هغې نه روستو به ماشوم پيدا شو نو دې ټولو به يو قائف راغوښتلو، بيا به د قائف د فيصلې مطابق هغه ماشوم په هغوی ټولو کښې يو ته ورکولې شو او په هغې کښې به د چا اختلاف نه وو، د کومې زنانه خواته چه په

دې قسم کښې ذکر دې د هغې په باره کښې سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي ﴿ومن البغايا كن ينصبن على ابوابهن رايات تكن علما لمن ارادهن ﴾بغايا جمع ده د بغى په معنى د زانيه (رنډئ) فرمائي دا زنانه به د هغه بغايا نه وه چه د هغوى عادت دا وو چه ه هغوى به د خپل کور په دروازو باندې د علامت په طور جهنډې ښخولې د دې دپاره چه هغه علامت ته کتلو سره چه هغوى ته تلل غواړى لاړ شى. ﴿فلما بعث الله محمدا صلى الله تعالى عليه وسلم ﴾رسول الله ﷺ د خپل بعثت نه پس د نکاح دا ټول قسمونه ختم کړل سوا د اهل اسلام د نکاح نه کومه چه اوس کيږى. فالحمد لله الذى هدانا للاسلام واعزنا ببعثة النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

والحديث اخرجه ايضا البخارى والدارقطنى. (تكملة المنهل)

## بَابُ الْوَلَدِ لِلْفِرَاشِ

**باب: بچى به د صاحب فراش وى (يعنى چه د چا ښځه يا وينځه وى بچى به هغه ته ملاويږى)**

دا د اسلام بنيادى قاعده او ضابطه ده د ثبوت نسب په سلسله کښې، د جاهليت په زمانه کښې زنا په کثرت سره رائج وه نه هغوى دا حرام ګڼړله نه د عيب څه خبره، زانى به ښکاره وئيل چه د فلانئ زنانه كه بچى اوشو نو هغه به زما وى او هغه خلقو به د ولد الزنا نسب د زانى نه باقاعده تسليم کولو او هغه به ئې د هغه پلار منلو. اسلام د جاهليت دې طريقې ته باطله اووې او د خپو لاندې ئې کړه او رسول الله ﷺ ته ئې صفا اوفرمائيل ﴿الولد للفراش وللعاهر الحجر ﴾.

### شرح حديث:

په زنانه باندې د فراش اطلاق کولې شى برابره خبره ده كه د هغه زوجه وى يا امة موطوءة وى، مطلب دا دې چه كله د يو سړى دپاره زوجه يا داسې وينزه وى چه د کومې سره هغه وطى کوى په دې شرط چه هغه زوجه او امة د هغه فراش جوړ شوې وى او بيا د وطى نه پس د امکان ولد په موده کښې چه کم از کم شپږ مياشتې دې د هغې ماشوم پيدا شى نو د هغه ماشوم نسب صاحب فراش نه ثابت وى برابره خبره ده كه هغه ماشوم په خپلو والدينو کښې د يو د شکل او صورت سره مشابه وى يا نه وى، اوس پاتې شوه دا خبره چه زنانه ته د سړى فراش كله وئيلې شى دا تفصيل غواړى، مونږ په شروع کښې وئيلې وو چه د فراش نه مراد يا زوجه ده يا امة موطوءة ده، پس د زوجه د فراشيت تحقق خو د نفس عقد سره کيږى د احنافو او جمهورو په عقد سره کيږى په شرط د امکان الوطى والا فلا. او د احنافو په نزد امکان وطى شرط نه دې، د نکاح نه روستو د زوجين ترمينځه د مشرق او مغرب هم كه فرق وى او بيا د امکان موده يعنى د نکاح نه شپږ مياشتې پس ولادت ولد وى نو نسب به ئې ثابت شى، او د جمهورو په نزد به بغير د شرط مذکور نه وى، واما فراشية الامة، پس د جمهورو په نزد هغه ثابتيږى په نفس وطى سره، يعنى وطى مولى، او د احنافو په نزد نفس وطى سره نه دې بلکه پس د ولادة الولد والحاقه به يعنى د هغه مولى د وطى کولو نه پس چه كله ماشوم پيدا شى او هغه د هغه په باره کښې اقرار اوکړى چه دا زما ماشوم دې، د دې

دوارو ځيزونو د مجموعې نه پس د وينزې فراشيت ثابتيږي.

## د فراش قسمونه

د زيات تفصيل دپاره ځان پوهه کړه چه فقهاء کرامو د فراش درې قسمونه ليکلي دي، قوي، متوسط او ضعيف. د اول مصداق زوجه منکوحه ده، منکوحه فراش قوي دې، په منکوحه کښې که ماشوم مدة امکان ولد کښې پيدا شوې وی نو پخپله د هغه نسب ثابتيږي او د ادعاء زوج هم حاجت نشته بلکه په نفي سره هم نه منتفي کيږي. مګر دا چه لعان ته حاجت راشي نو بيا به نسب د پلار نه منتفي شي، دويم د فراش متوسط مصداق ام ولد دې چه يو ځل د امة موطؤة نه ماشوم پيدا شو او مولی د دې اقرار هم اوکړو نو دا وينزه د هغه ام ولد شوه اوس که دوباره د هغې ولادت اوشي نو د هغه ماشوم نسب بغير د اقرار نه ثابتيږي خو د نفي کولو نه بغير به لعان منتفي شي، دريم قسم د فراش ضعيف مصداق امة مملوکۀ موطؤة ده، د چا چه اول ځل ماشوم پيدا کيږي، دلته د ثبوت نسب دپاره د مولی اقرار ضروری دي او په نفي سره منتفي کيږي.

[۲۲۷۳]([1])حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، اخْتَصَمَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ وَعَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ابْنِ أَمَةِ زَمْعَةَ، فَقَالَ سَعْدٌ: أَوْصَانِي أَخِي عُتْبَةُ إِذَا قَدِمْتُ مَكَّةَ أَنْ أَنْظُرَ إِلَى ابْنِ أَمَةِ زَمْعَةَ فَأَقْبِضَهُ، فَإِنَّهُ ابْنُهُ، وَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ: أَخِي ابْنُ أَمَةِ أَبِي وُلِدَ عَلَى فِرَاشِ أَبِي، فَرَأَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَبَهًا بَيِّنًا بِعُتْبَةَ، فَقَالَ: "الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ، وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ، وَاحْتَجِبِي عَنْهُ يَا سَوْدَةُ". زَادَ مُسَدَّدٌ فِي حَدِيثِهِ، وَقَالَ: "هُوَ أَخُوكَ يَا عَبْدُ".

**ترجمه:** دعروه نه روايت فرمائی چه دنبی عليه السلام بی بی عائشه رضي الله عنها راته فرمائيلی دي چه سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه او عبد بن زمعه دزمعه دځوي په سلسله کښې په جګړه اخته وو سعد اووئيل چه زما ورور عتبه وصيت کړې وو چه زه کله مکې ته راشم نوددې وينځې بچې به بوځم ځکه چه دا زماځوې دې عبد بن زمعه اووئيل دا زما ورور دې زمادپلار دوينځې نه پيداشوې دې نبی عليه السلام چه کله هلك ته وکتل نوهغه په قطعي طورسره دعتبه هم شکل وو نبی عليه السلام اوفرمائيل ماشوم دبستري والاحق دې (يعنی نسبت به ئې دښځې خپل خاوند ته کيږي اودزناکا ردپاره کانړې دې، اونبی عليه السلام بيا اوفرمائيل اې سودة رضي الله عنها ته ددې ماشوم نه پرده کوه، مسدد دا اضافه کړې ده چه نبی عليه السلام فرمائيلي دی اې عبد بن زمعه دا ستا ورور دې.

## شرح حديث:

د دې حديث عائشه شرح او مضمون دا دې چه زمعه کومه چه د سيده سودة ام المومنين رضي الله عنها والد وو چه د هغه اسلام هم ثابت نه دې د هغه يوه وينزه وه چه د هغه سره د سيدنا سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه کافر رور عتبه بن ابی وقاص زنا کړې وه، بيا د فتح مکه په کال باندې سعد بن ابی وقاص مکه مکرمه کښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او عرض

---

[1]): صحيح البخاري/البيوع ۳(۲۰۵۳)، ۱۰۰ (۲۲۱۸)، الخصومات ٦(۲٤۲۱)، العتق ۸(۲۷٤٥)، الوصايا ٤(۲۷٤٥)، المغازي ٥۳ (٤۳۰۳)، الفرائض ۱۸ (٤۷٤۹)، ۲۸ (٦۷٦٥)، الحدود ۲۳ (٦۸۱۷)، الأحكام ۲۹ (۷۱۸۲)، صحيح مسلم/الرضاع ۱۰ (۱٤٥۷)، سنن النسائي/الطلاق ٤۹(۳٥۱۷)، سنن ابن ماجه/النكاح ٥۹(۲۰۰٤)، (تحفة الأشراف: ۱٦٤۳٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الأقضية ۲۱(۲۰)، مسند احمد (۱۲۹/٦، ۲۷۳)، سنن الدارمي/النكاح ٤۱(۲۲۸۱) (صحيح)

ئې اوکړو چه ماته زما رور عتبه وصيت کړې وو چه کله زه مکې ته راشم نو د زمعه د وينځې چه کوم ځوئې دې هغه واخلم او قبضه پرې اوکړم ځکه چه هغه زما ځوئې دې، مقصد د هغه رسول الله ﷺ ته دا عرض کول وو چه د زمعه د وينځې ځوئې دې هغه ته ورکړې شي، بل طرف ته د سيده سوده رضي الله عنها رور عبد بن زمعه اودريدلو هغه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه دا ماشوم خو زما رور دې زما د پلار د وينځې نه پيدا شوې دې، وړاندې په روايت کښې دي چه رسول الله ﷺ هغه ماشوم ښکاره د عتبه سره مشابه بيا موندلو يعنی د زانی سره مشابه، خو د دې باوجود رسول الله ﷺ د دې مقدمې فيصله دا اوکړه ﴿ الولد للفراش وللعاهر الحجر ﴾ د فراش نه مراد صاحب فراش چه د مصداق ئې په دې واقعه کښې زمعه دې او د عبد بن زمعه رور لکه چه هغه وئيل چه زما رور دې، خو د دې قانون مطابق د فيصلې نه پس هم رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿احتجبی من يا سودة ﴾ په ضابطه کښې خو هغه هلک د سيده سودة رور وو خو د مشاهدې د رعاية او د ظاهری صورة او احتياط په بناء رسول الله ﷺ سيده سودة ته دا اوفرمائيل چه ته د دې هلک نه پرده کوه، د دې نه په اسلام کښې د پردې چه کوم اهميت په نظر راځی هغه ظاهر دې. ﴿زاد المسدد فی حديثه فقال هو اخوک يا عبد ﴾ هغه د عبد بن زمعه نه د هغه هلک په باره کښې اوفرمائيل لاړ شه هغه ستا رور دې. والحديث اخرجه ايضا الشافعي وباقی الجماعة الا الترمذی. (تکملة المنهل)

دا چه په حديث کښې راځی ﴿وللعاهر الحجر ﴾ يعنی د زانی دپاره کانړی دی بعضو دا خيال اوکړو چه د دې نه مراد د رسول الله ﷺ رجم دې خو دا صحيح نه ده ځکه چه هر زانی د رجم مستحق نه وی بلکه دا کنايه ده د ناکامۍ او محرومتيا نه، لکه چه په محاوره کښې وئيلې شی چه د فلانی دپاره خاورې.

[۲۲۷٤](١) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَامَ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ فُلَانًا ابْنِي عَاهَرْتُ بِأُمِّهِ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا دِعْوَةَ فِي الْإِسْلَامِ، ذَهَبَ أَمْرُ الْجَاهِلِيَّةِ، الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ".

**ترجمه.** عمرو بن شعيب دخپل پلارنه اوهغه دده دنيکه نه روايت کوی فرمائيل ئې چه يوسړې پاڅيدو او عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله فلانې زماځوي دې ما دجاهليت په زمانه کښې دده دمور سره زنا کړې ده نبی ﷺ اوفرمائيل اوس په اسلام کښې داخليدونه پس ته په دې هلك دعوي نه شی کولې دجاهليت ددور رسم اوس مات شوې دې اوهلك دصاحب فراش (يعنی دښځې دخاوند يادمالك) دې اودزناكار دپاره كانړې دې.

[۲۲۷٥](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ مَيْمُونٍ أَبُو يَحْيَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي يَعْقُوبَ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ سَعْدٍ مَوْلَى الْحَسَنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ، عَنْ رَبَاحٍ، قَالَ: "زَوَّجَنِي أَهْلِي أَمَةً لَهُمْ رُومِيَّةً فَوَقَعْتُ عَلَيْهَا فَوَلَدَتْ غُلَامًا أَسْوَدَ مِثْلِي فَسَمَّيْتُهُ عَبْدَ اللَّهِ، ثُمَّ وَقَعْتُ عَلَيْهَا فَوَلَدَتْ غُلَامًا أَسْوَدَ مِثْلِي فَسَمَّيْتُهُ عُبَيْدَ اللَّهِ، ثُمَّ طَبِنَ لَهَا غُلَامٌ لِأَهْلِي رُومِيٌّ، يُقَالُ لَهُ: يُوحَنَّهْ، فَرَاطَنَهَا بِلِسَانِهِ فَوَلَدَتْ غُلَامًا كَأَنَّهُ وَزَغَةٌ مِنَ الْوَزَغَاتِ،

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٦٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٧٨، ٢٠٧) (حسن صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٨٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٥٩، ٦٥، ٦٩) (ضعيف)

فَقُلْتُ لَهَا: مَا هَذَا؟ فَقَالَتْ: هَذَا يُوحَنَّهُ، فَرَفَعْنَا إِلَى عُثْمَانَ، أَحْسِبُهُ قَالَ: مَهْدِيٌّ، قَالَ: فَسَأَلَهُمَا فَاعْتَرَفَا، فَقَالَ لَهُمَا: أَتَرْضَيَانِ أَنْ أَقْضِيَ بَيْنَكُمَا بِقَضَاءِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى أَنَّ الْوَلَدَ لِلْفِرَاشِ، وَأَحْسِبُهُ قَالَ: فَجَلَدَهَا، وَجَلَدَهُ وَكَانَا مَمْلُوكَيْنِ".

**ترجمه:** د رباح رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه زماخاندان زمانکاح د یوې روي وینځې سره اوکړه ماورسره. صحبت وکړو بیا دهغې زماپه شان یوتور رنګې ځوي پیداشو مادهغه دپاره عبدالله نوم تجویز کړو ماورسره بیاصحبت وکړو دهغې زماپه شان یوتور رنګې ځوي بل پیداشو مادهغه دپاره عبیدالله نوم تجویز کړو. بیا زمونږ دخاندان یوروي غلام وو چه نوم ئې یوحنا ووهغه به ورته په رومي ژبه کښې خبرې کولې اودې ددې یوتك سوربګوړه بچې پیداشوما ورته اووئیل دا څه دې هغې اووئیل دا د یوحنادې نومونږ دا مقدمه عثمان نه پیش کړه هغه غلام او وینځه راوغوښتل او تپوس ئې ترې اوکړوهغوی اقرار اوکړو او بیائې دواړوته اووئیل آیا ستاسو خوښه ده چه د محمدرسول الله دفیصلې په شان فیصله ستاسو دپاره اوکړم؟ داچه بچې د صاحب فراش حق دې، راوی وائی زماخیال دې چه بیاعثمان نه غلام او وینځه دواړه په کوړو اووهل.

**مضمون حدیث:**

د رباح نه روایت دې (دا رباح څوک دې د چا ځوئې دې معلومه نه ده، فی التقریب، مجهول) هغه وائی چه زما د کور خلقو د یوې رومی وینځې سره زما واده اوکړو، زما صحبت سره د هغې نه زما په شان یو تور هلک پیدا شو، څه موده پس بل هلک پیدا شو، (دواړه هلکان زما په شان تور وو) ﴿ثم طبن لها غلام لاهلي رومی ﴾بیا داسې اوشوه چه زمونږ د کور خلقو سره یو رومی غلام هم وو چه د هغه نوم یوحنا وو، هغه زما ښځه (امة رومية) اولمسوله او هغه ئې خرابه کړه او هغې سره ئې په خپله ژبه کښې خبرې اوکړې، پس څه موده پس یو ماشوم پیدا شو چه په رنګ کښې د ګرګټ په شان وو یعنی سپین، چه کله ما هغه اولیدو نو د خپلې ښځې نه ئې تپوس اوکړو چه دا څنګه دې، نو هغه اووې چه دا د یوحنا دې، بیا زمونږ دا مسئله د سیدنا عثمان رضی الله عنه دربار ته یوړلې شوه، هغه دا دواړه یعنی رومی او رومیه نه تپوس اوکړو، هغوی دواړو د زنا اعتراف اوکړو، وړاندې په روایت کښې دی چه بیا هغه د ﴿الولد للفراش ﴾د قاعدې د لاندې فیصله اوکړه او هغوی دواړو ته ئې کوړې ورکړې حدا او هغوی ئې رجم نه کړل ځکه چه هغوی دواړه مملوک وو. (لهذا غیر محصن شو هم په دې وجه ئې رجم نه کړو)

په روایت کښې مذکور دی ﴿فراطنها بلسانه ﴾رطانة وئیلې شی اصطلاحی خبره کولو لره اشارات او کنایات کښې چه په هغې باندې هر سړې پوهه نه شی، ویطلق علی لسان العجم، او عجمیان خو دا دواړه وو چه هغه رومی وو.

پورته په روایت کښې وو ﴿احسبه قال مهدی قال فسالهما ﴾په دې عبارت کښې مصنف خپله تردد ظاهروی چه د دې تعلق صرف د ﴿قال فسالهما ﴾سره دې، مصنف فرمائی چه زما ګمان دا دې چه زما استاد موسی بن اسماعیل دا وئیلې وو چه زما استاذ مهدی بن

میمون په وخت د روایت په دې روایت کښې ﴿قال فسالهما ﴾هم ذکر کړې وو.
والحدیث اخرجه ایضا احمد (تکملة المنهل)

## بَابُ مَنْ أَحَقُّ بِالْوَلَدِ

### د ماشوم د پرورش حقدار څوک دې؟

د دې باب تعلق د مسئله حضانة سره دې، د دې نه مخکښې د دې سلسله یو بل باب تیر شو اذا سلم احد الابوین لمن یکون الولد؟ هغه دې هم اوکتلې شی.

### مسئلة حضانة کښې ائمه مذاهب:

د حضانت تعلق صبی غیر ممیز سره وی، یعنی که په زوجین کښې کوم چه د ماشوم ابوین دی د څه وجې نه جدائی راشی نو اوس هغه صبی د چا په پالنه کښې وی؟ په دې باندې د ائمه اربعه اتفاق دې ﴿الام احق بالولد من الاب ما لم تنکح ﴾یعنی واړه، د ماشوم د حضانت استحقاق پلار ته نشته بلکه مور ته دې چه ترڅو پورې هغه دویمه نکاح اونکړی، خو اوس وړاندې د مسئلې په تفصیل کښې اختلاف دې، پس د احنافو په نزد حق حضانت د مور دپاره دې غلام یعنی هلک کښې الی سن التمییز او د هغې نه روستو بیا د پلار دپاره دې، او په جینئ کښې د بلوغ د حده پورې حق حضانت د مور دپاره دې وبعده للاب او د امام شافعی رحمه الله په نزد غلام او بنت دواړه کښې سن تمییز پورې د مور دپاره دې ثم التخییر یعنی سن تمییز ته رسیدو نه پس غلام او بنت دواړو ته اختیار وی د والدینو نه چه چا سره اوسیدل غواړی، او د امام احمد په نزد کما فی کتبهم، په غلام کښې خو هم داسې دی یعنی د سن تمییز نه روستو تخییر او بنت کښې د مور دپاره د سن تمییز پورې او د هغې نه روستو د پلار دپاره ولا تخییر او د امام مالک مسلک دا دې چه په جاریه کښې حق حضانت د مور دپاره دې اګر چه بالغ شی چه ترڅو پورې نکاح اونکړی، او په غلام کښې د مور دپاره حق حضانة د هغه د بلوغ پورې، قاله الخطابی، او د مالکیانو بعض کتب الرسالة لابن ابی زید، کښې داسې دې چه د هلک دپاره حق حضانت د مور دپاره دې د دې د بلوغ پورې، او د جینئ دپاره د نکاح نه پس د هغه د دخول پورې دې.[1]

[۲۲۷۶](*) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ السُّلَمِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنْ أَبِي عَمْرٍو يَعْنِي الْأَوْزَاعِيَّ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ ابْنِي هَذَا كَانَ بَطْنِي لَهُ وِعَاءً وَثَدْيِي لَهُ سِقَاءً وَحِجْرِي لَهُ حِوَاءً، وَإِنَّ أَبَاهُ طَلَّقَنِي وَأَرَادَ أَنْ يَنْتَزِعَهُ مِنِّي، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنْتِ أَحَقُّ بِهِ مَا لَمْ تَنْكِحِي".

**ترجمه:** عمرو بن شعیب دخپل پلار نه اوهغه دده دنیکه عمرو بن العاص رضی الله عنه نه روایت کوی چه یوی ښځې عرض اوکړو اې دالله رسوله دازمابچې دې زماخیټه دده دپاره لوښي دي

[1] بیا د هغې نه روستو تفصیل دا دې چه د مور نه پس درجه د نیا ده د هغې نه روستو د مور د نیا (د پلار د طرف نه) بیا خالة المحضون، بیا خالة ام المحضون، بیا نیا، د هغې نه روستو د پلار درجه ده.
(*): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۸۷۴۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۲/۲، ۲۰۳) (حسن)

اوزماسينه دده دڅکلو دپاره ده اوزماغيږه دده داوسيدو ځائې دې وس ماته دده پلار طلاق راکړې دې او غواړې چه دابچې زمانه واخلې نبي ﷺ اوفرمائيل ته ددې ماشوم حقداره ئې ترڅوچه دې دبل چاسره نکاح نه وې کړې.

## توضيح الحديث

يوه زنانه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او عرض ئې اوکړو دا زما ځوئې دې چه د هغې دپاره زما خيټه د يوې مودې پورې ظرف جوړ شوې وو او زما سينه د هغې دپاره مشک وو او زما غيږ د هغه دپاره د حفاظت ذريعه وه، د هغه پلار زماته طلاق راکړو او هغه زما نه اخستل غواړي، رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه هم ته د هغه زياته حقداره ئې چه ترڅو پورې بله نکاح اونکړې

مسئله حضانت او په هغې کښې د ائمه کرامو مذاهب پورته تيرشو، د دې حديث نه معلوميږي چه د مور حق په حضانت تزوج سره ساقط کيږي، د ائمه اربعه مذهب هم دا دې خلافا للحسن البصرى ورواية لاحمد وابن حزم، بيا دويم اختلاف دلته دا دې چه د شوافعو په نزد دا تزوج چه هغې سره حق حضانت ساقط کيږي مطلق دې او د احنافو په نزد د دې نه مراد تزوج بالاجنبى دې او هم دا مذهب د مالکيانو او حنابله دې، کما فى کتبهم. او که زنانه نکاح د داسې سړي سره اوکړه کوم چه د ولد محضون ذى رحم محرم وى نو بيا حق حضانت نه ساقط کيږي، د هر يو دليل په بذل المجهود کښې مذکور دى، فارجع اليه لو شئت.
والحديث اخرجه ايضا احمد والبيهقى، والحاكم وصححه والدارقطنى. (تكملة المنهل)

[۲۲۷۷]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْحُلْوَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، وَأَبُو عَاصِمٍ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي زِيَادٌ، عَنْ هِلَالِ بْنِ أُسَامَةَ، أَنَّ أَبَا مَيْمُونَةَ سَلْمَى مَوْلًى مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ رَجُلَ صِدْقٍ، قَالَ: بَيْنَمَا أَنَا جَالِسٌ مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ فَارِسِيَّةٌ مَعَهَا ابْنٌ لَهَا فَادَّعَيَاهُ وَقَدْ طَلَّقَهَا زَوْجُهَا، فَقَالَتْ: يَا أَبَا هُرَيْرَةَ، وَرَطَنَتْ لَهُ بِالْفَارِسِيَّةِ، زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِابْنِي، فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: اسْتَهِمَا عَلَيْهِ، وَرَطَنَ لَهَا بِذَلِكَ، فَجَاءَ زَوْجُهَا، فَقَالَ: مَنْ يُحَاقُّنِي فِي وَلَدِي؟ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: اللَّهُمَّ إِنِّي لَا أَقُولُ هَذَا إِلَّا أَنِّي سَمِعْتُ امْرَأَةً جَاءَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا قَاعِدٌ عِنْدَهُ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِابْنِي وَقَدْ سَقَانِي مِنْ بِئْرِ أَبِي عِنَبَةَ وَقَدْ نَفَعَنِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اسْتَهِمَا عَلَيْهِ"، فَقَالَ زَوْجُهَا: مَنْ يُحَاقُّنِي فِي وَلَدِي؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَذَا أَبُوكَ وَهَذِهِ أُمُّكَ، فَخُذْ بِيَدِ أَيِّهِمَا شِئْتَ"، فَأَخَذَ بِيَدِ أُمِّهِ فَانْطَلَقَتْ بِهِ.

**ترجمه:** د ابوميمونه (څوك چه داهل مدينه ازاد کړې شوې غلام او يوريښتونې کس وو) نه روايت دې فرمائى چه زه دابوهريره رضي الله عنه سره ناست وم په دې موقعه کښې دفارس اوسيدونکې يوه ښځه راغله اوددې ښځې سره يوهلك وو او دهغې خاوند هغې ته طلاق ورکړې وو اوهغې داغوښتل چه دا ماشوم ددې سره پاتې شي اوددې ښځې خاوند غوښتل چه هلك دهغه سره وي اوخاوند ورته طلاق ورکړي وو هغې ښځې په فارسئ کښې اووئيل اې ابوهريره زما خاوند غواړي چه زمانه زما بچې واخلي ابوهريره يه اوفرمائيل تاسو دواړه

---

[1] ): سنن الترمذي/الأحكام ۲۱ (۱۳۵۷)، سنن النسائي/الطلاق ۵۲ (۳۵۲٦)، سنن ابن ماجه/الأحكام ۲۲ (۲۳۵۱)، (تحفة الأشراف: ۱۵٤٦۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/٤٤۷)، سنن الدارمي/الطلاق ۱۵ (۲۳۳۹) (صحيح)

قرع اندازي اوکړه اوښځه ئې په فارسی ژبه کښې پوهه کړه، بیا ددې ښځې خاوند راغې او عرض ئې اوکړو چه زما د ځوی په باره کښې زماسره څوک جګړه کوی ابوهریره رضی الله عنه اوفرمائیل په الله قسم دا خو زه ځکه نه وایم چه یوه زنانه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضره شوي وه او زه ورسره ناست وم چه هغې عرض اوکړو اې دالله رسوله زما خاوند غواړي چه زمانه زما بچي واخلي اوحال دادې چه هغه ماشوم به ماته دابوعتبه دکوهی نه اوبه راوړلې اوماته به ئې فائدې رسولي نبی علیه السلام اوفرمائیل تاسو دواړه قرعه اندازي اوکړئ په دې وخت کښې خاوند اووئیل چه زماسره زمادجي په باره کښې څوک جګړه کوي نبی علیه السلام ماشوم ته اوفرمائیل دا ستا پلاردې اودا ستامورده تاته اختیاردې چه دچا لاس نیسي نو ونیسه نو هغه دخپلې مور لاس اونیوو اوهغې ښځې ماشوم دځان سره بوتلو.

## مضمون حدیث:

مضمون حدیث دا دې، ابو میمونه وائی چه زه یوه ورځ د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه سره وو، هغه ته یوه فارسی زنانه راغله چه هغې سره د هغې ځوئې وو، او هغه زنانه ته د هغه زوج طلاق ورکړې وو، هه زنانه ابوهریره رضی الله عنه ته په فارسئ ژبه کښې اوئیل چه زما خاوند زما ځوئې اخستل غواړي، په دې باندې ابوهریره رضی الله عنه هغه ته په فارسئ ژبه کښې اوفرمائیل چه قرعه اندازي اوکړه، هم په دې دوران کښې د هغه خاوند هم راغلو او وې وئیل: ﴿من یحاقنی فی ولدی﴾چه څوک زما د ځوئې په باره کښې د حق دعوی کوی په دې باندې ابوهریره رضی الله عنه اوفرمائیل چه زه چه کومه د قرعه اندازی فیصله کوم د خپل طرف نه نه دې بلکه هم د دې په شان واقعه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې پیښه شوې وه، په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم هم استهام یعنی د قرعه اندازئ فیصله فرمائیلې وه خو رسول الله صلی الله علیه وسلم د فیصلې باوجود د هغه زنانه خاوند هم وئیلې وو ﴿من یحاقنی فی ولدی﴾، د دې نه پس بیا داسې اوشوه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه هلک ته اختیار ورکړو چه دا ستا مور ناسته ده او دا ستا پلار، په دوی کښې چه دچا لاس نیول غواړې هغه اونیسه،هغه دمورلاس اونیولو،اوهغې ماشوم دځان سره بوتلو.

## د حدیث توجیه د احنافو په نزد:

په دې واقعه کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرف نه تخییر بیا موندلې شو چه د هغې امام شافعی رحمه الله خو مطلقا قائل دې او امام احمد رحمه الله صرف په غلام کښې، او بهرحال د احنافو خلاف دې ځکه چه هغه د تخییر قائل نه دې، د دې جواب زمونږ د طرف نه دا ورکړې شوې دې چه د تخیر مسئله په صبی ممیز کښې ده، او دلته په دې قصه کښې هغه ماشوم صبی نه وو بلکه کبیر وو ځکه چه په روایت کښې دی ﴿وقد سقانی من بئرا ابی عنبة وقد نفعنی﴾ بئر ابی عنبة به معلومه نه ده چه څومره لرې وی (1) د کوم ځائې نه په چه دې ماشوم اوبه راوړلې د بالغ کیدو نه روستو خو د ټولو په نزد ماشوم ته اختیار وی چه چا سره غواړی اوسیږی دې.

د دې حدیث متعلق یو سوال خو دا دې چه ابوهریره رضی الله عنه په دې معامله کښې صرف

(1) في بعض الحواشي بئر ابي عنبة علي ميل من المدينة ومثله في وفاء الوفاء ج ۲ ص ۹۷۷)

د استهام (قرعه اندازی) فیصله اوکړه او د دې په دلیل کښې چه کوم حدیث هغه ذکر کړو په هغې کښې د استهام نه روستو آخری فیصله خپله د رسول الله ﷺ د تخییر ده نو په دواړو فیصلو کښې موافقت پاتې نه شو، د دې جواب حضرت په بذل کښې دا ورکړې دې چه د ابوداود په حدیث کښې اختصار دې د علامه زیلعی د کلام نه معلومیږی چه د ابوهریره رضی الله عنه په حدیث کښې هم د تخییر ذکر دې، کما فی روایة ابن حبان.

بل سوال دا کیدې شی چه که اصل حکم دلته د تخییر وو نو بیا هغه په شروع کښې د استهام حکم ولې فرمائیلې وو؟ د دې جواب دا کیدې شی چه د استهام مشوره هغه د اصلاح ذات البین په طور ورکړې وه، والله تعالی اعلم.

[۲۲۷۸] ()حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ نَافِعِ بْنِ عُجَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: خَرَجَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ إِلَى مَكَّةَ فَقَدِمَ بِابْنَةِ حَمْزَةَ، فَقَالَ جَعْفَرٌ: أَنَا آخُذُهَا، أَنَا أَحَقُّ بِهَا ابْنَةُ عَمِّي وَعِنْدِي خَالَتُهَا وَإِنَّمَا الْخَالَةُ أُمٌّ، فَقَالَ عَلِيٌّ: أَنَا أَحَقُّ بِهَا ابْنَةُ عَمِّي وَعِنْدِي ابْنَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ أَحَقُّ بِهَا، فَقَالَ زَيْدٌ: أَنَا أَحَقُّ بِهَا أَنَا خَرَجْتُ إِلَيْهَا وَسَافَرْتُ وَقَدِمْتُ بِهَا، فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ حَدِيثًا، قَالَ: "وَأَمَّا الْجَارِيَةُ، فَأَقْضِي بِهَا لِجَعْفَرٍ تَكُونُ مَعَ خَالَتِهَا وَإِنَّمَا الْخَالَةُ أُمٌّ".

**ترجمه:** د علی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زید بن حارثه نیند مکې ته لاړو او د مکې نه ئې د حمزه لور د ځان سره راوستله، جعفر بن ابی طالب اووئیل چه دا ماشومه به زه اخلم ددې حقدار زه یم دا زما د تره لور ده او زما په کور کښې ددې ترور ده او ترور د مور په شان وي بیا علی رضی الله عنه اوفرمائیل ددې ماشوې زه زیات حقداریم ځکه چه دا زما د تره لور ده او زما په کور کښې د نبی علیه السلام لور ده هغه ددې ماشومې زیاته حقداره ده زید اووئیل چه ددې ماشوې زه زیات حقدار یم ځکه چه زه مکې ته لاړم اوسفر مې اوکړو او دامې راوستله بیا نبی علیه السلام بهر راووتلو نو علی رضی الله عنه ورته ددې ذکر اوکړو نو نبی علیه السلام فرمائیل چه دا ماشومه به د خپلې ترور په پرورش کښې د جعفر په کور کښې اوسیږي ځکه چه ترور د مور په شان وي او د مور نه پس ترور زیاته حقداره وی.

**تشریح:** والحدیث اخرجه ایضا احمد والنسائی والبیهقی، واخرجه مختصرا الشافعی والترمذی (تکملة المنهل) وزاد المنذی ابن ماجة.

## شرح حدیث

د اختصام (جګړه) جعفر وعلی واقعه د سیدنا حمزه رضی الله عنه د لور په باره کښې په عمرة القضاء ۷ هجری کښې پیښه شوې وه، پس په صحیح بخاری کتاب المغازی کښې دننه د باب عمرة القضاء په ضمن کښې دا واقعه په روایت د سیدنا براء رضی الله عنه ذکر ده، د حدیث مضمون دا دې چه سیدنا علی رضی الله عنه فرمائی چه سیدنا زید بن حارثه رضی الله عنه مکې مکرمې ته لاړو او د هغه ځائې نه ئې د سیدنا حمزه رضی الله عنه لور راوستله په دې کښې اختصار دې په دې وجه د کوم ځائې نه لاړو هغه په روایت مفصله کښې ذکر دې هغه دا چه د رسول الله ﷺ دا قافله د عمرة

() تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۰۲٤۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۹۸/۱، ۱۱۵) (صحیح)

القضاء نه فارغ کیدو سره او د مکې مکرمې نه د خروج نه پس د مراء الظهران یا بطن یا حج نه راتلو سره راکوز شوې وو بیا د هغه ځائې د څه ضرورت په وجه باندې نظر زید بن حارثه مکه مکرمه ته راغلو(۱) په شرح کښې لیکلې دی چه سیدنا زید د سیدنا حمزه وصی هم وو، الغرض چه کله ئې هغه راوستله نو د هغه جینۍ په باره کښې اختلاف شو، سیدنا جعفر رضی الله عنه اوفرمائیل چه دا جینۍ به زه اخلم زه ئې زیات حقدار یم ځکه چه زما د تره لور ده، او دویمه وجه دا ده چه د هغې خاله زما په نکاح کښې ده او خاله په منزله د مور وی، بیا علی رضی الله عنه اودریدو او هغه اوفرمائیل چه د دې زیات حقدار زه یم، یو خو په دې وجه چه زما د تره لور ده، دویم په دې وجه زما په نکاح کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم لور ده، او خپله زید بن حارثه رضی الله عنه اووې چه د دې زیات مستحق زه یم ځکه چه دا ما د مکې مکرمې نه راوستلې ده.

ځان پوهه کړئ چه دا اختلاف د دې حضراتو خپل مینځ کښې وو، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وړاندې لا نه وو پیش شوې. فخرج النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فذکر حديثا قال واما الجارية فاقضى بها لجعفر يكون مع خالتها وانما الخالة ام.

راوی وائی چه پس رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې موقف نه روان شو، مصنف فرمائی چه وړاندې علی رضی الله عنه د دې سفر په باره کښې اخره پورې ذکر اوکړو (او مدینې ته د رسیدو نه پس چه کله د هغه په خدمت کښې دا مسئله پیش کړې شوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دا فیصله اوفرمائیله) چه د دې جینۍ فیصله یعنی د هغې د حضانت فیصله زه د جعفر رضی الله عنه دپاره کوم چه د خپلې ترور سره اوسیږی او ترور خو په منزله د مور وی.

والحدیث اخرجه البیهقی مختصرا (تکملة المنهل)

[۲۲۷۹](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي فَرْوَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، بِهَذَا الْخَبَرِ وَلَيْسَ بِتَمَامِهِ، قَالَ: "وَقَضَى بِهَا لِجَعْفَرٍ"، وَقَالَ: "إِنَّ خَالَتَهَا عِنْدَهُ".

**ترجمه:** د عبدالرحمن بن ابی لیلی نه دتیر شوې روایت په شان روایت منقول دې لیکن پوره په پوره نه دې اودا اضافه ئې کړې ده چه نبی علیه السلام دماشومې په سلسله کښې د جعفر په حق کښې فیصله اوکړه او وئې فرمائیل ځکه چه ددې ترورده په نکاح کښې ده (او ترور دمور په شان وی).

[۲۲۸۰](۳) حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوسَى، أَنَّ إِسْمَاعِيلَ بْنَ جَعْفَرٍ حَدَّثَهُمْ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ هَانِئٍ، وَهُبَيْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: لَمَّا خَرَجْنَا مِنْ مَكَّةَ تَبِعَتْنَا بِنْتُ حَمْزَةَ تُنَادِي يَا عَمِّ يَا عَمِّ، فَتَنَاوَلَهَا عَلِيٌّ فَأَخَذَ بِيَدِهَا، وَقَالَ: دُونَكِ بِنْتَ عَمِّكِ فَحَمَلَتْهَا، فَقَصَّ الْخَبَرَ، قَالَ: وَقَالَ جَعْفَرٌ: ابْنَةُ عَمِّي وَخَالَتُهَا تَحْتِي، فَقَضَى بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِخَالَتِهَا، وَقَالَ: "الْخَالَةُ بِمَنْزِلَةِ الْأُمِّ".

**ترجمه:** دعلی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی کله چه مونږ دمکې نه ووتو نو دحمزه رضی الله عنه لور په مونږ پسې راپسې شوه او آوازونه ئې راکول چه اې کاکا اې کاکا علی رضی الله عنه دا ماشومه

(۱) او کیدې شی چه د هغه جینۍ د راوستلو دپاره تلې وی.

(۲): تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۸۹۷۳، ۱۰۲۲۳) (صحيح)

(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۰۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۹۸، ۱۰۸، ۱۱۵) (صحيح)

اوچته کړه اوددې لاس ئې نیولې وو اوفاطمه رضی الله عنها ته ئې حواله کړه او ورته ئې اووئیل دتره لوردې واخله فاطمې رضی الله عنها هغه ماشومه دځان سره کینوله اوباقی روایت ئې دتیر شوي روایت په شان بیان کړو. جعفر رضی الله عنه اووئیل چه دا زما د تره لور ده او ددې ترور زما په نکاح کښې ده نو نبی علیه السلام د ترور په حق کښې فیصله کړې ده چه ترور په منزله د مور ده.

**تشریح:** ﴿عن علی رضی الله تعالی عنه قال لما خرجنا من مكة تبعتنا بنت حمزة تنادی یا عم یا عم الخ﴾

سیدناعلی رضی الله عنه فرمائی چه کله مونږ د مکې نه وتلو نو په مونږ پسې د سیدنا حمزه رضی الله عنه لور[1] راروانه شوه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اواز کولو سره یا عم یا عم وئیلو سره، سیدنا علی رضی الله عنه د هغې لاس اونیولو او خپلې بی بی فاطمې رضی الله عنها ته ئې بوتله او وې وئیل واخله د تره لور دې، اصل کښې حضرت حمزه رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم رضاعی رور هم وو په دې وجه هغه د حضرت فاطمه رضی الله عنها رضاعی تره وو.

### اشكال او جواب:

دا روایت په ظاهره کښې د روایت سابقه خلاف دې ځکه چه په تیر شوی روایت کښې خو دا ده چه زید بن حارثه هغه د مکې نه راوستله، او په دې روایت کښې دی چه هغه په مونږ پسې شاته راغله، د دې توجیه دا کړې شوې ده چه هغه د مکې نو خو زید بن حارثه رضی الله عنه راوستلې وه خو کله چه هغه دلته په مراء الظهران کښې د خپل غیرږ نه کوزه کړه نو د لرې نه ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په لیدو باندې د ﴿یا عم یا عم﴾ آواز اوکړو او د هغه طرف ته ئې منډه کړه، او بیا علی رضی الله عنه هغه وقتی طور اوچته کړه او فاطمې رضی الله عنها ته ئې اورسوله او بیا هم په دې حدیث کښې وړاندې دا دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغې فیصله د سیدنا جعفر رضی الله عنه دپاره اوکړه ځکه چه د هغه ښځه د جینۍ خاله وه.

په دې واقعه کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د خاله په باره کښې اوفرمائیل چه هغه د مور په شان ده، زمونږ په نزد په هدایه ۱۴۰/۲ کښې په مسئله د حضانت کښې ترتیب داسې لیکلې شوې دې[2] چه که مور نه وی نو ام الام اولی دې د ام الاب نه وان بعدت. لان هذه الولایة تستفاد من قبل الامهات، بیا وړاندې دا دی چه که ام الام نه وی نو ام الاب به اولی وی د اخوات نه، او د ام الاب نه پس درجه ده د اخوات، اخوات په یو روایت کښې مقدم دی عمات او خالات نه، او په بل روایت کښې دی الخالة اولی من الاخت لاب لقوله علیه السلام الخالة والدة. اهـ

والحدیث اخرجه ایضا احمد بلفظ تقدم والحاکم وقال: هذا حدیث حسن صحیح الاسناد ولم یخرجاه (تکملة النهل)

[1] ) اختلف في اسمها فقيل عمارة وقيل فاطمة وقيل امامة وقيل امة الله وقيل سلمى، والاول هو المشهور(بذل) دا عبارت حضرت د فتح الباری نه اخستلې دې او په اسد الغابة کښې د عمارة بنت حمزه په ترجمه کښې د واقدی په روایت سره د بنت حمزه دا واقعه ذکر ده، او په هغه روایت کښې د بنت حمزه نوم عماره واقع شوې دې، په دې باندې امام ابن الاثیر جزری د خطیب بغدادی نه نقل کړې دی : انفرد الواقدي بتسمية عمارة في هذا الحديث وسماها غيره امامة وذكر غير واحد من العلماء ان حمزة كان له ابن اسمه عمارة وهو الصواب اهـ)

[2] ) قال الحافظ ويوخذ منه ان الخالة في الحضانة مقدمة علي العمة لان صفية بنت عبدالمطلب كانت موجودة حينئذ، واذا قدمت الخالة علي العمة مع كونها اقرب العصبات من النساء فهي مقدمة علي غيرها الي اخر ما ذكر. (تكملة المنهل ۲۹۲/٤)

## بَابٌ فِي عِدَّةِ الْمُطَلَّقَةِ

### د طلاقې شوې ښځې د عدت بيان

[۲۲۸۱]()حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ الْبَهْرَانِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ مُهَاجِرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ بْنِ السَّكَنِ الْأَنْصَارِيَّةِ، "أَنَّهَا طُلِّقَتْ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَكُنْ لِلْمُطَلَّقَةِ عِدَّةٌ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ حِينَ طُلِّقَتْ أَسْمَاءُ بِالْعِدَّةِ لِلطَّلَاقِ، فَكَانَتْ أَوَّلَ مَنْ أُنْزِلَتْ فِيهَا الْعِدَّةُ لِلْمُطَلَّقَاتِ".

**ترجمه:** د اسماء بنت يزيد بن سكن انصاريه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه ماته طلاق راكړې شول د نبي عليه السلام په زمانه كښې او په دغه وخت كښې د مطلقې دپاره د عدت تيرولو حكم نه وو نو په دې وخت كښې الله تعالى دا آيت كريمه: ﴿والمطلقات يتربصن﴾ نازل كړو نو اسماء رضي الله عنها هغه اولنې زنانه ده د چا په شان كښې چه د عدت طلاق متعلق دا يت كريمه نازل شو.

### توضيح الحديث

د دې روايت حاصل دا دې چه په ابتداء اسلام كښې د مطلقه دپاره عدت نه وو، بيا چه كله د اسماء بنت يزيد بن السكن د طلاق واقعه پيښه شوه نو بيا عدت مشروع شو، او د دې په باره كښې آيت كريمه نازل شو، په دې روايت كښې خو د دې آيت كريمه تعيين نشته.

### د عدت په باره كښې د ټولو مخكښې ايت:

باقي د دې سلسله د سياق روايات نه معلوميږي چه هغه اول آيت كريمه دا دې ﴿والمطلقات يتربصن بانفسهن ثلاثة قروء﴾ د عدت په باره كښې دا آيت كريمه بالكل ابتدائي او مجمل دې ځكه چه د ټولو مطلقاتو دا عدت نه دې او هم دغه شان نه د هر مطلقه دپاره عدت دې، هم په دې وجه د مصنف د عدت په باره كښې راروان باب قائم كړو. حضرت په بذل كښې ليكلي دى ولم ار هذا الحديث لغير ابى داود. اه په ظاهره مراد دا دې چه په صحاح سته كښې په بل يو كتاب كښې نشته، او په تكمله منهل كښې ليكلي دى، والحديث اخرجه ايضا البيهقى وابن ابى حاتم وابن كثير اه خو دا خبره دې واضح وى چه بيهقى دا حديث د امام ابوداود نه من طريق ابى بكر بن داسه ذكر كړې دې.

## بَابٌ فِي نَسْخِ مَا اسْتُثْنِيَ بِهِ مِنْ عِدَّةِ الْمُطَلَّقَاتِ

### د طلاقو د عدت په آيت كښې د منسوخ شوې حكم بيان

په تير باب كښې چه كوم آيت العدة ذكر وو په هغې كښې اطلاق او اجمال دې او د عدت په مسئله كښې د مطلقه زنانو په اعتبار سره تفصيل دې هم د دې د وضاحت دپاره دا باب قائم كړې شوې دې لكه چه پورته مونږ دې طرف ته اشكاره كړې ده.

[۲۲۸۲]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ سورة البقرة آية ۲۲۸، وَقَالَ: وَاللَّائِي

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۷۸) (حسن)

[2]: انظر حديث رقم (۲۱۹۵)، (تحفة الأشراف: ۶۲۵۳) (حسن)

يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ سورة الطلاق آية ٤، فَنَسَخَ مِنْ ذَلِكَ، وَقَالَ: وَإِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ سورة البقرة آية ٢٣٧ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّونَهَا سورة الأحزاب آية ٤٩.

**ترجمه:** دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه دالله تعالى داقول («والمطلقات يتربصن بأنفسهن ثلاثة قروء») ددې حکم نه هغه زنانه مستثنی شوی دی څوك چه دبيمارئ دراتلونه نا اُميده شوی دی اووئيلې شوی دی کومې زنانه چه دبيمارئ نه نا اُميده شې نودهغې عدت درې مياشتې دې ددې نه مزيد استثنی دا وشوه چه الله تعالى اوفرمائيل او که چرې تاسو دصحبت نه مخکښې طلاق ورکړې وي نوپه دې ښځه باندې څه قسم عدت تيرول واجب نه دی.

## شرح حديث :

په دې روايت کښې عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د عدت سره متعلق درې قسم آيتونه ذکر فرمائيلې دی اول هغه چه کوم آيتونه مطلق او مجمل دی او د دې نه مخکښې باب کښې تير شوې دې، چه د هغې نه په ظاهره معلوميږی چه د مطلقه عدت ثلاثه قرؤ دې بيا د هغې نه پس ابن عباس د دې سلسله دوه نور آيتونه ذکر اوفرمائيل چه د هغې په ذريعه د آيت اولی تقييدات معلوميږی پس د بل آيت نه معلوميږی (١) چه دوه مطلقه داسې دی چه د هغوی عدت بالاشهر دې نه بالاقراء، او يوه مطلقه داسې ده يعنی حامله چه د هغې عدت وضع حمل دې لهذا د دې دويم آيت نه د درې قسم مطلقاتو استثناء معلومه شوه د هغې نه روستو بيا ابن عباس دريم آيت ذکر اوفرمائيلو چه د هغې نه يو څلورم قسم مستثنی شو يعنی غير ممسوسه او دا چه په هغه باندې عدت واجب نه دې لهذا اوس د ټولو نه اول آيت د لاندې هغه مطلقه باقی پاتې شوه کومه چه د دې څلورو قسمونو نه علاوه ده يعنی هغه مطلقه چه په هغې کښې څلور صفات موندلې شی، غير آئسه، غير صغيره، غير حامله او ممسوسه.

اوس د مصنف د ترجمة الباب پيش نظر يا خو داسې اوايئ چه د څلور قسم مطلقات د اولنی آيت کريمه نه مستثنی کړې شو او يا داسې اوايه چه آيت اولی د دې څلورو په اعتبار سره منسوخ کړې شو.

## د ترجمة الباب د عبارت حل :

خو مصنف چه په ترجمة الباب کښې کوم عبارت اخستلې دې په هغې کښې ئې نسخ او استثناء دواړه اخستلې دی فی نسخ ما استثنی به، حال دا چه د استثناء نسخ نه ده شوې يا ورته صرف نسخ اوايئ يا صرف استثناء، خو يو شارح هم د دې عبارت د حل سره تعرض نه دې کړې کوم چه په ظاهره کښې مشکل دې، اللهم الا ان يقال ان اضافة النسخ الى ما بعده بيانية فالمعنى باب فى بيان ما وقع من النسخ والاستثناء فى عدة بعض المطلقات. والله تعالى اعلم

(١) دلته په حديث الباب کښې دا ايت پوره مذکور نه دې، د دې آيت کريمه باقی حصه دا ده : واللائي لم يحضن واولات الاحمال اجلهن ان يضعن حملهن)

# بَابٌ فِي الْمُرَاجَعَةِ
## د رجعت د احکامو بیان

**د ترجمة الباب غرض:**

حضرت په بذل المجهود کښې او هم دغه شان صاحب منهل د ترجمة الباب په شرح کښې لیکلي دی چه مطلب دا دې چه که یو سړې خپلې ښځې ته یو یا دوه طلاقه ورکړي نو په دې صورت کښې هغه رجعت کولې شي ګویا مطلب دا شو چه د درې طلاقو نه پس د رجعت اختیار نه پاتې کیږي خو د دې مضمون باب د کتاب الطلاق په شروع کښې تیر شو لهذا تکرار في الترجمة نه د بچ کیدو دپاره به دا وئیلې شي چه د مصنف غرض په دې باب سره دا بیانول دي چه د رسول الله ﷺ نه طلاق رجعي یعنی د کوم طلاق نه روستو چه رجعت جائز دې داسې طلاق او بیا رجعت د هغه نه ثابت دې لکه چه په حدیث الباب کښې دی.

[۲۲۸۳](1)حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ الزُّبَيْرِ الْعَسْكَرِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ صَالِحِ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عُمَرَ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلَّقَ حَفْصَةَ ثُمَّ رَاجَعَهَا".

**ترجمه:** دابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه عمر رضي الله عنه اووئیل چه نبی علیه السلام حفصې ته طلاق ورکړل اوبیائې ورته رجعت اوکړو.

### توضیح الحدیث

حضرت په بذل المجهود کښې د شیخ عبدالحق محدث دهلوی د "مدارج النبوة" نه دا مضمون نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ سیده حفصه رضي الله عنها ته یو طلاق ورکړو، چه کله د دې خبر سیدنا عمر رضي الله عنه ته اورسیدو نو هغه په دې سره غمژن شو، پس په هغه باندې وحی راغله چه ﴿راجع حفصة فانها صوامة قوامة وهي زوجتک في الجنة﴾ بیا وراندې په بذل کښې د مستدرک حاکم نه په روایت د انس رضي الله عنه هم دا مضمون منقول دې.

والحدیث اخرجه ایضا الدارمی. (تکملة المنهل)

# بَابٌ فِي نَفَقَةِ الْمَبْتُوتَةِ
## د مطلقه ثلاثه د نفقې بیان

**دلته درې مسائل دی:**

مبتوتة یعنی مطلقه بائنه دپاره د عدت په زمانه کښې نفقه وی یا نه، مصنف خو په دې باب کښې هم دا مسئله بیانوی او یوه مسئله دلته راغلې دې کوم چه خپله مصنف وراندې تلو سره بیانوی یعنی جواز التحول من بیت العدة یعنی مطلقه بائنه په زمانه عدت بیت العدت نه منتقل کیدې شي یا نه، تردې چه یوه دریمه مسئله هم دې مطلقه معتده دپاره جواز خروج في النهار للحاجة، دا دریمه مسئله د دې نه پس متصلا په راتلونکې باب کښې

(1): سنن النسائي/الطلاق ۷٦ (۳۵۹۰)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۱ (۲۰۱٦)، (تحفة الأشراف: ۱۰۴۹۳)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطلاق ۲ (۲۳۱۰) (صحيح)

راروان دي دا درې واړه مسئلې اختلافی دی اوس دلته په مسئله باندې ځان پوهه کړئ چه مطلقه رجعیه دپاره عدت کښې نفقه او سکنی بالاجماع واجب دی لقیام النکاح وجواز الاستمتاع، او د مطلقه بائنه دوه قسمونه دی حامله او غیر حامله، د حامله دپاره دواړه واجب دی بالاجماع لقوله تعالی ﴿ وان کن اولات حمل فانفقوا علیهن حتی یضعن حملهن ﴾ او په غیر حامله کښې اختلاف دې د احنافو په نزد د هغه دپاره نفقه او سکنی دواړه واجب دی، او د امام احمد او ظاهریه په نزد دواړه واجب نه دی، او امام شافعی او امام مالک په نزد صرف سکنی واجب ده نفقه نه ده، په مغنی کښې د امام احمد مسلک دا لیکلې دې چه نفقه خو د هغه دپاره نشته او په سکنی کښې دوه روایتونه دی وجوب او عدم وجوب، د عدم وجوب روایت ظاهر مذهب لیکلې دې او په دلیل کښې ئې د فاطمه بنت قیس حدیث پیش کړې دې چه په هغې کښې د دواړو د نفی تصریح ده.

دا خو شو په مسئله اولی کښې مذاهب ائمه، اوس د هغوی د دلائلو په باره کښې هم څه واورئ.

## د امام احمد دلیل :

د امام احمد او ظاهریه دلیل حدیث الباب یعنی فاطمه بنت قیس حدیث دې چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ صفا ارشاد دې ﴿لیس لک علیه نفقة ولا سکنی ﴾خو په مذهب احمد باندې د الله پاک قول ﴿اسکنوهن من حیث سکنتم ﴾سره اشکال واقع کیږی، هغه د دې جواب دا ورکوی چه دا په مطلقه رجعیه باندې محمول دې ځکه چه په آیت کریمه کښې دی ﴿اسکنوهن من حیث سکنتم ﴾چه په کوم ځائې کښې ته اوسیږې هم هغه ځائې کښې هغوی هم اوساته نو دا په اختلاط مطلقه بائنه کښې چرته جائز دې، مطلقه رجعیه کښې کیدې شی، بله دا چه د سکنی فی بیت الزوج یوه فائده دا ده چه په دې کښې رجوع اسانه ده، ولا رجعة فی الطلاق البائن، ففی المغنی، ولان هذه محرمة علیه تحریما لا تزیله الرجعة فلم یکن لها سکنی ولا نفقة، واما الرجعیة فلها السکنی والنفقة للایة الی اخر ما قال، د دې جواب به مونږ ان شاء الله وړاندې کوو.

## د مالکیانو او شوافعو دلیل :

او د مالکیانو او شوافعو دلیل وجوب سکنی په باره کښې خو د الله پاک قول ﴿اسکنوهن من حیث سکنتم الایة ﴾دې، او د عدم وجوب نفقه دلیل کښې هغه فرمائی چه د نفقه په باره کښې آیت کریمه د حبلی (حاملې) سره مختص دې، پس پوره آیت کریمه داسې دې ﴿اسکنوهن من حیث سکنتم من وجدکم ولا تضاروهن لتضیقوا علیهن، وان کن اولات حمل فانفقوا علیهن حتی یضعن حملهن ﴾لهذا د مطلقه بائنه دپاره به نفقه نه وی.

## د احنافو دلیل :

او د احنافو دلیل د وجوب سکنی په باره کښې خو به هم هغه وی کوم چه د مالکیانو او شوافعو دلیل دې او وجوب نفقه او سکنی د دواړو په باره کښې په آیت مذکوره یعنی

﴿اسکنوهن علی قراءة عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه اسکنوهن من حیث سکنتم وانفقوا علیهن من وجدکم، واما تخصیص فی قوله تعالی وان کن اولات حمل فانفقوا علیهن، فالجواب انا لا نقول بالمفهوم المخالف، وایضا لو قیل بالتخصیص لوقع التعارض بین القراءتین﴾هم دغه شان زمونږ دلیل د عمر رضی الله عنه قول کوم چه هم په دې کتاب کښې په راروان باب کښې "باب من انکر ذلک علی فاطمة"کښې راروان دې، وما کنا لندع کتاب ربنا وسنة نبینا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لقول امراة لا ندری احفظت ام لا. په دې دلیل باندې دا اعتراض کولې شی چه کتاب او سنت کښې سکنی او نفقه هر دواړو ثبوت چرته دې زمونږ د طرف نه دا جواب ورکړې شوې دې چه سیدنا عمر رضی الله عنه په دې قول کښې دوه احتمالات دی اول دا چه مراد دا دې چه د دې دواړو مجموعه ثبوت مجموع کتاب وسنت نه دې پس د سکنی ثبوت د کتاب نه دې زمونږ د طرف نه جواب ورکړې شوې دې چه د سیدنا عمر رضی الله عنه په دې قول کښې دوه احتمالات دی اول دا چه مراد دا دې چه د دې دواړو د مجموعي ثبوت د کتاب او سنت نه دې پس د سکنی ثبوت د کتاب نه دې دا خو ټول پیژنی، او د نفقې ثبوت د حدیث نه دې، او حدیث هغه دې کوم چه روایت کړې دې امام طحاوی مطولا بسنده الی عمر رضی الله عنه وفیه سمعت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یقول : لها السکنی والنفقة، خو د طحاوی په دې روایت باندې حافظ ابن القیم رحمه الله ډیر خفه دې، قطعا د دې د منلو دپاره تیار نه دې چه دا صرف د مذهب په نصرت او د هغې دپاره تعصب کښې دې او د حدیث هیڅ قسم ثبوت نشته، دا صرف دروغ دی، په بذل المجهود کښې د دې ټولو د نقل کولو نه پس حضرت تحریر فرمائی ﴿قلت وانا متعجب من جراءة الشیخ ابن القیم علی رد الحدیث المعتبر الثابت الی اخر ما قال فارجع الیه لو شئت﴾ او بل احتمال دا دې چه د هر یو ثبوت د هر یو نه مراد په دې صورت کښې د کتاب په مصداق کښې سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قراءت پیش کولې شی، او د حدیث مصداق کښې هم هغه روایت د کوم چه امام طحاوی رحمه الله تخریج کړې دې.

**د فاطمه بنت قیس د حدیث تخریج او د هغې مرتبه :**

خان پوهه کړه چه د فاطمه بنت قیس حدیث کوم چه امام ابوداود په دې باب کښې متعدد طرق نه ذکر کړې دې چه د هغې متن بعض اجزاء کښې اختلاف هم دې مثلا دا چه هغې ته درې طلاقه یوځائې ورکړې شو یا متفرقا د دې باوجود په راروان باب کښې مصنف د دې په رد باندې ډیر روایات راجمع کړې دی، پس په راروان باب کښې عنوان دا دې "باب من انکر ذلک علی فاطمة"هم دغه شان امام بخاری رحمه الله "باب قصة فاطمة بنت قیس"د ترجمه قائم کولو نه پس د دې تخریج کولو په دې حدیث باندې چه کوم ردونه او انکار کړې شوې دې د هغې ذکر فرمائیلې دې، حافظ ابن حجر رحمه الله د ترجمة بخاری د لاندې حدیث فاطمه الفاظ نقل کولو نه پس فرمائی ﴿هکذا اخرج مسلم قصتها من طرق قصتها من طرق متعددة عنها ولم ارها فی البخاری وانما ترجم لها کما تری واورد اشیاء من قصتها بطریق الاشارة الیها، ووهم صاحب العمدة فاورد حدیثها بطوله فی المتفق﴾ اهـ د دې نه معلومه شوه چه دا حدیث د افراد مسلم نه

دي د دې نه علاوه اصحاب سنن اربعه هم د دې تخريج کړې دې، الحاصل امام بخاريډ دي تخريج کړې دې، زه وايم د صاحب العمدة په شان ابن قدامه په مغنی کښې هم په دې حديث باندې د متفق عليه اطلاق کړې دې او حال دا چه داسې نه ده پس حافظ هم په بلوغ المرام کښې دا حديث اخستلې دې او صرف د مسلم طرف ته ئې هغه منسوب کړې دې، هسې هم په صحيح بخاری کښې دا روايت څنګه کيدې شي او حال دا چه د دې بعض أجزاء کښې اختلاف، هم دغه شان د هغې په خاوند کښې اختلاف لکه چه د ابوداود د روايت نه معلوميږي، هم دغه شان بعض صحابه او صحابيات وغيره په دې باندې سخت انکار، کوم چه خپله امام بخاری هم روايت کړې دې، هم دغه شان ابن قدامه مغنی ۲۸۹/۹ کښې د دې حديث نه مدافعت کولو سره فرمائی واما قول عمر ومن وافقه فقد خالفه علي وابن عباس ومن وافقهما، الى ان قال ولم يصح عن عمر انه قال لا ندع كتاب ربنا وسنة نبينا لقول امراءة فان احمد انكره وقال اما هذا فلا، ولكن قال: لا نقبل في ديننا قول امراءة الى اخر ما ذكر.

**فائده** : دا مخکښې ډير کرته تير شو چه زمونږ حضرت شيخ رحمه الله فرمائی چه زما په نزد امام ابوداود حنبلی دې په دې وجه هغه د حنابله د دلائلو ډير اهتمام کړې دې وغيره وغيره، او زما خپله رائې هم دا مخکښې تيره شوې ده چه په سنن ابوداود کښې ډير ابواب او د هغې ترتيب د مسلک حنابله خلاف دې پس دلته هم مصنف په خپل باب کښې د فاطمه بنت قيس رضي الله عنها روايت راوړلو نه پس راروان باب د دې خلاف د دې حديث په رد کښې قائم کړې دې. فتامل

[۲۲۸۴] ()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ مَوْلَى الْأَسْوَدِ بْنِ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، أَنَّ أَبَا عَمْرِو بْنَ حَفْصٍ طَلَّقَهَا الْبَتَّةَ وَهُوَ غَائِبٌ، فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا وَكِيلُهُ بِشَعِيرٍ فَتَسَخَّطَتْهُ، فَقَالَ: وَاللَّهِ مَا لَكِ عَلَيْنَا مِنْ شَيْءٍ، فَجَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ لَهَا: "لَيْسَ لَكِ عَلَيْهِ نَفَقَةٌ"، وَأَمَرَهَا أَنْ تَعْتَدَّ فِي بَيْتِ أُمِّ شَرِيكٍ، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ تِلْكَ امْرَأَةٌ يَغْشَاهَا أَصْحَابِي، اعْتَدِّي فِي بَيْتِ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ، فَإِنَّهُ رَجُلٌ أَعْمَى، تَضَعِينَ ثِيَابَكِ، وَإِذَا حَلَلْتِ فَآذِنِينِي"، قَالَتْ: فَلَمَّا حَلَلْتُ ذَكَرْتُ لَهُ أَنَّ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ وَأَبَا جَهْمٍ خَطَبَانِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَّا أَبُو جَهْمٍ، فَلَا يَضَعُ عَصَاهُ عَنْ عَاتِقِهِ، وَأَمَّا مُعَاوِيَةُ، فَصُعْلُوكٌ لَا مَالَ لَهُ، انْكِحِي أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ"، قَالَتْ: فَكَرِهْتُهُ، ثُمَّ قَالَ: "انْكِحِي أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ"، فَنَكَحْتُهُ فَجَعَلَ اللَّهُ تَعَالَى فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا وَاغْتَبَطْتُ بِهِ.

**ترجمه**: دفاطمه بنت قيس رضي الله عنها روايت دې فرمائی چه عمرو بن حفص ماته درې طلاق راکړل اوهغه په دې وخت کښې چرته تلې وو اودې ته ئې خپل وکيل دوربشو سره راوليږلو هغې چه داوربشي وليدلي نو په دې خفه شوه وکيل اووئيل په الله قسم په مونږ ضروري نه وو چه تاته موڅه درکړې وې فاطمه بنت قيس رضي الله عنها نبی عليه السلام ته راغله اوعرض ئې ورته اوکړو نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل يقينا ستاخر چه په ده باندې نشته دې اونبی عليه السلام ورته حکم اوکړو

---

[1]: صحيح مسلم/الطلاق ٦ (١٤٨٠)، سنن النسائي/النكاح ٨ (٣٢٢٤)، الطلاق ٧٣ (٣٥٨٢)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٣٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/النكاح ٣٧ (١١٣٥)، سنن ابن ماجه/النكاح ١٠ (١٨٦٩) الطلاق ٤ (٢٠٢٤)، ٩ (٢٠٣٢)، ١٠ (٢٠٣٥)، موطا امام مالك/الطلاق ٢٣ (٦٧)، مسند احمد (٦/٤١٢، ٤١٣، ٤١٤، ٤١٥)، سنن الدارمي/النكاح ٧ (٢٢٢٣) (صحيح)

چه دام شریك په كور كښې عدت تیركړه بیا ورته نبی ﷺ اوفرمائیل ددغه زنانه كور ته صحابه كرام ډیرتګ راتګ كوي نوپه دې وجه باندې ته دعبدالله بن ام مكتوم په كور كښې عدت تیركړه ځكه چه هغه روند دې كه چرې ته كړې هم وباسې نوبیاهم تاته دپردې كولو ضرورت نشته اوكله چه دې عدت تیرشي نومانه اطلاع راكړه فاطمه وائی كله چه زماعدت تیرشو نومانبی ﷺ ته اطلاع وركړه او عرض مې اوكړو چه معاویه بن ابي سفیان اوابوجهم ماته دنكاح پیغام راكړې دې نبی ﷺ اوفرمائیل ابوجهم خودخپلو اوږونه همساء نه كوزوي (یعنی وهل ډیر كوي اوهرچه معاویه دې هغه نیسمن دې (مال ورسره نشته) ته د اسامه سره نكاح وكړه فاطمه وائی ما اسامه هم خوښ نكړو نبی ﷺ راته بیاوفرمائیل داوسامه سره نكاح وكړه نوبیا مې د اسامه سره نكاح اوكړه الله تعالی په دې نكاح كښې خیر اوبركت واچولو تردې چه نورو ښځوبه په ما باندې كینه كوله.

**تشریح:** عن فاطمة بنت قیس ان اباعمرو بن حفص طلقها البتة وهو غائب الخ

د فاطمه بنت قیس رضي الله عنها د خاوند كنیت په دې روایت كښې خو ابو عمرو بن حفص مذكور دې او وړاندې په دویم طریق كښې ابو حفص بن المغیره راروان دې، دغه شان په هغه روایت كښې دی چه هغه فاطمه ته طلاق وركړې وو، او وړاندې په بعض طرق كښې راروان دی، ﴿طلقها ثلاثا﴾ چه د هغې د ظاهر نه معلومیږی چه هغه ته درې طلاقه مجتمعا وركړې شو، او په یو طریق كښې راځی ﴿فبعث الیها وهو غائب﴾ د غیبت نه مراد د هغوی سفر یمن طرف ته دې چه د هغې ذكر په بعض روایاتو كښې راځی چه هغه د سیدنا علی رضي الله عنه سره یمن ته تلې وو، خو د طحاوی د بعض روایاتو نه معلومیږی چه د هغه د تطلیق واقعه د سفر الی الیمن نه مخكښې راغلې وه، د دې توجیه په بذل المجهود كښې دا كړې ده چه كیدې شی هغه طلاق خو د سفر په شروع كښې د كیدو نه مخكښې وركړې وو خو د هغې اظهار ئې سفر كښې د تلو نه پس كړې وی د خپل وكیل په ذریعه چه د هغې ذكر په روایت كښې دې ﴿فارسل الیها وكیله بشعیر﴾ د دې وكیل نه مراد عیاش بن ابی ربیعه او حارث بن هشام دې لكه چه وړاندې په یو طریق كښې راځی ﴿وامرها ان تعتد فی بیت ام شریک، ثم قال ان تلک امراءة یغشاها اصحابی﴾

**شرح حدیث:**

اول رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائیل چه د ام شریک په كور كښې عدت تیرول بیا د هغه رائې بدله شوه او وې فرمائیل چه د هغه په كور كښې نشته ځكه چه ام شریک داسې زنانه ده چه د هغې كره زما د اصحابو تلل راتلل دی، د دې وجه شارحینو دا لیكلې ده چه هغه ډیره میلمه دوسته وه د الله پاک په لاره كښې په كثرت سره خرچ كولو والا وه، هم په دې وجه به ډیر خلق هلته تلل راتلل، لهذا فاطمه رضي الله عنها لره به د هغه نه په پرده كولو كښې تكلیف وی او د هغې په ځائې رسول الله ﷺ د ام ابن مكتوم رضي الله عنه كره عدت تیرول اوفرمائیل چه هغه نابینا وو چرته چه د پردې اهتمام زیات ضرورت نه وو او د مسلم په روایت كښې دا هم دی ﴿فانک اذا وضعت خمارک لم یرک﴾، امام نووی رحمه الله فرمائی ﴿احتج بعضهم بهذا الحدیث

على جواز نظر المراءة الى الاجنبى بخلاف نظره اليها وهذا قول ضعيف الى اخر ما ذكره الشيخ فى اوجز المسالک ۴۱۳/۴) د دې مسئلې تفصیل یعنی نظر الرجل الى المراءة وبالعکس مونږ په الدر المنضود دريم جلد کتاب الحج ص ۴۵۹ فجعل الفضل ينظر اليها الحديث د لاندې ليکلې دی، هغه دې اوکتلې شی، هم دغه شان رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائيل چه کله ته عدت تيرولو سره حلاله شې نو په خپله نکاح کښې تندی مه کوه بلکه ماته خبر راکړه، هغه فرمائی چه کله زه د خپل عدت نه فارغه شوم نو د رسول الله ﷺ خدمت حاضره شوم او عرض مې اوکړو چه د معاويه بن ابی سفيان او ابو جهم رضی الله عنهما دواړو د طرف نه جدا جدا ماته د نکاح پيغام راغلې دې، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل (اما ابو جهم فلا يضع عصاه عن عاتقه، واما معاوية فصعلوک لا مال له انکحی، اسامة بن زيد) چه د ابو جهم رضی الله عنه حال خو دا دې چه چه هر وخت د هغه په اوګه باندې لرګې پروت وی يعنی د وهلو دپاره د تيزئ او غصې په وجه، او د معاويه رضی الله عنه په باره کښې ئې اوفرمائيل چه هغه کنګال او فقير دې، او بيا ئې هغې ته اوفرمائيل چه زما رائې دا ده چه د اسامه بن زيد رضی الله عنه سره نکاح اوکړه، اسامه چونکه د رنګ نه تور وو (لکه چه په باب القافه کښې تير شو چه کان زيد ابيض واسامة اسود... د دې نه علاوه د غلامانو نه هم وو) او فاطمه قريشيه وه او د ضحاک بن قيس امير خور وه، هم دغه شان ښکلې او عقلمنده وه، د هغې زوج اول يعنی ابو عمرو بن حفص هم قرشی وو، هغه فرمائی (قالت فکرهته) چه د اسامه متعلق ما رسول الله ﷺ ته د ناخوښئ اظهار اوکړو، خو رسول الله ﷺ راته دوباره اوفرمائيل چه هم د هغه سره نکاح اوکړه وراندې هغه فرمائی چه ما د اسامه سره نکاح اوکړه او په هغې کښې الله پاک ډير خير کيخودلو، او ماته خلق اوپسخيدل.

د دې حديث نه د خطبه على الخطبه جواز معلوميږی، او مسئله دا ده چه خطبه على الخطبه په هغه صورت کښې جائز ده چه کله د مخطوبه رکون الى الخاطب الاول نه وی يا د رکون علم نه وی، د علم بالرکون نه پس ناجائز او ممنوع دې، امام ترمذی رحمه الله په جامع ترمذی کښې د دې حديث د لاندې هم دا خبره ليکلې ده، هم دغه شان د حديث پاک نه معلومه شوه چه په يو سړی پسې پټ پناه د هغه عيب بيانول د څه مصلحت او ضرورت په بنياد جائز دی چه کله هغه غرض، غرض صحيح شرعی وی، لکه چه په دې حديث کښې اظهار عيب د فاطمه رضی الله عنها د مصلحت او خير خواهئ په وجه باندې وه، وفی الحديث المستشار مؤتمن.

[۲۲۸۵] (¹) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ بْنُ يَزِيدَ الْعَطَّارُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ قَيْسٍ حَدَّثَتْهُ، أَنَّ أَبَا حَفْصِ بْنَ الْمُغِيرَةِ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا، وَسَاقَ الْحَدِيثَ فِيهِ. وَأَنَّ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ وَنَفَرًا مِنْ بَنِي مَخْزُومٍ أَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، إِنَّ أَبَا حَفْصِ بْنَ الْمُغِيرَةِ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا، وَإِنَّهُ تَرَكَ لَهَا نَفَقَةً يَسِيرَةً، فَقَالَ: "لَا نَفَقَةَ لَهَا" وَسَاقَ الْحَدِيثَ. وَحَدِيثُ مَالِكٍ أَتَمُّ.

---

¹: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۳۸) (صحيح)

**ترجمه:** دفاطمه بنت قیس رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه ابو حفص بن مغیره ماته درې طلاق راکړل اوبیا ئې همدا تیرشوي حدیث بیان کړو ددې اضافي سره چه خالد بن ولید اودبني مخزوم قبیلې یوڅو کسان نبی علیه السلام ته راغلل اوعرض ئې اوکړوچه اې دالله رسوله یقینا ابوحفص بن مغیره خپلې ښځې ته درې طلاق ورکړې دي اولږه شان نفقه ئې ورته پرېښودلې ده نبي علیه السلام اوفرمائیل ددې دپار نفقه نشته اوحدیث ئې تراخره پورې بیان کړو. دمالك حدیث ډیر تمام اوکامل دې.

[۲۲۸۶]() حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَمْرٍو، عَنْ يَحْيَى، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ، حَدَّثَتْنِي فَاطِمَةُ بِنْتُ قَيْسٍ، أَنَّ أَبَا عَمْرِو بْنَ حَفْصٍ الْمَخْزُومِيَّ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، وَخَبَرَ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ، قَالَ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَتْ لَهَا نَفَقَةٌ وَلَا مَسْكَنٌ"، قَالَ فِيهِ: وَأَرْسَلَ إِلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ لَا تَسْبِقِينِي بِنَفْسِكِ.

**ترجمه:** دفاطمه بنت قیس رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه ابو حفص بن مغیره ورته درې طلاق ورکړې وو اوبیا ئې همدا تیرشوي حدیث بیان کړو اوزخبردخالد بن ولیدچه نبی علیه السلام ورته فرمائیلي وو چه ددې دپار نفقه نشته اواوسیدل هم نشته په دې روایت کښې دا اضافه هم ده نبی علیه السلا ورپسې څوك لیږلي ووچه زمانه دتپوس کولونه بغیر ددویم کس سره نکاح مه کوه.

**تشریح:** ﴿ وارسل الیها رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لان تسبقینی بنفسک ﴾ یعنی د خپلې نکاح متعلق زما نه مخکښې نه شې یعنی زما د مشورې نه بغیر نکاح مه کوه.

[۲۲۸۷]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، قَالَتْ: كُنْتُ عِنْدَ رَجُلٍ مِنْ بَنِي مَخْزُومٍ فَطَلَّقَنِي الْبَتَّةَ، ثُمَّ سَاقَ نَحْوَ حَدِيثِ مَالِكٍ، قَالَ فِيهِ: "وَلَا تُفَوِّتِينِي بِنَفْسِكِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ الشَّعْبِيُّ، وَالْبَهِيُّ، وَعَطَاءٌ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَاصِمٍ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي الْجَهْمِ، كُلُّهُمْ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، أَنَّ زَوْجَهَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا.

**ترجمه:** دفاطمه بنت قیس رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه زه دقبیله بن مخزوم دیو کس په نکاح کښې وم هغه ماته بنة طلاق راکړل اوبیائې داحدیث بیان کړونبی علیه السلام اوفرمائیل ته خپل ځان زمانه مه ورکوه «دعدت تیرولونه پس زماداجازت نه بغیر نکاح مه کوئ» امام ابوداود وئیلي دي ددې حدیث روایت شعبي أو بهي اوعطاء دعبدالرحمن بن عاصم نه اودابوبکر بن أبی الجهم نه کړې دي دوی ټولود فاطمه بنت قیس نه روایت بیان کړې دې چه هغې ته خپل خاوند درې طلاق ورکړي وو.

[۲۲۸۸]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، "أَنَّ زَوْجَهَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا، فَلَمْ يَجْعَلْ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفَقَةً وَلَا سُكْنَى".

[1]: انظر حدیث رقم: ۲۲۸٤، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۳۸) (صحیح)
[2]: انظر حدیث رقم (۲۲۸٤)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۳۸) (صحیح)
[3]: صحیح مسلم/الطلاق ٦ (۱٤۸۰)، سنن الترمذي/الطلاق ٥ (۱۱۸۰)، سنن النسائي/الطلاق ۷۲ (۳۵۸۱)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۱۰ (۲۰۳٦)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۲۵)، وقد أخرجه: دي/الطلاق ۱۰ (۲۲۲۰) ویأتي هذا الحدیث برقم (۲۲۹۱) (صحیح)

**ترجمه:** دفاطمه بنت قیس رضي الله عنها نه روایت دي فرمائي چه ددې خاوند دې ته درې طلاق ورکړې وو نونبی عليه السلام ددې دپاره نه دنفقې حکم اوکړو اونه داوسیدو دپاره ئې کور ورکړو.

[۲۲۸۹](¹) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ، "أَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ أَبِي حَفْصِ بْنِ الْمُغِيرَةِ، وَأَنَّ أَبَا حَفْصِ بْنَ الْمُغِيرَةِ طَلَّقَهَا آخِرَ ثَلَاثِ تَطْلِيقَاتٍ، فَزَعَمَتْ أَنَّهَا جَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَفْتَتْهُ فِي خُرُوجِهَا مِنْ بَيْتِهَا، فَأَمَرَهَا أَنْ تَنْتَقِلَ إِلَى ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ الْأَعْمَى، فَأَبَى مَرْوَانُ أَنْ يُصَدِّقَ حَدِيثَ فَاطِمَةَ فِي خُرُوجِ الْمُطَلَّقَةِ مِنْ بَيْتِهَا، قَالَ عُرْوَةُ: وَأَنْكَرَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا عَلَى فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ، وَابْنُ جُرَيْجٍ وَشُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، كُلُّهُمْ عَنِ الزُّهْرِيِّ. قَالَ أَبُو دَاوُد: شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، وَاسْمُ أَبِي حَمْزَةَ دِينَارٌ وَهُوَ مَوْلَى زِيَادٍ.

**ترجمه:** دفاطمه بنت قیس رضي الله عنها نه روایت دې فرمائي چه زه دابوحفص بنت مغیره په نکاح کښې وم اوابوحفص راته په درې طلاقو کښې دریم طلاق راکړو فاطمه وائي چه زه دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شوم اوددې کور نه دوتلوپه سلسله کښې مې ترې تپوس اوکړو راته ئې اوفرمائيل چه ته دابن ام مکتوم نابینا په کور کښې اوسیږه مروان انکار کړې دې چه دفاطمې ددې حدیث تصدیق اوکړي کوم چه په باره دوتلو د مطلقاتو کښې دې. دکور خپل نه عروه وائي عائشه رضي الله عنها دفاطمه بنت قیس دقول نه انکارکړې دې. امام ابو داود وائي اوهمدارنګې ئې دا روایت صالح بن کیسان او ابن جریج اوشعیب بن أبی حمزه ټولو دزهري نه نقل کړې دې، ابوداود وائي دابن أبی حمزه نوم دیناردې اوهغه دزیاد آزاد کړې شوې غلام دې.

### د روایاتو خپل مینځ کښې فرق او د هغې تشریح :

په دې روایت کښې اختصار دې ځکه چه د دې نه مخکښې د مروان هیڅ قسم ذکر نه دې راغلې نه دا چه مروان د فاطمې نه بغیر د واسطې یا بالواسطه څه تپوس کړې وو یا نه، او دا روایت د عقیل عن الزهری دې، هم په دې وجه باندې د دې نه روستو د دې سلسلې روایة مفصله ذکر کوي.

[۲۲۹۰](²) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: أَرْسَلَ مَرْوَانُ إِلَى فَاطِمَةَ فَسَأَلَهَا، فَأَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ أَبِي حَفْصٍ، وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَّرَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ يَعْنِي عَلَى بَعْضِ الْيَمَنِ، فَخَرَجَ مَعَهُ زَوْجُهَا فَبَعَثَ إِلَيْهَا بِتَطْلِيقَةٍ كَانَتْ بَقِيَتْ لَهَا، وَأَمَرَ عَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ وَالْحَارِثَ بْنَ هِشَامٍ أَنْ يُنْفِقَا عَلَيْهَا، فَقَالَا: وَاللَّهِ مَا لَهَا نَفَقَةٌ إِلَّا أَنْ تَكُونَ حَامِلًا، فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "لَا نَفَقَةَ لَكِ إِلَّا أَنْ تَكُونِي حَامِلًا"، وَاسْتَأْذَنَتْهُ فِي الِانْتِقَالِ، فَأَذِنَ لَهَا، فَقَالَتْ: أَيْنَ أَنْتَقِلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "عِنْدَ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ"، وَكَانَ أَعْمَى، تَضَعُ ثِيَابَهَا عِنْدَهُ وَلَا يُبْصِرُهَا، فَلَمْ تَزَلْ هُنَاكَ حَتَّى مَضَتْ عِدَّتُهَا فَأَنْكَحَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُسَامَةَ، فَرَجَعَ قَبِيصَةُ إِلَى مَرْوَانَ فَأَخْبَرَهُ بِذَلِكَ، فَقَالَ مَرْوَانُ: لَمْ نَسْمَعْ هَذَا الْحَدِيثَ إِلَّا مِنَ امْرَأَةٍ، فَسَنَأْخُذُ بِالْعِصْمَةِ الَّتِي وَجَدْنَا النَّاسَ عَلَيْهَا، فَقَالَتْ فَاطِمَةُ حِينَ بَلَغَهَا ذَلِكَ: بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ كِتَابُ اللَّهِ، قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ حَتَّى لَا تَدْرِي لَعَلَّ اللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَلِكَ أَمْرًا سورة الطلاق آية، قَالَتْ: فَأَيُّ أَمْرٍ

[1]: انظر حديث رقم (۲۲۸٤)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۳۸) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم /الطلاق ٦ (۱٤۸۰)، سنن النسائي /النكاح ۸ (۳۲۲٤)، الطلاق ۷۳ (۳٥۸۲)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۳۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤١٤) (صحيح)

يُحِدِثُ بَعْدَ الثَّلَاثِ. قَالَ أَبُودَاوُدَ: وَكَذٰلِكَ رَوَاهُ يُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَأَمَّا الزُّبَيْدِيُّ، فَرَوَى الْحَدِيثَيْنِ جَمِيعًا، حَدِيثَ عُبَيْدِاللهِ بِمَعْنَى مَعْمَرٍ، وَحَدِيثَ أَبِي سَلَمَةَ بِمَعْنَى عَقِيلٍ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَنَّ قَبِيصَةَ بْنَ ذُؤَيْبٍ حَدَّثَهُ، بِمَعْنًى دَلَّ عَلَى خَبَرِ عُبَيْدِاللهِ بْنِ عَبْدِاللهِ، حِينَ قَالَ: فَرَجَعَ قَبِيصَةُ إِلَى مَرْوَانَ فَأَخْبَرَهُ بِذٰلِكَ.

**ترجمه:** دفاطمه بنت قیس رضی الله عنها روایت دې فرمائی چه زه دابوحفص په نکاح کښې وم او نبی علیه السلام علی رضی الله عنه لره یمن ته دحاکم په طور لیږلې وو اوزما خاوند هم دهغه سره ملګرې وو هغه. په درې طلاقو کښې چه کوم یوپاتې شوې وو راولیږلو او عیاش بن أبی ربیعه اوحارث بن هشام زما دپاره دنفقې حکم اوکړو دوی دواړو اووئیل په الله قسم ددې ښځې دپاره نفقه نشته خوکه چرې ددې حمل وې نوبیادې ته نفقه ملاویدله. زه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم او عرض مې ورته اوکړو هغه و اوفرمائیل یقیناستادپاره څه خرچه نشته مګرکه ته حامله وې اوما ترې ددې کور نه دتلو متعلق اجازت وغوښتو هغه راته اجازت راکړو ما ترې تپوس اوکړو اې دالله رسوله زما دپاره چرته اوسیدل پکاردې، نبی علیه السلام اوفرمائیل دعبدالله بن ام مکتوم سره اوسیږه هغه ړوند دې. فاطمه بنت قیس رضی الله عنها به دهغه په وړاندې کپړې وښکلې اوهغه به نه لیدله دعدت تربوره کیدو پورې هلته اوسیدله اودعدت پوره کیدونه پس نبی علیه السلام اسامه ته په نکاح کړه قبیصه چه واپس شو نوداکیفیت ئې مروان ته بیان کړو مروان اووئیل مونږ داحدیث صرف د یوې ښځې نه زباني اوریدلې دې لهذا مونږ به ددې اقتداء کوو په کوم باندې چه خلق قائم دې کله چه فاطمه بنت قیس ته ددې خبرې اطلاع ورسیده نووئې وئیل چه ستاسو اوزمابه مینځ کښې دالله کتاب دې الله تعالی فرمائی اې خلقو کله چه تاسو ښځوله طلاق ورکوې نودعدت دشروع کیدوسره ئې ورکوئ یعنی په طهرکښې اوهغه کس یعنی خاوند خبرنه دې چه الله تعالی به ددې نه پس کوم نوې صورت پیدا کړې نوددرې طلاقونه پس به څه نوې خبره پیداشي، امام ابوداود فرمائی مادزهري نه اوریدلې دې اوهغه دیونس نه نقل کړې دې چه زبیدي دا دواړه روایات دعقیل په طریقه روایت کړې دې، او محمد بن اسحق دزهري نه بیانوې چه قبیصه بن زویب دعبیدالله بن عبدالله په طریقې سره روایت بیان کړې دې چه قبیصه مروان ته واپس شو اودواقعې خبرئې ورته ورکړو.

## توضیح الحدیث

قوله: حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: أَرْسَلَ مَرْوَانُ إِلَى فَاطِمَةَ فَسَأَلَهَا، فَأَخْبَرَتْهُ...الخ:

دا روایت د معمر عن الزهری دې اوګورئ په دې کښې دا دی چه مروان خپل یو سړې فاطمه بنت قیس رضی الله عنها لره د هغې د طلاق د قصې معلومولو دپاره اولیږلو، خو د قاصد تصریح په دې روایت کښې هم نشته، په دې لحاظ سره په دې قصه کښې هم اجمال پیدا شو، خو وړاندې هم په دې روایت کښې د قاصد د نوم تصریح ده یعنی قبیصه. ﴿فرجع قبیصة الی مروان فاخبره ذلک﴾ یعنی قبیصه چه مروان فاطمه ته د صورت حال د معلومولو دپاره لیږلې وه هغه راغله او مروان ته ئې د فاطمه جواب نقل کړو، ﴿فقال مروان لم نسمع هذا الحدیث الا

من امراۃ فسناخذ بالعصمة الذی وجدنا الناس علیها ﴾مروان ورته په جواب کښې اووې چه دا حدیث مونږ صرف د یوې زنانه نه اورو (د هغې نه علاوه مو د بل چا نه نه دې اوریدلې) یعنی دا چه رسول الله ﷺ هغې دپاره دا فیصله فرمائیلې وه چه ستا دپاره نفقه او سکنی هیڅ نشته، او دا چه هغه ته ئې د بیت العدة نه د منتقل کیدو اجازت ورکړې وو د هغه په باره کښې مروان دا وائی چه مونږ دا نه تسلیموو، یعنی دا چه رسول الله ﷺ هغې ته دا خبره اوفرمائیله، لهذا مونږ خو به هم دا امر احوط اختیاروو چه په کوم باندې مونږ خلق موندلې دی یعنی دا چه د مبتوتة دپاره سکنی وغیره ده، او د هغه دپاره انتقال جائز نه دې. (کماهومسلك الجمهور)

## د فاطمه د کلام تشریح :

وړاندې په روایت کښې دی چه فاطمه ته کله د مروان خبره اورسیده نو هغه اووې چه زما او ستا ترمینځه کتاب الله حکم او فیصل دې ﴿قال الله تعالی : فطلقوهن لعدتهن الی... لا تدری لعل الله یحدث بعد ذلک امرا، قالت فای امر یحدث بعد الثلاث ﴾پوره آیت کریمه داسې دې ﴿یا ایها النبی اذا طلقتم النساء... ﴾یعنی د سورة الطلاق د شروع آیتونه چه په هغې کښې دا دی ﴿لا تخرجوهن من بیوتهن ولا یخرجن ﴾چه مطلقات د عدت د کور نه مه اوباسئ، او نه دې هغوی خپله اوځی او بیا وړاندې د هغه آیت کریمه په اخر کښې دا دی ﴿لعل الله یحدث بعد ذلک امرا ﴾د فاطمه د کلام حاصل دا دې چه دا چه د مطلقه په باره کښې قران کریم فرمائی چه د هغې دپاره حق سکنی دې او زوج له پکار دی چه هغه د هغه ځائې نه نه اوباسی، د دې مصلحت په قران کریم کښې خو دا بیان کړې شوې دې ﴿لعل الله یحدث بعد ذلک امرا ﴾چه ممکنه ده الله پاک د دې سکنی د وجې نه او د مطلقه په بیت العدت کښې د اوسیدو د وجې نه څه نوې خبره پیدا کړی یعنی د خاوند په زړه کښې د رجوع شوق، فاطمه فرمائی چه رجوع خو په طلاق رجعی کښې وی. ﴿ای امر یحدث بعد الثلاث ﴾د درې طلاق ورکولو نه پس به څه شوق پیدا کیږی، په طلاق ثلاث کښې خو رجعت نشته، لهذا د دې طلاق تعلق د مطلقه رجعیه سره دې نه د طلاق بائنه سره، او ماته درې طلاقه ملاؤ شوې دی، لهذا زه چه کوم حدیث بیانوم چه په هغې کښې جواز خروج دې په هغه حدیث او دې آیت کریمه کښې تعارض چرته دې؟

## د مصنف د کلام تشریح.

قوله: قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ يُونُسُ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، وَأَمَّا الزُّبَيْدِيُّ، فَرَوَى الْحَدِيثَيْنِ جَمِيعًا، حَدِيثَ عُبَيْدِ اللهِ بِمَعْنى مَعْمَرٍ، وَحَدِيثَ أَبِي سَلَمَةَ بِمَعْنى عَقِيلٍ..الخ:

ځان پوهه کړه چه جمهور علماء کرامو د فاطمه ﷺ د دې استدلال دا جواب کړې دې چه دا ضروری نه ده چه په آیت کریمه کښې دې د احداث امر نه مراد هم هغه وی کوم چه فاطمه ﷺ بیان کړې دې یعنی شوق رجوع، بلکه بل څه حکم مراد وی، ځکه چه زمانه د نزول وحی وه، معلومه نه ده چه د حکم مذکور د نزول نه پس الله پاک بل حکم نازل کړی، مثلا نسخ یا تخصیص وغیره، والحدیث اخرجه ایضا مسلم والبیهقی. (تکملة المنهل)

## د کلام مصنف تشریح :

د ﴿کذلک﴾اشاره د معمر عن الزهری طرف ته ده یعنی د موجوده روایت طرف ته چه کوم روان دې او د هغې مقابل د هغې نه پورته روایت دې یعنی عقیل عن الزهری چه د هغې په باره کښې مونږ مخکښې بیان کړې دې چه هغه مجمل دې، اوس دلته ګویا دوه احادیث شو، یو مجمل او یو مفصل، د معمر حدیث کوم لره چه روایت کولو والا عبیدالله دې هغه مفصل او د عقیل حدیث د کوم راوی چه ابو سلمه دې هغه مجمل، عقیل او معمر هر دواړه د زهری شاګردان دی، او دریم شاګرد د هغه زبیدی دې، د هغوی په باره کښې مصنف فرمائی چه دوی د زهری نه دواړه قسمه روایته ذکر کړی دی مجمل هم او مفصل هم بمعنی معمر او بمعنی عقیل دې دپاره ئې وئیلی دی چه زبیدی ددې دواړو روایت بلفظهما ذکرکړې نه دې بلکه بالمعنی لفظونو کښې څه فرق به وی او د زهری څلورم شاګرد محمد بن اسحاق هغه د زهری نه صرف حدیث مفصل روایت کړې دې چه د هغې راوی عبیدالله عن معمر وو، دلته هم مصنف هم دا خبره فرمائیلې ده چه هغه د عبیدالله والا روایت لره ﴿بلفظه﴾نه دې ذکر کړې بلکه د هغې معنی، حضرت په بذل المجهود کښې د دې ﴿قال ابوداود﴾تشریح داسې کړې ده ﴿وهکذا ینبغی ان یفهم هذا المقام﴾ والله الموفق وهو ولی المرام وبیده حسن الختام﴾.

## بَاب مَنْ أَنْكَرَ ذَلِكَ عَلَى فَاطِمَةَ

### څوک چه د فاطمه بنت قیس دقول نه انکارکوي

په حدیث فاطمه باندې انکار کونکی سیدنا عمر، سیده عائشه او مروان ﷺ درې واړه دی، سیدنا عمر رضی الله عنه خو په دې باندې هم هغه انکار فرمائیلې دې کوم چه د مروان دې چه دا صرف د یوې زنانه روایت دې معلومه نه ده چه هغې ته صحیح یاد دې یا نه، په ښه طریقې سره په خبره باندې پوهه شوې ده یا نه، ځکه چه حدیث د کتاب او سنت خلاف دې، او د عائشې رضی الله عنها انکار دا دې چه هغه داسې فرمائی لکه چه د دې باب په حدیث ثانی کښې راځی ﴿ان فاطمة کانت فی مکان وحش فخیف علی ناحیتها فلذلک رخص لها رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ﴾یعنی فاطمې رضی الله عنها ته چه رسول الله ﷺ د خروج کوم اجازت ورکړې وو هغه د یو عارض او مجبورئ د وجې نه وو هغه دا هغه په یو خوشې او ځانله کور کښې وه چه د هغې په وجه باندې هغې ته د ضرر رسیدو ویره وه، او د هغې نه روستو په دریم روایت کښې یحیی بن سعید د دې حدیث فاطمه په باره کښې فرمائی ﴿انما کان ذلک من سوء الخلق﴾او بیا د هغې نه په روستو روایت کښې راځی چه د سعید بن المسیب په وړاندې چه کله حدیث فاطمه پیش کړې شو نو هغه اوفرمائیل ﴿تلک امراءة فتنت الناس انها کانت لسنة﴾چه هغه د ژبې نه ډیره تیزه په دې وجه ورته د وتلو اجازت ورکړې شو.

[۲۲۹۱](¹)حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنِي أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا عَمَّارُ بْنُ رُزَيْقٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: كُنْتُ فِي الْمَسْجِدِ الْجَامِعِ مَعَ الْأَسْوَدِ، فَقَالَ: أَتَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ قَيْسٍ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "مَا كُنَّا لِنَدَعَ كِتَابَ رَبِّنَا وَسُنَّةَ نَبِيِّنَا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِقَوْلِ امْرَأَةٍ لَا نَدْرِي أَحَفِظَتْ ذَلِكَ أَمْ لَا".

**ترجمه:** دابواسحق نه روايت دې فرمائي چه زه په جامع مسجد کښې داسود سره ناست وم هغه اووئيل فاطمه بنت قيس عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته راغله اوداحديث ئې بيان کړو عمر رضي الله عنه اووئيل مونږ داسې خلق نه يو چه دالله کتاب او دنبي سنت صرف د يوې ښځې دقول په وجه پريږدو اوهغه هم مونږ ته معلومه نه ده چه هغې ته پوره ياد دي اوکه هيردي.

[۲۲۹۲](²)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: لَقَدْ عَابَتْ ذَلِكَ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَشَدَّ الْعَيْبِ يَعْنِي حَدِيثَ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، وَقَالَتْ: إِنَّ فَاطِمَةَ كَانَتْ فِي مَكَانٍ وَحْشٍ فَخِيفَ عَلَى نَاحِيَتِهَا، فَلِذَلِكَ رَخَّصَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** دعبدالرحمن بن أبي الزناد نه روايت دې فرمائي چه عائشه رضي الله عنها به دفاطمه بنت قيس په حديث باندې اعتراض کولو چه کله چرې فاطمې ته ددغه کورنه دوتو اجازت ملاوشوې دې نوهغه په دې وجه دې چه هغه په يوکندرکورکښې وه هلته ويريدله نوپه دې وجه باندې نبی علیه السلام هغې ته دمنتقل کيدو اجازت ورکړو.

[۲۲۹۳](³)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ قِيلَ لِعَائِشَةَ: أَلَمْ تَرَيْ إِلَى قَوْلِ فَاطِمَةَ؟ قَالَتْ: أَمَا إِنَّهُ لَا خَيْرَ لَهَا فِي ذِكْرِ ذَلِكَ.

**ترجمه:** دعروه بن زبيرنه روايت دې فرمائي چه ام المومنين عائشه رضي الله عنها ته اووئيلې شول ايا دفاطمه بنت قيس روايت ته نه ګورې نوعائشه رضي الله عنها اوفرمائيل دهغې دپاره دا پکارنه دی چه داقسم روايت بيان کړي دکوم په وجه چه په خلقوکښې غلط فهمي پيدا کيږي.

[۲۲۹۴](⁴)حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ فِي خُرُوجِ فَاطِمَةَ، قَالَ: "إِنَّمَا كَانَ ذَلِكَ مِنْ سُوءِ الْخُلُقِ".

**ترجمه:** دسليمان بن يسار رحمه الله نه روايت دې چه فاطمه بنت قيس رضي الله عنها دخپل کورنه په دې وجه وتلې وه چه ديوبل سره ئې اخلاق ښه نه وو.

[۲۲۹۵](⁵)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، وَسُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّهُ سَمِعَهُمَا يَذْكُرَانِ، أَنَّ يَحْيَى بْنَ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ طَلَّقَ بِنْتَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَكَمِ الْبَتَّةَ، فَانْتَقَلَهَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، فَأَرْسَلَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا إِلَى مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ وَهُوَ أَمِيرُ الْمَدِينَةِ، فَقَالَتْ لَهُ: "اتَّقِ اللَّهَ، وَارْدُدِ الْمَرْأَةَ إِلَى بَيْتِهَا"، فَقَالَ مَرْوَانُ فِي حَدِيثِ سُلَيْمَانَ: "إِنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ غَلَبَنِي"، وَقَالَ مَرْوَانُ فِي حَدِيثِ الْقَاسِمِ: "أَوَمَا بَلَغَكِ

---

¹): انظر حديث رقم (۲۲۸۸) (تحفة الأشراف: ۱۰۴۰۵، ۱۸۰۲۵) (صحيح موقوف)

²): صحيح البخاري/الطلاق ٤١ (٥٣٢٦) تعليقاً، سنن ابن ماجه/الطلاق ٨ (٢٠٣٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٠١٨) (حسن)

³): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٣٨٠) (صحيح)

⁴): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٠٢٣) (ضعيف)

⁵): صحيح البخاري/الطلاق (٥٣٢١)، صحيح مسلم/الطلاق ٦ (١٤٨١)، (تحفة الأشراف: ١٦١٣٧، ١٧٥٦٠، ١٨٠٢٢، ١٨٠٣٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطلاق ٢٢ (٦٣) (صحيح)

شَأْنُ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ؟" فَقَالَتْ عَائِشَةُ: "لَا يَضُرُّكَ أَنْ لَا تَذْكُرَ حَدِيثَ فَاطِمَةَ"، فَقَالَ مَرْوَانُ: "إِنْ كَانَ بِكِ الشَّرُّ، فَحَسْبُكِ مَا كَانَ بَيْنَ هَذَيْنِ مِنَ الشَّرِّ".

**ترجمه:** دسليمان بن يسار رحمه الله نه روايت دي فرمائي چه يحي بن سعيد بن العاص دعبدالرحمن بن حكم لورته دري طلاقه ورکړل عبدالرحمن ددغه كور نه خپله لور بوتله عائشه رضی الله عنها مروان بن حكم ته يونس وليږلو اومروان بن حكم په دې وخت کښې دمديني حكمران وو عائشي رضی الله عنها ورته دا جواب ورولیږلو چه دالله نه ويره اوکړه اودغه ښځه خپل مخكني كورته راوليږه ځکه چه دعدت په دوران كښې وتل جائزنه دي، دسليمان په يوروايت كښې دي چه مروان په جواب کښې اووئيل چه زه عبدالرحمن مجبور كړم په بل روايت دقاسم كښې دي چه مروان وئيلى دى تاته دفاطمه بنت قيس روايت رسيدلي دي عائشه رضی الله عنها او وئيل كه چرې دفاطمه بنت قيس دروايت ذكر دي نه وي كړي نوڅه خرج وو مروان عرض اوكړو كه چرې ته هم اووائى چه هلته دفتني ويره وه نوهغه فتنه دلته هم شته.

## توضيح الحديث

عبدالرحمن بن الحكم دا د مروان بن الحكم امير مدينه رور وو، د هغه لور ته د هغي خاوند سعيد بن العاص طلاق بته ورکړو د هغي نه روستو داسي اوشوه چه لور پلار يعنى عبدالرحمن خپله لور خپل كور ته راوبلله، يعنى د عدت په زمانه كښې (او دا ناجائز وه) په دې باندې سيده عائشه رضی الله عنها امير مدينه مروان ته قاصد اوليږو چه د الله پاک نه اويريږه دا زنانه يعنى خپله وريره د هغي كور يعنى بيت العدت ته واپس اوليږه، په دې باندې په يو روايت كښې دى چه مروان دا جواب وركړو چه عبدالرحمن زما نه منى. ﴿ان عبدالرحمن غلبنى﴾ او په يو روايت كښې دى چه مروان عائشي رضی الله عنها ته دا جواب وركړو چه ايا تاته د فاطمه بنت قيس قصه نه ده رسيدلي، په دې باندې عائشي رضی الله عنها اوفرمائيل چه د فاطمه قصه پريږده (ځکه چه د هغي منتقل كيدل د يوې مجبورئ او شر د وجي نه وو) فقال مروان ان كان بک الشر فحسبک ما كان بين هذين من الشر... چه كه د فاطمه قصه كښې څه شر او مجبوری وه نو ايا دلته په دې قصه كښې شر څه كم دي، والاثراخرجه ايضا الشافعي والبخاري والبيهقي. (تكملة المنهل)

[۲۲۹۶](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ بُرْقَانَ، حَدَّثَنَا مَيْمُونُ بْنُ مِهْرَانَ، قَالَ: قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ فَدُفِعْتُ إِلَى سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، فَقُلْتُ: "فَاطِمَةُ بِنْتُ قَيْسٍ طُلِّقَتْ فَخَرَجَتْ مِنْ بَيْتِهَا"، فَقَالَ سَعِيدٌ: "تِلْكَ امْرَأَةٌ فَتَنَتِ النَّاسَ، إِنَّهَا كَانَتْ لَسِنَةً فَوُضِعَتْ عَلَى يَدَيِ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ الْأَعْمَى".

**ترجمه:** دميمون بن مهران نه روايت دي فرمائي چه زه مديني ته راغلم اودسعيد بن المسيب په خدمت كښې حاضر شوم ما اووئيل فاطمه بنت قيس ته طلاق وركړي شوي وو اوهغه دخپل كورنه وتلي وه داسي ولي اوشو؟ سعيد اووئيل فاطمه بنت قيس يوه داسي زنانه ده چه خلق ئي په فتنه كښې مبتلا كړي وو اصل خبره داده زبان درازه وه نو دعبدالله ابن ام مكتوم په كور كښې وساتلي شوه.

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٠٢١) (صحيح)

## بَاب فِي الْمَبْتُوتَةِ تَخْرُجُ بِالنَّهَارِ

### په درې طلاقه کړې شوې ښځه به دورځې دکوره وتلې شي

دا ده هغه دريمه مسئله د هغه مسائل ثلاث نه کومه چه د تير شوی باب په شروع کښې چه د کوم طرف ته اشاره راغلې وه، يعنی خروج المعتدة بالنهار للحاجة.

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه :

پس د احنافو په نزد خو مطلقه رجعيه شوه يا بائنه د هغې دپاره په ورځ کښې د خپل ضرورت دپاره وتل جائز نه دی [۱] او د مالکيانو په نزد مطلقا که هغه رجعيه وی يا بائنه خروج جائز دې، او د شوافعو په نزد صرف د مبتوتة دپاره جائز دې، او د مطلقه رجعيه دپاره د خروج جواز نشته کذا قال ابن رسلان الشافعي وهکذا حکی الزرقاني المالکي مذهب مالك، کما في الاوجز والابواب والتراجم، او د احنابله مذهب هم ابن قدامه په مغنی نهم جلد کښې جواز خروج المعتدة المطلقة ليکلې دې، خو هغه په دې کښې د رجعيه يا بائنه هيڅ تصريح نه ده کړې او نه په بل يو کتاب کښې د هغه د مذهب تفصيل ملاؤ شوې دې. دا تفصيل خو متعلق دې د معتدة الطلاق نه، کوم چه په ترجمة الباب کښې مذکور دې.

د دې مسئلې ضرورت راپيښيږی د معتدة الوفاة دپاره هم پس ځان پوهه کړه چه د دې دپاره د خپل ضرورياتو دپاره صرف د ورځې وتل او بيا شپه په بيت العدة کښې تيرول بالاتفاق جائز دی په دې کښې د چا هم اختلاف نشته.

[۲۲۹۷] ([۲]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: طُلِّقَتْ خَالَتِي ثَلَاثًا فَخَرَجَتْ تَجُدُّ نَخْلًا لَهَا، فَلَقِيَهَا رَجُلٌ فَنَهَاهَا، فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ لَهَا: "اخْرُجِي فَجُدِّي نَخْلَكِ لَعَلَّكِ أَنْ تَصَدَّقِي مِنْهُ أَوْ تَفْعَلِي خَيْرًا".

**ترجمه:** جابر رضي الله عنه نه روايت دی فرمائي چه زما ترور په درې طلاقو طلاقه کړې شوه دعدت په دوران کښې دکجورو دشکولو دپاره دکور نه ووتله په لاره کښې يو کس وليدله هغه دعدت په دوران کښې دکورنه دوتلو نه منع کړه نوهغه دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضره شوه اوتپوس ئې اوکړو نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل ته دکورنه دضرورت په بناباندې وتل کوه کيدې شي چه ته په دې کښې صدقه ورکړې يا کوم بل يو دنيکی کار اوکړې.

تشريح: قوله:﴿عن جابر رضي الله تعالى عنه قال طلقت خالتي ثلاثا فخرجت تجد نخلا لها فلقيها رجل فنهاها الخ﴾

سيدنا جابر رضي الله عنه فرمائي چه زما خاله چه هغې ته درې طلاق ورکړې شوې وو هغې

---

[۱] په بذل المجهود کښې چه دلته د شوکاني نه کوم مذاهب نقل کړې شوې دی هغه داسې دی چه د احنافو په نزد جواز خروج لاجل الحاجة، او د ائمه ثلاث په نزد جواز خروج مطلقا بدون اعتبار حاجة، خو صحيح دا نه ده، امام نووی رحمه الله چه د مسلم په شرح کښې کوم مذاهب ليکلې دی هغه د دې خلاف دی. والصحيح ما ذکرنا والله الموفق)

[۲]: صحيح مسلم/الطلاق ۷ (۱۴۸۱)، سنن النسائي/الطلاق ۷۱ (۳۵۸۰)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۹ (۲۰۳۴)، (تحفة الأشراف: ۲۷۹۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۲۱/۳)، سنن الدارمي/الطلاق ۱۴ (۲۳۳۴) (صحيح)

په د عدت په زمانه کښې د کجهورو د خیال ساتلو او د میوې راشوکولو دپاره د کور نه وتله، په لاره کښې ورسره یو سړې ملاؤ شو او هغه د وتلو نه منع کړه، هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او د خپل وتلو ذکر ئې ورته اوکړو، رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه د هغې حاصل دا دې: صحیح ده د دې کار دپاره ته وتلې شې ځکه چه کیدې شي د دې دپاره ستا وتل د څه خیر یا صدقې ذریعه جوړه شي، د دې حدیث نه جواز خروج للحاجة معلومیږی لکه چه د جمهورو مسلک دې.

## د احنافو د طرف نه د حدیث توجیه :

او دا حدیث په ظاهره کښې د مسلک حنفیه خلاف دې، خو د دې حدیث د شروع حصه چه یو سړی هغه د خروج نه منع کړه د هغې نه معلومیږی چه دا عام مسئله وه د هغې نه روستو چه کله هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغله او هغې د رسول الله ﷺ نه خپله پوره خبره بیان کړه نو رسول الله ﷺ ورته داسې او نه وئیل چه مسئله داسې نه ده بلکه رسول الله ﷺ هغې ته خصوصی خطاب اوفرمائیلو چه ستا دپاره اجازت دې ته وتلې شې، په طور د کلیه ئې هغې ته او نه فرمائیل چه د هغې د وجې نه وئیلې کیدې شي چه ﴿واقعة حال لا عموم لها ﴾د قبیل نه ده، او دا رخصت صرف د هغې سره خاص دې، روستو په التعلیق الممجد کښې اوکتلې شو په هغې کښې مولانا عبدالحی صاحب هم د دې جواب طرف ته اشاره کړې ده. والله تعالی اعلم والحدیث اخرجه ایضا احمد ومسلم والنسائی وابن ماجة والبیهقی. (تکملة المنهل)

# بَاب نَسْخِ مَتَاعِ الْمُتَوَفَّى عَنْهَا بِمَا فُرِضَ لَهَا مِنَ الْمِيرَاثِ

## باب د کومې ښځې خاوند چه مړ شی هغې ته دآیت میراث په حکم سره د یو کال خرچ ورکول منسوخ دی

## په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه :

په شروع کښې د زوج دپاره حکم دا وو چه د مرګ نه مخکښې د خپلې ښځې دپاره د هغې د نفقه، سکنی او جامې دپاره وصیت اوکړی د یو کال دپاره، د نزول میراث په وخت دا حکم منسوخ شو، د نفقه په باره کښې خو اتفاق دې چه هغه مطلقا واجب نه ده که زنانه حامله وی یا غیر حامله، البته د امام احمد نه یو روایت دې چه د حامل کیدو په صورت کښې نفقه ده، او د سکنی مسئله مختلف فیه ده، د احنافو په نزد خو مطلقا واجب نه ده، د امام شافعی رحمه الله دوه روایتونه دی وجوب او عدم وجوب، خو اظهر الروایتین د هغه نه مطلقا د وجوب دې، او د امام احمد په نزد که غیر حامل وی نو نه دې او که حامل دې نو په دې کښې دوه روایتونه دی وحوب او عدم وجوب، کما فی تراجم البخاری عن المغنی، او د امام مالک مسلک دا دې چه که بیت زوج د میت ملک دې نو بیا خو د زنانه دپاره حق سکنی شته. والا فلا...

[۲۲۹۸]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِأَزْوَاجِهِمْ مَتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ سورة البقرة آية ۲۴۰» فَنُسِخَ ذَلِكَ بِآيَةِ الْمِيرَاثِ بِمَا فُرِضَ لَهُنَّ مِنَ الرُّبُعِ وَالثُّمُنِ، وَنُسِخَ أَجَلُ الْحَوْلِ بِأَنْ جُعِلَ أَجَلُهَا أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا".

**ترجمه**: دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دي فرمائی چه دالله تعالی داقول : («والذين يتوفون منكم ويذرون أزواجا وصية لأزواجهم متاعا إلى الحول غير إخراج») په آيت دميراث باندي منسوخ شوي دي په وجه دفرض کيدو دڅلورمي حصي اود اتمي حصي ددوی دپاره اودکال نيټه په دې حکم سره منسوخ شوي ده چه ددوی دعدت دپاره ئي څلور مياشتي اولس ورځي مقرر کړي دي.

## توضيح الحديث

﴿ ذلک ﴾اشاره ده د متاع طرف ته چه د هغې نه مراد نفقه او جامي دی ﴿باية الميراث بما فرض لهن من الربع والثمن ونسخ اجل الحول بان جعل اجلها اربعة اشهر وعشرا ﴾د اجل الحول نه مراد سکنی الی الحول ده چه د هغې تقاضه ده چه د عدت موده هم يو کال وی، پس په شروع کښې عدت يو کال وو بيا بل آيت کريمه راغلو کوم ته چه آية تربص وئيلې شی ﴿والذين يتوفون منكم ويذرون ازواجا يتربصن بانفسهن اربعة اشهر وعشرا ﴾اجل الحول لره منسوخ کولو سره څلور مياشتي او لس ورځي د عدت موده مقرر کړې شوه.

**فائده** : دا چه پورته مونږ کومه تشريح کړې ده دا د جمهورو په رائې باندې ده ګينې د ابن عباس رائې په دې سلسله کښې د مسلک جمهور خلاف ده لکه چه وړاندې په باب من راى التحول کښې به مونږ دا خبره بيان کړو.

الاثر اخرجه النسائی (تکملة المنهل)

## بَابُ إِحْدَادِ الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا

### د ښځې دپاره د خاوند په مرګ باندې د ماتم کولو بيان

احداد ([2]) کوم ته چه غم کول وئيلې شی يعنی ترک زينت او د خاوند په مرګ باندې د غم اظهار کول ([3]) يعنی د عدت په موده کښې چه کوم څلور مياشتې او لس ورځې دي، چه په

---

[1] ): سنن النسائي/الطلاق ٦٩ (٣٥٧٣)، (تحفة الأشراف: ٦٢٥٠، ١٩١١٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/التفسير ٤١ (٤٥٣١)، الطلاق ٥٠(٥٣٤٤) (حسن)

[2] ) د باب افعال نه او په دې کښې دويم لغت حداد هم دې د مجرد نه د باب نصر او ضرب نه، كذافي الدر المختار، قال ابن عابدين وانكر الاصمعي الثلاثي فاقتصر علي الرباعي)

[3] ) الاحداد هو لغة كما في القاموس ترك الزينة وشرعا ترك الزينة ونحوها لمعتدة بائن او موت. په دې باندې علامه شامی ليکی چه : ترك الزينة للعدة مطلقا ولو من رجعي او كانت كافرة او صغيرة فيكون اعم من الشرعي. اهـ يعنی لغوی معنی عام ده هغه مطلقه رجعيه ته هم شامل دې او هم دغه شان کتابيه ته هم په خلاف د معنی شرعی چه هغه خاص ده د مطلقه بائنه مسلمه سره، خو دا د مسلمه او کافره فرق صرف د احنافو په نزد دې كماسياتي)

هغې کښې د داسې رنګين جامو اغوستلو ممانعت دې چه هغې نه مقصود زينت وی (١) او هغه جديده وی، د عدت په زمانه کښې د کومو څيزونو نه بچ کيدل ضروری دی د دې باب وړاندې راروان دې.

خان پوهه کړه چه متوفى عنها زوجها باندې د عدت په زمانه کښې احداد واجب دې د جمهورو په نزد ومنهم الائمة الاربعة، او د حسن بصری مسلک دا ليکلې دې چه د هغه په نزد واجب نه دې، او معتدة الطلاق په باره کښې دا ده چه په مطلقه رجعيه باندې خو بالاتفاق واجب نه دې، او د مطلقه بائنه په باره کښې د جمهورو مسلک خو هم دا دې، خو په دې کښې د احنافو اختلاف دې د هغوی په نزد په هغې باندې احداد واجب دې.

[۲۲۹۹](٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ بِهَذِهِ الْأَحَادِيثِ الثَّلَاثَةِ، قَالَتْ زَيْنَبُ: دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ حَبِيبَةَ حِينَ تُوُفِّيَ أَبُوهَا أَبُو سُفْيَانَ، فَدَعَتْ بِطِيبٍ فِيهِ صُفْرَةٌ خَلُوقٌ أَوْ غَيْرُهُ فَدَهَنَتْ مِنْهُ جَارِيَةً ثُمَّ مَسَّتْ بِعَارِضَيْهَا، ثُمَّ قَالَتْ: وَاللَّهِ مَا لِي بِالطِّيبِ مِنْ حَاجَةٍ، غَيْرَ أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ، إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا". ثُمَّ دَخَلْتُ عَلَى زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ حِينَ تُوُفِّيَ أَخُوهَا، فَدَعَتْ بِطِيبٍ، فَمَسَّتْ بِهِ، ثُمَّ قَالَتْ: مَا لِي بِالطِّيبِ مِنْ حَاجَةٍ، غَيْرَ أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُولُ: «لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، تُحِدُّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ، إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا» قَالَتْ زَيْنَبُ، وَسَمِعْتُ أُمَّ سَلَمَةَ، تَقُولُ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ ابْنَتِي تُوُفِّيَ عَنْهَا زَوْجُهَا، وَقَدِ اشْتَكَتْ عَيْنَهَا، أَفَتَكْحُلُهَا؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا» مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا، كُلَّ ذَلِكَ يَقُولُ: «لَا» ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّمَا هِيَ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ، وَقَدْ كَانَتْ إِحْدَاكُنَّ فِي الْجَاهِلِيَّةِ تَرْمِي بِالْبَعْرَةِ عَلَى رَأْسِ الْحَوْلِ» قَالَ حُمَيْدٌ: فَقُلْتُ لِزَيْنَبَ، وَمَا تَرْمِي بِالْبَعْرَةِ عَلَى رَأْسِ الْحَوْلِ؟ فَقَالَتْ زَيْنَبُ: «كَانَتِ الْمَرْأَةُ إِذَا تُوُفِّيَ عَنْهَا زَوْجُهَا، دَخَلَتْ حِفْشًا، وَلَبِسَتْ شَرَّ ثِيَابِهَا، وَلَمْ تَمَسَّ طِيبًا حَتَّى تَمُرَّ بِهَا سَنَةٌ، ثُمَّ تُؤْتَى بِدَابَّةٍ، حِمَارٍ أَوْ شَاةٍ أَوْ طَائِرٍ، فَتَفْتَضُّ بِهِ، فَقَلَّمَا تَفْتَضُّ بِشَيْءٍ [ص: ٢٩٠] إِلَّا مَاتَ، ثُمَّ تَخْرُجُ فَتُعْطَى بَعَرَةً، فَتَرْمِي، ثُمَّ تُرَاجِعُ بَعْدُ مَا شَاءَتْ مِنْ طِيبٍ أَوْ غَيْرِهِ»

**ترجمه:** دزينب بنت ابوسلمه رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه زه ام حبيبه رضی الله عنها ته ورغلم کله چه دهغې پلار ابوسفيان نه وفات شوې وو هغې يوه خوشبو راوغوښتله چه زيړ رنګ په کښې و ددې نه ئې لږه شان راواخستله او په يوماشوم ئې ولګوله او بيائې پخپل مخ ولګوله اووئې وئيل په الله قسم ماته دخوشبو لګولو ضرورت نشته لېکن ما دنبی عليه السلام نه اوريدلې دي چه فرمائيلې ئې وو کومه ښځه چه په الله او په رسول ايمان لرى دهغې دپاره حلال نه دى چه په مړي باندې د درې ورځونه زيات ماتم اوکړى او خپل سنګار پريږدي مګردخاوند

(١) ففي الدر المختار: ولبس المعصفر والزعفر، قال ابن عابدين: اي لبس الثوب المصبوغ بالعصفر والزعفران، والمراد بالثوب ما كان جديد التقع به الزينة والا فلا باس به لانه لا يقصد به الا ستر العورة والاحكام تبتني على المقاصد. اهـ

(٢): صحيح البخاري/الجنائز ٣٠ (١٢٨١)، والطلاق ٤٦ (٥٣٣٦)، ٤٧ (٥٣٣٨)، ٥٠ (٥٣٤٥)، صحيح مسلم/الطلاق ٩ (١٤٨٨)، سنن النسائي/الطلاق ٥٥ (٣٥٣٠)، ٥٩ (٣٥٥٧)، ٦٣ (٣٥٦٣)، ٦٧ (٣٥٦٨)، سنن الترمذي/الطلاق ١٨ (١١٩٦)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٣٤ (٢٠٨٤)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٧٦، ١٨٢٥٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطلاق ٣٥ (١٠١)، مسند احمد (٦/٣٢٥، ٣٢٦)، سنن الدارمي/الطلاق ١٢ (٢٣٣٠) (صحيح)

په وفات باندې به څلور میاشتې اولس ورځې ماتم کوي اوعدت به تیروي)، زینب اووئیل زه دزینب بنت جحش خواته لاړم کله چه دهغې ورور عبیدالله بن جحش وفات شوې وو هغې خوشبو راوغوښتله اووئې لګوله اووددې نه پس ئې اووئیل په الله قسم ماته دخوشبو لګولو ضرورت نشته لیکن ما دنبی ﷺ نه اوریدلي دي چه فرمائیلي ئې وو کومه ښځه چه په الله او په رسول ایمان لرې دهغې دپاره حلال نه دی چه په مړي باندې د درې ورځونه زیات ماتم اوکړی او خپل سنګار پریږدي مګردخاوند په وفات باندې به څلور میاشتې اولس ورځې ماتم کوي، زینب اووئیل مادخپل مور ام سلمه رضي الله عنها نه اوریدلي دي چه فرمائیل ئې بوه زنانه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله زمادلور خاوند مړشو اودهغې سترګي خوږیږي آیا رانجه په کښې اچولې شي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل نه، هغې دا سوال دوه پیري پادرې پیري اوکړونبی ﷺ به ورته هر ځل وئیل چه نا رانجه استعمالول منع دي) بیانبی ﷺ اوفرمائیل اوس خوعدت صرف څلور میاشتې اولس ورځې دي او د جاهلیت په زمانه کښې بهٔ تاسو پخپلو سرونوکښې پچې اچولې دحدیث راوی حمید عرض اوکړو ما د زینب رضي الله عنها نه تپوس اوکړو چه دپچو اچولوڅه مطلب دې هغه اووئیل دجاهلیت په زمانه کښې چه به کله د کومې ښځې خاوند مړکیدو نوهغه ښځه به یوې کوټې ته داخل شوه اوزړې شلیدلې اوخرابې جامې به ئې واغوستلې اونه به ئې خوشبولګوله اونه به ئې دسینګار کوم بل څیز استعمالولو تردې پورې چه یو کال به تیرشو بیابه یوڅاروې راوستلې شو خره پاچیلې یا مرغۍ دې ښځې به ددغه څاروی پسې خپل ځان ولګولو نو هغه به اکثر مړکیدو ددې نه پس به بیادې ښځې ته یوه پچه ورکړې شوه هغه به ئې د سر نه تاؤ کړه، اوبه ئې غورځوله بیابه دعدت نه فارغه شوه نوددې نه پس به ئې خوشبو وغیره استعمالوله. امام ابوداود فرمائی الاحفش وړوکي کوټه وئیلې شي.

## توضیح الحدیث

**قوله: عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ بِهَذِهِ الْأَحَادِيثِ الثَّلَاثَةِ..الخ:**

زینب بنت ابی سلمة چه د رسول الله ﷺ ربیبه (پرکټۍ) ده هغې مسلسل درې احادیث بیان کړل، د درې واړو تعلق د مسئله احداد سره دې، او دا درې واړه احادیث نقل هم په یو سند باندې دی.

﴿قالت زینب : دخلت علی ام حبیبة حین توفی ابوها ابو سفیان ﴾اولنې حدیث دې، سیده زینب رضي الله عنها فرمائی چه کله د ام المومنین ام حبیبه رضي الله عنها والد محترم سیدنا ابو سفیان رضي الله عنه وفات شو نو زه هغې ته ورغلم (په ظاهره کښې د تعزیت دپاره) نو کله چه زه هلته لاړم نو هغه وخت هغې د خپلې یوې جینۍ رنګینه خوشبوئی کومې ته چه خلوق وئیلې شي لګوله، چه کله ئې اولګوله نو په لاسونو باندې چه ئې کوم اثر باقی وو هغه ئې په خپل مخ باندې اولګولو، او د مړلو نه پس ئې اوفرمائیل چه والله! ماته دې وخت کښې د دې خوشبوئی لګولو څه حاجت نشته، [1] او دې وخت کښې ما دا خوشبوئی صرف د دې دپاره

[1] ځکه چه د هغې خاوند یعنی رسول الله ﷺ وفات شوې وو، او زنانه خو دول د خپل خاوند دپاره کوی)

لګولي ده چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي وو چه د یو ایمان والا زنانه دپاره دا جائز نه دی چه هغه په یو مړي باندې غم اوکړي د درې ورځو نه زیات، سوا د خپل خاوند نه، نو ګویا مطلب دا شو چه چونکه د خاوند په وفات باندې درې ورځې تیرې شی په دې وجه ما قصدا دا خوشبوئی اولګوله چه په هغه حدیث باندې عمل راشی، دا د هغه احادیث ثلاثه نه یو حدیث شو، اوس هغه وړاندې دویم او دریم حدیث بیانوی.

## ایا په کتابیه باندې هم احداد واجب دې؟

د دې حدیث نه چه یوه مسئله فقهیه مستنبط کیږی هغه واورئ، هغه دا چه د ښځې خاوند وفات شو هغه که ذمیه یعنی کتابیه وی نو په هغې باندې احداد واجب دې یا نه دی؟ د احنافو په نزد واجب نه دې وبه قال ابو ثور وبعض المالکیة، ځکه چه په دې حدیث کښې ﴿تومن امن بالله والیوم الاخر ﴾فرمائیلي دې، پس په دې حدیث باندې امام نسائی ترجمه قائم کړې ده. ﴿ترک الزینة للحادة المسلمة دون الیهودیة والنصرانیة ﴾په دې کښې جمهور علماء او د ائمه ثلاثه اختلاف دې، د هغوی په نزد کتابیه باندې هم احداد واجب دې، هغه د دې وجه په طور د قیاس او دلیل عقلی دا بیانوی چه په نکاح کښې کوم چه د حقوق مسلمه دپاره حاصل دی هم هغه کتابیه دپاره هم حاصل دې، هم دغه شان چه کوم حقوق په مسلمه باندې واجب وی هم هغه به په کتابیه باندې هم وی. (تکملة المنهل) او دلته بله اختلافی مسئله ده چه هغه کوناړه جینئ چه د هغې خاوند وفات شوې دې که هغه وړه وی نو د احنافو په نزد په هغې باندې احداد واجب نه دې د هغې د غیر مکلف کیدو د وجې نه او د ائمه ثلاث په نزد د هغه په حق کښې هم احداد دې، لهذا د هغې چه کوم ولی وی په هغه باندې به دا واجب وی چه په هغه صغیره باندې احداد اوکړی.

قوله: ﴿قالت زینب ودخلت علی زینب بنت جحش حین توفی اخوها فدعت بطیب فمست منه الخ﴾ دا د احادیث ثلاثه نه دویم حدیث دې، بیانولو والا خو زینب بنت ابی سلمة ده، او هغه چه اوس د چا قصه بیانوی هغه ام المومنین زینب بنت جحش رضی الله عنها ده، د هغې مضمون هم بعینه د اول حدیث په شان د مس طیب دې، صرف فرق ئې دا دې چه په اول حدیث کښې ئې د پلار وفات مذکور وو او په دې کښې د رور وفات، د هغه حدیث نه دا خبره هم معلومیږی چه د خاوند نه علاوه د بل یو عزیز په وفات باندې د زنانه دپاره غم کول د درې ورځو نه زیات مباح نه دې، فقهاء کرامو هم دا خبره لیکلې ده، هم دغه شان صرف اباحت دې نه وجوب. (بذل)

قوله: ﴿قالت زینب وسمعت امی ام سلمة تقول: جاءت امراة الی النبی ﷺ..الخ: دا د هغه احادیثو نه دریم حدیث دې کوم چه سیده زینب رضی الله عنها د خپل مور سیده ام سلمه رضی الله عنها نه بیانوی هغه دا چه ام سلمه فرمائی چه یوه زنانه یو ځل رسول الله ﷺ ته راغله، او راتلو سره ئې عرض اوکړو یا رسول الله! زما د لور خاوند وفات شوې دې او د هغې سترګه خوږیږی ایا مونږ په هغې کښې رانجه اچولې شو؟ نو په دې باندې ورته رسول الله ﷺ دوه درې کرته اوفرمائیل چه نه! بیا وړاندې په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿انما هی

اربعة وعشرا وقد كان احداكن في الجاهلية ترمي بالبعرة على راس الحول الخ ﴾
رسول الله ﷺ د هغې په تپوس باندې خفه شو ، چه زنانه د ډول دپاره بهانې ګوري، پس وې فرمائيل چه اوس په اسلام کښې د عدت موده صرف څلور میاشتې او لس ورځې ده (تاسو نه په دې مختصر موده کښې هم صبر نه کیږی) حال دا چه د جاهلیت په زمانه کښې به د هغه کونډې زنانه دا حال وو چه کله به يو کال موده پوره شوه ﴿ترمي بالبعرة ﴾نو پچې به ئې غورځولې د عدت په پوره کولو باندې، وړاندې په روايت کښې د دې جملې تشریح مذکور ده هغه دا چه د جاهلیت په زمانه کښې به چه کله د يوې زنانه خاوند وفات شو نو د هغې عدت به يو کال وو، او هغه د يو کال عدت به ئې ډير په مشکله پوره کولو چه د کور په يوه وړه شان کوټه کښې به اوسیدله او ډیرې بدرنګې کپړې به ئې اچولې، او نه به ئې څه قسم کپړې اچولې او خپل ټول کارونه به ئې په هغه تیاره کوټه کښې کول، بیا به د کال په پوره کیدو باندې هغې ته يو خر بيزه راوستلې شوه او په هغې باندې به کینولې شوه بیا به هغې په دې ځاروی پورې خپله شرمګاه د بدن بله څه حصه مرله، او هغې ته به د پچو يو موټې ورکولې شو او د هغې په غورځولو سره به د خپل عدت د مقام نه بهر راوتله.

په دې روايت کښې راوی دا هم وئیلې دی چه په کوم ځاروی پورې به هغې د خپل بدن حصه مرله هغه به ډير کم بچ پاتې کیدو اکثر به هلاک شو چه د هغې وجه بعض شارحینو دا لیکلې ده چه چونکه هغه کونډې به د دې يو کال په اوږده موده کښې غسل نه کولو نه به ئې جامې صفا کولې، بدن او کپړې به ئې ټولې ګنده شوې، ځائې به ئې هم ګنده وو نو د دې ګندګئ د وجې نه به د هغې په بدن کښې د زهرو اثار پیدا شو په دې وجه به هغه حیوان او مارغه وغیره چه کوم وو هغه به هلاک شو هم دغه شان ﴿ترمي بالبعرة ﴾د تشریح د لاندې هم په شروح کښې ډير څه لیکلې شوې دی، هم دغه شان حضرت شيخ هم په اوجز المسالك کښې تفصیل سره لیکلې دی که څوک غواړی هغه دې اوګوری، په اوجز کښې ئې دا هم لیکلې دی چه د بعض رواياتو نه معلومیږی چه هغې به دغه پچې وړاندې طرف ته ویشتلې، او د بعض نه معلومیږی چه شاته به ئې غورځولې وغیره وغیره. او دا ئې هم لیکلې دی چه رمی بالبعرة اشاره ده د رمی عدت طرف ته چه الله پاک زما نه دا مصیبت لرې کړو، او وئیلې شوې دی چه هغوی به تفاولا داسې کول چه دا ورځې زما نه لرې شوې الله پاک دې دا ورځې ماته دوباره نه ښائی او د پچو خصوصيت د عدت د سپکاوی او د عظمت حق زوج طرف ته د اشاره وه.

قال ابوداود : الحفش بيت صغير... امام ابوداود هم بعض وخت د امام ترمذی رحمه الله په شان چه هغه خو به په کثرت سره داسې کول، یعنی د بعض الفاظ حدیث لغوی معنی بیانوی، او په موطاء کښې دننه دی قال مالك : والحفش البيت الردى.

والحديث اخرجه باقي الجماعة (تكملة المنهل)

# بَابٌ فِي الْمُتَوَفَّى عَنْهَا تَنْتَقِلُ

## د کونډې د منتقل کېدو بیان

دا په مسائل ثلاث کښې باقي مسئله ثلاثه ده، په دويم او په دريم کښې فرق دا دې چه د دې نه مخکښې چه څه تير شو هغه خروج المعتدة لقضاء حاجتها فى النهار واما البيتوتة ففى بيت العدة... يعنې د ورځې د څه ضرورت د وجې نه بهر وتل او شپه په بيت العدة کښې تيرول او دا دريمه مسئله چه کومه ده هغه جواز التحول والانتقال من بيت العدة الى مكان اخر، يعنې بيت العدة لره مستقلا پريخودل او په بل يو کور کښې د عدت تيرولو مسئله ده د هغې دپاره مصنف دلته دوه بابونه قائم کړې دی، په دې اولنی باب کښې ئې عدم جواز انتقال لره ثابت کړې دې کوم چه د ائمه اربعه مذهب دې او په راتلونکی باب کښې ئې د دې جواز ثابت کړې دې، د کوم چه بعض صحابه او تابعين قائل وو، وهي علي وابن عباس وعائشة ومن التابعين الحسن وعطاء.

[۲۳۰۰][1] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، عَنْ عَمَّتِهِ زَيْنَبَ بِنْتِ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، أَنَّ الْفُرَيْعَةَ بِنْتَ مَالِكِ بْنِ سِنَانٍ وَهِيَ أُخْتُ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَخْبَرَتْهَا، أَنَّهَا جَاءَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسْأَلُهُ أَنْ تَرْجِعَ إِلَى أَهْلِهَا فِي بَنِي خُدْرَةَ، فَإِنَّ زَوْجَهَا خَرَجَ فِي طَلَبِ أَعْبُدٍ لَهُ أَبَقُوا، حَتَّى إِذَا كَانُوا بِطَرَفِ الْقَدُومِ لَحِقَهُمْ فَقَتَلُوهُ، فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَرْجِعَ إِلَى أَهْلِي، فَإِنِّي لَمْ يَتْرُكْنِي فِي مَسْكَنٍ يَمْلِكُهُ وَلَا نَفَقَةٍ، قَالَتْ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ"، قَالَتْ: فَخَرَجْتُ، حَتَّى إِذَا كُنْتُ فِي الْحُجْرَةِ أَوْ فِي الْمَسْجِدِ، دَعَانِي أَوْ أَمَرَ بِي، فَدُعِيتُ لَهُ، فَقَالَ: "كَيْفَ قُلْتِ؟" فَرَدَدْتُ عَلَيْهِ الْقِصَّةَ الَّتِي ذَكَرْتُ مِنْ شَأْنِ زَوْجِي، قَالَتْ: فَقَالَ: "امْكُثِي فِي بَيْتِكِ حَتَّى يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ"، قَالَتْ: فَاعْتَدَدْتُ فِيهِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا، قَالَتْ: فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ أَرْسَلَ إِلَيَّ فَسَأَلَنِي عَنْ ذَلِكَ، فَأَخْبَرْتُهُ، فَاتَّبَعَهُ وَقَضَى بِهِ.

**ترجمه:** د فريعة بنت مالك بن سنان دابوسعيد خدری رضی الله عنه دخورنه روايت دې فرمائی چه زه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضره شوم اوتپوس مې ترې کولوچه ايازه خپل خاندان ته لاړه شم کوم چه په بني خدره کښې دې؟ ځکه چه ددې خاوند په تختيدلو غلامانو پسې تلې وو او غلامانو په قدوم مقام کښې مړکړوفريعه دنبی علیه السلام نه تپوس اوکړو چه زماخاوند زما دپاره دخپل طرف نه نۀ کور اونه نفقه پريخودلې ده فريعه ووئيل چه نبی علیه السلام اوفرمائيل چه هو، ته خپل خاندان ته لاړه شه فريعه وائی بيازه ددغه ځائې نه روانه شوم اومسجد يا حجرې ته راغلم نونبی علیه السلام زه را اوغوښتلم اوراته ئې اوفرمائيل چه تاڅنګه واقعه بيان کړه هغې ورته دوباره دخپل خاوند واقعه بيان کړله نبی علیه السلام ورته اوفرمائيل ترڅوچه دې عدت نه وې تيرشوې هم دلته په دې کورکښې اوسيږه، فريعه ووئيل چه بياما څلورمياشتې اولس ورځې هم دلته په دې کورکښې تيرکړې، کله چه دعثمان بن عفان دور خلافت راغې نوهغه ماته يوکس راوليږلودمسئلې د معلومولودپاره نوما ورته مسئله بيان کړه لهذا هغوی ددې پيروي اوکړله اوددې مطابق فيصله ئې اوکړله.

[1]: سنن الترمذي/الطلاق ۲۳ (۱۲۰۴)، سنن النسائي/الطلاق ۶۰ (۳۵۵۸)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۳۱ (۲۰۳۱)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۴۵)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطلاق ۳۱ (۸۷)، مسند احمد (۶/۳۷۰، ۴۲۰)، سنن الدارمي/الطلاق ۱۴ (۲۳۳۳) (صحيح)

**مضمون حديث :**

د حديث مضمون دا دې چه د سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه خور فريعه بنت مالک بن سنان رضي الله عنها خپله واقعه داسې بيانوى چه زما د خاوند څو غلامان وو كوم چه اوتختيدل، هغه وائى چه زما خاوند د هغوى په لټون پسې اووتلو او د مقام قدوم په يو اړخ كښې د هغوى سره ملاؤ شو، خو داسې اوشوه چه هغه غلامانو هغه قتل كړو، هغه وائى چه ما د رسول الله ﷺ نه اجازت اوغوښتلو چه زه د خپل مور او پلار كور ته لاړه شم، ځكه چه زه خاوند په يو داسې كور كښې نه يم پريخودلې كوم چه د هغه خپل مسكن وى او نه د نفقې څه انتظام شته، هغه فرمائى چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل چه ته تلې شې، بيا چه زه د مسئلې د تپوسلو نه روستو روانه شوم نو لا لرې نه اوم تلې چه زه ئې دوباره راطلب كړم او زما نه ئې تپوس اوكړو چه تا زما نه څه مسئله تپوسلې وه؟ ما خپله قصه دوباره عرض كړه، نو رسول الله ﷺ د خپل سابقه حكم نه رجوع اوكړه او وې فرمائيل ﴿امكثى فى بيتک حتى يبلغ الكتاب اجله ﴾ته هم په هغه كور كښې اوسيږه تردې چه عدت پوره شى، بيا هغې هم هغه شان اوكړل، هغه فرمائى چه سيدنا عثمان رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه كښې زما نه د دې مسئلې د تپوسلو دپاره يوسړې راوليږو اوبيا ئې د معلومولو نه پس هم د دې مطابق فيصله اوكړه.

دا حديث د ائمه اربعه د مسلک دليل دې، ابن قدامه هم دغه شان فقهاء كرامو هم په دې مسئله باندې هم د دې حديث نه استدلال كړې دې، دا حديث سنن اربعه دې، رواه بقية اصحاب السنن وقال الترمذى حسن صحيح.

## بَابُ مَنْ رَأَى التَّحَوُّلَ

### باب په عدت كښې نقل مكانى لره د جائز وبونكو بيان

د دې باب غرض د تير باب په شروع كښې ليكلې شوې دې، او دا هم چه كوم حضرات د دې قائل دى.

[۲۳۰۱]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مَسْعُودٍ، حَدَّثَنَا شِبْلٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، قَالَ: قَالَ عَطَاءٌ: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: "نَسَخَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: عِدَّتَهَا عِنْدَ أَهْلِهَا فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَاءَتْ، وَهُوَ قَوْلُ اللَّهِ تَعَالَى: غَيْرَ إِخْرَاجٍ سورة البقرة آية ۲۴۰". قَالَ عَطَاءٌ: "إِنْ شَاءَتِ اعْتَدَّتْ عِنْدَ أَهْلِهِ وَسَكَنَتْ فِي وَصِيَّتِهَا، وَإِنْ شَاءَتْ خَرَجَتْ، لِقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: فَإِنْ خَرَجْنَ فَلا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِي مَا فَعَلْنَ سورة البقرة آية ۲۴۰"، قَالَ عَطَاءٌ: "ثُمَّ جَاءَ الْمِيرَاثُ فَنَسَخَ السُّكْنَى تَعْتَدُّ حَيْثُ شَاءَتْ".

**ترجمه:** دابن عباس رضي الله عنه نه رايت دې فرمائى چه دا آيت منسوخ شوې دې په كوم كښې چه ددې خبرې ذكردې چه متوفي عنها زوجه به په خپل كوركښې عدت تيروي اوس چه هر چرته عدت تيرول غواړې تيرولې شي اوهغه داقول دالله تعالى دې غير اخراج عطاء ورته ووئيل كه چرې ښځه غواړې نوپه خپل كوركښې دې عدت تيركړي دخپل اهل سره اوكه خوښه ئې وي نولاړه دې شي دالله تعالى ددې قول په بناء باندې ﴿فإن خرجن فلا جناح

[1]: صحيح البخاري/التفسير ۴۱ (۴۵۳۱)، الطلاق ۵۰ (۵۳۴۴)، سنن النسائي/ الكبري/ الطلاق (۵۷۲۵)، (تحفة الأشراف: ۵۹۰۰) (صحيح)

عليكم فيما فعلن») عطاء ووئيل هركله چه دميراث آيت راغي نو په كور كښي عدت تيرول منسوخ شول لكه څنګه چه دكال نفقه منسوخ شوه اوس چه چرته عدت تيرول غواړي تيرولي شي.

## د جمهور او ابن عباس مسلک تشريح او کيفية استدلال:

دا مخکښي تير شو چه سيدنا ابن عباس او عطاء د بيت العدت نه د انتقال د جمهور د مسلک خلاف د جواز قائل دی، د هغوی استدلال د آيت الحول نه دې او دا هم مخکښي تير شو چه متوفّی عنها زوجها په عدت سره متعلق دلته په سورة بقرة کښي دوه آيتونه دی، يو آيت التربص چه په هغي کښي دا دی ﴿يتربصن بانفسهن اربعة اشهر وعشرا﴾او دويم آية الحول کوم چه په حديث الباب کښي مذکور دې چه د هغي حاصل دا دې چه متوفى عنها زوجها په بيت العدت کښي تر يو کال پورې اوسيږي، څوک دې هم هغه د هغه ځائې نه اوباسی، او که هغه پخپله اوځی نو جدا خبره ده، ﴿فان خرجن فلا جناح عليكم﴾اوګورئ، د دې آيت کريمه نه جواز انتقال او خروج صاف طور معلوميږي، هم د دې ابن عباس او عطاء قائل دې.

بيا به دلته دا تپوس وی چه آيت الحول نه دوه حکمونه معلوميږي، اول د عدت يو کال کيدل، دويم جواز انتقال، نو چه کله ابن عباس د ﴿اية الحول﴾قائل دې نو بيا د هغه په نزد عدة الوفات هم يو کال کيدل پکار دی حال دا چه هغه د دې قائل نه دې، د دې جواب دا دې چه د سيدنا ابن عباس رضي الله عنه په نزد د آيت الحول مفهوم دا نه دې چه د عدت موده يو کال ده، بلکه د دې مفهوم دا دې چه خاوند له پکار دی چه د وفات نه مخکښي د زوجه دپاره د دې خبرې وصيت اوکړی چه د کور خلق به هغه ښځه د کور نه يو کال پورې نه اوباسی، يعنی کونډې ته تر يو کال پورې حق سکنی حاصل دې، څلور مياشتې لس ورځې خو د عدت په ضمن کښي او باقي اووه مياشتې شل ورځې د مزيد عدت نه علاوه، او دا مطلب نه دې چه مدة العدة هم يو کال دې هغه خو هم هغه څلور مياشتې او لس ورځې، خو حق سکنی هغې ته د يو کال کيدل پکار دی، په داسې طريقه ابن عباس د آية الحول قائل دې، د دې تقرير تقاضه دا ده چه د ابن عباس په نزد آية التربص په نزول کښي مقدم دې لکه چه هغه په تلاوت کښي هم مقدم دې، او آية الحول په نزول کښي د دې نه موخر دې، او د جمهور علماء کرامو رائې دلته دا ده چه اية الحول تعلق د اصل عدت سره دې او هغه په نزول کښي مقدم دې اګر چه په تلاوت کښي مؤخر دې، لهذا د عدت الوفات موده يو کال شوه، بيا روستو آية التربص نازل شو، چه دا راغلو نو اية الحول ئې منسوخ کړو، او د عدت موده په ځائې د يو کال څلور مياشتې او لس ورځې شو، پس چه کله آيت الحول منسوخ شو نو د خپل هر دوه جزونو په اعتبار سره منسوخ شو، مدةالعدة او جواز خروج، په دې وجه جمهور د جواز خروج قائل نه دی، او د هغه په نزد آية الحول نه جواز خروج باندې استدلال صحيح نه شو، بيا وړاندې په حديث الباب کښي دا دی چه ابن عباس رضي الله عنه فرمائی بيا روستو چه کله آيت ميراث نازل شو نو په دې سره هغه حق سکنی منسوخ شو، ښه ځان پوهه کړه چه دا مقام دقيق او ګران دې، بلکه من مزال الاقدام دې، پس حضرت په

بذل کښې لیکي چه د صاحب عون المعبود نه د دې مقام په فهم کښې غلطي واقع شوې ده. والحديث اخرجه ايضا الطبرى، واخرجه النسائى مختصرا والبخارى معلقا (تکملة المنهل) په صحیح بخاری کښې دا حدیث تعلقیا په ډیرو ځایونو کښې منقول دې، په کتاب التفسير کښې او په کتاب الطلاق کښې په باب قول الله تعالى والذين يتوفون منكم ويذرون ازواجا الاية کښې.

## بَابٌ فِيمَا تَجْتَنِبُهُ الْمُعْتَدَّةُ فِي عِدَّتِهَا

### باب د عدت تیرونکې ښځې لره چه د کومو څیزونو نه بچ کیدل پکار دی د هغې بیان

[۲۳۰۲](۱)حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدَّوْرَقِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، حَدَّثَنِي هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ. ح وحَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْجَرَّاحِ الْقُهُسْتَانِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ يَعْنِي ابْنَ بَكْرٍ السَّهْمِيَّ، عَنْ هِشَامٍ، وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ الْجَرَّاحِ، عَنْ حَفْصَةَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُحِدُّ الْمَرْأَةُ فَوْقَ ثَلَاثٍ إِلَّا عَلَى زَوْجٍ، فَإِنَّهَا تُحِدُّ عَلَيْهِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا، وَلَا تَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا إِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ وَلَا تَكْتَحِلُ وَلَا تَمَسُّ طِيبًا إِلَّا أَدْنَى طُهْرَتِهَا إِذَا طَهُرَتْ مِنْ مَحِيضِهَا بِنُبْذَةٍ مِنْ قُسْطٍ أَوْ أَظْفَارٍ". قَالَ يَعْقُوبُ مَكَانَ عَصْبٍ: "إِلَّا مَغْسُولًا". وَزَادَ يَعْقُوبُ: "وَلَا تَخْتَضِبُ".

**ترجمه:** دام عطية رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دي ماتم به نه کوي هیڅ یوه ښځه زیات د درې ورځونه مگرپه خاوندباندې یعنی چه خاوند تې وفات شي ځکه چه دا به ورباندې څلور میاشتې اولس ورځې ماتم کوي اونه به اغوندی رنګ کړې شوي جامې مگر دیمن لکیرداري جامې اونه به رانجه لګوي اونه خوشبو استعمالوي مگر کله چه طهرته نزدې شي نوکله چه پاکه شي نولګه شان خوشبود قسط او اظفار (دخوشبویانو نومونه دی) استعمال کړي. دیعقوب په روایت کښې د عَصْبٍ په ځائې باندې مَغْسُولًا لفظ منقول دې یعنی وینځلي شوي، اودا اضافه ئې هم کړې ده خضاب نکریزي به نه استعمالوي.

**تشريح:** ﴿ولا تلبس ثوبا مصبوغا الا ثوب عصب، ولا تكتحل﴾ او رنګین کپړه دې نه اغوندي یعنی ثوب جدید. رنګین کوم چه قابل زینت وی لکه چه مخکښې تیر شو او فتح القدير ۲۹۵/۳ کښې دی چه د معتده دپاره ﴿ لبس اسود ﴾ په اتفاق د ائمه اربعه جائز دې، البته د ظاهريه په نزد جائز نه ده مثل احمر واخضر دپاره. اهـ

#### په ثوب عصب کښې روایات او د علماء کرامو اختلاف:

په دې روایت کښې د ثوب عصب استثناء ده چه د هغې اغوستل جائز دی، د امام شافعي رحمه الله مسلک خو هم دا لیکلي شوې دې مطلقا، او د امام مالک په نزد هم جائز دې په دې شرط چه غلیظ یعنی سخت نه وی نرې وی، او د احنافو په نزد د ثوب عصب اچول جائز نه دی، كذا في البذل عن الشيخ ابن الهمام، او علامه شامی د علامه زیلعی نه نقل کړې دی چه لبس ممشق یعنی احمر خو ناجائز دې او د لبس عصب په باره کښې لیکلي دی چه

---

(۱): صحيح البخاري/الحيض ۱۲ (۳۱۳)، الجنائز ۳۰ (۱۲۷۸)، الطلاق ۴۷ (۵۳۳۹)، ۴۹ (۵۳۴۲)، صحيح مسلم/الطلاق ۹ (۹۳۸)، سنن النسائي/الطلاق ۶۴ (۳۵۶۴)، ۶۵ (۳۵۶۶)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۳۵ (۲۰۸۷)، (تحفة الأشراف: ۱۸۱۳۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶۵/۵)، سنن الدارمي/الطلاق ۱۳ (۲۳۳۲) (صحيح)

هغه مکروه دي او بيا ئي د دې نه روستو د دې په تفسير کښې څو اقوال ليکلي دي، د دې په تفسير کښې د شارحينو اختلاف دې، يو قول په دې کښې دا دې چه ثوب عصب نه هغه کپړه مراد دې چه د هغې د جوړيدو نه مخکښې د هغې په تار کښې غوټې اولګولې شي او بيا دې هغه رنګ کړې شي، د هغې نه روستو د هغې کپړه جوړه کړې شي، نو کومه کپړه چه داسې جوړه کړې شي هغه به ټوله رنګينه نه وي، بعض رنګين او بعض به سپين وي نو ګويا ممانعت د هغې رنګ کړې شوې کومه چه پوره رنګ شي، او يو تفسير د هغې دا کړې شوې دې چه ﴿عصب﴾ هغه يمنی څادر دې کوم چه سپين جوړ کړې شي او بيا روستو هغه رنګ کړې شي. اهـ من البذل. د دې ټولو نه معلومه شوه چه په حديث کښې د ثوب عصب استثناء د احنافو د مسلک خلاف ده.

ددې جواب په بذل وغيره کښې هم نه دې ليکلي خو زما په ذهن کښې دادی چه اولا د ثوب عصب په تفسير کښې اختلاف دې. د نورو راويانو هم په دې کښې اختلاف دې لکه چه مصنف وړاندې بيان کړل، دريم دا چه دا د نسائی روايت دې ﴿ولا ثوب عصب﴾ په ځائې د ﴿الاثوب عصب﴾، په دې سره څو ټول اشکال رفع شو.

د دې نه پس په روايت کښې د اکتحال هم ممانعت دې قال ابن الهمام: لا من عذر لان فيه ضرورة وهذا مذهب جمهور الائمة وذهب الظاهرية الى انها لا تكتحل ولو من عذر. (بذل)

﴿ ولا تمس طيبا الا ادنى طهرتها اذا طهرت من محيضها بنبذة من قسط واظفار ﴾[1] يعنی خوشبوئی دې هم نه لګوی خو د حيض نه د غسل په وخت په شروع کښې مقدار يسير د قسط او اظفار نه. يعنی معتده به د حيض د غسل نه پس د رائحه کريمه د زائل کولو دپاره لږه شان خوشبوئی د بدن په مخصوص حصو کښې استعمالولې شی، قسط او اظفار دا د واړه د خوشبوئی اقسام دی، دې ته قسط اظفار هم وئيلې شي.

ددې حديث د لاندې "بذل المجهود" کښې احداد سره متعلق بعض جزئيات ليکلي دی چه په هغې کښې بعض دلته هم مخکښې تير شو، فليرجع اليه من شاء... والحديث اخرجه ايضا باقي السبعة الا الترمذی. (تکملة المنهل)

[۲۳۰۳] ([2]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَمَالِكُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ الْمِسْمَعِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ حَفْصَةَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ. وَلَيْسَ فِي تَمَامِ حَدِيثِهِمَا. قَالَ الْمِسْمَعِيُّ: قَالَ يَزِيدُ: وَلَا أَعْلَمُهُ إِلَّا قَالَ فِيهِ: "وَلَا تَخْتَضِبُ". وَزَادَ فِيهِ هَارُونُ: "وَلَا تَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا إِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ".

**ترجمه:** د ام عطيه رضي الله عنها نه دتير شوي روايت په شان روايت نقل شوې دې، يزيد وائی زما خيال دې چه په دې روايت کښې ولا تختضب لفظ هم دې (يعنی نکريزې به نه لګوي اوهارون په دې روايت کښې دا اضافه کړې ده چه رنګ کړې شوې جامې به نه اغوندی مګرهغه يمني

[1] په ابواب التيمم کښې تير شوې دی چه هغه ظفار دې د روايت الفاظ دی ﴿من جزع ظفار﴾ هلته جلد اول کښې ظفار (د اظفار دواړو تحقيق تير شوې دې)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۸۱۳٤) (صحيح)

جامې چه کرخې په کښې وي.

[۲۳۰٤]()حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، حَدَّثَنِي بُدَيْلٌ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا لَا تَلْبَسُ الْمُعَصْفَرَ مِنَ الثِّيَابِ وَلَا الْمُمَشَّقَةَ وَلَا الْحُلِيَّ وَلَا تَخْتَضِبُ وَلَا تَكْتَحِلُ".

**ترجمه:** دام المومنين ام سلمه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دی چه دکوې ښځې خاوند وفات شي نوهغه دې رنګ کړې شوې جامې نه اغوندی اونه به زيورات استعمالوي اونه به نکريزی او رانجه استعمالوي.

**تشريح:** قوله: ﴿ولا الممشقة ولا الحلی﴾ ممشقة هغه کپړې کوم چه په مشق سره رنګ کړې شوې وی، مشق يعنی الطين الاحمر، سره خاوره کومې ته چه ګيرو وئيلې شی، څنګه چه ګيروا کپړه وئيلې شی، (يعنی سوربخنه کپړا) هم دغه شان د لبس حلی ممانعت دې، په احداد کښې د کالی ټول قسمونه ممنوع دی اګر چه د سرو او سپينو زرو وی يا جواهر يعنی دقيمتی کانړو وی، صرح به الفقهاء والحديث اخرجه ايضا احمد والنسائی والبيهقی. (تکملة المنهل)

[۲۳۰۵]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مَخْرَمَةُ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ الْمُغِيرَةَ بْنَ الضَّحَّاكِ، يَقُولُ: أَخْبَرَتْنِي أُمُّ حَكِيمٍ بِنْتُ أَسِيدٍ، عَنْ أُمِّهَا، أَنَّ زَوْجَهَا تُوُفِّيَ وَكَانَتْ تَشْتَكِي عَيْنَيْهَا فَتَكْتَحِلُ بِالْجِلَاءِ، قَالَ أَحْمَدُ: الصَّوَابُ: بِكُحْلِ الْجِلَاءِ، فَأَرْسَلَتْ مَوْلَاةً لَهَا إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ فَسَأَلَتْهَا عَنْ كُحْلِ الْجِلَاءِ، فَقَالَتْ: لَا تَكْتَحِلِي بِهِ إِلَّا مِنْ أَمْرٍ لَا بُدَّ مِنْهُ يَشْتَدُّ عَلَيْكِ فَتَكْتَحِلِينَ بِاللَّيْلِ وَتَمْسَحِينَهُ بِالنَّهَارِ، ثُمَّ قَالَتْ عِنْدَ ذَلِكَ أُمُّ سَلَمَةَ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تُوُفِّيَ أَبُو سَلَمَةَ وَقَدْ جَعَلْتُ عَلَى عَيْنِي صَبْرًا، فَقَالَ: "مَا هَذَا يَا أُمَّ سَلَمَةَ؟" فَقُلْتُ: إِنَّمَا هُوَ صَبْرٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَيْسَ فِيهِ طِيبٌ، قَالَ: "إِنَّهُ يَشُبُّ الْوَجْهَ، فَلَا تَجْعَلِيهِ إِلَّا بِاللَّيْلِ وَتَنْزِعِينَهُ بِالنَّهَارِ، وَلَا تَمْتَشِطِي بِالطِّيبِ وَلَا بِالْحِنَّاءِ فَإِنَّهُ خِضَابٌ"، قَالَتْ: قُلْتُ: بِأَيِّ شَيْءٍ أَمْتَشِطُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "بِالسِّدْرِ تُغَلِّفِينَ بِهِ رَأْسَكِ".

**ترجمه:** دام حکيم بنت اسيد نه روايت دې چه خاوند ئې مړشو اوددې سترګې خوږيدلې نوهغې به يوقسم رانجه لګول ام سلمه ته يوه وينځه اوليږله چه رانجه استعمال کړم اوکه نه ام سلمه رضي الله عنها اوفرمائيل ليکن که چرې ضرورت زيات وي نودشپې ئې لګوه او دورځې خپلې سترګې پاکوه ام سلمه رضي الله عنها اوفرمائيل يوځل نبي ﷺ زماخواته راغې کله چه زما خاوند ابوسلمه وفات شوې وو مارانجه لګولې وو راته ئې اورفرمائيل داڅه دې ماروئيل دا صبر دې (يوقسم رانجه) اې دالله رسوله په دې کښې خوشبو نشته د نبي ﷺ اوفرمائيل يقينا ددې اثر په مخ پاتې کيږی دا مه استعمالوه مګردشپې او دورځې ئې صفاکوه اوسربه نه ګمنزوې په خوشبوئی سره، اونه به نکريزې استعمالوی څکه چه دارنګ پريږدې ماورته اووئيل اې دالله رسوله سربه څنګه ګمنزوم راته ئې اوفرمائيل دبيرو په پاڼوکښې په بشيدلو اوبو باندې به سر وينځې اوګمنزوې به ئې.

(): سنن النسائي/الطلاق ٦٤ (٣٥٦٥)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٢/٦) (صحيح)

(): سنن النسائي/الطلاق ٦٦ (٣٥٦٧)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٠٠) (ضعيف)

شریح: (د اکتحال په باره کښې روایات مختلف دی، د بعض نه مطلقا منع معلومیږی او د بعض نه د ورځې او د شپې د فرق سره اجازت معلومیږی، هغه روایاتو لره مخې ته ږدلو فقهاء کرامو اصولاً دا فیصله اوکړه چه د عذر په وخت جائز دې، بغیر د عذر نه جائز نه دې، چه هر کله د عذر په وجه باندې جائز شوه نو په دې کښې د ورځې او شپې فرق نه دی کیدل پکار، خو په دې روایت کښې فرق مذکور دې نو دا وئیلې کیدې شی چه ممکنه ده چه دلته څه قوی عذر نه وی په دې وجه فرق کړې شوې دې. والله تعالی اعلم کذا فی بعض الشروح)

قوله: ﴿فتکتحلین باللیل وتمسحینه بالنهار ﴾[1] د شوافعو مسلک هم دا دې چه زنانه د احداد په زمانه کښې که د څه عذر د وجې نه رانجه لګوی نو هغې له پکار دی چه د شپې ئې اولګوی او د ورځې ئې صفا کړی.

## شرح حدیث:

قوله: ثُمَّ قَالَتْ عِنْدَ ذَلِكَ أُمُّ سَلَمَةَ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تُوُفِّيَ أَبُو سَلَمَةَ وَقَدْ جَعَلْتُ عَلَى عَيْنِي صَبْرًا..الخ:

ام المومنین سیده ام سلمه رضی الله عنها پورته دا مسئله بیان کړې وه چه د شپې دې رانجه لګوی او د ورځې دې هغه صفا کوی، د دې په دلیل کښې هغه خپله واقعه بیانوی چه کله زما د مخکښې خاوند ابو سلمه رضی الله عنه انتقال اوشو او ما په خپلو سترګو باندې د ایلوې پوستکې لګولې وو (علاجا د څه تکلیف د وجې نه) نو رسول الله ﷺ ماته په طور د انکار اوفرمائیل چه ﴿انه یشب الوجه ﴾ چه دا خو صحیح ده چه په دې کښې خوشبوئی نشته خو دا په مخ کښې چمک پیدا کوی، او بیا ئې اوفرمائیل چه دا د شپې لګوه او د ورځې ئې لرې کوه.

او وې فرمائیل چه په خوشبودار تیلو سره سر مه ګومنځوه، یعنی د امتشاط (سر ږمنځ کولو) په وخت تیل مه استعمالوه او نه په نکریزو سره خضاب کوه، هغې عرض اوکړو چه بیا په څه څیز سره امتشاط کوم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل د بیرې په پاڼړو باندې، د هغې نه د خپل سر غلاف جوړ کړه، یعنی د بیرې پاڼړو لره میده کړه او د نکریزو په شان ئې په سر اولګوه د ویښتو د صفا ستهرا کولو د پاره، او بیا ئې د هغې نه پس د ګومنځ په ذریعه خپل ویښته صفا کړه. والحدیث اخرجه النسائی (تکملة المنهل)

[1] د اکتحال په باره کښې روایات مختلف دی، د بعض نه مطلقا منع معلومیږی، او د بعض نه د ورځې او شپې د فرق سره اجازت معلومیږی، دې روایاتو لره مخې ته ږدلو سره فقهاء کرامو اصولاً دا فیصله کړې ده چه د عذر په وخت جائز دې، بغیر د عذر نه جائز نه دې، چه هر کله د عذر په وجه باندې جائز شوه نو په دې کښې د ورځې او د شپې فرق نه دی کیدل پکار، خو په دې روایت کښې فرق مذکور دې نو دا وئیلې کیدې شی چه کیدې شی چه دلته عذر قوی نه وی په دې وجه فرق کړې شوې دې. والله اعلم کذا فی بعض الشروح)

# بَابٌ فِي عِدَّةِ الْحَامِلِ

## د حاملې د عدت بیان

**په دې مسئله کښې مذاهب ائمه:**

د عدت وفات موده څو څلور میاشتې او لس ورځې ده که زنانه حامله نه وی، که حامله وی نو د جمهورو ومنهم الائمة الاربعة په نزد وضع حمل دې، په دې کښې بعض صحابه لکه سیدنا علی او ابن عباس، ابو السنابل بن بعکک اختلاف دې، د هغه حضراتو په نزد د حامله عدت اخر الاجلین دې یعنی په دې دواړو (څلور میاشتې لس ورځې او وضع حمل) کښې چه کومه خبره هم بیا موندلې شی په دې درې واړو حضراتو کښې اخر دوه ابن عباس او ابو السنابل نه ددې قول نه رجوع منقول ده، بعض شارحینو د سحنون مالکی نه هم دا قول نقل کړې دې.

وړاندې په کتاب د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قول راروان دې چه هغه اوفرمائیل ﴿من شاء لاعنته لا نزلت سورة النساء القصرى بعد الاربعة الاشهر وعشرا﴾ د سورة النساء قصری نه مراد سورة الطلاق دې چه په هغې کښې دا آیت کریمه مذکور دې، ﴿واولات الاحمال اجلهن ان يضعن حملهن﴾ یعنی د سورة الطلاق والا آیت کریمه د سورة بقره په آیت کریمه کښې تخصیص پیدا کړو، جمهور خو د تخصیص قائل دی خو د ابن مسعود رضی الله عنه د ظاهری کلام نه دا معلومیږی چه هغه دا په نسخ باندې محمول کړې دې، والصحيح ما عليه الجمهور، په دې باب کښې مصنف د سبعیه اسلمیه واقعه ذکر کړې ده چه هغه د سعد بن خوله په نکاح کښې وه، پس د هغه په حجة الوداع کښې په مکه مکرمه کښې وفات شو، هغه دې وخت کښې حامله وه، د هغه د وفات نه څو ورځې پس د هغوی وضع حمل اوشو. ﴿فلم تنشب ان وضعت حملها بعد وفاته﴾ او د بخاری په یو روایت کښې دی ﴿بعد وفات زوجها بليال﴾ [1] او په سنن ترمذی کښې ابو السنابل بن بعکک نه روایت دې ﴿قال وضعت سبعة بعد وفات زوجها بثلاث وعشرين يوما او خمسة وعشرين يوما﴾

[۲۳۰٦] (2) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، "أَنَّ أَبَاهُ كَتَبَ إِلَى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَرْقَمِ الزُّهْرِيِّ يَأْمُرُهُ، أَنْ يَدْخُلَ عَلَى سُبَيْعَةَ

---

[1] اصل کښې په بخاری کښې دا روایت دوه ځایونو کښې دې یو په کتاب الطلاق او دویم په کتاب التفسیر کښې، په کتاب الطلاق کښې یوځانې کښې خو دی ﴿بعد وفات زوجها بليال﴾ او هم د دې باب په دویم روایت کښې دی ﴿قريبا من عشر ليال﴾ او په کتاب التفسیر کښې د سورة الطلاق په تفسیر کښې داسې دی ﴿فوضعت بعد موته باربعين ليلة﴾ علامه عینی په دې سلسله کښې نور هم مزید مختلف روایتونه ذکر کړې دی پس هغه لیکی: وعند احمد: فلم امكث الا شهرين وعند النسائي: بعشرين ليلة وعند ابي حاتم بعشرين او خمس عشرة، بیا هغه لیکی: والجمع بين هذه الروايات متعذر لاتحاد القصة فلعل ذلك هو السر في ابهام من ابهم المدة. اهـ عمدة القاري ۹۲/۱۷)

(2): صحيح البخاري/المغازي ۱۰ (۳۹۹۱ تعليقًا)، الطلاق ۳۹ (۵۳۲۰)، صحيح مسلم/الطلاق ۸ (۱۴۸۴)، سنن النسائي/الطلاق ۵٦ (۳۵۱۸، ۳۵۱۹)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۷ (۲۰۲۸)، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۹۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۳۲/٦) (صحيح)

بِنْتِ الْحَارِثِ الْأَسْلَمِيَّةِ فَيَسْأَلُهَا عَنْ حَدِيثِهَا وَعَمَّا قَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ اسْتَفْتَتْهُ، فَكَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ إِلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ يُخْبِرُهُ، أَنَّ سُبَيْعَةَ أَخْبَرَتْهُ، أَنَّهَا كَانَتْ تَحْتَ سَعْدِ بْنِ خَوْلَةَ وَهُوَ مِنْ بَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ، وَهُوَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا فَتُوُفِّيَ عَنْهَا فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَهِيَ حَامِلٌ، فَلَمْ تَنْشَبْ أَنْ وَضَعَتْ حَمْلَهَا بَعْدَ وَفَاتِهِ، فَلَمَّا تَعَلَّتْ مِنْ نِفَاسِهَا تَجَمَّلَتْ لِلْخُطَّابِ، فَدَخَلَ عَلَيْهَا أَبُو السَّنَابِلِ بْنُ بَعْكَكٍ رَجُلٌ مِنْ بَنِي عَبْدِ الدَّارِ، فَقَالَ لَهَا: مَالِي أَرَاكِ مُتَجَمِّلَةً، لَعَلَّكِ تَرْتَجِينَ النِّكَاحَ، إِنَّكِ وَاللَّهِ مَا أَنْتِ بِنَاكِحٍ حَتَّى تَمُرَّ عَلَيْكِ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ، قَالَتْ سُبَيْعَةُ: فَلَمَّا قَالَ لِي ذَلِكَ، جَمَعْتُ عَلَيَّ ثِيَابِي حِينَ أَمْسَيْتُ، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذَلِكَ، فَأَفْتَانِي بِأَنِّي قَدْ حَلَلْتُ حِينَ وَضَعْتُ حَمْلِي، وَأَمَرَنِي بِالتَّزْوِيجِ إِنْ بَدَا لِي ". قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: وَلَا أَرَى بَأْسًا أَنْ تَتَزَوَّجَ حِينَ وَضَعَتْ وَإِنْ كَانَتْ فِي دَمِهَا، غَيْرَ أَنَّهُ لَا يَقْرَبُهَا زَوْجُهَا حَتَّى تَطْهُرَ.

**ترجمه:** دعبيدالله بن عبدالله بن عتبه نه روايت دي فرمائی چه زما پلار عمربن عبدالله بن ارقم زهری ته وليکل اوحکم ئي ورته اوکړو چه سبيعه اسلمي ته ورشه اوتپوس ترې اوکړه دهغه حديث په باره کښې کله چه هغې دنبی ﷺ نه دشرعي حکم تپوس کړې وو عمربن عبدالله عبدالله بن عتبه ته په جواب کښې اوليکل چه سبيعه ماته فرمائيلي دي چه زه دسعد بن خوله په نکاح کښې وم څوك چه دقبيله عامربن لوئ والادې اوپه عزوه بدرکښې شريك شوې وو او بيا په حجة الوداع کښې وفات شو او په هغه وخت کښې زماحمل وو زما دخاوند دوفات نه يوڅو ورځې پس زما يوبچې پيداشو کله چه زه دبيماری نه فارغه شوم نوماپه دې عرض سنګار اوکړو چه ماته دنکاح پيغام راشي، چنانچه ماته يوکس چه نوم ئي ابوسنابل بن بعکك وو راغې اوتپوس ئي اوکړو څه وجه ده چه سنګاردې کړې دې شايد د نکاح کولو اراده لرې په الله قسم ترڅوچه څلور مياشتې اولس ورځې نه وې تيرې شوې نوته دويمه نکاح نه شې کولې سبيعه وائی کله چه ماداخبره واوريده ماخپلې کپړې واغوستلې اودنبی عليه السلا په خدمت کښې حاضره شوم اوټوله واقعه مې ورته عرض کړه نبی ﷺ اوفرمائيل دبچې په پيدا کيدوسره ته حلاله شوې يعنی ستاسره بل څوك نکاح کولې شي اوحکم ئې راته اوکړوکه ستاخوښه وي نونکاح اوکړه، ابن شهاب وئيلي دي چه ماته څه بدې نه ښکارې که چرې ښځه دبچې دپيدائش سره فورا نکاح اوکړی ليکن دا ضروري ده چه داسې زنانه به دخپل نوې خاوند.سره جماع نه کوې ترڅوچه پاکه شوې نه وې.

**تشريح:** ﴿فلما تعلقت من نفاسها تجملت للخطاب﴾ يعنی هغه چه کله د نفاس نه پاکه شوه نو د پيغام نکاح راليږلو والا دپاره ډولی شوه، وړاندې په روايت کښې دی چه هم په دې ورځو کښې ابو السنابل بن بعکک هغې ته لاړو، چه هغه ئې ډولی اوليده نو وې وئيل چه کيدې شي ستا اراده د نکاح کولو وی، والله ته تر هغه وخته پورې نکاح نه شې کولې چه ترڅو پورې څلور مياشتې او لس ورځې نه وی تيرې شوې، بيا وړاندې په روايت کښې دی چه د هغې نه روستو هغه په خپله مسئله کښې رسول الله ﷺ ته حاضره شوه او تپوس ئې اوکړو نو هغه ورته اوفرمائيل چه ته په وضع حمل سره حلاله شوې ئې.

وړاندې په کتاب کښې دی امام زهری فرمائی چه په نکاح کښې هيڅ اشکال نشته هغه د وضع حمل نه روستو فورا کولې شي د نفاس په حالت کښې البته په دې صورت کښې به د زوج دپاره نزديکت جائز نه وی ترڅو پورې چه هغه پاکه شوې نه وی.

په تکملة المنهل کښې دی چه د ائمه اربعه هم دا مذهب دې بخلاف الحسن والشعبی والنخعی فانهم قالوا لا تنکح حتی تطهر من النفاس.... دا حدیث دلته په روایت د سبیعه دې، دې حدیث په باره کښې منذری فرمائی : واخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجة، واخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی من حدیث ام سلمة زوج النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**فائده** : امام ترمذی رحمه الله دا حدیث په طریق د اسود عن السنابل تخریج کولو نه پس فرمائی : حدیث ابی السنابل حدیث مشهور غریب من هذا الوجه ولا نعرف للاسود شیئا عن ابی السنابل، او د دې نه پس په خپل تائید کښې د امام بخاری نه دا فرمائیل غواړی چه کله د اسود سماع د رسول الله ﷺ نه ثابته نه ده هم دغه شان ظاهره دا ده چه د ابو السنابل نه هم نه ده، او که ابو السنابل رضی الله عنه د رسول الله ﷺ د مرګ نه روستو ژوندې پاتې شوې وې نو سماع ممکن وه، په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی چه اسود په کبار تابعینو کښې دې د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د اصحابو نه دې، او مدلس هم نه دې لهذا حدیث علی شرط مسلم صحیح دې خو امام بخاری د خپل مسلک او قاعدې مطابق هغه خبره کړې ده کومه چه ترې امام ترمذی نقل کړې ده، یعنی معنعن لره په اتصال باندې محمول کولو دپاره کم از کم یو ځل ثبوت لقاء کیدل.

د دې نه پس پوهه شئ چه په دې سلسله کښې د ابن سعد رائې د امام بخاری رحمه الله خلاف ده هغه بالجزم دا خبره کړې ده چه ابو السنابل د رسول الله ﷺ نه روستو ډیر وخته پورې ژوندې وو، تردې چه خپله ابو السنابل د سبیعه اسلمیه سره دې واقعې نه روستو نکاح اوکړه او بیا د هغې نه هلک پیدا شو چه د هغه نوم ئې سنابل کیخودلو، چه د هغې تقاضه دا ده چه ابو السنابل د رسول الله ﷺ نه روستو ډیر وخته پورې ژوندې وو.

[۲۳۰۷](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، قَالَ عُثْمَانُ: حَدَّثَنَا، وَقَالَ ابْنُ الْعَلَاءِ: أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ مُسْلِمٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "مَنْ شَاءَ لَاعَنْتُهُ لَأُنْزِلَتْ سُورَةُ النِّسَاءِ الْقُصْرَى بَعْدَ الْأَرْبَعَةِ الْأَشْهُرِ وَعَشْرًا".

**ترجمه**: دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه که دچاخوښه وي زه ورسره مباهلې ته تیاریم زماسره دې لعان اوکړی چه وړوکې سورت نساء یعنی دسورت طلاق آیت (اربعة اشهر وعشرًا) نه پس نازل شو.

## بَابٌ فِي عِدَّةِ أُمِّ الْوَلَدِ

### دام ولدې دعدت بیان

**په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه** :

د ام ولد مولی که وفات شی نو په هغې باندې هم عدت واجب دې، خو د هغې په موده کښې اختلاف دې، د ائمه ثلاث په نزد ﴿تعتد بحیضة﴾ او د امام احمد مشهور روایت خو هم

(1): صحیح البخاري/ تفسیرسورة الطلاق ۲ (٤۹۰۹)، سنن النسائي/الطلاق ٥٦ (۳٥٥۲)، سنن ابن ماجه/الطلاق ۷ (۲۰۳۰)، (تحفة الأشراف: ۹٥۷۸) (صحیح)

دا دي کوم چه د شوافعو وغيره مذهب دي، او بل روايت د هغه نه دا دي چه د هغې د عدت موده هم څلور مياشتي او لس ورځي ده، د بعض تابعين لکه سعيد بن مسيب، ابن سيرين، مجاهد او عمر بن عبدالعزيز رحمهم الله هم دا مذهب دي، او د احنافو په نزد د هغې عدت درې حيضه دي، د سيدنا علی او سيدنا ابن مسعود نه هم دا نقل دی، او هم دا قول دې د ابراهيم نخعی، سفيان ثوری او عطاء، صاحب هدايه فرمائی ﴿واما منافيه عمر ﴾چه په دې مسئله کښې زمونږ امام سيدنا عمر رضي الله عنه دې، ثم ذکر اثر ابن عمر، او د ائمه ثلاث دليل اثر ابن عمر دې کوم چه امام مالک په موطاء کښې روايت کړې دې، عن ابن عمررضی الله تعالی عنهما انه قال فی ام الولد يتوفی عنها سيدها تعتد بحيضة.

[۲۳۰۸]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جَعْفَرٍ حَدَّثَهُمْ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ مَطَرٍ، عَنْ رَجَاءِ بْنِ حَيْوَةَ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: "لَا تُلَبِّسُوا عَلَيْنَا سُنَّةً"، قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى: "سُنَّةَ نَبِيِّنَا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِدَّةُ الْمُتَوَفَّى عَنْهَا أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ"، يَعْنِي أُمَّ الْوَلَدِ.

**ترجمه**: دعمروبن العاص رضي الله عنه نه روايت دې هغه به فرمائيل زما نه دهغه سنت مه پټوئ، اوداابن المثني په روايت سنة نبينا الفاظ منقول دي،چه نبی عليه السلام به فرمائيل کوم هلك والا وينځي (ام ولده) خاوند چه وفات شي نوڅلور مياشتي لس ورځي انتظاربه کوي.

**تشريح**: د دې نه روستو حديث الباب اوګورئ:

## توضيح الحديث

دا حديث په مذاهب مذکوره کښې د ابن المسيب او ابن سيرين وغيره دليل دې هم دغه شان احمد فی رواية، بس داسې اوګنړئ چه دا حديث د ائمه اربعه ټولو خلاف دې.

## په حديث الباب باندې د محدثينو نقد:

حافظ ابن القيم رحمه الله په تهذيب السنن کښې په دې حديث باندې د ائمه حديث د طرف نه نقد نقل کړې دې، قال الدارقطنی: قبيصة لم يسمع من عمرو، يعنی دا حديث منقطع دې د قبيصه سماع د عمرو بن العاص نه ثابته نه ده او صحيح دا ده چه دا په عمرو بن العاص باندې موقوف دې، ﴿سنة نبينا ﴾لفظ په دې کښې ثابت نه دې، هم دغه شان دارقطنی د امام احمد نه نقل کړې دی: هذا حديث منکر، هم دغه شان ابن المنذر فرمائی: ضعف احمد وابو عبيد حديث عمرو بن العاص... هم دغه شان ميمونی د امام احمد نه په دې باندې اظهار تعجب نقل کړې دې، او دا چه څلور مياشتي او لس ورځي خو د حره منکوحه عدت دې الی اخر ما فی تهذيب السنن، او دا په شروع کښې تير شو چه د ائمه ثلاث دليل په دې کښې اثر ابن عمر رضي الله عنه دې، او د احنافو مستدل اثر عمر

## د حديث الباب امکانی توجيه:

د دې نه پس په دې ځان پوهه کړئ چه که يو سړې دا سوال اوکړی چه ايا د حديث الباب څه توجيه هم ممکن ده يا نه؟ نو جواب دا دې چه توجيه کيدې شی چه هغې سره دا حديث د

(): سنن ابن ماجه/الطلاق ۳۳ (۲۰۸۳)، (تحفة الأشراف: ۱۰۷۴۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۰۳/٤) (صحيح)

جمهورو خلاف پاتې نه شي او په دې باندې د پوهې دپاره د مسئلې د تفصيل حاجت دې، هغه دا چه د ام ولد دوه قسمونه کيدې شي يوه مزوجه او بله غير مزوجه، د مزوجه مطلب دا دې چه يوه وينزه وه خو ام ولد خو د هغې مولی د هغې د چا سره نکاح اوکړه، پس که په دې حديث کښې د ام ولد نه غير مزوجه مراد کړې شي نو بيا خو د دې هيڅ قسم توجيه ممکن نه ده، که مزوجه مراد کړې شي نو بيا په دې صورت کښې توجيه ممکن ده او په دې صورت کښې بيا مسئله داسې ده چه که ام ولد مزوجه وی نو بيا به د مولی په مرګ پاندې خو عدت واجب نه وی بلکه په مرګ باندې به ئې واجب وی، اوس د زوج د مرګ دوه صورتونه دی، يو دا چه د زوج مرګ د مولی د مرګ نه مخکښې وی، په دې صورت کښې خو د هغه عدت دوه مياشتې او پنځه ورځې دې يعنی د ازادې نه نصف او که مرګ د زوج مولی نه پس وی نو بيا بيشکه په دې صورت کښې به د هغه عدت څلور مياشتې او لس ورځې وی، ځکه چه د مولی په مرګ باندې ام ولد حره (اصيله) شوه، او د حره منکوحه عدت الوفات څلور مياشتې او لس ورځې دې.

حضرت په بذل المجهود کښې ليکلې دی چه مسئله تفصيل طلب ده په دې مختصر شرح کښې د دې ګنجائش نشته. من شاء فليراجع الى بدائع الصنائع وغيره. اهـ په قدر د ضرورت تفصيل مونږ اوليکلو. والحديث اخرجه ايضا احمد والحاکم وصححه، وابن ماجة (تکملة المنهل)

## بَابُ الْمَبْتُوتَةِ لَا يَرْجِعُ إِلَيْهَا زَوْجُهَا حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ

### مطلقې ثلاثې ته خپل خاوند رجوع نه شي کولې ترڅوچه ئې دبل خاوند سره نکاح نه وي کړې

[۲۳۰۹] [1] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ يَعْنِي ثَلَاثًا، فَتَزَوَّجَتْ زَوْجًا غَيْرَهُ، فَدَخَلَ بِهَا ثُمَّ طَلَّقَهَا قَبْلَ أَنْ يُوَاقِعَهَا، أَتَحِلُّ لِزَوْجِهَا الْأَوَّلِ؟ قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَحِلُّ لِلْأَوَّلِ حَتَّى تَذُوقَ عُسَيْلَةَ الْآخَرِ وَيَذُوقَ عُسَيْلَتَهَا".

**ترجمه**: دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې. فرمائي چه دنبي ﷺ نه تپوس اوکړې شو دهغه کس په باره کښې چه خپلې ښځې ته درې طلاق ورکړې اوبيا دهغه نه علاوه دبل خاوند سره نکاح اوکړی اوهغه ورسره خلوت اوکړی اوبيا ئې طلاقه کړې مخکښې دجماع کولونه نو آيا داولنې خاوند دپاره حلاليږي هغې ووئيل نبي ﷺ فرمائيلی دی ترهغه پورې داولنې خاوند دپاره نه حلاليږي ترڅوچه دې ښځې ددويم خاوند ګبين ګوټې نه وی څکلې اوهغه دويم خاوند ددې ګبين ګوټې نه وي څکلې.

**تشريح**: مبتوتة مطلقا بائنه ته وئيلې شي، خو دلته مراد مبتوتة بالثلاث دې، د دې باب تعلق تحيل سره دې (يعنی حلاله)

[1]): سنن النسائي/الطلاق ٩ (٣٤٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٥٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الشهادات ٣ (٢٦٣٩)، والطلاق ٤ (٥٢٦٠)، والساعة ٣٧ (٥٧٩٢)، واللباس ٦ (٥٨٢٥)، والأدب ٦٨ (٦٠٨٤)، صحيح مسلم/النكاح ١٧ (١٤٣٣)، سنن الترمذي/النكاح ٢٧ (١١١٨)، سنن النسائي/النكاح ٤٣ (٣٢٨٥)، سنن ابن ماجه/النكاح ٣٢ (١٩٣٢)، مسند احمد (٣٤/٦، ٣٧، ١٩٢، ٢٢٦، ٢٢٩)، سنن الدارمي/الطلاق ٤ (٢٣١٣) (صحيح)

## د حلاله متعلق بعض اختلافي مسائل :

د تحليل مدار په نکاح ثاني مع الوطي باندې دې، صرف دويمه نکاح کافي نه ده عند الائمة الاربعة. په دې کښې د سعيدبن المسيب اختلاف منقول دې حيث قال يكفى فيه النكاح اخذا بظاهر قوله تعالى فلا تحل له من بعد حتى تنكح زوجا غيره... او جمهور دا وائي چه په دې آيت کريمه کښې د نکاح نه مراد وطي ده کومه چه د نکاح حقيقي معنى ده، او اصل نکاح مستفاد ده د لفظ زوج نه، په دې وجه لفظ نکاح لره د وطي په معنى کښې اخستلې شوې دې.

بيا دويم اختلاف دا دې چه د حلاله دپاره په وطي کښې انزال شرط دې يا نه، فلا يشترط الانزال عند احد خلافا للحسن. په دې حديث کښې جمهور علماء کرامو د "عسيلة" نه د جماع لذت مراد اخستلې دې، او حسن بصري نطفه، په دې وجه باندې هغه انزال لره شرط کړې دې، د دې نه پس پوهه شه چه په دې حديث تحليل کښې بعض مسائل او جزئيات د فقهاء کرامو ترمينځه اختلافي دی. کوم چه د حديث په شروع کښې مذکور دی. مثلا دا چه په حلاله کښې د دې نکاح ثاني د جمهورو په نزد نکاح صحيح کيدل ضروري دی، وشذ الحكم فقال يكفى النكاح الثانى ولو فاسدا، بله دا چه نکاح ثاني که په قصد د تحليل سره وی نو دا مسئله هم اختلافي ده لکه چه په حديث لعن المحل والمحلل له د لاندې په خپل مقام کښې تير شو، هم دغه شان ابن المنذر استدلال کړې دې حتى تذوق عسيلة الاخر نه په دې خبره باندې که زوج ثاني د هغه زنانه سره جماع د خوب يا بيهوشئ په حالت کښې اوکړه نو هغه به کافي نه وی. د عدم ادراک لذت د وجې نه، او هغوی دې ته د ټولو فقهاء کرامو مسلک وئيلې دې، حال دا چه داسې نه ده د جمهور په نزد به کافي شي، او قرطبي د مالکيانو نه په قولين کښې يو قول دا شمار کړې دې، حضرت شيخ په حاشيه بذل کښې د ابو الطيب سندي د شرح نه نقل کړې دی چه د جمهور په نزد کافي کيږی، مصنف په دې باب کښې د عائشه رضي الله عنها حديث مرفوع کوم چه مشهور حديث دې ﴿ولا تحل للاول حتى تذوق عسيلة الاخر ويذوق عسيلتها﴾ ذکر فرمائيلې دې. والحديث اخرجه النسائى واخرجه البخارى ومسلم والترمذى وابن ماجة من حديث عروة عن عائشة. (قاله المنذري)

# بَابٌ فِي تَعْظِيمِ الزِّنَا

### باب: زنا ډيره لويه ګناه ده

يعنى دا باب د زنا د عظيم ګناه کيدو په اثبات کښې دې، هم دغه شان يوه بله ترجمه مصنف په کتاب الجهاد کښې قائم کړې ده. باب فى تعظيم الغلول.

[۲۲۱۰]()[1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُرَحْبِيلَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَيُّ الذَّنْبِ أَعْظَمُ؟ قَالَ: "أَنْ تَجْعَلَ لِلَّهِ نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ"، قَالَ: فَقُلْتُ: ثُمَّ أَيٌّ؟

[1]: صحيح البخاري/ تفسير سورة البقرة ۳ (۴۴۷۷)، والأدب ۲۰ (۶۰۰۱)، والحدود ۲۰ (۶۸۱۱)، والديات ۲ (۶۸۶۱)، والتوحيد ۴۰ (۷۵۲۰)، ۴۶ (۷۵۳۲)، صحيح مسلم/الايمان ۳۷ (۸۶)، سنن الترمذي/تفسير سورة الفرقان (۳۱۸۲)، (تحفة الأشراف: ۹۴۸۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۸۰، ۴۳۴، ۴۲۴، ۴۳۱، ۴۶۲) (صحيح)

قَالَ: "أَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ مَخَافَةَ أَنْ يَأْكُلَ مَعَكَ"، قَالَ: قُلْتُ: ثُمَّ أَيٌّ؟ قَالَ: "أَنْ تُزَانِيَ حَلِيلَةَ جَارِكَ"، قَالَ: وَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى تَصْدِيقَ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ سورة الفرقان آية ۶۸ الْآيَةَ.

**ترجمه:** دعبد الله ﷺ نه روايت دې فرمائي چه ماعرض اوکړ واي دالله رسوله کومه ګناه ډېره لويه ده؟ راته ئې اوفرمائيل داچه ته دالله تعالى سره شريك پيدا اکړي ماعرض اوکړو په دې پسې بله کومه يوه ګناه ډېره لويه ده؟ راته ئې اوفرمائيل چه خپل بچي ددې ويرې نه مړ کړې چه بيابه درسره خوراك کوي، ماعرض اوکړو په دې پسې بله کومه يوه ګناه ډېره لويه ده؟ راته ئې اوفرمائيل داچه ته دګاونډي دښځې سره زنا اوکړې راوى وائى الله تعالى دنبى ﷺ دقول دتصديق دپاره دا آيت نازل کړو: «والذين لا يدعون مع الله إلها آخر ولا يقتلون النفس التي حرم الله إلا بالحق ولا يزنون الخ» الآية (سورة الفرقان) ترجمه: کوم خلق چه دالله نه بغير دبل چا عبادت نه کوى اوپه ناحقه څوک نه قتل کوى کوم چه الله حرام کړى دى او نه زنا کوى.

## توضيح الحديث

د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو د لوئي ګناه په باره کښې نو وې فرمائيل چه د الله پاک سره څوک شريکول حال دا چه الله پاک ته پيدا کړې ئې.

**(ند)** په معنى د شريک چه د هغې جمع **(انداد)** راځي كما فى قوله تعالى **(ويجعلون له اندادا)** سائل ترې تپوس اوکړو چه د هغې نه روستو کومه ګناه؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ته خپل بچي قتل کړې (د دې وړې شان خبرې د وجې) چه هغه به تا سره خوراک کوى، يعنى د دې ويرې د وجې نه چه د هغه نفقه به په تا باندې وى، سائل بيا تپوس اوکړو چه د دې نه روستو کومه ګناه ده؟ وې فرمائيل : دا چه ته د خپل ګاونډى د ښځې سره زنا اوکړې، د ګاونډى قيد د زيات شناعت او قباحت دپاره دې، ځکه چه په دې صورت کښې دوه حقونه ضائع کيږى، د الله پاک حق هم او د ګاونډ حق هم. **فانزل الله تصديق قول النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والذين لا يدعون مع الله الها اخر الاية.**

## شرح حديث :

د دې آيت کريمه نه د پورته ذکر شوى حديث تائيد او تصديق په ظاهره کښې داسې کيږى چه په دې حديث کښې د سائل په سوال باندې رسول الله ﷺ د لويو لويو ګناهونو ترمينځه ترتيب بيان فرمائيلې دې، رسول الله ﷺ په ترتيب کښې د ټولو نه اول شرک لره، د هغې نه روستو قتل ولد ، د هغې نه روستو زنا ذکر کړې ده، هم دغه شان په دې آيت کريمه کښې هم دا ګناه هم په دې ترتيب سره ذکر کړې شوې دى. **والله تعالى اعلم، ولم ار من نبه على ذلک، والحديث اخرجه ايضا احمد وباقى الخمسة (تكملة المنهل)**

[۲۳۱۱]( [1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ حَجَّاجٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: وَأَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: "جَاءَتْ مُسَيْكَةُ مِسْكِينَةٌ لِبَعْضِ الْأَنْصَارِ، فَقَالَتْ: إِنَّ سَيِّدِي يُكْرِهُنِي عَلَى الْبِغَاءِ، فَنَزَلَ فِي ذَلِكَ: وَلَا تُكْرِهُوا فَتَيَاتِكُمْ عَلَى الْبِغَاءِ سورة النور آية ۳۳".

**ترجمه**: د جابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه مسيکه (ديوانصاري وينځه وه) راغله اوعرض ئي اوکړوچه زما خاوندپه ما باندې په زبردستی سره دزنا کاروبارکول غواړي نوددې په باره کښې دا آيت: («ولا تكرهوا فتياتكم على البغاء») نازل شو. (سورة النور: ۳۳)

## توضيح الحديث

قوله: وَأَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: "جَاءَتْ( [2]) مُسَيْكَةُ مِسْكِينَةٌ لِبَعْضِ الْأَنْصَارِ، فَقَالَتْ: إِنَّ سَيِّدِي يُكْرِهُنِي عَلَى الْبِغَاءِ،

بعض انصار نه مراد عبدالله بن ابی رئيس المنافقين دي، مسيکه د هغه د يوې وينځې نوم دې هغه راغله او رسول الله ﷺ ته ئي عرض اوکړو چه زما مالک ما په زنا باندې مجبوره کوی نو په دې باندې مذکوره آيت نازل شو چه د هغې مضمون دا دې چه خپلې وينځې په زنا باندې مه مجبوره کوئ که هغوی پاکې اوسيدل غواړی، دا اخری قيد صرف د مذمت د اظهار دپاره دې چه ډيره د شرم خبره ده چه هغه وينزه خو دې پاک اوسيدل غواړی او تاسو ئې د هغې په خلاف باندې مجبوروئ. والاثر اخرجه ايضا مسلم (تکملة المنهل)

[۲۳۱۲]( [3])حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، أَخْبَرَنَا مُعْتَمِرٌ، عَنْ أَبِيهِ وَمَنْ يُكْرِهْهُنَّ فَإِنَّ اللَّهَ مِنْ بَعْدِ إِكْرَاهِهِنَّ غَفُورٌ رَحِيمٌ سورة النور آية ۳۳، قَالَ: قَالَ سَعِيدُ بْنُ أَبِي الْحَسَنِ: "غَفُورٌ لَهُنَّ الْمُكْرَهَاتِ".

**ترجمه**: معتمردخپل پلارنه روايت بيان کړې دي چه فرمائيل ئي وو دالله تعالی ددې قول: («ومن يكرههن فإن الله من بعد إكراههن غفور رحيم») مراد دادې چه الله دغه مجبورو وينځوته بخښنه کونکې دې

## توضيح الحديث

دا د سعيد بن ابی الحسن بصری رور دې هغه فرمائی چه دا چه کوم آيت کريمه چه کوم خلق په خپلو وينزو باندې د زنا په ذريعه جبر کوی ﴿فان الله غفور رحيم﴾ نو الله پاک غفور او رحيم دې د چا دپاره؟ د مجبوره کونکو دپاره نه بلکه د هغه وينزو دپاره کومې چه مجبوره کړې شوې دی ﴿المكرهات﴾ په ترکيب کښې بدل واقع شوې دې د ﴿لهن﴾ د ضمير مونث نه. وهذا اخر كتاب الطلاق. ( [4])

[1] : تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۸۳۳) (صحيح)
[2] بضم الميم وفتح السين المهملة مصغرا، كما في رواية صحيح مسلم ايضا، وفي بعض نسخ ابي داود كما علي الهامش بطريق النسخة بدلة "سكينة" وليس بصحيح)
[3] : تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۶۸۹) (صحيح)
[4] في المدينة المنورة بتاريخ ۱٤ شوال ۱٤۲۱ هـ)

بسم الله الرحمن الرحيم

# كتاب الصيام

### د روژو احکام او مسائل

## باب مَبْدَإِ فَرْضِ الصِّيَامِ

### بابه د روژې فرض کیدو ابتداء

**مباحث خمسه مفيده :**

دلته پنځه بحثونه دی:

۱: د ماقبل سره مناسبت او ترتیب بین الکتب،

۲: د صوم لغوی او شرعی معنی، ۳: مبداء المشروعية.

۴: وهل فرض قبل رمضان شئ (یعنی آیا د رمضان نه وړاندې څه فرض وو؟)

۵: حکم الصيام (یعنی مصالح صوم).

### بحث اول :

په دې باندې کلام د کتاب الصلاة د شروع نه راروان دې، صلاة، بیا زکاة او کتاب الحج په دې ټولو مواقع کښې د ارکان اربعه ترمینځه ترتیب باندې کلام شوې دې، هم دغه شان د کتاب النکاح په شروع کښې تقدیم النکاح علی الصوم د مصلحت طرف ته اشاره تیره شوې ده، د هغې په باره کښې دلته د څه لیکلو حاجت نشته.

### بحث ثانی :

صوم او صیام دواړه مصدر دی (۱) چه د هغې لغوی معنی الامساک لیکلې شوې ده، یعنی د یو څیز نه منع کیدل که قول وی یا فعل وی، د اول مثال د الله پاک قول ﴿ انی نذرت للرحمن صوما ﴾ ای امساکا وسکوتا. او د دویم مثال قول نابغه (د اسونو احوال بیانولو سره):

خيل صيام وخيل غير صائمة :: تحت العجاج واخرى تلک اللجما(۲)

امام راغب رحمه الله فرمائی چه د صوم لغوی معنی ده امساک په دې وجه هغه اس ته کوم چه د سیر او حرکت نه منع شوې وی هغه ته صائم وئیلې شی،واما شرعا ففی الدر المختار﴿هو امساک عن المفطرات حقيقة اوحكما فى وقت مخصوص وهو اليوم من شخص مخصوص مع النية﴾ یعنی د مخصوص شخص د مفطرات ثلاثه اکل، شرب او جماع نه بندیدل په ورځ کښې د نیت سره، حکما ئې په دې وجه اووې چه د نسیانا خوراک کولو والا حکم د ممسک دې، د شخص

---

(۱) حضرت شیخ په اوجز المسالک کښې د لفظ صوم د لغوی او شرعی معنی په تحقیق کښې فرمائی ﴿فعلم من ذلك ان لفظ الصيام مشترك بين المصدر والجمع، وعلي الثاني جمع للصائم كما حكاه عامة اهل اللغة والتفسير ويشير كلام الفقهاء الي انه جمع للصوم ايضا كما بسطه ابن عابدين اهـ﴾

(۲) یعنی څه اسونه داسې دی چه هغه بالکل ساکن ولاړ دی او بعضې داسې هم شته چه هغه ساکن نه دی بلکه په منډه روان دی د جنګ په میدان کښې په خاورو دوړو کښې او کوم چه نور دی هغه ولاړ دی واګې چیچی.

مخصوص نه مراد مسلمان سړي او هغه مسلمانه زنانه کومه چه د حیض او نفاس نه پاکه وی.

**بحث ثالث : مبدا المشروعیة :**

د دې بیان د کتاب الزکاة په ابتدائی مباحث کښې د زکاة د مشروعیت سره تیر شوې دې، هلته تیر شو چه د زکاة مشروعیت د هجرت په دویم کال شوې دې، او هم دا کال د روژې د فرضیت دې خو په دې دواړو کښې کوم یو مقدم دې زکاة یا صوم؟ په دې کښې دواړه اقوال شته، مال النووی فی الروضة الی الاول، او د اکثرو رائې د دې برعکس ده چه د صوم فرضیت مخکښې دې د زکاة نه، د صوم مشروعیت په شعبان ۲ هجری کښې شوې دې، او د زکاة په شوال ۲ هجری کښې، البته د صدقة الفطر مشروعیت قبل الزکاة د صوم سره شوې دې الی اخر ما ذکر.

**بحث رابع :**

د صوم رمضان نه مخکښې څه روژه فرض وه یا نه؟ حافظ فرمائی چه د جمهور علماء کرامو رائې دا ده او هم دا د شوافعو مشهور قول دې چه صوم رمضان نه مخکښې یوه روژه هم فرض نه وه، او د شوافعو په یو قول کښې او هم هغه د احنافو قول دې چه اول د عاشورا روژه فرض وه او بیا د صوم رمضان په نزول سره هغه منسوخ شوه، او د علامه عینی په کلام کښې دا دی چه وئیلې شوې دی چه د ټولو نه اول د صوم عاشوراء واجب شوې وو، او دویم قول دا دې چه ثلاثة ایام من کل شهر، یعنی هره میاشت د درې روژو وجوب یعنی د هغې نه روستو بیا صوم رمضان.

زه وائم چه د ابوداود په کتاب الصلاة ابواب الاذان کښې عبدالرحمن بن ابی لیلی نه دا حدیث تیر شوې دې کوم چه هغه په ﴿ وحدثنا اصحابنا ﴾وئیلو سره د ډیرو صحابه کرامو نه روایت کړې دې چه ﴿احیلت الصلاة ثلاثة احوال واحیلت الصیام ثلاثة احوال ﴾یعنی په مونځ کښې هم درې تغیرات واقع شوې دی او په روژه کښې هم درې تغیرات واقع شوې دی، په دې روایت کښې چه د صوم کوم تغیرات ثلاثه بیان کړې شوې دی په هغې کښې داسې دی چه رسول الله ﷺ چه کله مدینې ته تشریف راوړلو ﴿امرهم بصیام ثلاثة ایام ثم انزل رمضان ﴾او دویم طریق کښې دی ﴿ان رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کان یصوم ثلاثة ایام من کل شهر ویصوم عاشورا فانزل الله عزوجل کتب علیکم الصیام کما کتب علی الذین من قبلکم الایة ﴾

او د حافظ په کلام کښې تیر شو چه صوم عاشور چه د هغې مشروعیت په شروع کښې شوې وو هغه د شوافعو په قول مشهور کښې غیر واجب یعنی مستحب، او د احنافو په نزد واجب وه، په اوجز کښې د علامه باجی مالکی نه هم دا نقل کړې دی چه په شروع کښې د عاشورا روژه فرض وه بیا په نزول رمضان سره منسوخ شوه.

**ایا روژه د دې امت د خصوصیاتو نه ده؟**

په اوجز کښې یو مستقل بحث دا هم لیکلې دې چه صوم د شرائع سابقه نه دې د دې امت سره خاص نه دې، د دې شروع د ادم علیه السلام نه شوې وه، پس د بعض صوفیاء نه منقول دی چه کله ادم علیه السلام په خپله خطاء یعنی اکل شجره (دبوټی دخوراک) نه د الله پاک په دربار کښې

توبه اوکړه، نو د هغه توبه ډیرش ورځې د قبولیت نه ایساره شوې وه ځکه چه د هغه په خیټه کښې د هغه داني چه کومه ئې خوړلې وه اثر باقي وو، بیا چه کله د هغه دننه بالکل صفا شو د اجزاء حنطه (دغنمو حصې) نه نو بیا د هغه توبه قبوله شوه، په دې وجه دهغه په اولاد باندې دیرش روژې فرض کړې شوې

حافظ ابن حجر د دې روایت د لیکلو نه پس فرمائی چه دا روایت د معتبر کیدو دپاره د ثبوت سند محتاج دې، وهیهات وجدان ذلک (خو د سند ملاویدل بعید دی)

خاص د دې روایت د سند ملاویدل خو اګر چه بعید وی خو د روژې د شرائع قدیمه نه کیدل خو د قران کریم نه ثابت دی. ﴿قال الله تعالی: کتب علیکم الصیام کما کتب علی الذین من قبلکم الی اخر ما فی اوجز المسالک ﴾هم دغه شان په اوجز کښې یو مستقل بحث په دې باندې هم کړې شوې دې چه خاص صوم رمضان په تیرو شوو شریعتونو کښې په یو شریعت کښې وه؟ په دې باره کښې یو قول خو دا دې چه د الله پاک قول ﴿کما کتب علی الذین من قبلکم ﴾په دې آیت کریمه کښې تشبیه مطلق د صوم په اعتبار سره ده د صوم رمضان په اعتبار سره نشته. لهذا صوم رمضان د دې امت د خصوصیاتو نه دې او یو جماعت دا وائی چه د خصائص نه دې بلکه دا روژه په یهودو او نصاری باندې هم فرض کړې شوې وه خو هغه په دې باندې د خپل عادت مطابق د خپل طرف نه ډیر تغییر او تبدیل اوکړو. الی اخر ما فی الاوجز.

## بحث خامس:

د روژې په مشروعیت کښې حکمت او مصلحت او د دې دپاره د رمضان د میاشتې انتخاب، هم دغه شان په لیلة الصیام کښې د مشروعیت تراویح د مناسبت په باره کښې حضرت مولانا محمد منظور نعمانی معارف الحدیث کښې فرمائی.

په سورۃ بقره کښې د رمضان د فرضیت د اعلان فرمائیلو نه پس ارشاد فرمائیلې شوې دې ﴿لعلکم تتقون ﴾یعنی د دې حکم مقصد دا دې چه په تاسو کښې تقوی پیدا شی.

الله پاک انسان ته د روحانیت او حیوانیت یا په نورو الفاظو اووایئ چه د ملکوتیت او بهیمیت نسخه جامعه جوړه کړې ده د هغه طبیعت او جبلت کښې هغه ټول مادی او سفلی تقاضې هم دی کوم چه په نورو حیواناتو کښې هم وی او هم د دې سره د هغه په فطرت کښې د روحانیت او ملکوتیت هغه نورانی جوهر هم دې کوم چه د ملا اعلی لطیف مخلوق فرشتو خاص دولت دې، د انسان د سعادت دارومدار په دې باندې دې چه د هغه دا روحانی او ملکوتی عنصر بیهمی او حیوانی عنصر باندې غالب او حاوی دې او هغه د حدود پابند اوساتی، او دا هله ممکن ده چه کله بهیمی اړخ د روحانی او ملکوتی اړخ فرمانبرداری او اطاعت اوکړی او په دې باندې عادت شی، او د هغې په مقابله کښې سرکشی اونکړې شی.

د روژې د ریاضت خاص مقصد او موضوع هم دا ده چه د دې په ذریعه د انسان حیوانیت او بهیمیت لره د الله پاک د احکاماتو پابندی او ایمانی او روحانی تقاضو د تابعدارئ او فرمانبردارئ سره عادت کړې شی بیا وراندې لیکی او د روژې په وخت د

سحر راختلو نه تر د نمر پريوتلو پورې کيخودلې شوې دې بيشکه دا موده او دا وخت د پورته ذکر شوې مقصد دپاره انتهائي معتدل موده او وخت دې. د دې نه په کم کښې رياضت او د نفس تربيت مقصد نه حاصليږي، او که د دې نه زيات کيخودلې شي مثلا په روژه کښې د ورځې سره سره د شپې هم شاملولې شي او بس د سحر په وخت به د خوراک او څکاک اجازت وې، يا به په کال کښې دوه څلور مياشتې مسلسل د روژو نيولو حکم وې نو د انسانانو د اکثريت دپاره به ناقابل برداشت او د صحت دپاره به ضرري وې.

بيا د دې دپاره مياشت هغه مقرر کړې شوه چه په هغې کښې د قرآن کريم نزول شوې دې، او په کومه کښې چه د برکتونو او رحمتونو والا شپه ليلة القدر ده. ظاهره ده چه هم دا مبارکه مياشته د دې دپاره ډيره موزون او مناسب کيدې شي.

بيا په دې مياشت کښې د ورځو د روژو نه علاوه په شپه کښې هم د يو خاص عبادت عمومي او اجتماعي نظام مقرر کړې شو، کوم چه د تراويح په شکل کښې په امت کښې رائج دې.

د ورځې د روژو سره د شپې د تراويح برکات ملاويدو سره د دې مبارکې مياشتې نورانيت او تاثير کښې هغه اضافه کيږي چه هغه نه د خپل خپل ادراک او احساس مطابق هر هغه بنده محسوس کوی کوم چه د د دې خبرو سره څه تعلق او مناسبت لري. اهـ مختصرا

په تفسير ماجدی کښې دی روژه د الله پاک د حکم په تعميل کښې د تزکيه نفس، د بدن د تربيت دواړو دپاره يو بهترين دستور العمل دې، د اشخاص انفرادي او د امت اجتماعي هر نقطه نظرسره ﴿لعلکم تتقون﴾ په ارشاد سره د اسلامي روژې د اصل غرض او غايت تشريح اوشوه چه په دې سره مقصود د تقوی عادت اچول او امت او افرادو لره متقي جوړول دی. تقوی د نفس د يو مستقل کيفيت نوم دې څنګه چه د ضرري خوراکونو او ضرري عادتونو نه احتياط کولو سره بدني صحت برابريږي او د مادي لذتونو نه د لطف او خوند صلاحيت زيات پيدا کيږي، انسان ښه اوږې کيږي، صحت منده وينه پيدا کيږي هم دغه شان په دې عالم (مخلوق) کښې تقوی اختيارولو سره (يعني خومره عادتونه چه د روحاني صحت او اخلاقي حيات په حق کښې مضر دی د هغې نه په بچ پاتې کيدو سره) د عالم اخرت د لذتونو او نعمتونو نه د خوند اوچتولو صلاحيت او استعداد په انسانانو کښې پوره طريقې سره بيدار وی، او هم دا هغه مقام دې چرته چه د اسلامي روژې افضليت د نورو ټولو قومونو په پريوتلې روژو پاندې علانيه ثابتيږي، او خير د مشرک قومونو او د ناقص او نيمګړې او تش په نامه روژو خو ذکر نشته خپله د مسيحی او يهودی روژو حقيقت هم بس دومره دې چه يا خو د چا نه د څه مصيبت د لرې کولو دپاره نيولې شي يا د څه فوری او مخصوص روحاني کيفيت حاصلولو دپاره، په اسلام کښې روژه نوم دې په خپل قصد او ارادې سره د يو معين مودې پورې د خپل جائز او طبعي خواهشاتو د تکميل نه منع کيدل، او د دې نه يو طرف ته طبي او بدني او بل طرف ته روحاني او اخلاقي چه کومې فائدې حاصليږي افراد او امت دواړو لره د هغې د تفصيل ليکلو دلته ګنجائش نشته. اهـ

او په فوائد عثمانیه کښې د آیت کریمه ﴿لعلکم تتقون﴾ د لاندې لیکلي دي یعنې د روژې نه نفس لره د هغې د مرغوبات نه د منع کولو عادت راځي نو بیا هغې لره د هغه مرغوبات نه کوم چه شرعا حرام دي منع کولې شي او د روژې نه د نفس په قوت او شهوت کښې ضعف هم پیدا کیږي نو اوس به ته متقي شې، ډیر لوئې حکمت د روژې دا هم دې چه د سرکش نفس اصلاح اوشي او د شریعت احکامات کوم چه په نفس باندې درانه وي د هغې کول اسان شي او متقي جوړ شي.

ځان پوهه کړه چه په یهود او نصاری باندې هم په رمضان کښې روژې فرض شوې وې خو هغوی د خپلو خواهشاتو مطابق په هغې کښې تغییر او تبدیل اوکړو نو په ﴿لعلکم تتقون﴾ سره په هغوی باندې تعریض دې، معنی به دا وی چه اې مسلمانانو تاسو د نافرمانئ نه ځان اوساتئ یعنې د یهودو او نصاری په شان په دې حکم کښې خلل مه اچوئ. اهـ

[۲۳۱۳]( )حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ شَبُّوَيْهِ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ سورة البقرة آية ۱۸۳» فَكَانَ النَّاسُ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّوُا الْعَتَمَةَ حَرُمَ عَلَيْهِمُ الطَّعَامُ وَالشَّرَابُ وَالنِّسَاءُ، وَصَامُوا إِلَى الْقَابِلَةِ، فَاخْتَانَ رَجُلٌ نَفْسَهُ فَجَامَعَ امْرَأَتَهُ وَقَدْ صَلَّى الْعِشَاءَ وَلَمْ يُفْطِرْ، فَأَرَادَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ يَجْعَلَ ذَلِكَ يُسْرًا لِمَنْ بَقِيَ وَرُخْصَةً وَمَنْفَعَةً، فَقَالَ سُبْحَانَهُ: عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُونَ أَنْفُسَكُمْ سورة البقرة آية ۱۸۷ الْآيَةَ، وَكَانَ هَذَا مِمَّا نَفَعَ اللَّهُ بِهِ النَّاسَ وَرَخَّصَ لَهُمْ وَيَسَّرَ".

**ترجمه**: دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه دالله تعالی داقول: («یا أیها الذین آمنوا کتب علیکم الصیام کما کتب علی الذین من قبلکم») خلقوچه به کله دنبی علیه السلام په زمانه کښې (درمضان په میاشت کښې) دماسخوتن مونځ اوکړونوخوراك څښاك اوښځې به ورباندې حرامې شوې او دبلې شپې پورې به ئې روژه نیوله نوپه دوی کښې یو کس دخپل ځان سره خیانت اوکړواودخپلې ښځې سره ئې جماع اوکړه اودماسخوتن مونځ ئې کړې ووا و روژه ئې لانه وه ماته کړې، نو الله اراده اوکړه چه په دې کارکښې په خلقوباندې آساني اواجازت ورته ورکړې اوفائده ورته ورکړې نو په دې سلسله کښې الله تعالی دا آیت: («علم الله أنکم کنتم تختانون أنفسکم») نازل کړو، اودا آیت دهغه نه دې چه خلقوته ئې پرې فائده ورکړه او رخصت ئې ورته ورکړو او په دوی ئې آساني راوستله.

### مضمون حدیث:

د دې روایت مضمون دا دې: لکه چه په احیلت الصیام ثلاثة احوال والا حدیث په ابواب الاذان کښې تیر شوې دې چه د روژې په باره کښې چه کوم درې تغیرات شوې دی په هغې کښې یو تغیر دا شوې دې چه په شروع کښې به داسې وه چه روژه دار سړی چه به کله د ماسخوتن مونځ اوکړو نو اوس په هغه باندې طعام او شراب او جماع ټولو څیزونو بندیز اولګیدو د بلې ورځې د ماښام پورې، ګویا د روژې ابتداء به د ماسخوتن د مونځ نه فارغ کیدو سره

( ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٦۲٥٤) (حسن صحیح)

اوشوه، او چه ترڅو پورې به د ماسخوتن نه وو کړې تر هغه وخته پورې به خوراک څکاک وغيره جائز وو، بيا روستو په دې حکم کښې بدلون راغلو چه د هغې ذکر په قرآن کريم کښې دې.

﴿علم الله أنكم تختانون انفسكم ﴾چه د هغې په اخر کښې دا دی ﴿وكلوا واشرابوا حتى يتبين لكم الخيط الابيض من الخيط الاسود من الفجر ﴾د دې تغيير او نزول آيت مقصد ابن عباس رضی الله عنهما بيان فرمائي، ﴿فاختان رجل ﴾چه يو سړي خيانت اوکړو، د دې رجل نه مراد سيدنا عمر بن الخطاب رضی الله عنه دې چه د هغه واقعه په ابواب الاذان کښې تيره شوې ده، چه د هغې حواله اوس پورته راغله، د هغې دلته د ليکلو حاجت نشته.

والحديث سكت عن تخريجه المنذرى وقال في اسناده علي بن حسين بن واقد وهوضعيف. اه عون.

[۲۳۱۴]()حَدَّثَنَا نَصْرُبْنُ عَلِيِّ بْنِ نَصْرٍالْجَهْضَمِيُّ، أَخْبَرَنَا أَبُو أَحْمَدَ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: "كَانَ الرَّجُلُ إِذَا صَامَ فَنَامَ لَمْ يَأْكُلْ إِلَى مِثْلِهَا، وَإِنَّ صِرْمَةَ بْنَ قَيْسٍ الْأَنْصَارِيَّ أَتَى امْرَأَتَهُ وَكَانَ صَائِمًا، فَقَالَ: عِنْدَكِ شَيْءٌ؟ قَالَتْ: لَا، لَعَلِّي أَذْهَبُ فَأَطْلُبُ لَكَ شَيْئًا، فَذَهَبَتْ وَغَلَبَتْهُ عَيْنُهُ فَجَاءَتْ، فَقَالَتْ: خَيْبَةً لَكَ، فَلَمْ يَنْتَصِفِ النَّهَارُ حَتَّى غُشِيَ عَلَيْهِ وَكَانَ يَعْمَلُ يَوْمَهُ فِي أَرْضِهِ، فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَزَلَتْ: أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَى نِسَائِكُمْ قَرَأَ إِلَى قَوْلِهِ: مِنَ الْفَجْرِ سورة البقرة آية ۱۸۷".

**ترجمه:** دبراء بن عازب رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه (دنمر پريوتونه پس) چه به کله څوک اوده شو نو د را رواني روژې دافطار دوخته پورې به دده دپاره خوراک وغيره جائز نه وو، يوځل صرمه بن قيس انصاري دخپلې ښځې خواته راغې او روژه ئې نيولې وه هغه تپوس اوکړو ايادخوراک دپاره څه شته؟ هغې اووئيل څه خوشته نه ليکن زه ځم اوګورم چه څه پيداکړم نوهغه روانه شوه او د صرمه سترګې دخوب نه ډکې وې اوده شو کله چه ښځه واپس راغله اودې پې اوليدو چه اوده شوې دې نووئې وئيل ته خودخوراک نه محروم شوې راروانه ورځ دماسپخين نه مخکښې صرمه ډېرې ولړې په وجه بې هوشه شو اوهغه به تمامه ورځ پخپله زمکه کښې کارکولو نبی عليه السلام ته ددې واقعې ذکر وشو نو په دې وخت کښې دايت: («أحل لكم ليلة الصيام الرفث إلى نسائكم») تر (من الفجر) پورې نازل شو.

**تشريح:** په مخکښې روايت کښې چه د روژې د کوم تغير ذکر د ابن عباس رضی الله عنهما په روايت کښې راغلې دې د هغې يو مقصد خو هلته تير شو، او دويم مقصد چه کوم راپيښ شو هغه په دې روايت کښې د سيدنا براء رضی الله عنه بيان فرمائيلې دې او هغه واقعه ده د صرمة بن قيس انصاری، دا هم په ابواب الاذان کښې تير شوې دی، د هغې د اعادې دلته حاجت نشته.

### په حديث ابن عباس او حديث البراء کښې اختلاف او د هغې توجيه:

البته يو بل څيز قابل ذکر دې هغه دا چه د خوړلو او څکلو په وخت د ابن عباس په روايت کښې تير شوې دی ﴿اذا صلوا العتمة ﴾د دې نه معلوميږي چه د خوراک څکاک د بنديدلو مدار په صلاة عشاء باندې وو او په دې روايت کښې دی ﴿اذا صام فنام ﴾د دې نه معلوميږي

(): صحيح البخاري/الصوم ۱۵ (۱۹۱۵)، سنن الترمذي/تفسير البقرة ۳ (۲۹۶۸)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۱)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الصيام ۱۷ (۲۱۷۰)، مسند احمد (۲۹۵/۴)، سنن الدارمي/الصيام ۷ (۱۷۳۵) (صحيح)

چه د بندیدلو مدار په خوب باندې وو چه د غروب نه پس چه ترڅو پورې اوده نه شی نو خوراک څکاک کولې شی، او که اوده شی نو د اوده کیدو د وجې نه خوراک څکاک ممنوع کیږی، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په روایاتو کښې چه مشهوره ده چه د منع دارومدار په نوم باندې وو (قبل النوم جائز وو بعد النوم ناجائز) او بیا وړاندې لیکی: او ممکنه ده چه د منع تعلق د دواړو سره وی چه په دې دواړو کښې چه د کوم یو تحقق هم مخکښې اوشی نو هم هغه د منع سبب کیږی. والحدیث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی قاله المنذری.

## بَابُ نَسْخِ قَوْلِهِ {وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ}

### د{وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ} د منسوخ کیدو بیان

[۲۳۱۵] (1) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا بَكْرٌ يَعْنِي ابْنَ مُضَرَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ بُكَيْرٍ، عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى سَلَمَةَ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ سورة البقرة آية ۱۸۴ كَانَ مَنْ أَرَادَ مِنَّا أَنْ يُفْطِرَ وَيَفْتَدِيَ فَعَلَ، حَتَّى نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ الَّتِي بَعْدَهَا فَنَسَخَتْهَا".

**ترجمه:** سلمه بن الاکوع نه روایت دې فرمائی کله چه آیت کریمه: («وعلى الذين يطيقونه فدية طعام مسكين») نازل شو یعنی څوک چه روژې نه شی نیولې نو هغوی دې یو مسکین ته خوراک په فدیه کښې ورکړی، په مونږ کښې چه به دچاړه غوښتل روژه به ئې نه نیوله او فدیه به ئې ورکوله تردې پورې چه دا آیت کریمه (فمن شهد منكم الشهر) نازل شو اومخکښې چه کوم اختیار ورکړې شوې وو هغه ختم شو.

**تشریح:** سیدنا سلمه بن الاکوع رضی الله عنه فرمائی چه په شروع کښې چه کله دا آیت کریمه نازل شو ﴿وعلى الذين يطيقونه ﴾نو د دې په وجه باندې به چه د چا زړه غوښتله روژه به ئې نیوله او د چا چه به غوښتله هغه به د روژې په ځائې فدیه ورکوله، بیا چه کله د دې نه روستو آیت نازل شو ﴿فمن شهد منكم الشهر فليصمه ﴾چه څوک په تاسو کښې دې میاشتې ته حاضر شی (مقیم وی مسافر نه وی) نو هغه دې روژه نیسی. نو دې آیت مخکښې حکم منسوخ کړو.

### د ابن عباس او جمهور علماء کرامو په مسلک کښې فرق

په دې کښې د جمهور علماء کرامو رائې دا ده، پس په بخاری کښې د ابن عمر رضی الله عنه نه نقل دی چه هغه فدیه والا آیت کریمه لوستلو سره اوفرمائیل ﴿هی منسوخة ﴾په دې باندې حافظ فرمائی ﴿وخالف فی ذلک ابن عباس فذهب الى انها محكمة لكنها مخصوصة بالشيخ الكبير ونحوه﴾ یعنی د ابن عباس رضی الله عنه په نزد د فدیه والا آیت کریمه منسوخ نه دې بلکه مخصوص دې د شیخ فانی وغیره سره. اهـ من البذل. زه وایم چه د ابن عباس د جمهورو سره په نفس مسئله کښې هیڅ اختلاف نشته بیا د دې باوجود چه څوک د نسخ قائل نه دی د هغې وجه دا ده چه هغوی د فدیه والا آیت کریمه هغه مطلب نه دې اخستلې کوم چه جمهورو اخستلې دې، او کوم مطلب چه ابن عباس رضی الله عنه اخستلې دې د هغې تقاضه هم دا ده چه آیت فدیه دې

(1): صحيح البخاري/تفسير البقرة ٢٦ (٤٥٠٦)، صحيح مسلم/الصوم ٢٥ (١١٤٥)، سنن الترمذي/الصوم ٧٥ (٧٩٨)، سنن النسائي/الصيام ٣٥ (٢٣١٨)، (تحفة الأشراف: ٤٥٣٤)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الصوم ٢٩ (١٧٧٥) (صحيح)

منسوخ نه وی، ښه ځان پوهه کړه والحدیث اخرجه البخاری وسلم والترمذی والنسائی قاله المنذری

[۲۳۱۶](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ سورة البقرة آية ۱۸۴" فَكَانَ مَنْ شَاءَ مِنْهُمْ أَنْ يَفْتَدِيَ بِطَعَامِ مِسْكِينٍ افْتَدَى وَتَمَّ لَهُ صَوْمُهُ، فَقَالَ: فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَهُ وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَكُمْ سورة البقرة آية ۱۸۴ وَقَالَ: فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ سورة البقرة آية ۱۸۵".

**ترجمه**: دعبدالله ابن عباس رضی الله عنه روایت دي فرمائی چه کله دا آیت کریمه: («وعلى الذين يطيقونه فدية طعام مسكين») نازل شو نو چا چه به روژه نیول نه غوښتل نو د یومسکین خوراك به ئي په فدیه کښي ورکړو او روژه به ئي مکمل ګنړلي کیدله لیکن الله تعالى دا آیت نازل کړو یعنی څوك چه دنیکئ په کار کښي مخکښي کیږي نودا غوره ده اوستاسو دپاره روژه نیول بهتردي بیاد الله تعالى دا قول فمن شهد یعنی په چاچه درمضان میاشت راشي نوپه هغي کښي دي روژې ضرور اونیسي اوڅوك چه په سفر کښي وي یا مریض وي نوهغه دي په نورو ورځوکښي روژې اونیسي.

## توضیح الحدیث

د مخکښي حدیث د لاندې دا خبره تیره شوه چه د ابن عباس رضی الله عنه رائي په دې آیتونو کښي د جمهور خلاف ده، او هغه د ایت فدیه د منسوخ کیدو قائل نه دي.

## وعلى الذين يطيقونه کښي اختلاف قراءة:

د دې توضیح دا ده چه ﴿وعلى الذين يطيقونه﴾ کښي دوه قراءتونه دی یو خو هم دا مذکوره او دویم ﴿يطوقونه﴾ او په دې کښي یو دریم قراءت هم بیانولي شی ﴿يطيّقونه﴾ په دې کښي اولني قراءت د جمهورو دې او دوه اخری د ابن عباس رضی الله عنه طرف ته منسوب دی، د جمهور د قراءت معنی خو ظاهره ده چه کوم خلق د روژې نیولو طاقت لری او هغوی مطیع او مستطیع دی، هغوی که په ځائي د صوم افطار اوکړی نو په هغوی باندې فدیه یعنی طعام مسکین واجب دي، جمهورو دا معنی اختیار کولو سره فرمائیلي دی چه دا حکم منسوخ دې ﴿من شهد منكم الشهر فليصمه﴾ په ذریعه، او ابن عباس رضی الله عنه چه کوم قراءت اختیار کړي دې د هغي معنی دا ده چه کوم خلق په تکلف او ډیر زور او طاقت لګولو سره روژه نیولي شی هغوی ته د افطار اجازت دې او بیا فدیه واجب ده. د دې قراءت او تفسیر په صورت کښي د دې مصداق شیخ کبیر وغیره شو چه کله داسي ده نو بیا دا حکم منسوخ نه دې، دا حکم خو اوس هم دې، هم په دې وجه هغه د دې آیت کریمه د نسخ قائل نه دې کما هو مشهور من مذهبه، پس په صحیح بخاری کښي دی عن عطاء سمع ابن عباس يقول: وعلى الذين يطيقونه بفتح الطاء وتشديد الواو ومبنيا للمفعول مخفف الطاء ﴿ فدية طعام مسكين ﴾قال ابن عباس ليست بمنسوخة هو الشيخ الكبير والمراءة الكبيرة لا يستطيعان ان يصوما فيطعمان مكان كل يوم مسكينا، قال الحافظ: هذا مذهب ابن عباس وخالفه الاكثر ﴾

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٥٥) (حسن)

د دې تولو نه پس ته په دې باندې ځان پوهه کړه چه مشهور خو دا ده کوم چه اوس تير شو خو د سنن ابی داود دا روايت کوم چه روان دې د هغې نه خو په ظاهره د ابن عباس رضي الله عنه په نزد د آيت فديه منسوخ کيدل معلوميږي، يعنی کوم چه د جمهورو مسلک دې هم هغه د دې نه مستفاد کيږي، د دې په باره کښې حضرت په بذل المجهود کښې دا ليکلي دی چه ممکنه ده چه داسې اوئيلې شی چه په شروع کښې خو هغه د عدم نسخ قائل وو د جمهورو خلاف ﴿ثم وافق الجمهور وقال بالنسخ ﴾

**فائده** : پورته مونږ ليکلي دی چه په دې آيت کريمه کښې د ابن عباس رضي الله عنه قراءت د جمهورو د قراءت نه مختلف دې او د هر يو معنی هم مختلف ده، په دې کښې مزيد خبره دا ده چه د بعض مصنفين د کلام نه دا معلوميږي چه د ابن عباس رضي الله عنه قراءت هم هغه دې کوم چه د جمهورو دې، خو فرق دا دې چه جمهور خو يطيقونه لره په مثبت باندې محمول کوی يعنی طاقت لرل، او ابن عباس په منفی معنی باندې، يعنی کوم خلق چه مسلوب الطاقة دی، د روژې نيولو په هغوی کښې طاقت نشته ځکه چه ﴿يطيقون ﴾د باب افعال نه دې چه د هغې يو خاصيت سلب ماخذ هم دې. والله اعلم بصحة هذا النقل

# بَابُ مَنْ قَالَ هِيَ مُثْبَتَةٌ لِلشَّيْخِ وَالْحُبْلَى

**د بعضو په قول د فديې حکم د بوډا او د حاملې د پاره اوس هم باقی دې**

[۲۳۱۷](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، أَنَّ عِكْرِمَةَ حَدَّثَهُ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أُثْبِتَتْ لِلْحُبْلَى وَالْمُرْضِعِ".

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه په ذکرشوي آيت کښې دفدي حکم ثابت دي دپاره دحاملې اوتي ورکونکې.

[۲۳۱۸](2) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَزْرَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ سورة البقرة آية ۱۸۴، قَالَ: كَانَتْ رُخْصَةً لِلشَّيْخِ الْكَبِيرِ وَالْمَرْأَةِ الْكَبِيرَةِ وَهُمَا يُطِيقَانِ الصِّيَامَ أَنْ يُفْطِرَا، وَيُطْعِمَا مَكَانَ كُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينًا، وَالْحُبْلَى وَالْمُرْضِعُ إِذَا خَافَتَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: يَعْنِي عَلَى أَوْلَادِهِمَا أَفْطَرَتَا وَأَطْعَمَتَا.

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه کوموبوډاګانو چه روژې نيول شوي دهغوی دپاره رخصت وو چه که ددوی خوښه وي روژې دې ونيسي اوکه نه نيسي نودهرې روژې په عوض کښې دې يومسکين ته د يوې ورځې خوراک ورکړي همدارنګې که چرې کومه حامله ښځه يامرضعه چه بچي ته به ئې دنقصان خطره وه نو هغه دې روژې نه نيسي بلکه فديه دې اداکړي. امام ابوداود فرمائی د فديې حکم په هغه وخت کښې دې کله چه يوه ښځه حامله وي يامرضعه وي او بچي ته ئې دنقصان رسيد و خطره وي، امام ابوداود فرمائی روژه دې ماته کړي اوددې په بدل کښې دې مسکين ته خوراک ورکړي.

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٦١٩٦) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٥٦٥) (شاذ)

**تشريح**: په دې باب کښې مصنف د ابن عباس اثر په دوه طريقو سره نقل کړې دې اول په طريق د عکرمه عن ابن عباس او دويم په طريق د سعيد بن جبير عن ابن عباس، اولنې اثر خو مجمل دې او په دويم کښې تفصيل شته، هغه داسې دې :

قوله: وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ سورة البقرة آية ۱۸٤، قَالَ: كَانَتْ رُخْصَةً لِلشَّيْخِ الْكَبِيرِ وَالْمَرْأَةِ الْكَبِيرَةِ وَهُمَا يُطِيقَانِ الصِّيَامَ أَنْ يُفْطِرَا، وَيُطْعِمَا..الخ:

﴿وهما يطيقان ﴾ نه مراد په ظاهره دا ده ﴿اى بجهد ومشقة ﴾يعنى په طاقت او زور لګولو سره په مشقت باندې روژه نيسى لکه چه د هغوى د مذهب تشريح مخکښې تيره شوه.

**شيخ كبير، حبلى او مرضعه په حكم كښې اختلاف :**

په ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ذکر شوې ده چه شيخ کبير او حبلى او هم په دې حکم کښې دى مرضعه هم د دې درې واړو دپاره رخصت افطار ثابت دې، په حديث الباب کښې د دې ترجمې مطابق دې، په ثبوت افطار کښې خو ټول فقهاء کرام متفق دى، خو د حبلى او مرضعه په باره کښې يو بل اختلاف دې هغه دا چه د افطار نه روستو په دوى دواړو باندې څه واجب دى؟ د احنافو په نزد خو صرف د روژې قضاء ده روستو فديه نشته، او د ائمه ثلاث په نزد قضاء او صوم مع الفديه، او شيخ کبير چه کله افطار کوى نو په دې باندې د جمهورو په نزد فديه ده او د امام مالک رحمه الله په نزد فديه هم ساقط کيږى، د حامله او مرضعه په باره کښې يو قول دا دې چه په هغوى باندې صرف فديه ده قضاء نشته وهو مروى عن ابن عمر وعن ابن عباس، او يو قول دا دې الفرق بين الحامل والمرضع چه په حامل باندې خوصرف قضاء ده فديه نشته، او په مرضعه باندې قضاء او فديه دواړه دى، كذا فى البذل عن ابن رشد، د حامل او مرضعه په باره کښې يو قول امام ترمذى رحمه الله دا نقل کړې دې چه د افطار نه روستو هغوى دواړو ته اختيار دې د قضاء او اطعام ترمينځه، په هغه دواړو کښې دې يو اختيار کړى، د قضاء په صورت کښې به اطعام نه وى، او د اطعام په صورت کښې به قضاء نه وى.

ځان پوهه کړه چه په ترجمة الباب کښې چه موږ سره دا مسئله شروع ده هم دا امام ترمذى هم قائم کړې دې او بيا په دې باب کښې هغه هغه حديث مرفوع ذکر کړې دې کوم موږ سره په باب اختيار الفطر کښې راروان دې هغه دې اوکتلې شى، د هغې په اخر کښې دى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ﴿ان الله وضع شطر الصلاة او نصف الصلاة والصوم عن المسافر وعن المرضع والحبلى الحديث... ﴾ د امام ابوداود دپاره هم اولى دا وه چه هغه د ابن عباس رضى الله عنه د اثر په ځائې هغه حديث مرفوع دلته راوړې وې كما فعل الترمذى، امام ترمذى رحمه الله د دې حديث نه پس فرمائى : قال بعض اهل العلم : الحامل والمرضع يفطران ويقضيان ويطعمان وبه يقول سفيان ومالك والشافعى واحمد، وقال بعضهم يفطران ويطعمان ولا قضاء عليهما، او د دې نه روستو ئې هغه دريم قول ذکر کړې دې کوم چه پورته رانقل کړې شو، د امام ترمذى رحمه الله په کلام کښې چه کوم درميانه قول دې هغه احنافو اختيار کړې دې.

## بَابُ الشَّهْرِ يَكُوْنُ تِسْعًا وَعِشْرِيْنَ

### باب: میاشت کله د یو کم دیرشو هم وی

[۲۳۱۹](1)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَمْرٍو يَعْنِي ابْنَ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّا أُمَّةٌ أُمِّيَّةٌ، لَا نَكْتُبُ وَلَا نَحْسُبُ الشَّهْرُ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا". وَخَنَسَ سُلَيْمَانُ أُصْبُعَهُ فِي الثَّالِثَةِ يَعْنِي تِسْعًا وَعِشْرِينَ وَثَلَاثِينَ.

**ترجمه:** دعبدالله بن عمر رضی الله عنه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام اوفرمائیل مونږه امیان (ان پړ) خلق یو په حساب اوکتاب نه پوهیږو میاشت داسې اوداسې اوداسې وی (درې پیرې) دلاس په ګوتوسره اشارې اوکړې اوسلیمان راوی په دریم ځل کښې خپلې ګوتې بندې کړې یعنی میاشت کله دنه ویشت ورځو وی.

### شرح حدیث:

یعنی رسول الله ﷺ د دواړو ګوتو لره پرانستلو سره د هغې طرف ته اشاره کولو سره درې کرته اوفرمائیل چه میاشت د دومره ورځو ده او په دریم ځل ئې یوه ګوته په ځائې د پرانستلو بنده کړه، لهذا په دې صورت کښې دا یو کم دیرش ورځې شوې، او بیا د حدیث په اخر کښې دی یو کم دیرش او دیرش ورځې، پس په دې حدیث کښې اختصار پیدا شو پوره روایت په صحیح مسلم کښې دې پس په هغې کښې دوباره روستو داسې راځی ﴿والشهر هكذا وهكذا وهكذا ﴾، یعنی تمام الثلاثین او په دویم ځل کښې رسول الله ﷺ درې واړه کرته ټولې ګوتې پرانستلې اوساتلې، رسول الله ﷺ فرمائی چه مونږ خلق یعنی عرب ﴿وقيل اراد نفسه ﴾امیان یو په حساب کتاب پاندې نه پوهیږو یعنی اکثر په هغوی کښ، او که ټول مراد وی نو په دې صورت کښې د نفس حساب کتاب نفی نه وی بلکه د احسان او کمال نفی به وی یعنی په هغې باندې ښه طریقې سره نه پوهیږو، د کوم حساب نفی چه په دې حدیث کښې کړې شوې ده د دې نه مراد حساب نجوم دې کوم چه ټولو شارحینو لیکلی دې، او علامه قسطلانی لیکی یعنی مونږ خپله روژه مونځ او د نورو عباداتو د مواقیت پیژندلو کښې د څه حساب کتاب د زده کولو مکلف نه یو کوم چه باقاعده زدکړې شی بلکه نیغ حساب کوم چه ټولو ته معلوم دې، هغې لره اعتبار دې نور وضاحت رسول الله ﷺ دګوتو په اشارې سره بغیر د تلفظ نه بیان کړو چه هغه ګونګې او عجمی زده کولې شی.

حافظ رحمه الله فرمائی چه ددې وجې نه نبی ﷺ بل حدیث کښې فرمائی فان عمّ عليكم فاكملوا العدة ثلاثين، یعنی که دنهه ویشت په شپه سپوږمۍ په نظر رانغله نوبیا به دیرش پوره کوې او دا ئې نه دی وئیلی چه د اهل حسابو او حساب دانو نه ئې معلوم کړئ بلکه په خپل حساب باندې د باقی پاتې کیدو ئې اوفرمائیل لهذا په دې حدیث کښې د حساب نجوم نفی کړې شوې ده چه په شریعت کښې دې لره اعتبار نشته، او بیا وړاندې لیکی چه بعض خلق د حساب نجوم طرف ته تلې دی او هغه روافض دی، په دې کښې دبعضې فقهاؤ موافقت هم

(1): صحيح البخاري/الصوم ١٣(١٩١٣)، صحيح مسلم/الصوم ٢ (١٠٨٠)، سنن النسائي/الصيام ٨ (٢١٤٢)، (تحفة الأشراف: ٧٠٧٥)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصيام ٦(١٦٥٤)، مسند احمد (١٢٢/٢) (صحيح)

نقل دي علامه باجی رحمه الله وائی چه په دې باندې د سلف اوخلف اجماع ده، او ابن بزیزه رحمه الله وائی چه دا مذهب باطل دې ځکه چه شریعت د خوض فی علم النجوم نه منع کړې دې، ځکه چه هغه صرف حدس او تخمین د قبیل نه دې قطعی څیز نه دې.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم وابن ماجة هكذا قاله المنذری، امام المزی فی التحفة، فعزاه الى الشيخين والنسائی، وكذا القسطلانی.

[۲۳۲۰](١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الشَّهْرُ تِسْعٌ وَعِشْرُونَ، فَلَا تَصُومُوا حَتَّى تَرَوْهُ، وَلَا تُفْطِرُوا حَتَّى تَرَوْهُ، فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ فَاقْدُرُوا لَهُ ثَلَاثِينَ". قَالَ: فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا كَانَ شَعْبَانُ تِسْعًا وَعِشْرِينَ نُظِرَ لَهُ، فَإِنْ رُئِيَ فَذَاكَ، وَإِنْ لَمْ يُرَ وَلَمْ يَحُلْ دُونَ مَنْظَرِهِ سَحَابٌ وَلَا قَتَرَةٌ أَصْبَحَ مُفْطِرًا، فَإِنْ حَالَ دُونَ مَنْظَرِهِ سَحَابٌ أَوْ قَتَرَةٌ أَصْبَحَ صَائِمًا، قَالَ: فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يُفْطِرُ مَعَ النَّاسِ وَلَا يَأْخُذُ بِهَذَا الْحِسَابِ.

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام اوفرمائیل میاشت کله دنهه ویشت ورځو وي روژې مه نیسئ ترڅو چه مو میاشت لیدلې نه وي او روژې مه ماتوي ترڅوچه مو میاشت لیدلې نه وي، اوکه چرې وریځ وي نودیرش روژې پوره کړئ راوی وائی چه کله به دشعبان نهه ویشت ورځې پوره شوې نوابن عمر به دسپوږمۍ دلیدوکوشش شروع کړو که سپوږمۍ به ښکاریده خوتیك ده اوكه نه به ښكاريده اواسمان به شين وو وريځ به نه وه) نوصبابه نه روژه كيدو ليكن كه چرې وريځ ياگرد غباربه وو نوصباله به ئې روژه نيوله، راوی وائی ابن عمر رضی الله عنه به دخلقوسره افطار كولو اودخپل حساب خيال به ئې نه ساتلو.

## د حديث په شرح كښې درې اقوال

﴿فان غم عليكم فاقدروا له﴾ په دې كښې د دال ضمه او كسره دواړه لوستلې شوې دی، د دې جملې په تفسير كښې درې اقوال ملاويږي. ١: قدروا العدة ثلاثين، يعنى كه د يو كم ديرشو مياشت درته ښكاره شی نو د مياشتې ديرش پوره كړئ. ٢: قدروه تحت السحاب: يعنى په وريځ كښې پټيږی. ٣: قدروه بحسب المنازل، يعنى د منازل قمر اعتبار اوكړئ يعنى هم هغه حساب نجوم، اوله معنى اختيار كړې ده جمهور علماء كرامو، او دويمه معنى اختيار كړې ده امام احمد وغيره علماء كرامو، پس د امام احمد رحمه الله قول دا دې چه كه د يو كم ديرشو مطلع صفا نه كيدو د وجې نه مياشت ښكاره نه شی نو بيا دې سحر د رمضان په نيت سره روژه اونيولې شی. (٢) دريم قول اختيار كړې دې په فقهاء كرامو كښې ابو العباس ابن سريج شافعی، پس ابن العربی د هغه نه نقل كړې دی هغه فرمائی چه په دې حديث كښې د ﴿فاقدروا له﴾ خطاب د هغه خلقو دپاره دې كوم چه د علم نجوم نه واقف دی، چاته چه الله

[١]: صحيح مسلم/الصوم ٢(١٠٨٠)،(تحفة الأشراف: ٧٥٣٦، ١٩١٤٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢) (صحيح)

[٢] په نهيشتم تاريخ باندې د وريځ يا خړې په صورت كښې ابن الجوزی رحمه الله فرمائی چه په دې كښې د امام احمد رحمه الله درې اقوال دی، يو خو هم دا چه كوم تير شو او دويم قول دا دې چه لا يجوز صومه لا فرضا ولا نفلا بل قضاء وكفارة ونذرا او نفلا يوافق عادته، وبه قال الشافعي ثالثها المرجع الي راي الامام في الصوم والفطر. اهـ من البذل ٣/٣٤٣)

پاک دا علم ورکړې دي، او بل حديث چه په هغې کښې دا دی (فاکملوا العدة ثلاثين) په دې کښې دا خطاب عام خلقو ته دې کوم چه د حساب نجوم نه واقف نه وی، بيا وړاندې تلو ابن العربی د دې قول ترديد کړې دې او پورته د علامه باجی نه دا خبره ذکر کړې شوه چه د حساب نجوم په اعتبار سره د اجماع سلف خلاف دې، هم دغه شان ابن المنذر هم دې ته د اجماع خلاف مقرر کړې دې، علامه شامی د حساب نجوم په اعتبار کونکو کښې د امام سبکی شافعی نوم اخستلې دې هغه فرمائی چه د هغه په دې کښې يو مستقل تاليف هم دې چه په هغې کښې هغوی مائل شوې دی قول منجمين د اعتماد طرف ته او دا چه حساب قطعی څيز دې، شامی فرمائی چه د سبکی د رائې ترديد د هغوی نه روستو اهل مذهب خپله کړې دې. اهـ ملخصاً من البذل.

## شرح حديث:

راوی ابن عمر رضی الله عنه معمول بيانوی چه د شعبان په نهيشتم تاريخ باندې که مياشت اوليدې شوه نو بيا خو به هغې لره اعتبار ورکولې شی او نه وې ښودلې شوې او وريځ يا غبار وغيره هم څه حائل نه وې، يعنی مطلع به بالکل صفا وې نو په دې صورت کښې به سحر افطار کولو او روژه به ئې نه نيوله، او په صورت ديگر يعنی وريځ وغيره کيدو په صورت کښې روژه نيوله، وړاندې دی وکان ابن عمر يفطر مع الناس، يعنی روژه خو به هغه يواځې نيوله خو اختر به ئې د خلو سره کولو او دې خپل حساب لره به ئې اعتبار نه ورکولو، يعنی که يو ديرېش روژې اوشی، او اوله روژه به نفلی شی. والحديث اخرجه مسلم منه المسند فقط قاله المنذری، وله طرق اخری عن ابن عمر عند البخاری والنسائی وابن ماجة قاله الشيخ محمد عوامة.

[۲۳۲۱](¹) حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، حَدَّثَنِي أَيُّوبُ، قَالَ: كَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ إِلَى أَهْلِ الْبَصْرَةِ بَلَغَنَا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَ حَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، زَادَ: "وَإِنَّ أَحْسَنَ مَا يُقْدَرُ لَهُ أَنَّا إِذَا رَأَيْنَا هِلَالَ شَعْبَانَ لِكَذَا وَكَذَا، فَالصَّوْمُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ لِكَذَا وَكَذَا، إِلَّا أَنْ تَرَوُا الْهِلَالَ قَبْلَ ذَلِكَ".

**ترجمه:** عمربن عبدالعزيز رحمه الله اهل بصره ته وليکل دابن عمر رضی الله عنه دحديث په شان دنبی عليه السلام نه البته په دې کښې دا اضافه ده که چرې دشعبان دمياشتې سپوږمۍ په فلان فلانۍ ورځ ښکاره شوله نوان شاء الله په فلانۍ ورځ به روژه وي ليکن که چرې ددې نه مخکښې سپوږمۍ اووينۍ نود حساب نه مخکښې روژه نيول شروع کړئ

## توضيح الحديث

يعنی حضرت عمر بن عبدالعزيز د خپل خلافت په زمانه کښې د اهل بصره طرف ته د ابن عمر رضی الله عنه هغه حديث اوليکلو کوم چه اوس پورته تير شو، او بيا د دې حديث نه روستو دومره زياته کړه چه د هغې مطلب دا دې چه غوره او صحيح خبره دا ده چه که د شعبان مياشت په فلانۍ ورځ باندې په نظر راشی نو د رمضان د روژې ابتداء به د فلانۍ

---

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۳٦ و ۱۹۱٤٦) (صحيح)

ورځ نه وی (یعنی د دیرشو ورځو د پوره کیدو نه روستو) مثلا که د شعبان میاشت د ګل په ورځ وی نو د رمضان اوله روژه به د چارشنبې په ورځ باندې وی دیرش روژې پوره کولو سره، مګر دا چه تاسو میاشت اووینئ د دې نه یوه ورځ مخکښې نو بیا یوه ورځ مخکښې نو بیا روژه د دې نه یوه ورځ مخکښې یعنی د نهې په ورځ وی.

[۲۳۲۲] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، عَنْ ابْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ عِيسَى بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ بْنِ أَبِي ضِرَارٍ، عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: "لَمَا صُمْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِسْعًا وَعِشْرِينَ أَكْثَرَ مِمَّا صُمْنَا مَعَهُ ثَلَاثِينَ".

**ترجمه:** عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وائی چه مونږ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره د دیرشو روژو په مقابله کښې یوکس دیرش روژې زیات تر نیولې دی.

## شرح حدیث:

دا لام دپاره د تاکید دې، او لفظ ﴿ما﴾ موصوله یا مصدریه دې، سیدنا ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د هغه په زمانه د رمضان چه کومې روژې نیولې دی هغه په نسبت د دیرشو یا یو کم دیرشو ده، ګویا عام طور به د اختر میاشت په نهیشتم وی.

معلومه شوه چه دا چه خبره د خلقو ترمینځه مشهور دې چه د خلقو حال دا دې چه د اختر میاشت چه د اختر میاشت به د یو نه یو ځائې نه راوړی، دا خبره د پورته نه راروانه ده، والحدیث اخرجه الترمذی قاله المنذری.

[۲۳۲۳] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ يَزِيدَ بْنَ زُرَيْعٍ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "شَهْرَا عِيدٍ لَا يَنْقُصَانِ: رَمَضَانُ وَذُو الْحِجَّةِ".

**ترجمه:** دابوبکر رضی الله عنه نه روایت دې فرمانې چه نبی علیه السلام اوفرمائیل چه داختر دوه میاشتې یعنی رمضان او ذالحجه کې نه وې (یعنی په یوکال کښې دوه میاشتې د ۲۹ ورځونه وې، یاددې مطلب دادې چه دا دواړه میاشتې په اجر اوثواب کښې نه دې بلکه ددې دوو میاشتو ډیر فضائل دې.

## توضیح الحدیث

دا حدیث په ظاهره کښې د پورته والا حدیث خلاف ده (۳)، او څه نه څه زما په تجربه کښې دا خبره راغلې ده چه مصنف کله په دوه احادیثو کښې فی الجمله تخالف او تعارض وینې نو هغه یو بل ته نزدې ذکر کوی، په ظاهره ځکه چه کتونکی غور کولو سره د هغې حل او توجیه باندې سوچ اوکړی.

---

(۱): سنن الترمذي/الصوم ٦ (٦٨٩)، (تحفة الأشراف: ٩٤٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٤٤١، ٣٩٧، ٤٠٥، ٤٠٨، ٤٤١، ٤٥٠) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الصوم ١٢ (١٩١٢)، صحيح مسلم/الصوم ٧ (١٠٨٩)، سنن الترمذي/الصوم ٨ (٦٩٢)، سنن ابن ماجه/الصيام ٩ (١٦٥٩)، (تحفة الأشراف: ١١٦٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٨، ٤٧، ٥٠) (صحيح)

(۳) ځکه چه د دې حدیث تقاضه کم از کم دا ده چه رمضان اکثر د دیرشو ورځو وی او پورته حدیث نه اکثریت یو کم دیرش معلومیږی)

اوس د دویم حدیث مضمون دا دې چه د هر دوه اخترونو میاشتې یعنی رمضان او ذی الحجة ناقص نه وی، په دې حدیث کښې هغه د رمضان په میاشت باندې د اختر اطلاق فرمائیلې دې، یا خو تغلیبا او یا د غایت اتصاف د وجې نه چه د رمضان میاشت ختمیدو سره د اختر میاشت شروع کیږی.

## په شرح حدیث کښې متعدد اقوال :

د دې حدیث په شرح کښې ډیر اقوال دی:

۱: د بعض په نزد دا حدیث په خپل ظاهر باندې محمول دې چه رمضان او ذی الحجة دا دواړه همیشه د دیرشو ورځو وی، خو د دې قول ټولو تردید کړې دې چه دا د مشاهدې خلاف دې، او د دې حدیث هم خلاف دې، ﴿صوموا لرؤیته فان غم علیکم فاکملوا العدة﴾

۲: رسول اللهﷺ د څه خاص کال په باره کښې فرمائیلې وو د همیشه دپاره نه.

۳: یعنی دواړه په یوځائې ناقص یعنی د یو کم دیرشو نه وی، چه یوه د یو کم دیرشو وی نو بله به ضرور د دیرشو وی، خو په دې باندې هم اشکال دې، کله یوځائې دواړه د یو کم دیرشو وی.

۴: هم دا مطلب دې کوم چه په دریم قول کښې تیر شو خو د اکثر او اغلب په اعتبار سره.

۵: من حیث الفضیلة... یعنی د رمضان میاشت که د دیرشو وی او که د یو کم دیرشو وی، هم دغه شان ذی الحجة هم د فضیلت په اعتبار سره ناقص نه وی، په دې اقوالو کښې قول ثالث لره امام ترمذی د امام احمد نه، او قول رابع لره اسحاق بن راهویه نه نقل کړې دې.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجة قاله المنذری.

## بَاب إِذَا أَخْطَأَ الْقَوْمُ الْهِلَالَ

### کله چه خلق د سپوږمۍ په لیدو کښې غلط شي

[٢٣٢٤] ( [1] )حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ فِي حَدِيثِ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِ، قَالَ: "وَفِطْرُكُمْ يَوْمَ تُفْطِرُونَ وَأَضْحَاكُمْ يَوْمَ تُضَحُّونَ، وَكُلُّ عَرَفَةَ مَوْقِفٌ، وَكُلُّ مِنًى مَنْحَرٌ، وَكُلُّ فِجَاجِ مَكَّةَ مَنْحَرٌ، وَكُلُّ جَمْعٍ مَوْقِفٌ".

**ترجمه**: دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ اوفرمائیل دواړه اختر ورځ هغه ده په کومه ورځ چه تاسو روژې ماتې کړئ اودلوې اختر ورځ هغه ده په کومه ورځ چه تاسو قربانې اوکړئ اوعرفات ټول داودریدو ځائې دې اومنې دحلالې ځائې دې اوپه مکه کښې چه خومره لارې دې هغه ټول دحلالوځایونه دې اومزدلفه د ودریدو ځائې دې.

## شرح السند :

دلته په سند کښې ﴿فی حدیث ایوب﴾ راغلې دې د دې نه مخکښې د سند هم دغه شان تعبیر په کتاب الطهارة کښې "باب البول فی الماء الراکد" کښې تیر شوې دې، هلته داسې وو ﴿حدثنا

[1] : تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٦٠٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصوم ١١ (٦٩٧)، سنن ابن ماجه/الصيام ٩ (١٦٦٠) (صحيح)

احمد بن یونس قال ثنا زائدة فی حدیث هشام الطویل ﴾یعنی زائده لره د هشام نه طویل حدیث راغلي وو د هغې یوه قطعه دا ده کوم چه اوس هغه دلته روایت کوی د هغې نه په ﴿من ﴾سره هم تعبیر کیدلې شی﴿ای من حدیث هشام الطویل﴾هم دغه شان په موجوده سند کښې به مطلب هم داوی چه حماد دایوب په حدیث کښې دا تکره ذکر کړې ده، کذا یستفاد من بذل المجهود.

## توضیح الحدیث

"کذافی بذل المجهود"یعنی د ایوب په شاګردانو کښې حماد دا روایت مرفوعا ذکر کړې دې او غیر حماد موقوفا لکه چه د دارقطنی د روایت نه معلومیږی.

## په شرح حدیث کښې متعدد اقوال:

د دې حدیث په شرح کښې څو اقوال دی

۱: امور اجتهادیه کښې خطاء معفو دې لهذا که خلقو د اختر د میاشت لیدو کوشش اوکړو خو باوجود د کیدو د یو عارض د وجې نه په نظر رانغلو په دې وجه خلقو روژې پوره دیرش نیولې وی نو دا اخری روژه خو به فی الواقع خو د اختر په ورځ باندې واقع شوه کومه چه حرامه ده خو چونکه په اجتهادی خطاء سره داسې اوشو په دې وجه معاف دې، بیا چه وړاندې کوم اختر مانځلې شی هم هغه به د اختر ورځ ګڼرلې شی، هم دا خبره رسول الله ﷺ کوی ﴿فطرکم یوم تفطرون ﴾او د دې نه په وړاندې جمله کښې د غټ اختر ذکر دې، د هغې حکم هم دا دې، هم دا معنی اختیار کړې ده امام خطابی، او هم دا معنی تقریبا امام ترمذی هم د دې حدیث بیان کړې ده، حضرت په بذل کښې هم د دې معنی لیکلو نه پس فرمائی ﴿وهذا الحکم فیما عند الله سبحانه وتعالی واما الحکم فی الدنیا بالحکم بالاعادة فهو مبسوط فی کتب الفقه، ولیس هذا موضع تفصیله ﴾یعنی د دې عفو تعلق خو د اخرت په اعتبار سره دې خو د دنیوی حکم په اعتبار چه ایا د دې غلطۍ سره چه کومه قربانی یا حج وغیره شوې وی د هغې اعاده به وی یا نه، دا څیز تفصیل طلب دې چه د هغې اصل محل کتب فقهیه دی. اهـ معلومه شوه په حدیث شریف باندې صحیح صحیح عمل د فقهاء کرامو د کلام په رڼړا کښې کیدې شی، ځکه چه اګر که د کتاب الله په مقابله کښې په سنت نبویه کښې ډیر تفصیل دې خو د دې باوجود د هغې نه اخر پورې ضرورت نه شی پوره کیدې، د دې دپاره الله پاک فقهاء کرام منتخب کړې دی، پس مواد پیش کونکی خو محدثین حضرات شو، خو د دې نه کمال اخذ او په دې باندې تفریعات دا د فقهاء کرامو منصب دې لکه چه امام اعمش امام ابوحنیفه رحمه الله ته خطاب کولو سره فرمائیلې وو ﴿انتم الاطباء ونحن الصیادلة ﴾[1]

[1] لکه ملا علی قاری رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله په مناقب کښې فرمائی چه یو ځل امام ابوحنیفه رحمه الله د امام اعمش په مجلس کښې وو نو د هغه نه یوه مسئله اوتپوسلې شوه او د امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم تپوس اوکړې شو چه تاسو څه جواب کوئ؟ قال الامام اقول کذا وکذا، په دې باندې امام اعمش رحمه الله اوفرمائیل: من این لك هذا؟ نو امام صاحب ورته جواب ورکړو چه هم تا مونږ ته فلانې حدیث په دې سند سره د ابوهریره او د عبدالله بن مسعود، او هم په دې سند سره د ابو مسعود انصاری بیان فرمائیلې دې. قال رسول الله صلی الله تعالی علیه وآله وسلم کذا، د دې نه علاوه نور هم بعض روایات.....←

لهذا په فن حدیث کښې مشغول کیدونکی لره د خپل ځان مستغنی عن کلام الفقهاء نه دی ګڼړل پکار، والله الهادی الی سواء السبیل.

۲: یو قول د دې حدیث په شرح کښې دا دې چه د صوم یوم الشک نفی مقصود ده چه یو سړې احتیاطا د خپل طرف نه هغه ورځ روژه نه نیسی بلکه چه کله ټول خلق روژه نیسی نو بیا نیسی.

۳: په دې سره مقصود په دې خلقو باندې رد دې کوم چه داسې وائی چه کوم سړې د منازل قمر په حساب باندې پوهیږی او د دې خپل فن په ذریعه د طلوع قمر علم لری نو هغه له پکار دی چه هغه په صوم او افطار کښې په خپل حساب باندې چلیږی او عام خلق چه کوم د دې حساب نه واقف نه وی هغه به د رویت قمر اعتبار کوی نو په دې حدیث کښې دی چه د صوم او افطار کښې ټول په یو لائن باندې وی، واقف او نا واقف په دې کښې هیڅ فرق نه وی.

۴: که یو سړی میاشت اولیدې او نورو حضراتو ته په نظر نه وی راغلي او قاضی صاحب د شاهد واحد اعتبار نه وی کړې او په هغې ئې فیصله نه وی کړې نو دې شاهد واحد لره د خپل رؤیت اعتبار نه دی کول پکار بلکه د نورو خلقو سره دې وی. (تهذیب السنن لابن القیم)

**تنبیه**: د دې څلورمې معنی د لاندې هغه څیز په ذهن کښې ساتل پکار دی کوم چه په الکوکب الدری ۴۰ کښې دې، هغه دا چه موافقت د جماعت حکم سره دا صورت مستثنی دې، هغه دا چه یواځې یو سړې د رمضان د میاشت اولیده او د څه وجې نه امام د هغه قول قبول نه کړو او د روژې فیصله ئې اونکړه نو دې یواځې کتونکی لره روژه نیول پکار دی په دې کښې دې د جماعت موافقت نه کوی. اه دا دې هم واضح وی چه د جمهورو ومنهم الحنفیة په هلال رمضان کښې شهادت واحد معتبر دې د دې د لاندې په هدایه کښې دا جزئیه لیکلې دې چه په شهادت واحد باندې چه کله امام د روژې فیصله اوکړی او دیرش روژې پوره شی خو د دې باوجود د اختر میاشت په نظر رانشی نو په دې کښې حسن بن زیاد روایت د امام ابوحنیفه نه دې چه په دې صورت کښې د دیرشو نه پس خلق افطار اونکړی د احتیاط د وجې نه، او د دې وجې نه هم چه د شهادت واحد نه هلال عید نه ثابتیږی، او د امام محمد رحمه الله روایت دا دې چه ﴿انهم یفطرون﴾ چه د دیرش ورځو پوره کیدو نه پس که میاشت په نظر راشی نو یو دیرشمه روژه نه نیسی بلکه افطار اوکړی چه اګر چه ابتداء ثبوت فطر په شهادت واحد سره نه وی خو بناء کیدې شی.

وکل عرفة موقف وکل منی منحر وکل فجاج مكة منحر وکل جمع موقف.

---

← ..... د بعض نورو صحابه کرامو نه نقل کړل نو د دې ټولو د اوریدلو نه پس امام اعمش اوفرمائیل چه کوم احادیث ما تاته په سلو ورځو کښې بیان کړې وو هغه تا په یو ساعت کښې بیان کړل، او بیا ئې اوفرمائیل یا معاشر الفقهاء انتم الاطباء ونحن الصیادلة وانت ایها الرجل اخذت بکلا الطرفین، یعنی فقهاء کرام خو په منزله د اطباء دی او مونږ محدثین په منزله د دوائی خرڅونکی یو او د امام صاحب طرف ته ئې خطاب کولو سره اوفرمائیل چه تاسو د دوارو څیزونو نه حصه اخستلې ده. (مقدمة اعلاء السنن في الفقه ج ۲ ص ۱۹)

**شرح حديث:**

د دې شرح په کتاب الحج کښې تير شوې دې، په کتاب الحج کښې باب الصلاة لجمع کښې په يو روايت کښې داسې تير شوې دى **﴿وکل فجاج مکة طريق ومنحر﴾** فجاج د فج جمع په معنى د الطريق الواسع (يعنى کهلاؤ لار)، صحابه کرام چونکه په هر يو ځيز کښې د رسول الله ﷺ اتباع او نقش قدم باندې تلل غوښتل ځکه چه هغه د هغه د سهولت دپاره اوفرمائيل چه د مکه مکرمه چه څومره لارې دى که د داخليدو په اعتبار سره يا د وتلو په اعتبار سره هغه ټولې لارې دى لهذا چاته چه په کومه لاره باندې سفر کولو کښې سهولت وى هغه دې هم دا اختيار کړى.

**والحديث اخرجه الترمذى من حديث سعيد بن ابى سعيد المقبرى عن ابى هريرة رضى الله عنه قاله المنذرى، ورواه ابن ماجة من طريق حماد بن زيد عن ايوب عن محمد بن سيرين عن ابى هريرة رضى الله عنه وهذا اسناد صحيح جدا على شرط الشيخين (قاله احمد شاکر) اى الجملتان الاوليان کما فى تعليق محمد عوامة.**

## بَاب إِذَا أُغْمِيَ الشَّهْرُ

### باب: کله چه (د وريځې په وجه) مياشت مشتبه شى نو څه به کولې شى؟

د شهر نه مراد شهر رمضان، يعنى که د رمضان مياشت په يو کم ديرشم باندې په نظر راشى نو ايا په ديرشم د شعبان به روژې نيسى يا نه نيسى د دې حکم په حديث الباب کښې راروان دې چه په ديرشم د شعبان به هغه روژه نه نيوله. بلکه د هغې نه روستو

[۲۳۲۵](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَيْسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، تَقُولُ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَحَفَّظُ مِنْ شَعْبَانَ مَا لَا يَتَحَفَّظُ مِنْ غَيْرِهِ، ثُمَّ يَصُومُ لِرُؤْيَةِ رَمَضَانَ، فَإِنْ غُمَّ عَلَيْهِ عَدَّ ثَلَاثِينَ يَوْمًا ثُمَّ صَامَ".

**ترجمه:** دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام ته به د شعبان دمياشتې حساب داسې ياد وو چه دومره به ئې دنورو مياشتو دتاريخونو حساب يادنه وو کله چه به ئې درمضان دمياشتې سپوږمۍ وليدله نو روژې به ئې شروع کړې که چرې په دې ورځ به وريځ وه نو بيا به ئې د شعبان دمياشتې ديرش ورځې پوره کړې اوبيا به ئې روژې نيول شروع کړل.

**تشريح:** **﴿يتحفظ من شعبان ما لا يتحفظ من غيره﴾** يعنى رسول الله ﷺ به د شعبان ايام او تاريخ ښه ياد ساتلو (د رمضان المبارک په اهتمام کښې) دا مضمون حديث د ابوهريره رضي الله عنه په روايت کښې په نورو الفاظو کښې هم راغلې دې پس په ترمذى کښې دى **﴿عن ابى هريرة رضى الله عنه قال قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: احصوا هلال شعبان لرمضان﴾** او هم د دې وجه نه امام ترمذى رحمه الله ترجمه قائم کړې ده: **ما جاء فى احصاء هلال شعبان لرمضان.**

**فائده:** دا حديث امام ترمذى د امام مسلم صاحب الصحيح نه روايت کړې دې او زمونږ په علم کښې په ترمذى کښې د امام مسلم نه هم دا يو روايت نقل دې، د امام بخارى

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٦۲۸۳) (صحيح)

نه خو ډیر روایات هغوی اخستلي دي، خو امام ترمذی په دې روایت باندې کلام فرمائیلې دې او دې ته ئې غیر صحیح ونیلي دي فارجع الیه لوشئت.

[۲۳۲۶]( )حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ الضَّبِّيُّ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ الْمُعْتَمِرِ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُقَدِّمُوا الشَّهْرَ حَتَّى تَرَوُا الْهِلَالَ أَوْ تُكْمِلُوا الْعِدَّةَ، ثُمَّ صُومُوا حَتَّى تَرَوُا الْهِلَالَ أَوْ تُكْمِلُوا الْعِدَّةَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ سُفْيَانُ وَغَيْرُهُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيٍّ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَمْ يُسَمِّ حُذَيْفَةَ.

**ترجمه:** دحذیفه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی تاسو درمضان روژې نیول مه شروع کوئ ترڅو پورې چه سپوږمۍ مونه وي لیدلي (یعنی درمضان دشروع کیدونه مخکښې روژې نیول مه شروع کوئ) یا دشعبان دمیاشتې دیرش ورځې چه پوره نکړئ نو روژې نیول مه شروع کوئ ترڅو چه موسپوږمۍ نه وي لیدلي یادتیري میاشتې دیرش ورځې نه وي پوره شوي.

## توضیح الحدیث

**قوله:** عَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُقَدِّمُوا الشَّهْرَ حَتَّى تَرَوْا الْهِلَالَ أَوْ تُكْمِلُوا الْعِدَّةَ...الخ: د حدیث د اولې جملې تعلق د رمضان د روژې د ابتداء سره دې چه کله شروع کړې شي او د جمله ثانیه تعلق د روژو د انتهاء سره دې چه ترڅو پورې به نیولې شي، د دواړو مدار رسول الله ﷺ رؤیت هلال منلې دې، ﴿لا تقدموا﴾ دوه طریقو سره لوستلې شوې دې د باب تفعل نه او د باب تفعیل نه، په اول صورت کښې یو تاء محذوف منلې شي ای لا تتقدموا الشهر، د رمضان د میاشت نه مه مخکښې کیږئ او پیش قدمی مه کوئ (چه د میاشت د شروع کولو نه مخکښې روژې نیول شروع کړئ) او د تفعیل په صورت کښې به ئې ترجمه دا وی: د رمضان میاشت مه مقدم کوئ یعنی عملا د روژې نیولو په اعتبار سره.

په دې حدیث باندې زیات کلام په راروان باب کښې راځي. والحدیث اخرجه النسائی مسندا ومرسلا قاله المنذری

# باب مَنْ قَالَ فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ فَصُومُوا ثَلَاثِينَ

## په رمضان کښې که چرې وریځ وی نو دیرش روژې پوره کړی

د اول باب تعلق د شهر رمضان سره وو او د دې د عید یعنی شهر شوال سره دې.

[۲۳۲۷]( )حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُقَدِّمُوا الشَّهْرَ بِصِيَامِ يَوْمٍ وَلَا يَوْمَيْنِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ شَيْءٌ يَصُومُهُ أَحَدُكُمْ، وَلَا تَصُومُوا حَتَّى تَرَوْهُ، ثُمَّ صُومُوا حَتَّى تَرَوْهُ، فَإِنْ حَالَ دُونَهُ غَمَامَةٌ فَأَتِمُّوا الْعِدَّةَ ثَلَاثِينَ ثُمَّ أَفْطِرُوا، وَالشَّهْرُ تِسْعٌ وَعِشْرُونَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ حَاتِمُ بْنُ أَبِي صَغِيرَةَ وَشُعْبَةُ وَالْحَسَنُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ سِمَاكٍ، بِمَعْنَاهُ، لَمْ يَقُولُوا: "ثُمَّ أَفْطِرُوا". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ حَاتِمُ بْنُ مُسْلِمٍ ابْنُ أَبِي صَغِيرَةَ، وَأَبُو صَغِيرَةَ زَوْجُ أُمِّهِ.

[1]: سنن النسائي/الصيام ○ (۲۱۲۸، ۲۱۲۹)، (تحفة الأشراف: ۳۳۱٦)، وقد أخرجه: حم (۳۱٤/٤) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصوم ٥ (٦٨٨)، سنن النسائي/الصيام ۷ (۲۱۳۱)، (تحفة الأشراف: ٦۱۰٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصيام ۱ (۳)، مسند احمد (۲۲۱/۱، ۲۲٦، ۲٥۸)، سنن الدارمي/الصوم ۱ (۱۷۲٥) (صحيح)

**ترجمه:** دابن عباس رضي الله عنه روایت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی د یوې یادوه روژوپه نیولوسره درمضان استقبال مه کوئ مګر کله چه په تاسوکښې یوکس ددې ورځو روژې نیسي، اوتاسو روژې مه نیسئ ترڅوچه مومیاشت نه وي لیدلي اوبیا روژې جاري وساتئ ترڅوچه مودشوال میاشت نه وي لیدلي که چرې په دغه ورځ وريځ راشي نوتاسو دیرش روژې پوره کړئ او بیافطار اوکړئ او میاشت کله کله دنبنه ویشتو ورځوهم وي. امام ابوداود فرمائيلي دي حاتم بن ابي صغیره اوشعبه اوحسن بن الصباح هم دسماك نه دا روایت د ړومبی حدیث پشان بیان کړې دې اوددوی په روایت کښې «د ثلاثين نه روستو» د ثُمَّ أَفْطِرُوا لفظ نشته. امام ابوداؤد وائي داحاتم بن مسلم ابن أبي صغیره دې، او ابو صغیره دهغه دمور خاوند دې.

## توضيح الحديث

د دې حدیث مضمون هم د تیر شوی حدیث په شان دې چه د رمضان د میاشت شروع کولو نه مخکښې روژه نیول مه شروع کوئ، یو یا دوه روژې، مګر دا چه روژه داسې وی چه هغه په دې باندې د مخکښې نه عادت وی، مثلا یو سړې د ګل د ورځې د روژې نیولو عادت وی، او په دغه ورځ باندې تاریخ د شعبان دیرشم دې نو په دې حدیث کښې ورته د دې نفل معتاد اجازت دې.

## د تقدیم صوم د منع حکمتونه:

د دې نه پس تاسو په دې باندې ځان پوهه کړئ چه په احادیثو کښې د دې تقدیم صوم چه کومه نهی راغلې ده د هغې حکمت څه دې، د دې شارحینو مختلف وجوه لیکلې دی، امام ترمذي رحمه الله د دې حدیث نه روستو فرمائي ﴿والعمل على هذا عند اهل العلم، كرهوا ان يتعجل الرجل بصيام قبل دخول شهر رمضان لمعنى رمضان، وان كان رجل يصوم صوما فوافق صيامه ذلك فلا باس به عندهم﴾ يعني په حدیث کښې رمضان داخلیدو نه مخکښې د روژې چه کوم ممانعت دې هغه احتیاطا د رمضان په نیت باندې دې «ځکه چه کیدې شی چه د رمضان میاشت شروع شوې وی او میاشت ورته په نظر نه وی راغلې» او که یو سړې د مخکښې نه په دې ورځ باندې د روژې نیولو سره عادت وی نو بیا هیڅ باک نشته. اهـ او علامه سیوطي رحمه الله فرمائي: او صرف یو یا دوه ورځې قید په روژه نیولو کښې په دې وجه دې چه شک د یو یا دوه ورځو په باره کښې کیدې شی چه هر کله مسلسل دوه یا درې میاشتو پورې د میاشت په اخر کښې د وريځ سلسله وی، هغه فرمائي: او حکمت په دې منع کښې دا دې چه نفل روژه د فرض روژې سره نه مخلوط کیږی چه د زیادت فی الفرض شبهه نه وی، لکه چه نصاری به کول. اهـ حافظ هم په فتح الباری کښې د دې ډیر حکمتونه لیکلې دی چه د هغې نه ئې بعض رد کړې هم دی. ۱: یو حکمت ئې د دې افطار دا بیان کړې دې چه په رمضان کښې قوت او نشاط سره داخل شی «که یو یا دوه ورځې مخکښې روژه اونیسی نو د رمضان په میاشت کښې به بیدار نه وی» حافظ فرمائي ﴿وفيه نظر﴾ ځکه چه د حدیث تقاضه خو هم دا ده چه که یو سړې د دوه په ځائې درې یا څلور روژې اونیسی نو هغه جائز

دي ۲: د نفل او فرض د اختلاط نه د بچ کيدو دپاره، حافظ په دې باندې هم اعتراض کړې دې نفل معتاد لره اخستلو سره بيا د دې اجازت هم نه دی کيدل پکار. ۳: په دې تقديم صوم کښې د شارع د حکم خلاف ورزی ده، ګويا په دې باندې طعن دې، ځکه چه په حديث کښې د روژې حکم معلق کړې شوې دې په رؤيت باندې، مختصر دا چه په دې کښې تجاوز عن الحد الشرعي دې، وهذا هو المعتمد. هغه فرمائي چه د نفل معتاد چه کومه استثناء کړې شوې ده هغه د دې رعايت په وجه باندې چه په انسان باندې ترک مالوف ډير ګران وی، او په دې کښې د استقبال رمضان هيڅ معنی نشته. اهـ

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی بنحوه، وقال الترمذی : حسن صحيح واخرج مسلم فی صحيحه، والنسائی وابن ماجة فی سننهما من حديث سعيد بن المسيب عن ابی هريرة قال.... قاله المنذری.

## بَابٌ فِي التَّقَدُّمِ

### د رمضان د مياشتې د مخکښې کولو بيان

يعنی تقدم علی رمضان بصوم. لهذا دا باب د باب سابق خلاف شو، لکه چه وړاندې تلو سره به معلومه شی چه په دې کښې روايات مختلف دی

[۲۳۲۸]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَسَعِيدٍ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي الْعَلَاءِ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِرَجُلٍ: "هَلْ صُمْتَ مِنْ شَهْرِ شَعْبَانَ شَيْئًا؟" قَالَ: لَا، قَالَ: "فَإِذَا أَفْطَرْتَ فَصُمْ يَوْمًا" وَقَالَ أَحَدُهُمَا: "يَوْمَيْنِ".

**ترجمه**: دعمران بن حصين رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول پاک ﷺ ته اوفرمائيل: ايا د شعبان د مياشتې آخری روژې دې اونيولې؟ هغه ووئيل نه، نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل کله چه د رمضان مياشت تيره شې نو يوه روژه اونيسه، او په يو بل روايت کښې د دوه روژو ذکر دې.

### شرح السند:

اول د دې حديث په سند باندې ځان پوهه کړئ، مصنف دا حديث په دوه طريق سره روايت کړې دې،

۱: حماد عن ثابت عن مطرف عن عمر بن حصين، حماد عن سعيد الجريری عن ابی العلاء عن مطرف عن عمران بن حصين، يعنی "وسعيد الجريری" عطف په ثابت باندې کيږی لهذا د حماد يو سند ﴿عن ثابت﴾ شو الی اخره.

۲: او دويم عن سعيد الجريری الی اخره، "احدهما" نه مراد، لکه چه حضرت په بذل کښې ليکلي دی، "ثابت" دې، ګويا د سعيد جريری په روايت کښې "فصم يوما" دې، او د ثابت په روايت کښې "صم يومين" دې.

---

(): صحيح البخاري/الصوم ۶۲ (۱۹۸۳ تعليقًا)، صحيح مسلم/الصوم ۳۷ (۱۱۶۱)، (عندالجميع: «من سرر شعبان»)، تحفة الأشراف: ۱۰۸۴۴، ۱۰۸۵۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۴۳۲، ۴۳۴، ۴۴۲، ۴۴۳، ۴۴۶)، سنن الدارمي/الصوم ۳۵ (۱۱۸۳) (صحيح)

## شرح حدیث :

په حدیث کښې لفظ "سرر"راغلې دې چه د هغې په شرح کښې درې اقوال دی، اول، اخر او اوسط، یعنی رسول الله ﷺ د یو سړی نه تپوس اوکړو چه تا د شعبان په شروع کښې څه روژه نیولې وه؟ یا په اوسط کښې یا په اخر کښې؟ هغه عرض اوکړو نه! وې فرمائیل : چه کله د افطار زمانه راشي یعنی رمضان تیر شي نو یوه روژه اونیسه، او په بل روایت کښې دی "دوه روژې اونیسه".

د سرر معانی ثلاثه کښې چه کومه معنی د ترجمة الباب سره مناسب وی هم هغه به اخستلې شی، او د ترجمة الباب مناسب دلته سرر شعبان یعنی اخر شعبان مراد دې د دې دپاره چه تقدم علی رمضان کوم چه مصنف بیانوی هغه ثابت شی، په دې صورت کښې به د حدیث مطلب دا وی چه شخص مذکور د رسول الله ﷺ نه هغه حدیث واوریدو چه په هغې کښې د تقدم علی رمضان نه منع کړې شوې ده، هغه صحابی هغه حدیث لره مطلق ګڼړلو سره په اخر شعبان کښې هغه روژه هم او نه نیوله کوم چه د عادت موافق وو، حال دا چه په بعض روایاتو کښې د نفل معتاد استثناء کولو سره د دې اجازت کړې شوې دې، په دې وجه ئې هغه صحابی ته دا هدایت اوفرمائیلو چه ته د دې روژې په کمی پوره کولو کښې په راروانه میاشت کښې روژه اونیسه. حافظ د جمهورو نه دا نقل کړی دی چه دسرر نه مراد دلته اخر شهر دې دې ته سرر په دې وجه وئیلې شی چه په دې کښې سپوږمۍ پټه اوسیږی، او بعض علماء کرامو سرر د دې حدیث په وسط معنی کښې اخستلې دې، او د هغې د ترجیح په وجه کښې ئې لیکلې دی چه سرر جمع د سرة ده، ﴿وسرة الشئ، وسطه﴾او د دې تائید د دې نه هم کیږی چه د صیام بیض روایات کښې استحباب راغلې دې او وسط الشهر دې. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی قاله المنذری.

[۲۳۲۹](1)حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْعَلَاءِ الزُّبَيْدِيُّ مِنْ كِتَابِهِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْعَلَاءِ، عَنْ أَبِي الْأَزْهَرِ الْمُغِيرَةِ بْنِ فَرْوَةَ، قَالَ: قَامَ مُعَاوِيَةُ فِي النَّاسِ بِدَيْرِ مِسْحَلٍ الَّذِي عَلَى بَابِ حِمْصَ، فَقَالَ: أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّا قَدْ رَأَيْنَا الْهِلَالَ يَوْمَ كَذَا وَكَذَا، وَأَنَا مُتَقَدِّمٌ بِالصِّيَامِ، فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَفْعَلَهُ فَلْيَفْعَلْهُ، قَالَ: فَقَامَ إِلَيْهِ مَالِكُ بْنُ هُبَيْرَةَ السَّبَئِيُّ، فَقَالَ: يَا مُعَاوِيَةُ، أَشَيْءٌ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ أَمْ شَيْءٌ مِنْ رَأْيِكَ؟ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "صُومُوا الشَّهْرَ وَسِرَّهُ".

**ترجمه**: دابوالازهر مغیره بن فروة نه روایت دې فرمائی چه معاویه نه په دیرمسحل مقام کښې کوم چه باب حمص کښې واقع دې ودریدو اوونې فرمائیل اې خلقو مونږ په فلانئ ورځ سپوږمۍ لیدلې ده اوزه دشروع نه روژې نسم څوك چه روژې نیول غواړې هغوی دې هم روژې ونیسي، مالك بن هبیره اووئیل اې معاویه ایاداخبره دې دنبی ﷺ نه اوریدلې ده اوکه دخپل طرف نه ئې کوې؟ هغه اووئیل مادنبی ﷺ نه اوریدلې دې چه فرمائیل ئې درمضان په شروع کښې آودشعبان په آخرکښې روژې نیسئ.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۴٤) (ضعیف)

## شرح حدیث :

سیدنا معاویه رضی الله عنه په مقام دیر مسحل کښې کوم چه په باب حمص کښې واقع دی (حمص د ملک شام یو ښهر دی) هلته ئې خطبه ورکړه او په هغې کښې ئې دا اوفرمائیل چه مونږ خلقو د شعبان میاشت په فلانئ ورځ باندې لیدلې وه (په ظاهره کښې مطلب دا دې چه په دې لحاظ سره نن نهیشتم تاریخ دې یا د نهیشتم نه هم کم) زه د رمضان راتلو نه مخکښې روژه نیول غواړم په تاسو کښې چه د چا زړه غواړی هغه دې هم روژه اونیسی. وړاندې په روایت کښې دی چه د یو سړی په تپوس کولو باندې هغه د رسول الله ﷺ دا حدیث بیان اوفرمائیلو چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل هغه اوفرمائیل : ﴿صوموا الشهر وسره ﴾د شهر نه مراد په ظاهره کښې د شعبان میاشت ده، او د سر نه مراد اخر، یعنی د شعبان په میاشت کښې روژې نیسئ. (لکه چه خپله د رسول الله ﷺ نه په دې میاشت کښې روژې نیول ثابت دی) ﴿وسره ﴾او خاص کر د دې په اخر کښې، دا معنی چه واخستلې شی نو بیا دا حدیث د ترجمة الباب موافق دې یعنی تقدم علی رمضان، او دا هم احتمال دې چه په حدیث کښې د شهر نه مراد رمضان وی او د ﴿سر ﴾ معنی اول واخستلې شی، نو مطلب به دا وی چه د رمضان روژې نیسئ او د هغې نه مخکښې هم، او ظاهره ده چه د رمضان نه مخکښې چه کوم شئ دې هغه د شعبان په اخر کښې هم دې.

[۲۳۳۰]([1])حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الدِّمَشْقِيُّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: قَالَ الْوَلِيدُ: سَمِعْتُ أَبَا عَمْرٍو يَعْنِي الْأَوْزَاعِيَّ، يَقُولُ: سِرُّهُ أَوَّلُهُ.

**ترجمه:** سلیمان بن عبدالرحمن دمشقي دولیدنه روایت کوی چه ماداوزاعي نه اوریدلي دي چه سِرّه، په معنی د .. أَوَّلُهُ ، سره دې.

[۲۳۳۱]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ، حَدَّثَنَا أَبُو مُسْهِرٍ، قَالَ: كَانَ سَعِيدٌ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ، يَقُولُ: سِرُّهُ أَوَّلُهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ بَعْضُهُمْ: سِرُّهُ وَسَطُهُ. وَقَالُوا: آخِرُهُ.

**ترجمه:** سعید بن عبدالعزیز وئیلي دي چه سِرُّهُ ،، نه مراد أَوَّلُهُ، دي، امام ابوداود وائی بعضي علماو وئیلي دي چه سره په معنی د وسطه سره دې اوچاوئیلي دي چه په معنی د آخره سره دې.

## په روایات مختلفه کښې تطبیق :

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د تقدم علی رمضان په باره کښې مختلف روایات راغلي دی لکه چه تاسو اوس اولیدل چه د دې نه منع هم راغلې ده او په بعض روایاتو کښې د دې ترغیب هم لکه چه په حدیث الباب کښې دی، هم په دې وجه باندې حضرات محدثین د دې مختلف توجیهات بیان فرمائیلي دی، الاول بان یحمل النهی علی التقدم بیوم او یومین والجواز فیما سواهما... یعنی د منع رمضان نه مخکښې صرف یو دوه روژې نیولو سره دې او که د

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۹۶۶) (شاذ مقطوع)
[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۸۹۶۶، ۱۸۶۹۳) (شاذ)

دي نه زياتي اونيسي، درې، څلور، پنځه د هغې اجازت دې، چه د هغې وجه دا کيدې شي چه ممانعت په اصل کښې د هغه روژو دې کوم چه په طور د احتياط اونيولې شي، يعنې د رمضان په روژو کښې احتياط، او احتياط کوم چه عامة کيدې شي په يو دوه روژو سره کيږي، لهذا که څوک زياتي روژې اونيسي نو د دې به اجازت وی د علت منع د مقصود کيدو د وجې نه، دويمه توجيه دا کړې شوې ده چه د نفی تعلق د نفل مطلق سره دې او د جواز تعلق د نفل معتاد سره دې، دريمه توجيه دا ده چه نفی په حيثيت د فرض ده، يعنې بنيت رمضان دې روژه او نه نيولې شي، او د اثبات تعلق د نفل په نيت سره دې.

## باب إذا رُؤِيَ الهلال في بلد قبل الآخرين بليلة

### که په يو ښار کښې د بل ښار نه يوه شپه مخکښې سپوږمۍ وليدلې شي

### مسئله اختلاف مطالع بحث او ائمه مذاهب:

يعنې مياشت په يو ښهر کښې په نظر راشي او په بل کښې رانشي، دا هم هغه مسئله ده کومه چه مشهوره ده، مسئله اختلاف المطالع سره، د مصنف ترجمه خو مطلق ده د دې حکم طرف ته پکښې هيڅ اشاره نشته نه نفيًا او نه اثباتًا. په خلاف د امام ترمذی رحمه الله چه هغه ترجمه قائم کړې ده "باب ما جاء ان لكل اهل بلد رؤيتهم" هغه په دې ترجمه کښې د مسئلې د حکم تصريح فرمائيلې ده چه د هر يو ښهر والا رؤيت هم د هغه ښهر والو په حق کښې معتبر دې، يعنې د دويم ښهر والو په حق کښې معتبر نه دې، يعنې اختلاف مطالع معتبر دې لهذا په کوم ښهر کښې چه مياشت اوليدې شوه هغه هم د هغوی دپاره ده او چرته چه او نه ليدې شوه نو دا نه ليدل د هغوی دپاره دی، يعنې د مطالع مختلف کيدل معتبر او صحيح دی، امام ترمذی چه کومه ترجمه قائم کړې ده هغه د شوافعو د مسلک موافق ده، د شوافعو راجح قول د جمهورو خلاف هم دا دې، هم دا قسم ترجمه امام نووی په شرح مسلم کښې قائم کړې ده هغه هم د مسلک شافعيه ترجماني ده، پس امام نووی په شرح مسلم کښې ليکی: ففيه حديث كريب عن ابن عباس وهو ظاهر الدلالة للترجمة (او په ترجمة الباب کښې هم دا دی چه د يو ښهر رؤيت په بل ښهر کښې معتبر نه دې) والصحيح عند اصحابنا ان الرؤية لا تعم الناس بل تختص بمن قرب على مسافة لا تقصر فيها الصلاة، وقيل ان اتفق المطلع لزمهم، وقيل ان اتفق الاقليم والا فلا، وقال بعض اصحابنا تعم الرؤية في موضع جميع اهل الارض الى اخره... د امام نووی د کلام نه معلوميږی چه دا مشهوره ده چه د شوافعو په نزد اختلاف مطالع معتبر دې او دا چه د يو ښهر رويت د بل ښهر والو په حق کښې معتبر نه دې. لکه چه امام ترمذی رحمه الله په ترجمة الباب کښې فرمائيلې دی، دا د هغوی په نزد مطلقا نه دې بلکه د اختلاف مطالع معتبر کيدل د هغوی په نزد صرف په بلدان نائيه (د اطرافو کلی) کښې دی په بلاد قريبه کښې د هغوی په نزد هم اختلاف معتبر نه دې، بلکه د يو ځائې رويت به بل ځائې کښې معتبر وی او د قرب او بُعد (لرې والې) معيار د هغوی په نزد د اصح قول مطابق مسافة قصر دې چه که دوارو ښهرونو ترمينځه مسافة قصر موندلې شی يعنې د سفر شرعی تحقق وی نو بيا خو اختلاف معتبر دې او که دومره فاصله نه وی نو بيا اختلاف هم معتبر

نه دي بلکه د يو ښهر رويت به د بل ښهر په حق کښې معتبر نه وي، د دې نه علاوه امام نووی د شوافعو دوه اقوال نور ليکلي دي:

١. چه د کومو دوه ښهرونو مطلع متفق وي هلته اختلاف رؤيت معتبر نه دې او د کوم ځائي چه مطلع مختلف وي هلته اختلاف رؤيت معتبر دې. (١)

٢. د اتحاد اقليم په صورت کښې د يو ځائې رؤيت به بل ځائې کښې معتبر وي ګينې نه، او دريم قول د بعض شوافعو دې چه د يو ځائي رؤيت هر ځائي کښې معتبر دې، د دې نه روستو تاسو په دې باندې ځان پوهه کړئ چه په متون حنفيه کښې تصريح ده ﴿لا عبرة لاختلاف المطالع﴾ چه د هغې تقاضه دا ده چه د يو ښهر رويت په نورو ټولو ښهرونو کښې معتبر وي، حضرت شيخ په اوجزالمسالك کښې د نورو امامانو مسلکونه د شروح حديث نه د نقل کولو نه پس بيا خپله د هغوی د کتب فقهيه نه نقل کړې دی، او په دې کښې شک نشته چه د ائمه اربعه د مذاهبو تحقيق خپله د هغوی د کتب فروع نه چه څومره کيدې شی هغه د شارحينو د کلام نه نه شی کيدې، بهرحال حضرت شيخ چه د نورو مذاهبو د کتابونو کوم عبارتونه رانقل کړې دی، د هغې نه روستو حضرت ليکی: فعلم مما سبق ان اختلاف المطالع لم يعتبره من الائمة الا الامام الشافعی، الا ما تقدم من ابن عبدالبر... معلومه شوه چه د شوافعو نه علاوه باقی ائمه ثلاث، چه په هغوی کښې احناف هم دی د هغوی ټولو مسلک هم دا دې چه اختلاف مطالع معتبر نه دې، خو دا هم په ذهن کښې ساتئ چه پورته د امام نووی رحمه الله په کلام کښې تير شو چه اصح د شوافعو په نزد دا ده چه اختلاف مطالع معتبر نه دې، خو دا هم په ذهن کښې ساتئ چه اوس پورته د امام نووی رحمه الله په کلام کښې تير شو چه اصح د شوافعو په نزد دا ده چه د اختلاف مطالع معتبر کيدل د شوافعو په نزد د بلدان نائيه نه دې، او په مواضع قريبه کښې د هغوی په نزد دلته هم اختلاف مطالع معتبر نه دې، او د قرب او بعد مصداق هم د هغوی د کلام نه اوس تير شو يعنی مسافة قصر.

### د فخر الدين زيلعی رائې:

د دې نه ځان پوهه کړه چه اګر چه په کتب حنفيه کښې مشهور هم دا ده چه اختلاف مطالع معتبر نه دې او د يو ښهر رويت په نورو ټولو ښهرونو کښې معتبر دې، خو په دې باندې يو استدراک دې فخر الدين زيلعی شارح الکنز د طرف نه کوم چه مولانا انور شاه کشميری رحمه الله او نور اهل درس په اهتمام سره نقل کړې دې هغه دا چه د مطالع اتحاد د احنافو په نزد په بلاد قريبه کښې دې، په بلدان نائيه کښې اتحاد نشته، هلته به اختلاف لره اعتبار وي، ځکه چه په کومو بلادو کښې بون بعيد (ډير لرې والې) دې، د مشرق او

---

١) او د مطلع مختلف او متحد کيدل دا د علم هيئت سره تعلق ساتی علم هيئت والو ټوله کره ارضيه په اوږدوالي او پلن والی کښې تقسيم کړې ده کوم خطوط چه د شمال او جنوب دي هغوی ته عرض بلد او د مشرق او مغرب خطوط ته طول بلد وئيلې شی کوم ښهر چه په عرض بلد باندې وی د هغوی مطالع متحد وی، او کوم چه په طول بلد باندې وی نو د هغوی مطالع مخصوص فاصلې نه پس مختلف کيږی. حبيب الله)

مغرب فرق دې، چرته چه په رؤيت هلال کښې د يو يا دوه ورځو فاصله وی د داسې بلاد د اختلاف منلو نه خلاصې نشته. په العرف الشذی کښې ليکی. د علامه زيلعی رحمه الله قول تسليم کول ضروری دی والا فيلزم وقوع العيد يوم السابع والعشرين او الثامن والعشرين او اليوم الحادی والثلاثين او الثانی والثلاثين الی اخر ما قال، يعنی که د زيلعی قول لره تسليم نه کړې شی نو لازمه به شی چه کله اختر د اويشتو يا اتويشتو وی او بعض صورتونو کښې د يو ديرش دوه ديرشو، ځکه چه اکثر او بيشتر په بلاد قسطنطنيه کښې د هندوستان نه دوه ورځې مخکښې په نظر راځی، پس که د هغه ځائې نه مونږ ته په رمضان کښې خبر راشی د رويت هلال د څه معتبر ذريعې نه نو زمونږ اختر به دوه ورځې مقدم کيدو سره د اتويشتو ورځو شی. يا به د اختر تاخير لازم شی په داسې طريقه چه د هغه ځائې نه يو سړې رمضان کښې مونږ ته راشی نو هغه که اختر مونږ سره کوی نو په هغې کښې به د دوه ورځو تاخير د دوه ديرشو اختر وی په دې باندې يو سړې اوائی چه دومره کمې او زياتې څومره لازميږی بلکه په پورته ذکر شوې صورت کښې به دا کوی چه په دې بنياد باندې به مونږ خپل تاريخ بدل کړو او په يو صورت کښې د يو يا دوه ورځو قضاء، او په دويم صورت کښې به دا وايو چه د شروع روژه غلطه شوه هغه رمضان نه وو، د دې جواب حضرت مفتی محمد شفيع صاحب دا ورکړې دې چه کله د دې ځائې خلقو عام رويت يا ضابطه شهادت مطابق مياشت شروع کړه نو د لرې د شهادت په بناء باندې خپله مقامی شهادت يا رويت غلط يا دروغ وئيل عقلا معقول نه دی نه شرعا جائز، په دې وجه دا توجيه غلطه ده. (از هامش درس ترمذی ۵۳۴/۲)

[۲۳۳۲](1)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ، أَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي حَرْمَلَةَ، أَخْبَرَنِي كُرَيْبٌ، "أَنَّ أُمَّ الْفَضْلِ ابْنَةَ الْحَارِثِ، بَعَثَتْهُ إِلَى مُعَاوِيَةَ بِالشَّامِ، قَالَ: فَقَدِمْتُ الشَّامَ فَقَضَيْتُ حَاجَتَهَا، فَاسْتَهَلَّ رَمَضَانُ وَأَنَا بِالشَّامِ، فَرَأَيْنَا الْهِلَالَ لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ، ثُمَّ قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ فِي آخِرِ الشَّهْرِ، فَسَأَلَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ، ثُمَّ ذَكَرَ الْهِلَالَ، فَقَالَ: مَتَى رَأَيْتُمُ الْهِلَالَ؟ قُلْتُ: رَأَيْتُهُ لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ، قَالَ: أَنْتَ رَأَيْتَهُ؟ قُلْتُ: نَعَمْ، وَصَامُوا وَصَامَ مُعَاوِيَةُ وَرَآهُ النَّاسُ، قَالَ: لَكِنَّا رَأَيْنَاهُ لَيْلَةَ السَّبْتِ، فَلَا نَزَالُ نَصُومُهُ حَتَّى نُكْمِلَ الثَّلَاثِينَ أَوْ نَرَاهُ، فَقُلْتُ: أَفَلَا تَكْتَفِي بِرُؤْيَةِ مُعَاوِيَةَ وَصِيَامِهِ؟ قَالَ: لَا، هَكَذَا أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** د کريب نه روايت دې فرمائی چه ام الفضل بنت حارث زه شام ته وليږلم چه هلته معاويه ته ورشه کريب وائی زه شام ته لاړم اودام الفضل چه کوم کار وو هغه مې اوکړو بيا د رمضان مياشت وليدلې شوه اوزه په شام کښې وم مونږ مياشت د جمعې په شپه وليدله بيا چه کله د مياشتې په آخر کښې مدينې ته راغلم نو ابن عباس رضی الله عنه رانه تپوس اوکړو د مياشتې دليدو په باره کښې اووئې وئيل چه مياشت موکله ليدلې وه؟ ما ورته اووئيل مونږ د جمعې په شپه مياشت ليدلې وه ابن عباس اوفرمائيل اياتا پخپلو سترګو ليدلې وه ما ورته اووئيل هو، ماهم مياشت ليدلې ده اونورو خلقو هم ليدلې وو او ټولو خلقو روژې

(1): صحيح مسلم/الصيام ۵ (۱۰۸۷)، سنن الترمذي/الصيام ۹ (۶۹۳)، سنن النسائي/الصيام ۵ (۲۱۱۳)، (تحفة الأشراف: ۶۳۵۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۰۶/۱) (صحيح)

ونیولي اومعاویه هم روژه اونیوله ابن عباس اووئیل مونږه خو سپوږمۍ دخالي په شپه باندې لیدلي وه مونږ خو ددې ورځې نه روژې نیولي دي او په دې طریقه به مونږ روژې پوره کوو یاخوبه دیرش روژې پوره شي یا به دشوال میاشت اولیدلي شي «نواختربه شي مااووئیل آیا زمونږ دپاره دمعاویه میاشت لیدل اودهغه روژه کیدل کافي نه دي؟ هغه اووئیل نه مونږ ته نبي ﷺ په روئیت باندې دعمل کولو په حقله په همدې طریقه باندې حکم فرمائیلي دې.

## مضمون حدیث :

قوله: قُلْتُ: نَعَمْ([1])، وَصَامُوا وَصَامَ مُعَاوِيَةُ وَرَآهُ النَّاسُ:

مضمون حدیث دا دې چه د ابن عباس رضی الله عنهما خادم کریب فرمائي چه د ابن عباس رضی الله عنهما مور سیده ام الفضل رضی الله عنها زه د څه ضرورت په وجه باندې ملک شام ته د معاویه رضی الله عنه خواته اولیږلو، زه لاړم او د هغې کار مې اوکړو، بیا د رمضان میاشت زما په هلته تلو باندې راوختله بیا چه د شام نه مدینې منورې ته راواپس شوم نو ابن عباس رضی الله عنهما زما نه تپوس اوکړو چه تا د رمضان میاشت کله لیدلې وه؟ ما اووې د جمعې په شپه، تپوس ئې اوکړو ایا تا خپله لیدلې وه؟ عرض مې اوکړو او! او نورو خلقو هم لیدلې وه، او بیا ټولو هم د هغې مطابق روژه اونیوله، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دهغه په خبره اوریدلو باندې اوفرمائیل، خو مونږ یعنی اهل مدینه میاشت د خالي په شپه لیدلې وه او بیا ئې اوفرمائیل چه مونږ خو د خپل رویت په اعتبار سره روژه نیسو تردې چه مونږ دیرش روژې پوره کړو یا د هغې نه مخکښې میاشت وینو، کریب فرمائي ما عرض اوکړو چه ایا د اهل شام رویت باندې به تاسو اکتفاء نه کوئ؟ هغه اوفرمائیل : نه! مونږ ته رسول الله ﷺ هم دغه شان حکم کړې دې.

د دې حدیث د ظاهر نه د اختلاف مطالع معتبر کیدل مستفاد کیږي، دا هم نه شي وئیلې کیدې چه دا د ابن عباس رضی الله عنهما فعل دې ځکه چه هغه خو د رسول الله ﷺ حواله ورکوي، شوافع کوم چه اختلاف مطالع لره اعتبار ورکوي هغوی ته د دې واقعې د توجیه هیڅ حاجت نشته، د هغوی د مسلک موافق دې، خو د جمهور علماء او ائمه ثلاث د مسلک مطابق د جواب حاجت دې، د دې جواب د خلاصې په طور بعض شروح او حواشي کتلو سره چه کوم د بنده په ذهن کښې راغلې دې هغه دا چه د ابن عباس رضی الله عنهما په کلام کښې چه دا خبره راغلې ده چه : مونږ د اهل شام د رویت اعتبار نه ورکوو په دې کښې دوه احتمالات دی، یو دا چه د هغه مراد دا دې چه په دې صورت خاصه کښې د اهل شام د رویت اعتبار نه کوو هغه دا چه اګر چه د ابتداء په لحاظ سره د دې واقعې تعلق د هلال رمضان سره دې خو اوس فی الحال هر کله چه د رمضان اخر دې نو دا مسئله جوړه شوه د هلال عید، او د هلال رمضان په ثبوت کښې اګر چه د عدل واحد شهادت کافي دې خو د هلال عید د ثبوت دپاره شهادت عدلین بالاتفاق ضروري دې، د عدل واحد شهادت هلته معتبر نه دې.

[1] ) هكذا لفظ مسلم والنسائي والدار قطني، اما الترمذي ففيه فقلت رآه الناس، والظاهر ان فيه سقوطاً، سقط عنه لفظ «نعم» من البذل.

دويم احتمال د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په جواب کښې دا دې چه د هغه مراد د نفی په اعتبار سره مطلقا او علی العموم دې (صرف په دې صورت خاصه کښې نه دې) نو بيا به مونږ دا وايو چه دا د ابن عباس رضی الله عنهما خپله رائې ده هغه اګر چه دا منسوب کوی د رسول الله ﷺ د حديث طرف ته، خو داسې هيڅ قسم صريح حديث د احاديثو په موجوده ذخيره کښې نشته، پس غالب ګمان دا دې چه د هغه اشاره دې مشهور حديث مرفوع طرف ته ده ﴿صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته﴾ او په دې حديث کښې د اختلاف مطالع په معتبر کيدو باندې استدلال نه شی کيدې، ځکه چه جمهور علماء کرام دا فرمائی چه کله د يو ښهر خلقو مياشت اوليده نو جماعت المسلمين ګويا مياشت اوليده او رسول الله ﷺ مسلمانانو ته خطاب کولو سره هم دا فرمائی چه تاسو خلق مياشت ليدو سره روژه اونيسئ او هم دغه شان افطار اوکړئ، نو کله چه د مسلمانانو يو جماعت مياشت اوليده نو په ټولو خلقو باندې د صيام حکم عائد شو، ځکه چه د هر سړی رويت او د هغه مياشت ليدل دا خو بالاجماع ضروری نه دی. والله تعالی اعلم بالصواب. والحديث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری، وزاد الشيخ احمد شاكر، مسند احمد ۲۷۹۰، وزاد فی البذل الدارقطنی.

[۲۳۳۳]([1]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا الْأَشْعَثُ، عَنِ الْحَسَنِ، فِي رَجُلٍ كَانَ بِمِصْرٍ مِنَ الْأَمْصَارِ فَصَامَ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ، وَشَهِدَ رَجُلَانِ أَنَّهُمَا رَأَيَا الْهِلَالَ لَيْلَةَ الْأَحَدِ، فَقَالَ: "لَا يَقْضِي ذَلِكَ الْيَوْمَ الرَّجُلُ وَلَا أَهْلُ مِصْرِهِ، إِلَّا أَنْ يَعْلَمُوا أَنَّ أَهْلَ مِصْرٍ مِنْ أَمْصَارِ الْمُسْلِمِينَ قَدْ صَامُوا يَوْمَ الْأَحَدِ، فَيَقْضُونَهُ".

**ترجمه:** دحسن نه روايت دې فرمائی چه په مصر کښې يو انصاري ددوشنبې په ورځ روژه ونيوله او نورو دوه کسانو داګواهي اوکړه چه مونږ دیکشنبې په شپه مياشت اوليدله نو وئې فرمائيل چه دغه کس به ددغه ورځې قضائه راوړي اونه به دده وطنداران ددغه ورځې قضاء راوړي مګرهله چه ورته معلومه شي چه دمسلمانانو په ښارونوکښې ديوښار والا ديکشنبې په ورځ روژه نيولې ده نوبيا به دوی ددغه ورځې قضاء راوړي

## بَابُ كَرَاهِيَةِ صَوْمِ يَوْمِ الشَّكِّ

### بيان د مکروه والی د شکی ورځې دروژې نيولو

يوم الشک يعنی ديرشم د شعبان ځکه چه په دې کښې احتمال وی د دې خبرې چه ممکنه ده د شپې مياشت راختلې وی او په نظر نه وی راغلې، كذا عند الجمهور. او د امام احمد په نزد په دې کښې يو قيد دې چه ديرشم د شعبان يوم الشک هله دې چه کله د شپې مطلع صفا وی، د هغه مسلک په دې کښې د دې نه مخکښې "باب الشهر يكون تسعا وعشرين" کښې تير شوې دې. فليراجع

[۲۳۳٤]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الْأَحْمَرُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ قَيْسٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ صِلَةَ، قَالَ: "كُنَّا عِنْدَ عَمَّارٍ فِي الْيَوْمِ الَّذِي يُشَكُّ فِيهِ فَأَتَى بِشَاةٍ فَتَنَحَّى بَعْضُ الْقَوْمِ"، فَقَالَ عَمَّارٌ: "مَنْ صَامَ

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸٤۹۲) (صحيح)

[2]): صحيح البخاري/الصوم ۱۱(۱۹۰٦ تعليقا)، سنن الترمذي/الصوم ۳(٦٨٦)، سنن النسائي/الصيام ۲۰ (۲۱۹۰)، سنن ابن ماجه/الصيام ۳(١٦٤٥)، (تحفة الأشراف: ۱۰۳٥٤)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الصوم ۱(۱۷۲٤) (صحيح)

هَذَا الْيَوْمَ فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** د صله نه روایت دي فرمائی چه مونږ دشك په ورځ باندې (یعنی چه دادشعبان آخر دې اوکه درمضان شروع ده) دعماره سره وو، عمار شته دچیلی غوښه راوړل شوه بعضوخلقو دغوښې خوړلونه ډډه اوکړله عمار اووئیل چاچه نن روژه اونیوله هغه دنبی ﷺ نافرمانی اوکړله.

**مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه:**

مسئلة الباب مختلف فیه ده، د امام شافعی رحمه الله په نزد کراهت صرف د دوه روژو دې نفل مطلق او په نیت د رمضان د دې نه علاوه باقی روژې په دې ورځ کښې جائز دی لکه نفل معتاد، قضاء او واجبات اخر. صوم کفاره ونذر وغیره، هم دا یو روایت د امام احمد نه دې، هسې د هغوی روایات ثلاثه په مخکښې باب کښې تیر شو، او د امام مالک رحمه الله په نزد سوا د رمضان نه باقی روژې جائز دی او د احنافو په نزد نفل مطلق او نفل معتاد دا دوه قسمونه جائز دی، ولا یجوز غیرهما من الاقسام، په کوکب کښې لیکلي دی چه د دې صوم کراهت په هغه صورت کښې دې چه کله په داسې نیت سره وی کوم چه دائر بین الفرض والنفل وی، یعنی که په دې نیت سره اونیسی چه که میاشت اولیدې شوه نو رمضان به راشی ګینې نفل، او که په نیت جازمه سره وی یعنی جزم بالنفل سره نو بغیر د تردد نه خو کراهت نشته، او بیا په دې صورت کښې که د میاشت ثبوت راشی نو دا روژه به د رمضان شی او د شوافعو په نزد به نه وی، او که تردد وی بین الصوم والافطار، یعنی که میاشت اولیدې شوه نو زما روژه ده ګینې نه ده نو په دې صورت به دا عمل لغو وی او هیڅ قسم روژه به نه وی، او په نور الایضاح کښې لیکی چه عام خلقو لره پکار دی چه هغوی په یوم الشک کښې خو تلوم اوکړی یعنی انتظار بغیر د نیت نه، په زوال پورې نزدې روژې پورې، د هغې نه روستو دې افطار اوکړی، او علماء او خواص دې هغه ورځ روژه نیسی، یعنی کوم خلق چه په استحکام نیت باندې قادر وی، په تردد کښې نه واقع کیږی.

## بَابُ فِيمَنْ يَصِلُ شَعْبَانَ بِرَمَضَانَ

**كه څوك په شعبان كښې روژې و نيسى او په رمضان كښې ئې شامل كړي**

[۲۳۳۵] (۱) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَقَدَّمُوا صَوْمَ رَمَضَانَ بِيَوْمٍ وَلَا يَوْمَيْنِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ صَوْمٌ يَصُومُهُ رَجُلٌ فَلْيَصُمْ ذَلِكَ الصَّوْمَ".

**ترجمه:** دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی په تاسوکښې دې یوکس درمضان نه وړاندې یوه یا دوه روژې نه نیسی مګردچاچه دروژو نیولو عادت وي نوهغه دې دغه روژه اونیسي.

(۱): صحیح البخاري/الصوم ١٤(١٩١٤)، صحیح مسلم/الصیام ٣ (١٠٨٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٤٢٢)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصوم ٢ (٦٨٥)، سنن النسائي/الصیام ٣١ (٢١٧١)، ٣٨ (٢١٨٩)، سنن ابن ماجه/الصیام ٥ (١٦٥٠)، مسند احمد (٢/٢٣٤، ٣٤٧، ٤٠٨، ٤٣٨، ٤٧٧، ٤٩٧، ٥١٣، ٥٢١)، سنن الدارمي/الصوم ٤ (١٧٣١) (صحیح)

[۲۳۳۶]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ تَوْبَةَ الْعَنْبَرِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ "لَمْ يَكُنْ يَصُومُ مِنَ السَّنَةِ شَهْرًا تَامًّا إِلَّا شَعْبَانَ يَصِلُهُ بِرَمَضَانَ".

**ترجمه:** دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام درمضان نه علاوه يوكال هم پوره مياشت روژې نه دي نيولې مګر شعبان اودابه ئي درمضان سره پيوست كولې.

**تشريح:** يعنى كوم سړې چه د شعبان په اخر كښې دوه روژې نيولو سره هغه روژې د رضمان سره يوځائي كړي، په دې باب كښې مصنف دوه احاديث ذكر كړې دى، اول حديث د ابوهريره رضي الله عنه ﴿لا تقدموا صوم رمضان بيوم ولا بيومين﴾ دا حديث د ابن عباس رضي الله عنه په روايت نزدې تير شو، او دويم حديث د ام سلمه رضي الله عنها په دې لفظ : ﴿عن ام سلمة عن النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انه لم يكن يصوم من السنة شهرا تاما الا شعبان يصله برمضان﴾ د حديث مفهوم واضح دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به د كال د يوې مياشتې هم پوره روژې نه نيولې سوا د شعبان نه چه د هغې روژې به ئي د رمضان سره يوځائي كړې.

## د ترجمة الباب غرض :

د مصنف غرض دې حديث لره دلته راوړلو كښې په ظاهره دا دې چه د تقدم على رمضان ممانعت په هغه صورت كښې دې چه كله د رمضان نه مخكښې صرف يو يا دوه روژې اونيولې شى لكه چه هم د دې باب په حديث اول كښې دى، خو كه د دوه نه زياتې روژې اونيولې شى كه هغه د اكثر مياشتې وى يا د پوره مياشت وى د هغې ممانعت نشته، وهذا ظاهر من صنيع المصنف. هم دا ترجمه تقريبا امام ترمذى رحمه الله هم قائم كړې ده، ما جاء في وصال شعبان برمضان، خو هغه په دې كښې صرف كثرت صوم شعبان والا روايت ذكر كړې دې، تقدم بصوم او يوم او يومين والا روايت ئي په دې كښې نه دې راوړې.

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ ذَلِكَ

### د شعبان په آخر كښې د روژې نيولو د مكروه والي بيان

[۲۳۳۷]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: قَدِمَ عَبَّادُ بْنُ كَثِيرٍ الْمَدِينَةَ، فَمَالَ إِلَى مَجْلِسِ الْعَلَاءِ، فَأَخَذَ بِيَدِهِ فَأَقَامَهُ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ إِنَّ هَذَا يُحَدِّثُ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا انْتَصَفَ شَعْبَانُ، فَلَا تَصُومُوا"، فَقَالَ الْعَلَاءُ: اللَّهُمَّ إِنَّ أَبِي حَدَّثَنِي، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَلِكَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، وَشِبْلُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَأَبُو عُمَيْسٍ، وَزُهَيْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَانَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ لَا يُحَدِّثُ بِهِ. قُلْتُ لِأَحْمَدَ: لِمَ؟ قَالَ: لِأَنَّهُ كَانَ عِنْدَهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَصِلُ شَعْبَانَ بِرَمَضَانَ، وَقَالَ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِلَافَهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَيْسَ هَذَا عِنْدِي خِلَافَهُ، وَلَمْ يَجِئْ بِهِ غَيْرُ الْعَلَاءِ، عَنْ أَبِيهِ.

[1]: سنن النسائي/الصيام ١٩ (٢١٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٣٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصوم ٣٧ (٧٣٦)، سنن ابن ماجه/الصيام ٤ (١٦٤٨)، مسند احمد (٦/٣٠٠، ٣١١)، سنن الدارمي/الصوم ٣٣ (١٧٨٠) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصوم ٣٨ (٧٣٨)، سنن ابن ماجه/الصيام ٥ (١٦٥١)، (تحفة الأشراف: ١٤٠٥١)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الصوم ٣٤ (١٧٨١) (صحيح)

**ترجمه:** دعبدالعزیز بن محمدنه روایت دي فرمائی چه عباد بن کثیر مدیني ته راغي اودعلاء خواته لاړو هغه دده لاس اونیولواودي ئي اودرولو اوددي نه پس ئي اوونیل اې الله دي دخپل پلارنه حدیث بیانوي اوهغه دابوهریره نه چه هغه دنبی ﷺ نه اوریدلي دي چه کله دشعبان نیمه میاشت تیره شي نوبیاروژي مه نیسئ ترڅوچه رمضان شروع شونه وي) علاء اووئیل یقینا زما پلار دابوهریره نه حدیث بیان کړي دي اوهغه دنبی ﷺ نه.

ابوداؤد وائی چه داحدیث ثوری، شبل بن علاء، ابوعبیس او زهیر بن محمد هم د علاء نه روایت کړي دي، اوابوداؤد دا هم وئیلی دی چه عبدالرحمن به دا حدیث نه بیانولو نو ما احمد ته اووئیل چه داسي ولي ده؟ نوهغه اووئیل ځکه چه هغه ته دامعلومه وه چه نبی علیه السلام به دشعبان روژي رمضان سره پیوسته کولي او دائي هم اووئیل چه نبی علیه السلام نه ددي خلاف هم نقل دی ابوداؤد وائی زما په نزد دا خلاف نه دي دا حدیث د علاء نه علاوه بل چا دهغه دپلار نه نه دي نقل کړي.

## توضیح الحدیث

عبدالعزیز بن محمد فرمائی چه یو ځل عباد بن کثیر مدیني منورې ته راغلو او د علاء بن عبدالرحمن مجلس ته لاړو اود هغه لاس ئي اونیولو او په مجلس کښي ئي خلقو ته مخامخ هغه کینولو او بیا ئي د حاضرین مجلس په وړاندې هغوی ته دا خبره کیخودله چه اوګورئ علاء ماته دا حدیث د خپل پلار نه روایت کړي دي ﴿اذا انتصف شعبان فلا تصوموا﴾ په دې باندې علاء د ټولو په وړاندې د هغه تصدیق اوکړو چه بیشکه ما دا حدیث د خپل پلار نه روایت کوم. عباد بن کثیر داسي ولي اوکړل او د خپل استاذ نه ئي د هغه د بیان کړی حدیث د تصدیق کولو ضرورت ولي پیښ شو د دې وجه یو شارح هم نه ده لیکلي، ممکنه ده د دې وجه دا وی چه د دې حدیث سره علاء بن عبدالرحمن متفرد دې، د دې حدیث د روایت مدار هم په هغه باندې دې، او د هغه د دې روایت حدیث مضمون په ظاهره کښي د نورو احادیث صحیحه خلاف دې [1] والله تعالی اعلم... او د دې نه غوره دا ده چه داسي اوئیلي شی لکه چه د مراجعت کتب نه معلومه شوه چه یو طعن په دې سند باندې کولي شی چه د علاء سماع د خپل پلار نه ثابتنه نه ده، پس هم په دې وجه عباد په ډک مجلس کښي په علاء باندې دا اعتراف اوکړو چه ما دا حدیث د خپل پلار نه اوریدلي دي.

## د نصف شعبان نه روستو د نهی عن الصوم والا حدیث توجیه:

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه د دې حدیث مضمون دا دې چه د نصف شعبان نه روستو تر اخره پورې هیڅ قسم نفلی روژه او نه نیولي شي، په فتح الباری کښي حافظ فرمائی ه د جمهور علماء کرامو په نزد د نصف شعبان نه روستو صوم تطوع جائز دې، او دا چه جمهور دا حدیث ضعیف کړي دي، امام احمد او امام یحیی بن معین فرمائی: انه منکر، هم دغه شان په دې کښي دا دی چه ډیر شوافع د نصف شعبان نه روستو د کراهت صوم قائل دی،

[1] د کوم نه چه د صیام شعبان فضیلت ثابتیږی. او هم دغه شان هغه مشهور حدیث: لا یتقدمن احدکم رمضان بصوم یوم او یومین﴾

هم د دې حديث العلاء په وجه باندې، او د رؤيانى من الشافعيه مسلک دا دې چه تقدم بيوم او يومين خو حرام دې، او د نصف شعبان نه پس تقدم مکروه، بهرحال حديث الباب د مسلک جمهور خلاف دې چه د هغې دوه جوابونه کيدې شي. تضعيف لکه چه پورته ذکر شو، هم دغه شان بيهقى هم فرمائي چه حديث ﴿لا يتقدمن احدکم رمضان بصوم يوم او يومين﴾ کوم چه دلالت کوى د نصف شعبان په رخصت صوم باندې دا اصح دې د علاء بن عبدالرحمن د حديث نه يا تطبيق او جمع بين الحديثين چه د منع روايت په هغه سړى باندې محمول دې چه چاته د روژې نيولو نه د ضعف راتلو ويره وى، او دويم حديث چه په هغې کښې نهى راغلې ده تقدم بصوم يوم او يومين نه هغه د هغه سړى په حق کښې ده کوم چه په رمضان کښې په احتياط سره روژه اونيسى، کذا قال الطحاوى قال الحافظ : هو جمع حسن.

## د حديث الباب په تصحيح او تضعيف کښې اختلاف:

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د حديث الباب تضعيف او تصحيح کښې د محدثينو اختلاف دې، يو جماعت د دې تضعيف کوى لکه امام احمد او يحيى بن معين کما تقدم انفا. او يو جماعت د دې تصحيح کوى، پس امام ترمذیؒ د دې حديث تخريج کولو نه پس فرمائي : قال ابو عيسى: حديث ابى هريرة حديث حسن صحيح، او حافظ په فتح البارى جلد ۴ ص ۱۵۲ کښې ليکى : اخرجه اصحاب السنن وصححه ابن حبان وغيره، د حافظ منذرى ميلان هم په مختصر السنن کښې د صحت حديث طرف ته دې، پس هغه د ناقدينو د نقد نقل کولو نه پس د دې جواب کړې دې، پس هغه فرمائي: قال ابو عيسى : حديث ابى هريرة حديث حسن صحيح، او حافظ په فتح البارى جلد ۴ صفحه ۱۵۲ کښې ليکى : اخرجه اصحاب السنن وصححه ابن حبان وغيره، د حافظ منذرى ميلان هم په مختصر السنن کښې د صحت حديث طرف ته دې، پس هغه د ناقدينو د نقد نقل کولو نه پس د دې جواب دا ورکړې دې پس هغه فرمائي: حکى ابوداود عن الامام احمد انه قال : هذا حديث منکر، قال: وکان عبدالرحمن بن مهدى لا يحدث به، ([1]) په دې باندې منذرى فرمائي. ممکنه ده امام احمد د دې حديث انکار د علاء بن عبدالرحمن د وجې نه کړې وى ځکه چه د هغه په باره کښې محدثين کلام کوى. او حال دادې چه هغه د دې حديث سره متفرد دې، منذرى فرمائي چه: د علاء بن عبدالرحمن په باره کښې اګر چه کلام کړې شوې دې خو امام مالک د هغه نه دا حديث اخستلې دې سره د ډير سخت تحقيق نه او احتياط نه، هم دغه شان امام مسلم په صحيح مسلم کښې د هغه د حديث نه استدلال کړې دې او د هغه نه ئې ډير زيات روايات اخستلې

[1]) په دې باندې شيخ احمد شاکر په خپل تعليق على مختصر المنذري کښې د منذرى په دې نقل باندې د تردد اظهار کړې دې چه امام ابوداود د امام احمد نه دا خبره چرته نقل کړې ده. نه دا په سنن کښې دې او د هغې دويم تصنيف مسائل ابوداود کښې دى هغه ليکى ﴿هکذا نقل المنذري عن ابي داود انه حکي عن الامام احمد انه قال : هذا حديث منکر، وما ادري من اين جاء به؟ فليس هو في السنن ولا في کتاب مسائل ابي داود الي اخر ما ذکر، قلت هذه الحکاية موجودة في الجزء الخامس من مسائل الامام احمد لابي داود ۳۱۵ فهذا مبني علي قلة تتبعه وتسرعه في الانکار. (حبيب الله مظاهري)

دی لهذا دا حدیث د مسلم په شرط باندې دې او کیدې شی چه امام مسلم د علاء دا حدیث پریخودلې وی د هغه د تفرد د وجې نه. اهـ
د حافظ ابن القیم رحمه الله میلان هم په تهذیب السنن کښې هم دې طرف ته معلومیږی، هغه په دې حدیث باندې وجوه طعن لره په تفصیل سره لیکلو نه پس د هغې جوابات ورکړې دی، د هغې نه یو طعن په دې باندې دا هم دې چه د علاء سماع د خپل پلار نه ثابت نه دې. ابن القیم رحمه الله د دې تردید کړې دې، اوداچه دعلاء سماع د خپل پلار نه ثابته ده الی اخر ما ذکر.
والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

## بَاب شَهَادَةِ رَجُلَيْنِ عَلَى رُؤْيَةِ هِلَالِ شَوَّالٍ[1]

### بیان د شهادت ورکولو د دوه کسانو په شروع کیدو د میاشت د شوال

د دې باب تعلق د هلال شوال یعنی د اختر د میاشتې د رؤیت سره دې، او د راتلونکی باب تعلق د هلال رمضان د رویت سره دې، دلته مصنف شهادت رجلین فرمائیلې دې، او په راتلونکی باب کښې ئې شهادة الواحد فرمائیلې دې، د دې نه په مخکښې باب کښې خو د ائمه اربعه اتفاق دې چه د اختر په میاشت کښې شهادة عدلین ضروری دې، یعنی د عدل واحد شهادت کافی نه دې سوا د ابو ثور نه چه د هغه په نزد جائز دې او په هلال رمضان کښې د عدل واحد شهادت لکه چه مصنف په ترجمة الباب کښې وئیلې دی د ائمه ثلاث په نزد کافی ده، خو دلته د امام مالک اختلاف دې د هغوی په نزد د هلال رمضان په ثبوت کښې هم شهادت عدلین ضروری دې کما فی الشرح الکبیر للدردیر. د دې اجمالی اختلاف ائمه نه پس د ائمه اربعه د مذاهبو تفصیل لاندې لیکلې شی.

### د رمضان او اخترونو د هلال په ثبوت کښې د مذاهب اربعهٔ تفصیل

۱: **حنفیه**: فی هلال رمضان: عدل واحد ولو عبدا او انثی ولا یشترط لفظ الشهادة.
**حنفية**: فی هلال شوال: شهادة حرین او حر او حرتین بشرط العدالة ولفظ الشهادة.
۲: **مالکیة**: رمضان وشوال: د کوم ځائې اوسیدونکی چه د رویت هلال اهتمام کوی، هلته شهادة عدلین، او چه کوم ځائې کښې اهتمام نه وی هلته شهادة عدل واحد مطلقا رمضان وی یا شوال.
۳: **شافعیه**: فی رمضان: شهادة عدل واحد حر ذکر علی الاصح وفی روایة ولو عبدا او امراءة.
فی العید: شهادة عدلین حرین.
۴: **حنابلة**: فی رمضان: شهادة عدل واحد، ولو عبدا او امراءة.
فی العید: شهادة عدلین حرین. (ملخصا من المنهل)

---

[1] ، وفي الهداية ج ۱: في بيان هلال رمضان: وإذا كان بالسماء علة قبل الإمام شهادة الواحد العدل في رؤية الهلال رجلا كان أو امرأة حرا كان أو عبدا لأنه أمر ديني فأشبه رواية الأخبار (أي الاحاديث) ولهذا لايختص بلفظة الشهادة وتشترط العدالة لأن قول الفاسق في الديانات غير مقبول. وقال في بيان هلال الفطر: وإذا كان بالسماء علة لم تقبل في هلال الفطر إلا شهادة رجلين أو رجل وامرأتين لأنه تعلق به نفع العبد وهو الفطر فأشبه سائر حقوقه والأضحي كالفطر في هذا في ظاهر الرواية وهو الأصح خلافا لما روي عن أبي حنيفة رحمهالله أنه كهلال رمضان لأنه تعلق به نفع العباد وهو التوسع بلحوم الأضاحي هذا تعليل ظاهر الرواية)

### د مطلع په صفا کېدو او نه صفا کېدو کښې فرق :

بیا خان پوهه کړئ چه دلته د احنافو او جمهور ترمینځه یو بل اختلاف دې هغه دا چه جمهور د مطلع صفا کیدو او نه صفا کیدو هیڅ فرق نشته، په دواړو صورتونو کښې حکم یو شان دې، او احناف په ظاهر الروایة کښې د دواړو صورتونو حکم مختلف دې د هغوی په نزد د مطلع د نه صفا کیدو په صورت کښې خو حکم داسې دې کوم چه مذکور شو، خو د مطلع د صفا کیدو په صورت کښې د هغوی په نزد که هلال رمضان وی یا هلال عید د ثبوت رؤیت دپاره د جم غفیر کیدل ضروری دی، یعنی دومره لوئي جماعت چه قاضی ته د هغه په شهادت سره یقین حاصل شی، د دې جماعت هیڅ قسم تحدید نه دې کړې شوې، او یو روایت د امام ابویوسف رحمه الله نه دا دې چه هغه د عدد قسامت موافق تعداد پنځوس فرمائیلي دې، او بعض وئیلي دی چه په هر مسجد کښې د جماعت نه یو یا دوه کسان کیدل پکار دی، کذافی البذل عن البدائع، او په هدایه کښې یو قول دا دې : قيل في حد الكثير اهل المحلة، هم دغه شان په هدایه کښې دی: ولا فرق بين اهل المصر ومن ورد من خارج المصر، او بیا په دې کښې د امام طحاوی قول دا لیکلې شوې دې چه که شهادت ورکونکي د ښهر د بهر نه راغلي دې نو په دې صورت کښې د عدل واحد شهادت قبلولي شی لقلة الموانع، یعنی د ښهر نه بهر د میاشت په نظر راتلو موانع کم وی، (پس ظاهره هم دا ده چه هغه میاشت لیدلي ده) وکذا اذا كان على مكان مرتفع في المصر، او هم دغه شان که واحد عدل میاشت لیدو والا ښهر کښې دننه په څه اوچت ځائي باندې اوینه.

### د صاحب بحر الرائق رائې :

د احنافو په نزد ظاهر الروایة خو هم دا دې یعنی د غیم (گرد وغبار) او غیر غیم فرق، او یو روایت په دې کښې د امام ابوحنیفه نه دا دې چه شهادت عدلین کافی دې اگر چه مطلع صفا وی، صاحب د البحر الرائق د دې روایت د لیکلو نه پس فرمائی : ولم ار من رجحها من المشائخ، او بیا وړاندې فرمائی چه : مناسب دا ده چه زمونږ په دې زمانه کښې هم په دې روایت باندې عمل اوکړې شی، لان الناس تكاسلوا عن تراءی الاهلة... ځکه چه خلقو د میاشت لیدو اهتمام د سستیا او ناراستئ د وجې نه پریخودلي دې، لهذا په دې صورت کښې د غلطئ اهتمام صرف د یو یا دوه کسانو په کتلو کښې غیر ظاهر دې. اه من المنهل.

### د فرق بين الصحو والغيم دليل :

خان پوهه کړه چه د پورته ذکر شوې مسلک "الفرق بين حال الغيم والصحو" عموما فقهاء احنافو په دې باندې استدلال په طریق نظر درایة کړې دې چه د مطلع د صفا کیدو باوجود د کتونکو په یو جماعت کښې صرف یو یا دوه کسانو ته میاشت ښکاره کیدل خلاف ظاهر دی، پس کیدې شی چه دې دواړو کسانو ته څه وهم شوې وی، په دې وجه هغوی په دې صورت کښې د یو یا دوه کسانو د رویت اعتبار نه دې کړې، هسې که اوکتلې شی نو روایات کښې غور کولو نه هم د دې ثبوت یا کم از کم د دې تائید ضرور ملاویږی لکه چه

په اعلاء السنن نهم جلد کښې دې طرف ته اشاره کړې شوې ده، د هغې طرف ته دې رجوع اوکړې شی، د دې نه علاوه هم دا خبره ذهن کښې ساتل پکار دی چه رویت هلال چه د هغې تعلق د فضاء سره دې د هغې دوه حالات دی، حالت صحو او حالت غیم، چه په هغې کښې اصل حال صحو دې او غیم د عوارض نه دې، دا مقدمه په ذهن کښې ساتلو نه پس په دې ځان پوهه کړئ چه د دې سلسلې چه کوم مشهور حدیث دې یعنی ﴿صوموا لرؤیته وافطروا لرؤیته﴾ کوم چه ټولو اصحاب السنن د الفاظو د لږ شان فرق سره روایت کړې دې، د هغې الفاظ په سنن نسائی کښې داسې دی ﴿صوموا لرویته وافطروا لرویته وانسکوا لها، فان غم علیکم فاکملوا ثلاثین، فان شهد شاهدان فصوموا وافطروا﴾ په دې حدیث کښې رسول الله ﷺ اول حال د صحو حکم بیان فرمائیلې دې، ﴿صوموا لرؤیته وافطروا لرویته﴾ چه په هغې کښې د جمع صیغه استعمال کړې شوې ده، او ظاهره هم ده چه هر کله مطلع صفا ده نو میاشت به ټولو ته په نظر راځی، د هغې نه روستو رسول الله ﷺ د حال غیم حکم بیان فرمائیلې دې، ﴿فان غم علیکم فاکملوا ثلاثین﴾ او بیا وړاندې هم د دې په باره کښې فرمائی ﴿فان شهد شاهدان فصوموا وافطروا﴾ پس د شهادت شاهدین حکم د غیر سره متعلق شو، په دې باندې علامه سندی په حاشیه د نسائی کښې دا فرمائیلې دی چه په ظاهره کښې دا حکم ثانی د غیم سره خاص نه دې ځکه چه وړاندې هم په دې حدیث کښې د صوم او افطار هر دواړو ذکر دې حال دا چه صوم کښې په حالت د غیم بالاجماع د عدل واحد شهادت کافی دې، خو د هغه د دې خبرې جواب دا کیدې شی چه د دې حدیث نه خو هم دا معلومیږی چه د غیم په حالت کښې د صوم دپاره هم د شاهدین شهادت کیدل پکار دی، خو دا ضروری نه ده چه پوره مسئله د یو حدیث نه معلومه شی لهذا مونږ به وایو چه په سنن ابی داود کښې امام ابوداود د شهادت اعرابی دوه قصې ذکر کړې دی په دوه مستقل بابونو کښ، چه په هغې کښې د صوم په باره کښې د اعرابی واحد شهادت مذکور دې چه په هغې کښې رسول الله ﷺ د صوم حکم فرمائیلې دې او د اختر په باره کښې د شهادت اعرابیین والا حدیث بیان کړې دې چه رسول الله ﷺ په شهادت اعرابیین باندې د افطار حکم فرمائیلې دې، لهذا د سنن ابی داود دا روایت د سنن نسائی د روایت دپاره مخصص کیږی. والله تعالی اعلم

اوسه پورې د ترجمة الباب د لاندې کلام روان وو، اوس حدیث الباب اوګورئ.

[۲۳۳۸](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ أَبُو يَحْيَى الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا عَبَّادٌ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ الْحَارِثِ الْجَدَلِيُّ مِنْ جَدِيلَةَ قَيْسٍ، "أَنَّ أَمِيرَ مَكَّةَ خَطَبَ، ثُمَّ قَالَ: عَهِدَ إِلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَنْسُكَ لِلرُّؤْيَةِ، فَإِنْ لَمْ نَرَهُ وَشَهِدَ شَاهِدَا عَدْلٍ، نَسَكْنَا بِشَهَادَتِهِمَا، فَسَأَلْتُ الْحُسَيْنَ بْنَ الْحَارِثِ: مَنْ أَمِيرُ مَكَّةَ؟ قَالَ: لَا أَدْرِي، ثُمَّ لَقِيَنِي بَعْدُ، فَقَالَ: هُوَ الْحَارِثُ بْنُ حَاطِبٍ أَخُو مُحَمَّدِ بْنِ حَاطِبٍ، ثُمَّ قَالَ الْأَمِيرُ: إِنَّ فِيكُمْ مَنْ هُوَ أَعْلَمُ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ مِنِّي، وَشَهِدَ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَوْمَأَ بِيَدِهِ إِلَى رَجُلٍ، قَالَ الْحُسَيْنُ: فَقُلْتُ لِشَيْخٍ إِلَى جَنْبِي: مَنْ هَذَا الَّذِي أَوْمَأَ إِلَيْهِ الْأَمِيرُ؟ قَالَ: هَذَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، وَصَدَقَ كَانَ أَعْلَمَ بِاللَّهِ مِنْهُ، فَقَالَ: بِذَلِكَ أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۲۷۵) (صحیح)

**ترجمه:** حسین بن حارث جدلي حدیث بیان کړي دي د جدیله قیس (قبیلي والا) نه چه دمکي امیر خطبه ورکړه اوبیا ئې اوفرمائیل چه نبی ﷺ زمونږ نه لوظ واخستوچه دحج ارکان دسپوږمئ په لیدو سره اداکوئ که چرې مونږ میاشت ونه وینو اودوه معتبر عادلان کسان ګواهي ورکړي نومونږ به دهغوی دشهادت بناء باندې دحج ارکان ادا کړو، ابومالک ووئیل دحسین بن الحارث نه مې تپوس اوکړودامیر مکه په باره کښې چه څوک ووهغه ووئیل چه حارث بن الحاطب د محمد بن حاطب ورور، بیا امیر اووئیل چه په تاسوکښې هغه کس موجود دې څوک چه زمانه دالله اودرسول په احکامونښه پوهیږي، اوهمدې کس دنبی ﷺ ددې خبرې ګواهي ورکړي ده او امیرمکه یوکس ته اشاره اوکړه، حسین وائی مادیوکس نه تپوس اوکړو څوک چه زماځنګ ته ولاړ وو چه دا څوک دې چاته چه امیراشاره اوکړه؟ دغه کس عرض اوکړو چه دا عبدالله بن عمر ﷺ ده اوامیر رښتیاوئیلي وو چه عبدالله بن عمر د امیرنه زیات پوهیدو عبدالله اووئیل نبی ﷺ مونږ ته همداسې فرمائیلی وو (چه دسپوږم په لیدوسره د حج مناسک اداکوي).

## مضمون حدیث:

مضمون حدیث دا دې، حسین بن الحارث جدلی فرمائی چه یو ځل یو امیر مکه خطبه ورکړه لکه چه د هغه نوم وړاندې په روایت کښې راروان دې الحارث بن حاطب دې. امیر مذکور په دې خطبه کښې دا هم اووې چه رسول الله ﷺ زمونږ نه دا لوظ اخستلې وو چه مونږ نسک یعنی حج او اضحیه چه کله کوو نو په رویت هلال سره کوو، یعنی خپله میاشت لیدلو سره او هم په دې حساب سره، او که مونږ ئې خپله او نه وینو او دوه شاهد عدل ګواهي ورکړی نو مونږ د هغوی په شهادت باندې نسک ادا کړو. د دې نه روستو امیر مذکور حاضرین مجلس ته اووې چه په تاسو کښې یو داسې سړې موجود دې چه هغه ته د الله پاک او د رسول الله ﷺ معرفت زما نه زیات دې، او هغه دا مضمون خپله د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دې، او په دې اوریدلو سره ئې یو سړی ته اشاره اوکړه، حسین بن الحارث فرمایي چه ما د یو مشر سړی نه کوم چه زما خواته ناست وو تپوس اوکړو چه امیر د یو سړی طرف ته اشاره اوکړه هغه څوک دې؟ نو هغه اووې چه هغه عبدالله بن عمر ﷺ دې، او امیر چه څه د هغه په باره کښې اووې هغه رشتیا دی، ابن عمر ﷺ واقعی د امیر په نسبت د الله پاک معرفت زیات لرلو، ﴿فقال بذلک امرنا رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴾ابن عمر ﷺ کوم چه هلته موجود وو هغه اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ مونږ ته هم دغه شان فرمائیلي دی څنګه چه امیر اووې، یعنی د رؤیت هلال په باره کښې

## د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:

د دې حدیث تعلق په ظاهره د لوئې اختر سره دې ځکه چه په دې کښې د نسک لفظ راغلې دې ﴿ان ننسک للرؤیة ﴾چه د هغې متبادر(مقابل) معنی د حج ده چه په هغې کښې دننه اضحیه او عید اضحی هم راځي، ګویا مصنف د هلال عید الاضحی د رویت نه استدلا ل کړې دې په رویت هلال عید الفطر باندې، افاده السندی. او صاحب منهل د نسک لغوی

معنی د مطلق عبادت او قربت اخستلو سره صوم هم په دې کښې شامل کړې دې، په دې صورت کښې مطابقت د ترجمة الباب سره ظاهر دې، د مقایست حاجت نشته.

والحدیث اخرجه الدارقطني.... واخرجه النسائي، نحوه قاله في المنهل.

[۲۳۳۹]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَخَلَفُ بْنُ هِشَامٍ الْمُقْرِئُ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "اخْتَلَفَ النَّاسُ فِي آخِرِ يَوْمٍ مِنْ رَمَضَانَ، فَقَدِمَ أَعْرَابِيَّانِ فَشَهِدَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّهِ لَأَهَلَّا الْهِلَالَ أَمْسِ عَشِيَّةً، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ أَنْ يُفْطِرُوا". زَادَ خَلَفٌ فِي حَدِيثِهِ: "وَأَنْ يَغْدُوا إِلَى مُصَلَّاهُمْ".

**ترجمه:** ربعي بن خراش په صحابه کرامو کښې دیو کس نه روایت کوی فرمائی چه دخلقو په مینځ کښې درمضان د آخری ورځ په باره کښې اختلاف پیداشو ددوه کلو (باندو) اوسیدونکي دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو د الله تعالی نوم ئې واخستو اوګواهي ئې ورکړه چه مونږه پرون شپه سپوږمئ لیدلې ده نو نبی ﷺ خلقوته دروژې ماتولو حکم اوکړو، او عیدګاه ته دتلو حکم ئې اوکړو. دخلف په روایت کښې دا اضافه ده چه نبی ﷺ ددې خبرې هم حکم فرمائیلې وو چه را روانه ورځ به تمام مسلمانان عیدګاه ته راځئ.

## توضیح الحدیث

د دې حدیث د راوی صحابی نوم مبهم دې، نوم ئې ذکر نه دې په بذل کښې لیکی: لم اقف على تسميته، مضمون حدیث دا دې چه یو ځل د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د رمضان د اخری ورځ په باره کښې د خلقو تردد پیدا شو چه نن دیرشم رمضان دې یا یکم شوال؟ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې دوه اعرابی راغلل چا چه د دې خبرې شهادت ورکړو چه هغوی داوړو تیره شپه میاشت لیدلې وه، په دې باندې رسول الله ﷺ په خلقو باندې د روژې ماتولو حکم اوفرمائیلو او دا چه د صبا دې ټول خلق د اختر د مونځ دپاره عیدګاه ته ځان راورسوی. دې حدیث کښې د شهادت عدلین نه دهلال شوال ثبوت کیږی.

## د اختر د مونځ قضاء شته یا نه؟

هم دغه شان دا مسئله ترې هم معلومیږی چه د اختر د مونځ په اول د شوال او نه لوستلې شی نو هغه دې په بله ورځ باندې اولوستلې شی.

دا مسئله او په دې کښې اختلاف علماء د کتاب الصلاة په ابواب العیدین کښې "باب اذا لم یخرج الامام للعید من یومه یخرج من الغد" کښې تفصیل تیر شوې دې.

والحدیث اخرجه ایضا احمد والدارقطني وقال اسناده حسن ثابت. (قاله في المنهل)

# بَابٌ فِي شَهَادَةِ الْوَاحِدِ عَلَى رُؤْيَةِ هِلَالِ رَمَضَانَ

### بیان د ګواهئ د یو کس په لیدو دمیاشت درمضان

په دې باب کښې مصنف د ابن عباس رضي الله عنهما په روایت باندې د یو اعرابی د شهادت قصه چه په هغې باندې هغه د رمضان فیصله اوفرمائیله ذکر کړې دې، کوم چه د ترجمة الباب مطابق دې، د ائمه کرامو مذاهب په مخکښې باب کښې ذکر شو.

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۷٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱٤/٤، ۳٦۲/٥) (صحیح)

[۲۳٤٠]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكَّارِ بْنِ الرَّيَّانِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ يَعْنِي ابْنَ أَبِي ثَوْرٍ. ح وحَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ يَعْنِي الْجُعْفِيَّ، عَنْ زَائِدَةَ الْمَعْنَى، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنِّي رَأَيْتُ الْهِلَالَ، قَالَ الْحَسَنُ فِي حَدِيثِهِ: يَعْنِي رَمَضَانَ، فَقَالَ: أَتَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: أَتَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: "يَا بِلَالُ، أَذِّنْ فِي النَّاسِ فَلْيَصُومُوا غَدًا".

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روایت دې فرمائي چه یوبانده چې دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله مادرمضان میاشت اولیدله نبي عليه السلام اوفرمائیل چه ته ددې خبرې ګواهي ورکوې چه دالله تعالى نه علاوه بل حقدار دبندګۍ نشته، بیانبي عليه السلام تپوس اوکړو آیا ته ددې خبرې ګواهي ورکوې چه محمد دالله تعالى پیغمبر دې؟ ده عرض اوکړوهو، نبي عليه السلام بلال ته اوفرمائیل په خلقو کښې اعلان اوکړه چه دصبانه دې روژې ونیسي.

[۲۳٤١]([2])حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، "أَنَّهُمْ شَكُّوا فِي هِلَالِ رَمَضَانَ مَرَّةً، فَأَرَادُوا أَنْ لَا يَقُومُوا وَلَا يَصُومُوا، فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ مِنَ الْحَرَّةِ، فَشَهِدَ أَنَّهُ رَأَى الْهِلَالَ، فَأُتِيَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَتَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ؟ قَالَ: نَعَمْ، وَشَهِدَ أَنَّهُ رَأَى الْهِلَالَ، فَأَمَرَ بِلَالًا، فَنَادَى فِي النَّاسِ أَنْ يَقُومُوا وَأَنْ يَصُومُوا". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ جَمَاعَةٌ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، مُرْسَلًا. وَلَمْ يَذْكُرِ الْقِيَامَ أَحَدٌ إِلَّا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ.

**ترجمه:** د عکرمه رضي الله عنه نه روایت دې چه یوځل درمضان دمیاشتې په لیدوکښې خلقو شك اوکړ ددې خلقودا اراده وه چه مونږ به نه دشپې قیام کوو (مونځ اونه به دورځې روژه نیسو بیا دحراء مقام نه یوکس راغې اوهغه دسپوږمۍ لیدو ګواهي ورکړه دغه کس نبي عليه السلام ته پیش کړې شو نوتپوس ئې ترې اوکړوچه ته ددې خبرې ګواهي ورکوې چه دالله تعالى نه علاوه بل حقدار د بندګۍ نشته، بیانبي عليه السلام تپوس اوکړو آیا ته ددې خبرې ګواهي ورکوې چه محمد دالله تعالى پیغمبر دې؟ ده عرض اوکړوهو، نبي عليه السلام بلال رضي الله عنه ته اوفرمائیل په خلقوکښې اعلان اوکړه چه دشپې دې قیام کوې او روژه دې ونیسې امام ابوداود فرمائي دسماك په واسطې سره یوجماعت دعکرمه رضي الله عنه نه داروایت مرسل نقل کړې دې اودحماد بن سلمه نه علاوه هیڅ چا د قیام لفظ نه دې ذکرکړې.

[۲۳٤٢]([3])حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ السَّمَرْقَنْدِيُّ، وَأَنَا لِحَدِيثِهِ أَتْقَنُ، قَالَا: حَدَّثَنَا مَرْوَانُ هُوَ ابْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَالِمٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "تَرَاءَى النَّاسُ الْهِلَالَ، فَأَخْبَرْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِّي رَأَيْتُهُ، فَصَامَهُ وَأَمَرَ النَّاسَ بِصِيَامِهِ".

**ترجمه:** دابن عمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائي چه خلقو دسپوږمۍ دلیدوکوشش شروع کړو

---

[1]: سنن الترمذي/الصوم ٧ (٦٩١)، سنن النسائي/الصوم ٦ (٢١١٥)، سنن ابن ماجه/الصيام ٦ (١٦٥٢)، (تحفة الأشراف: ٦١٠٤، ١٩١١٣)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الصوم ٦ (١٧٣٤) (ضعيف)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦١٠٤، ١٩١١٣) (ضعيف)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٥٤٣)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الصوم ٦ (١٧٣٣) (صحيح)

خونه ښکاريدله مانبی علیه السلام ته خبر ورکړو چه ما سپوږمئ ليدلي ده نبی علیه السلام روژه ونيوله اوخلقوته ئي هم دروژې نيولو حکم اوکړو.

## بَابٌ فِي تَوْكِيدِ السُّحُورِ

### باب د پيشمنی کولو د تاکيد بيان

سحور بالضم مصدر دې، پيشمني کول، او بالفتح په معنی د پيشمنی، يعنی طعام سحر.

[۲۳۴۳]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مُوسَى بْنِ عَلِيِّ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي قَيْسٍ مَوْلَى عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ فَصْلَ مَا بَيْنَ صِيَامِنَا وَصِيَامِ أَهْلِ الْكِتَابِ أَكْلَةُ السَّحَرِ".

**ترجمه**: دعمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی داهل کتابو په روژوکښې اوزمونږه په روژوکښې فرق دادې چه هغوی به پيشمني نه کولو او مونږئې کوو.

### سحور د دې امت خصوصيت دې:

په حديث الباب کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی ﴿ان فصل ما بين صيامنا وصيام اهل الكتاب اكلة السحر﴾ د اهل کتاب او اهل اسلام د روژو ترمينځه فرق د پيشمنی په خوراک باندې دې او د صحيحين په روايت کښې دی، د سيدنا انس رضي الله عنه نه مرفوعا "تسحروا فان فی السحور برکة" او امر په دې کښې د استحباب دپاره دې، او ابن المنذر د دې په استحباب باندې اجماع نقل کړې ده، په منهل کښې دی چه سحور د دې امت د خصائص نه دې په خلاف د امم سابقه چه د هغوی په شريعت کښې خو طعام او شراب په نوم سره حراميږی لکه چه په ابتداء اسلام کښې زمونږ په شريعت کښې هم داسې وه. کما تقدم. د سحور په استحباب باندې د اهل سنت اجماع ده، اکلة السحر... بضم الهمزة بمعنی اللقمة او بفتح الهمزة مرة دپاره دې يعنی يو ځل خوراک کول اګر چه د هغې مقدار هر څومره وی، په حديث کښې په ظاهره دا د همزه په فتحې سره دې، او "سحر" بفتح السين والحاء... د شپې اخری حصه قبيل الصبح.

والحديث اخرجه ايضا احمدومسلم والنسائی وابن ماجة والترمذی وقال حسن صحيح قاله فی المنهل.

## بَابُ مَنْ سَمَّى السَّحُورَ الْغَدَاءَ

### پيشمنی ته د سحر ناشته ونلي شوي ده

[۲۳۴۴]([2])حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ النَّاقِدُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ خَالِدٍ الْخَيَّاطُ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ سَيْفٍ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ أَبِي رُهْمٍ، عَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، قَالَ: دَعَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى السَّحُورِ فِي رَمَضَانَ، فَقَالَ: "هَلُمَّ إِلَى الْغَدَاءِ الْمُبَارَكِ".

**ترجمه**: دعرباض بن ساريه رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی - علیه السلام درمضان په مياشت کښې زه دپيشمني خوراك دپاره راوغوښتلم اوراته ئي اووئې دسحرد ناشتي دخوراك

[1]: صحيح مسلم/الصيام ۹ (۱۰۹۶)، سنن الترمذي/الصوم ۱۷ (۷۰۹)، سنن النسائي/الصيام ۲۷ (۲۱۶۸)، (تحفة الأشراف: ۱۰۷۴۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۹۷/۴، ۲۰۲)، سنن الدارمي/الصوم ۹ (۱۷۳۹) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الصيام ۱۳ (۲۱۶۵)، (تحفة الأشراف: ۹۸۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۶/۴، ۱۲۷) (حسن لغيره)

دپاره راشه په کومه کښې چه برکت اچولې شوې دې.

### شرح حدیث :

سیدنا عرباض بن ساریه رضی الله عنه فرمائی چه یوه ورځ په رمضان کښې د پیشمنی په وخت باندې زه د رسول الله ﷺ مخې ته راوتلم (هغه دې وخت کښې په ظاهره پیشمنی کولو) نو رسول الله ﷺ زما په لیدو اوفرمائیل راشه د مبارک خوراک طرف ته.

حدیث د ترجمة الباب موافق دې چه په سحور باندې رسول الله ﷺ د غدا اطلاق اوفرمائیلو ، اصل کښې غدا خو د سحر خوراک ته وئیلې شی کوم چه د ورځې په شروع کښې د زوال نه مخکښې اوخوړلې شی، او چونکه پیشمنې د روژه دار په حق کښې د غدا قائم مقام وی په دې وجه باندې په دې باندې هم دا اطلاق اوکړې شو. لکه چه په یو بل حدیث کښې د دې نه مخکښې په کتاب الصلاة کښې تیر شو، باب وقت الجمعة کښې "کنا نتغدی ونقیل بعد الجمعة" کما تقدم هناک فارجع الیه.

### سحری مبارک خوراک دې :

او د پیشمنی مبارک کیدل ظاهر دی ځکه چه زمونږ د نبی سنت دې هم دغه شان د تیرو انبیاء کرام هم سنت وو، او بذل کښې حضرت لیکلې دی : ځکه چه هغه د روژې په حالت کښې د قوة ذریعه او د نشاط سبب دې یا دا چه په روژه نیولو کښې معین وی او د دې په برکت سره انسان ته د روژې نیولو توفیق کیږی او د روژې مشقت لره اسان کړی اهـ

او حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې لیکلې دی، قال ابن العربی فی شرح الترمذی مبارک لخمسة اوجه. اهـ لهذا د دې دپاره عارضة الاحوذی اوګورئ، اذ لا یستطاع العلم براحة الجسم ومن طلب العلی سهر اللیالی. والحدیث ایضا النسائی وابن خزیمة وابن حبان قاله فی المنهل.

[۲۳۴۵](1) حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي الْوَزِيرِ أَبُو الْمُطَرِّفِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "نِعْمَ سَحُورُ الْمُؤْمِنِ التَّمْرُ".

**ترجمه:** دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دمومنانوپه پیشمنی کښې اعلی شی کهجوري دي.

## بَابُ وَقْتِ السُّحُورِ

### باب د پیشمنی کولو د وخت بیان

[۲۳۴۶](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَوَادَةَ الْقُشَيْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، سَمِعْتُ سَمُرَةَ بْنَ جُنْدُبٍ يَخْطُبُ، وَهُوَ يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَمْنَعَنَّ مِنْ سَحُورِكُمْ أَذَانُ بِلَالٍ وَلَا بَيَاضُ الْأُفُقِ الَّذِي هَكَذَا حَتَّى يَسْتَطِيرَ".

**ترجمه:** عبدالله بن سوادة القشیري دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه رسول پاک ﷺ فرمائیلي ووچه خطبه ئې ورکوله منع دې نه کړي تاسو لره دپیشمني نه اذان دبلال اوسپین

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۰۶۷) (صحیح)

(2): صحیح مسلم/الصیام ۸ (۱۰۹۴)، سنن الترمذي/الصوم ۱۵ (۷۰۶)، (تحفة الأشراف: ٤٦٢٤)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الصیام ۱۸ (۲۱۷۳)، مسند احمد (۵/۷، ۹، ۱۳، ۱۸) (صحیح)

والي د كنارو د اسمان ترڅو چه خورشوي نه وي

## توضيح الحديث

رسول اللهﷺ فرمائي چه اذان بلال د سحور نه مانع نه دي ﴿فان كان يؤذن بليل كما تقدم في ابواب الاذان﴾ او نه د افق هغه رڼا کوم چه داسې وي، کوم چه هغه په اشارې سره اوفرمائيلو يعنى طولا (ځکه چه هغه فجر کاذب دې) ﴿حتى يستطير اى يظهر عرضا﴾ يعنى چه ترڅو پورې رڼا د افق په پلنو کښې خوره نه شي، کوم ته چه فجر صادق وئيلې شي.

په دې حديث کښې د سحور اخرى وقت بيان کړې شوې دې چه د هغې نه روستو خوراک څکاک ممنوع کيږي.

### د پيشمنى اخرى وخت:

د پيشمنى په اخرى وخت کښې زمونږ د فقهاء کرامو دوه اقوال دى، اول طلوع فجر يعنى څنګه چه سحر راوخيژى، دويم قول تبين فجر، يعنى د سحر رڼا ښه خوره شي، په شامى کښې ليکلي دى والاول احوط، والثانى اوسع كما قال الحلوانى كما فى المحيط. اه من البذل.

د قول ثانى ماخذ دا آيت كريمه دې، ﴿كلوا واشربوا حتى يتبين لكم الخيط الابيض من الخيط الاسود من الفجر﴾، امام ترمذى باب قائم کړې دې، باب ما جاء فى تاخير السحور. چه په هغې کښې سيدنا انسؓ دا حديث ذکر فرمائيلي دې: تسحرنا مع رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثم قمنا الى الصلاة قال: قلت كم كان قدر ذلك؟ (وفى رواية البخارى: كم كان بين الاذان والسحور) قال قدر خمسين اية. امام ترمذىؒ فرمائى: وبه يقول الشافعى واحمد واسحاق، استحبوا تاخير السحور، وفى الباب عن حذيفة. اه زه وايم: د حذيفهؓ د حديث تخريج مختلف طرق سره امام نسائىؒ فرمائيلي دې، د هغې په يو طريق کښې دا دى، عن زرقانى قال قلنا لحذيفة: اى ساعة تسحرت مع رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قال هو النهار الا ان الشمس لم تطلع. د دې حديث نه د صبح صادق د راختلو نه پس د تسحر ثبوت دې کوم چه تقريبا د اجماع خلاف دې د دې جواب علامه عينى د امام طحاوى نه نقل کړې دې چه دا حديث د احاديث صحيحه کثيره خلاف دې چه په هغې کښې بعض متفق عليه دى لهذا هغې لره به اعتبار نه وى هغه فرمائى: او دا هم احتمال دې چه حديث حذيفه د شروع زمانه وى، آيت كريمه ﴿كلو واشرابو حتى يتبين﴾ آيت د نزول نه وړاندې، او علامه سندى په حاشيه د نسائى کښې د دې تاويل کړې دې پس هغه ليکى: قوله هو النهار الا ان الشمس لم تطلع "الظاهر ان المراد بالنهار هو النهار الشرعى، والمراد بالشمس الفجر، والمراد انه فى قرب طلوع الفجر، حيث يقال انه النهار، نعم ما كان الفجر طالعا. اه

### اخر مستحب وخت:

هسې خو مستحب په پيشمنى کښې تاخير دې، پس په بذل کښې "بدائع" نه منقول دې: والسنة فيه التاخير فانه روى عنه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انه من سنن المرسلين، وفى رواية من اخلاق المرسلين، حضرت شيخ "فضائل قران" کښې د پيشمنى فضيلت بيانولو سره ليکى: علامه

عيني د اولس صحابه كرامو نه د دې د فضيلت احاديث نقل كړې دى، او د دې په مستحب كيدو باندې ئې اجماع نقل كړې ده. ډير خلق د سستت والى د وجې نه د دې د فضيلت نه محروم شى او بعض تراويح لوستلو نه پس خوراک كولو سره اوده شى او هغوى د دې د ثواب نه محروم وى او بعض تراويح لوستلو سره اوده شى او د دې د ثواب نه محروم كيږى، ځكه چه په لغت كښې پيشمنى (سحور) هغه خوراک ته وئيلې شى كوم چه سحر ته نزدې اوخوړلې شى او هغوى د دې د ثواب نه محروم وى، ځكه چه په لغت كښې سحر (سحور) هغه خوراک ته وئيلې شى كوم چه سحر ته نزدې اوخوړلې شى لكه چه په قاموس كښې ليكلې دى، بعض وئيلې دى چه د نيمې شپې نه د دې وخت شروع كيږى. (مرقاة) صاحب كشاف اخرى شپږمه حصه شمار كړې ده... مثلا كه د نمر پريوتلو نه تر صبا راختلو پورې دولس گهنټې وى نو اخرى دوه گهنټې د پيشمنى وخت دې. اهـ والحديث اخرجه ايضا احمدومسلم والنسائى الترمذى وقال:حسن، واخرجه الدارقطنى وقال:اسناده صحيح.قاله فى المنهل.

[۲۳۴۷]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ التَّيْمِيِّ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَمْنَعَنَّ أَحَدَكُمْ أَذَانُ بِلَالٍ مِنْ سُحُورِهِ، فَإِنَّهُ يُؤَذِّنُ، أَوْقَالَ: يُنَادِي، لِيَرْجِعَ قَائِمُكُمْ وَيَنْتَبِهَ نَائِمُكُمْ، وَلَيْسَ الْفَجْرُ أَنْ يَقُولَ هَكَذَا". قَالَ مُسَدَّدٌ: وَجَمَعَ يَحْيَى كَفَّيْهِ حَتَّى يَقُولَ هَكَذَا، وَمَدَّ يَحْيَى بِأُصْبُعَيْهِ السَّبَّابَتَيْنِ.

**ترجمه:** دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت دې فرمانې چه رسول پاك صلى الله عليه وسلم فرما ئيلې وو: منع دې نه كړې تاسو لره دپيشمنې خپل نه اذان دبلال ځكه چه دې اذان كوې، راوى وائى كه داسې ئې اوفرمائيل بلال دشپې اذان كوې ددې دپاره په تاسوكښې چه څوك دتهجد مونځ كوې هغه ارام اوكړى اوچه څوك اوده وې چه هغه دپيشمنې اودمونځ دپاره بيدارشې اودسحروقت هغه نه دې كوم چه داسې ظاهرشې، مسدد وائى چه راوى خپل دواړه ورغوې يوځاى كړل اوبره ئې كړل اووئې ښودل يعنى كومه چه كوره او اوږده رڼاوې دغه اول وخت دې سحرنه دې، نبى عليه السلام اوفرمائيل ترڅوچه داسې ظاهر نه شى اودشهادت ښئ اوگه گوته ئې خوره كره.

## شرح حديث :

راوى د فجر صادق او فجر كاذب ترمينځه د لاسو د گوتو په ذريعه اشاره كوى په **(ان يقول)** كښې دقول كلام معنى نشته بلكه قول حسب مواقع مختلف معانى كښې استعماليږى لكه چه وړاندې په ډيرو احاديثو كښې تير شو، مطلب دا دې چه يحيى د خپل لاس گوتې يوځائې كړې او مخامخ ئې د افق طرف ته طولا اشاره اوكړه او وې وئيل كه دا فجر نه دې نو دا فجر كاذب دې، او بيا ئې دوباره د خپلو دواړو لاسونو گوتې رايوځائې كړې او هغه ئې په پلنو باندې خورې كړې او وې وئيل چه ترڅو پورې داسې رڼا نه وى

[1]: صحيح البخاري/الأذان ۱۳ (۶۲۱)، الطلاق ۲۴ (۵۲۹۸)، أخبارالآحاد ۱ (۷۲۴۷)، صحيح مسلم/الصوم ۸ (۱۰۹۳)، سنن النسائي/الأذان ۱۱ (۶۴۲)، سنن ابن ماجه/الصوم ۲۳ (۱۶۹۶) (تحفة الأشراف: ۹۳۷۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۸۶، ۳۹۲، ۴۳۵) (صحيح)

خوره شوي تر هغه وخته پورې فجر صادق نه وی، د دې حدیث د باقی مضمون شرح په کتاب الصلاة کښې په باب الاذان قبل الوقت کښې تیره شوې ده.

والحدیث اخرجه ایضا احمد والبخاری ومسلم والنسائی وابن ماجة. (المنهل)

[۲۳۴۸]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مُلَازِمُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ النُّعْمَانِ، حَدَّثَنِي قَيْسُ بْنُ طَلْقٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا يَهِيدَنَّكُمُ السَّاطِعُ الْمُصْعِدُ، فَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَعْتَرِضَ لَكُمُ الْأَحْمَرُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا مِمَّا تَفَرَّدَ بِهِ أَهْلُ الْيَمَامَةِ.

**ترجمه:** دطلق رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی تاسوخورئ او څکئ اوتاسودې دخوراك څښاك نه هغه رڼرا منع نکړي کومه چه راخیژي صبح کاذب، بلکه تاسو خورئ اوڅکئ ترڅوچه سحرنه وي ظاهر شوې یعنی چه ښه رڼرا شوي نه وي.

## توضیح الحدیث

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه خوراک څکاک کوئ، او تاسو دې هغه رڼرا او نه یروی کومه چه پورته خیژی بلکه خوراک څکاک کوئ تردې چه رڼرا خوره شي. د احمر نه مراد ابیض دې یعنی فجر صادق، دې ته ئې احمر په دې وجه اووې چه د هغې نه روستو په افق کښې سرخی رابښکاره کیږي په خلاف د فجر کاذب چه هلته د رڼرا نه روستو بیا تیاره راشي. ﴿لا یهیدنکم﴾دا د ﴿هاد یهید﴾نه دې په مثل د باع یبیع. واهیده مثل ابیعه، وهدته کبعته، د دې معنی د خوزولو او پریشانه کولو ده، دا ماخوذ دې د "هید"بالکسر نه په معنی د حرکت. والحدیث اخرجه الترمذی وقال حسن غریب، واخرجه الدارقطنی، (المنهل)

[۲۳۴۹]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حُصَيْنُ بْنُ نُمَيْرٍ ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ الْمَعْنَى، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ سورة البقرة آية ۱۸۷، قَالَ: أَخَذْتُ عِقَالًا أَبْيَضَ وَعِقَالًا أَسْوَدَ فَوَضَعْتُهُمَا تَحْتَ وِسَادَتِي، فَنَظَرْتُ فَلَمْ أَتَبَيَّنْ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَضَحِكَ، فَقَالَ: "إِنَّ وِسَادَكَ لَعَرِيضٌ طَوِيلٌ، إِنَّمَا هُوَ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ". وقَالَ عُثْمَانُ: "إِنَّمَا هُوَ سَوَادُ اللَّيْلِ وَبَيَاضُ النَّهَارِ".

**ترجمه:** دعدي بن حاتم نه روایت دې فرمائی چه کله آیت کریمه: «حتی یتبین لکم الخیط الأبیض من الخیط الأسود» نازل شو نوما داوبښ دتړلو یوه توره رسئ او بله سپینه رسئ دیوبالخ لاندې کیخوده اوبیا دشپې په آخرکښې مې وکتل نوماته صفابښکاره نه شول په سحرکښې دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم اوددې عمل ذکرمې ورته اوکړو نبی علیه السلام وخاندل اووئې فرمائیل ستابالخ ډیر اوږد اوپلن دې (یعنی ته کم عقل ښکارې) دالله تعالی د(سپین اوتور مزي نه مراد دشپې تیاره اورڼراده، دعثمان په روایت کښې دي چه ددې نه مراد دشپې توروالې اودورځې سپین والې دې.

[1]): سنن الترمذي/الصوم ۱۵ (۷۰۵)، (تحفة الأشراف: ۵۰۲۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۳/۴) (حسن صحیح)

[2]): صحیح البخاري/الصوم ۱۶(۱۹۱۶)، وتفسیر البقرة ۲۸ (۴۵۰۹)، صحیح مسلم/الصیام ۸ (۱۰۹۰)، سنن الترمذي/تفسیر البقرة ۱۷ (۲۹۷۰م)، (تحفة الأشراف: ۹۸۵۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۷۷/۴)، سنن الدارمي/الصوم ۷ (۱۷۳۶) (صحیح)

## توضیح الحدیث

مضمون حدیث خو واضح دې چه هغه صحابی خیط ابیض او اسود لره د دې په ظاهری معنی باندې محمول کولو سره په فجر صادق کښې په غلس کښې دوه تارونه یو تور او یو سپین د خپلې بسترې د لاندې کیخودل او څنګه څنګه چه تیاره ختمه شوه او رڼړا کیدله هغوی دې دواړو تارونو ته کتل چه کله خپل مینځ کښې ممتاز کیږی او دا امتیاز خیطین لره د پیشمنی د اخری وخت معیار اومنلو ﴿فنظرت فلم یتبین﴾ یعنی د فجر صادق نه ډیر ساعت پس ماته په هغه دواړو کښې امتیاز او فرق ظاهر نه شو چه د هغې ذکر ما رسول الله ﷺ ته اوکړو، رسول الله ﷺ په هغې پورې اوخندل او وې فرمائیل چه ستا بالخت خو کافی اوږد او پلن دې چه د هغې د لاندې د شپې تیاره او د ورځې رڼړا هر څه ځائې کیږی.

د حدیث د دې جملې په شرح کښې د شارحینو نور هم اقوال دی، مونږ ته چه کومه معنی اقرب معلومه شوې وه هم هغه ئې اختیار کړه، بیا ئې ارشاد اوفرمائیلو: ﴿انما هو اللیل والنهار﴾ یعنی د خیط ابیض نه مراد بیاض النهار، او د خیط اسود نه مراد سواد اللیل دی، د خیط حقیقی معنی مراد نه ده، لهذا د آیت کریمه مطلب دا شو چه تاسو خوراک څکاک کوئ، تردې چه شپه پوره کیدو سره سحر شی او د یو بل نه ممتاز شی.

والحدیث اخرجه ایضا البخاری ومسلم والطحاوی وابن خزیمة والترمذی وقال: حسن صحیح، واخرجه الدارمی. (المنهل)

## بَاب فِي الرَّجُلِ يَسْمَعُ النِّدَاءَ وَالْإِنَاءُ عَلَى يَدِهِ

### په پیشمنی کښې چه کله اذان شروع شي اودچاپه لاس کښې لوښي وي

[۲۳۵۰] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا سَمِعَ أَحَدُكُمُ النِّدَاءَ وَالْإِنَاءُ عَلَى يَدِهِ، فَلَا يَضَعْهُ حَتَّى يَقْضِيَ حَاجَتَهُ مِنْهُ".

**ترجمه:** دابوهریره نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی کله چه په تاسوکښې یوکس دسحر اذان واوري اودده په لاس کښې دخوراك لوښی وي نو تر څو پورې چه ئې خپل ضرورت نه وي پوره کړې لوښي دې نه ګدي.

### شرح حدیث:

متبادر معنی د حدیث دا ده چه د پیشمنی په اخری وخت کښې که د یو سړی په لاس کښې یو څیز وی چه د هغه اراده د هغې د خوړلو وی او هم په دې دوران کښې د سحر اذان شروع شی نو هغه دې د خوراک لوښي نه ږدی، یعنی د خوراک اراده دې نه ملتوی کوی بلکه هغه څیز دې اوخوری.

په دې معنی باندې اشکال ظاهر دې، ځکه چه د سحر اذان په فجر صادق باندې کیږی، هغه وخت خوراک څکاک کول ممنوع دی، په دې وجه د دې حدیث مختلف توجیهات کړې شوې دی، لهذا معنی مذکور اخستلو سره د دې دوه توجیهات کیدې شی. اول دا چه د رسول

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵۰۲۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۲۳/۲، ۵۱۰) (حسن صحیح)

الله ﷺ مقصود په دې سره دا بیانول دی چه د پیشمنی بنیاد په طلوع فجر باندې دې په اذان فجر باندې نه دې، لهذا که د يو سړي ظن غالب دا دې چه طلوع فجر نه دې شوې نو سره د اذان نه خوراک کولې شی، دويمه توجيه دا کيدې شی چه د منتهاء سحر په باره کښې د بعض محققين حضراتو رائې دا ده چه هغه تبين فجر دې نه نفس طلوع فجر، او د اذان وخت شروع کيږي په نفس طلوع فجر باندې، او يا بيا دا اوئيلې شی چه په دې حديث کښې د نداء نه نداء بلال مراد ده لکه چه اوس نزدې حديث تير شو چه اذان بلال د پيشمنی خوړلو نه مانع نه دې ځکه چه هغه د صبا راختلو نه مخکښې وی، د تهجد وغيره مصالح دپاره، او يو توجيه دا هم کيدې شی چه د نداء نه مراد اذان مغرب دې، يعنی روژه دار چه کله روژه افطار کوی او د هغه په غوږ کښې د ماښام د اذان اواز پريوځی نو هغه دې د خپل افطار نه ځان نه بندوی، يعنی د مونځ په تيارئ کښې او يو قول دا دې چه دا حديث ﴿اذا حضر العشاء والعشاء فابدؤا بالعشاء﴾ د قبيل نه دې، د صائم سره متعلق نه دې.

والحديث اخرجه ايضا احمد والدارقطني، والحاكم وقال : صحيح على شرط مسلم. (المنهل)

## بَابُ وَقْتِ فِطْرِ الصَّائِمِ

### باب: د روژه ماتی د وخت بیان

[٢٣٥١] ()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ هِشَامٍ الْمَعْنَى، قَالَ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ: عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا جَاءَ اللَّيْلُ مِنْ هَاهُنَا وَذَهَبَ النَّهَارُ مِنْ هَاهُنَا، زَادَ مُسَدَّدٌ: وَغَابَتِ الشَّمْسُ فَقَدْ أَفْطَرَ الصَّائِمُ".

**ترجمه:** عاصم بن عمر د خپل پلار نه روايت کوی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی کله چه د ماښام نه د شپې تياره راخوره شی او ورځ د ماښام طرف ته روانه شی نو په دې وخت کښې دې روژه دار روژه ماته کړی، د مسدد په روايت کښې دا هم دی چه کله نمر پريوځي.

### شرح حديث

د اول ﴿ههنا﴾ اشاره مشرق طرف ته او د دويم ﴿ههنا﴾ د مغرب طرف ته دې، يعنی کله چه د مشرق د طرف نه تياره راشی او د مغرب د طرف نه ورځ يعنی نمر راوخيژی نو انسان په افطار کښې داخل شو لکه چه وئيلې شی ﴿انجد اذا قام بنجد واتهم اذا اقام بتهامة﴾ لهذا هغه لره روژه ماتول پکار دی او په دې کښې ترغيب دې د تعجيل افطار او د ﴿افطر﴾ دويمه معنی دا ليکلې ده چه اوس هغه د مفطر يعنی روژه ماتولو والا په حکم کښې شو، يعنی اوس هغه په روژه کښې پاتې نه شو ځکه چه شپه د صيام شرعی ظرف نه دې خو راجح اوله معنی ده، ځکه چه د غرض حصول يعنی ترغيب فی تعجيل الافطار هم په دې معنی کښې دې.

والحديث اخرجه ايضا البخاری ومسلم، والترمذی وقال حسن صحيح، والدارمي... قاله في المنهل.

[1]: صحيح البخاري/الصوم ٤٣(١٩٥٤)، صحيح مسلم/الصيام ١٠ (١١٠٠)، سنن الترمذي/الصوم ١٢ (٦٩٨)، (تحفة الأشراف: ١٠٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٨، ٣٥، ٤٨)، سنن الدارمي/الصوم ١١ (١٧٤٢) (صحيح)

[۲۳۵۲]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ الشَّيْبَانِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى، يَقُولُ: "سِرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ صَائِمٌ، فَلَمَّا غَرَبَتِ الشَّمْسُ، قَالَ: "يَا بِلَالُ انْزِلْ فَاجْدَحْ لَنَا"، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَوْ أَمْسَيْتَ؟ قَالَ: "انْزِلْ فَاجْدَحْ لَنَا"، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ عَلَيْكَ نَهَارًا، قَالَ: "انْزِلْ فَاجْدَحْ لَنَا"، فَنَزَلَ فَجَدَحَ، فَشَرِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قَالَ: "إِذَا رَأَيْتُمُ اللَّيْلَ قَدْ أَقْبَلَ مِنْ هَا هُنَا فَقَدْ أَفْطَرَ الصَّائِمُ"، وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ قِبَلَ الْمَشْرِقِ.

**ترجمه:** دعبدالله بن أبی أوفي رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه مونږ دنبی علیه السلام سره روان شو اودهغه روژه وه کله چه نمر پریوتو نوبلال ته ئې اوفرمائيل اې بلاله دسورلۍ نه راکوز شه اوزمونږ دپاره ستوان تيار کړه هغه عرض اوکړو اې دالله رسوله که چرې انتظاردې کړې وې چه ښه ماښام شي نوښه به وه نبی علیه السلام ورته اوفرمائيل راکوز شه اوستوان تيارکړه بلال اووئيل اوس خولاورځ باقي ده نبی علیه السلام ورته اوفرمائيل راکوز شه اوستوان تيارکړه نوبياهغه راکوز شو اوستوان ئې برابر کړل اونبی علیه السلام وڅکل بيائې اوفرمائيل کله چه تاسو اووينئ چه شپه ددې طرف نه شروع شوه نو تاسو پوهه شئ چه دروژه دار دروژې ماتولو وخت پوره شو اونبی علیه السلام پخپلې ګوتې مبارکې دمشرق طرف ته اشاره اوکړه.

## شرح حديث :

عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه فرمائي چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په سفر باندې روان وو، ظاهره ده دا ده چه دا سفر د غزوه فتح وو، ځکه چه د مسلم په روايت کښې تصريح ده چه دا سفر د رمضان د مياشتې وو، او رسول الله صلی الله علیه وسلم په رمضان کښې سفر يا غزوه بدر دپاره فرمائيلې وو يا غزوه فتح دپاره يا د دې دواړو نه علاوه څه دريم سفر د هغه د رمضان په مياشت کښې نه وو شوې، او دا خبره معلومه شوه چه ابن ابی اوفی رضی الله عنه د هغه سره جنګ بدر کښې نه وو شريک شوې، لهذا دا سفر د غزوة الفتح شو. (المنهل) راوی وائي: رسول الله صلی الله علیه وسلم دې وخت کښې روژه دار وو ځنګه چه نمر پريوتلو رسول الله صلی الله علیه وسلم بلال ته اوفرمائيل چه د سورلۍ نه کوز شه او ستوان تيار کړئ. ﴿اجدح﴾ د امر صيغه ده ﴿جدح﴾ چه د هغې معنی ده په ستوان په اوبو کښې اچول د هغه لرګی په ذريعه کوم ته چه مجدح وئيلې شي په دې باندې سيدنا بلال رضی الله عنه عرض اوکړو، يا رسول الله! که لږ نور مو ماښام کړې وې نو ښه وه، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل کوز شه او ستوان جوړ کړه، هغه عرض اوکړو يا رسول الله صلی الله علیه وسلم لا ورځ باقي ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: کوز شه شابه! او زمونږ دپاره ستوان جوړ کړه، د دې دريم ځل نه پس هغه فوری کوز شو او ستوان ئې جوړ کړل.

حافظ د دې حديث په شرح کښې ليکی: چه د هغې حاصل دا دې چه سيدنا بلال رضی الله عنه ته لا د غروب شمس يقين نه وو راغلې يا خو د دې وجې نه چه د فضاء د بالکل صفا کيدو د وجې نه رڼا کافي وه، يا کيدې شي چه په اسمان باندې وريځ وغيره وی چه د هغې د وجې نه د هغه په غروب کښې شک پيدا کيږي، بهرحال هم په دې بنياد باندې هغه د

[1]): صحيح البخاري/الصوم ۳۳ (۱۹۴۱)، ۴۳ (۱۹۵۵)، ۴۵ (۱۹۵۸)، والطلاق ۲۲ (۵۲۹۷)، صحيح مسلم/الصيام ۱۱(۱۱۰۱)، (تحفة الأشراف: ۵۱۶۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۸۰/۴، ۳۸۲) (صحيح)

رسول الله ﷺ د حکم تعمیل فوری اونکړو، او عرض ئې اوکړو ﴿لو امسيت﴾ یعنی ښه تیاره کړئ او کوم چه په نفس حدیث کښې دی ﴿فلما غربت الشمس﴾ دا د راوی صحابی د طرف نه بیان واقع دې، او دا مطلب نه دې چه بلال هم دا خیال کولو چه نمر پریوتلې دې ځکه چه که داسې وې نو بیا هغه په تعمیل ارشاد کښې توقف څنګه کولې شو. اهـ من الفتح. او زمونږ په خیال کښې هم د دې ګنجائش دې چه په روایت ﴿فلما غربت الشمس﴾ نه مراد د راوی قرب غروب وی چه رسول الله ﷺ د غروب نه مخکښې بلال رضي الله عنه ته حکم اوفرمائیلو د ستوانو جوړولو او افطار انتظام کولو چه د افطار په وخت کیدو باندې تاخیر افطار لازم نه شی، په دې وجه د بلال رضي الله عنه دپاره ګنجائش دې د دې خبرې عرض کولو کوم چه هغه عرض کړو چه ښه طریقې سره ئې غروب کیدو ته پریږدئ.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

## بَابُ مَا يُسْتَحَبُّ مِنْ تَعْجِيلِ الْفِطْرِ

### بیان د استحباب د تعجیل په افطار کښې

[۲۳۵۳] () حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَزَالُ الدِّينُ ظَاهِرًا مَا عَجَّلَ النَّاسُ الْفِطْرَ، لِأَنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى يُؤَخِّرُونَ".

**ترجمه:** دابوهریره مینه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی دین به همیشه غالب وي ترڅوچه خلق په روژه ماتي کښې جلتي کوي ځکه چه عیسایان او یهودیان په روژه ماتي کښې تاخیر کوي.

### توضیح الحدیث

یعنی زمونږ دین اسلام به باقی ټولو دینونو باندې غالب وی تر هغه وخته پورې چه ترڅو پورې خلق په افطار کښې تعجیل کوی، ځکه چه یهود او نصاری تاخیر کوی.
او د بخاری په یو روایت کښې داسې دی ﴿لا یزال الناس بخیر الخ﴾ د صحاح په روایت کښې خو هم داسې دی "ان الیهود والنصاری یؤخرون" او د ابن حبان او حاکم په یو روایت کښې من حدیث سهل دا دې: "لا تزال امتی علی سنتی ما لم تنظرو بفطرها النجوم" یعنی زما امت به زما په سنت باندې قائم وی چه ترڅو پورې هغه په روژه ماتولو کښې د ستورو د راختلو انتظار نه کوی، ابن دقیق العید فرمائی په دې حدیث کښې رد دې په شیعه ګانو باندې ځکه چه هغوی افطار مؤخر کوی د ظهور نجوم پورې اهـ من المنهل. هم دغه شان د اهل تشیع په تاخیر مغرب کښې اختلاف مشهور دې لکه چه په ابواب المواقیت کښې تیر شو چه د هغوی په نزد مغرب نه داخلیږی چه ترڅو پورې اشتباک نجوم نه وی.

والحدیث اخرجه ایضا النسائی، وکذا الحاکم وابن ماجة بلفظ.... واخرجه الدارمی والبخاری بلفظ... (المنهل)

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۰۲٤)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصيام ۲٤ (۱٦۹۸)، حم (۲/٤٥٠) (حسن)

[۲۳۵٤]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي عَطِيَّةَ، قَالَ: "دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَا وَمَسْرُوقٌ، فَقُلْنَا: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ، رَجُلَانِ مِنْ أَصْحَابِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَحَدُهُمَا يُعَجِّلُ الْإِفْطَارَ وَيُعَجِّلُ الصَّلَاةَ، وَالْآخَرُ يُؤَخِّرُ الْإِفْطَارَ وَيُؤَخِّرُ الصَّلَاةَ، قَالَتْ: أَيُّهُمَا يُعَجِّلُ الْإِفْطَارَ وَيُعَجِّلُ الصَّلَاةَ؟ قُلْنَا: عَبْدُ اللَّهِ، قَالَتْ: كَذَلِكَ كَانَ يَصْنَعُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** دمسروق نه روایت دې فرمائي چه زه دام المومنین عائشه ﷝ په خدمت کښې حاضر شوم اوعرض مې اوکړو اې ام المومنین په صحابه کرامو کښې دوه کسان داسې دي چه یوتن په دوی کښې په افطارکولوکښې جلتي کوي او په مونځ کښې هم جلتي کوي (یعنی اول وخت اودویم کس داسې دي چه هغه په روژه ماتې کښې هم تاخیرکوي اوپه مونځ کښې هم تاخیرکوي، ام المومنین عائشه ﷝ اوفرمائیل څوك چه په روژه ماتي کښې جلتي کوي او په مونځ کښې هم جلتي کوي هغه څوك دي ماعرض اوکړو عبدالله بن مسعود نه، ام المومنین عائشي ﷝ اوفرمائیل نبی ﷺ به هم داسې کول

## بَابُ مَا يُفْطَرُ عَلَيْهِ

### باب: روژه ماتي کوم څيز سره کول پکار دی؟

[۲۳۵۵]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنِ الرَّبَابِ، عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ عَمِّهَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ صَائِمًا فَلْيُفْطِرْ عَلَى التَّمْرِ، فَإِنْ لَمْ يَجِدِ التَّمْرَ فَعَلَى الْمَاءِ، فَإِنَّ الْمَاءَ طَهُورٌ".

**ترجمه:** دسلمان بن عامر ﷛ نه روایت دې فرمائي چه نبی ﷺ فرمائیلي دی کله چه دیو کس په تاسوکښې روژه وي نوپه کهجوروديي خپله روژه ماته کړي اوکه چرې کهجورې پیدانکړي نوپه اوبو دې روژه ماته کړي ځکه چه اوبه پاکونکي دی

### توضیح الحدیث

رسول الله ﷺ فرمائی چه روژه دار له پکار دی چه افطار په کهجورو سره اوکړي، که هغه نه وی نو بیا په اوبو سره، او د هغې نه په روستو حدیث کښې راځي چه خپله د رسول الله ﷺ معمول په رطب باندې د افطار کولو وو یعنی تر کهجورې، او که رطب نه وی نو بیا په تمر سره، او که نه به وې نو بیا څو گوټه اوبو سره.

### د افطار علی التمر حکمت:

ملا علی قاری ﷫ لیکي چه په رطب یا تمر سره د افطار کولو حکمت کیدې شی چه دا وی چه هغه خوږ وی، او خوږ څیز د اعضاء رئیسه طرف ته طاقت زر رسوی، او په دې کښې اشاره ده د حلاوت ایمان طرف ته هم. او بعضو وئیلي دی چه د تمر د خوږ والی نه علاوه د خوراك قائم مقام هم دې، او چونکه نفس تولو ورخ اوږې پاتې شوې دې په دې وجه د افطار

[1]: صحيح مسلم/الصيام ٩ (١٠٩٩)، سنن الترمذي/الصوم ١٣ (٧٠٢)، سنن النسائي/الصيام ١١ (٢١٦٠)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٨/٦، ١٧٣) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الزكاة ٢٦ (٦٥٨)، الصوم ١٠ (٦٩٥)، سنن ابن ماجه/الصيام ٢٥ (١٦٩٩)، (تحفة الأشراف: ٤٤٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨/٤، ٢١٤)، سنن الدارمي/الصوم ١٢ (١٧٤٣) (ضعيف)

دپاره داسې څيز خوښ کړې شو کوم چه د خوږ والی سره سره خوراک هم دې. اه من البذل. او امام بخاری باب تړلې دې "باب ما يفطر بما تيسر بالماء وغيره" بيا ئې په دې کښې د عبدالله بن ابی اوفی هغه حديث ذکر کړې دې چه په هغې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ سيدنا بلال رضي الله عنه ته اوفرمائيل: انزل فاجدح لنا. (کوم چه مونږ سره اوس نزدې تير شو) حافظ فرمائی: لعل البخاری اشار الی ان الامر فی قوله من وجد تمرا فليفطر عليه ومن لا فليفطر علی الماء، ليس علی الوجوب، وقد شذ ابن حزم فاوجب الفطر علی التمر والا فعلی الماء.اه بيا په حديث الباب کښې دی ﴿فان الماء طهور﴾ چه په اوبو کښې الله پاک د تطهير صفت کيخودلې دې، ملا علی قاری رحمه الله فرمائی: پس ابتداء هم د دې نه کيدل پکار دی، تفاؤلا لا بطهارة الظاهر والباطن. والحديث اخرجه احمد والترمذی وابن ماجة والدارمی والحاکم وقال صحيح علی شرط البخاری. (المنهل)

[۲۳۵۶] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ، أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفْطِرُ عَلَى رُطَبَاتٍ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ، فَإِنْ لَمْ تَكُنْ رُطَبَاتٌ فَعَلَى تَمَرَاتٍ، فَإِنْ لَمْ تَكُنْ حَسَا حَسَوَاتٍ مِنْ مَاءٍ".

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام به په تازه کهجورو باندې افطار کولو مخکښې دمانځه نه اوکه تازه کهجورې به نه وې نو په اوچو کهجورو به ئې افطار اوکړو اوکه دا به هم نه وې، نو د اوبو څو ګوټونه به ئې اوکړل.

## توضيح الحديث

قوله: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفْطِرُ عَلَى رُطَبَاتٍ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ...الخ:
چه نبی عليه السلام به د ماښام د مونځ نه مخکښې په څو کهجورو سره افطار کولو.

## شرح حديث وما يستفاد منه:

شارحينو ليکلې دی چه په دې کښې اشاره ده د تعجيل افطار په مستحب کيدو باندې چه د فرض مونځ نه مخکښې به ئې افطار کولو، هم دغه شان به دا هم وئيلې شی چه په هغې کښې اشاره ده د تعجيل صلاة مغرب طرف ته هم، لکه چه ظاهر دې، ګينې باقاعده د تعشی نه پس به رسول الله ﷺ مونځ ادا فرمائيلو، پس په الدر المنضود جلد اول ۲۲۴ کښې باب ما يصلی الرجل وهو حاقن... کښې د تقديم العشاء علی العشاء والا حديث باندې کلام کولو سره تير شوې دی چه علامه دسوقی فرمائی چه امام مالک رحمه الله د تقديم عشاء والا حديث لره اختيار کړې نه دې، د عمل اهل مدينه د وجې نه، پس هغه د تقديم عشاء قائل نه دې (بلکه د تقديم صلاة) البته په الشرح الکبير کښې ليکلې دی چه د صائم دپاره مستحب ده چه هغه د غروب نه روستو د صلاة مغرب نه په څو کهجورو سره افطار اوکړی او بيا باقاعده تعشی د ماښام د مونځ نه روستو اوکړی. اه

والحديث اخرجه ايضا احمد وابن ماجة والحاكم، والترمذی وقال حسن غريب. (قاله فی المنهل)

---

¹): سنن الترمذي/الصوم ١٠ (٦٩٦)، (تحفة الأشراف: ٦٦٥) (حسن صحيح)

## باب القول عند الإفطار

### د افطار په وخت کښې کومه دعا ونیل پکار دی؟

[۲۳۵۷](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى أَبُو مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَسَنِ، أَخْبَرَنِي الْحُسَيْنُ بْنُ وَاقِدٍ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ يَعْنِي ابْنَ سَالِمٍ الْمُقَفَّعَ، قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقْبِضُ عَلَى لِحْيَتِهِ فَيَقْطَعُ مَا زَادَ عَلَى الْكَفِّ، وَقَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَفْطَرَ قَالَ: ذَهَبَ الظَّمَأُ وَابْتَلَّتِ الْعُرُوقُ وَثَبَتَ الْأَجْرُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ".

**ترجمه:** دمروان بن سالم المقفع نه روایت دې فرمائی چه ما ابن عمر رضی الله عنه لیدلې ووچه خپله ږیره به ئې په موټی کښې ونیوله کومه چه به دموټې نه زیاتې وه هغه به ئې کټ کړه اوفرمائیل به ئې چه نبی علیه السلام به کله روژه ماتوله نوداسې به ئې فرمائیل: «ذهب الظمأ وابتلت العروق وثبت الأجر إن شاء الله»یعنی تنده ماته شوه اورګونه تر اوتازه شول اوکه د الله تعالی خوښه وې ثواب ثابت شو.

### توضیح الحدیث

قوله: حَدَّثَنَا مَرْوَانُ يَعْنِي ابْنَ سَالِمٍ الْمُقَفَّعَ، قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقْبِضُ عَلَى لِحْيَتِهِ فَيَقْطَعُ مَا زَادَ عَلَى الْكَفِّ، ..الخ".([۲])

### د ږیرې شرعی مقدار:

مروان بن سالم فرمائی: ما ابن عمر رضی الله عنه صحابی اولیدو چه هغه به خپله ږیره په خپل موټی سره نیولو او چه کومه حصه به د یو موټی نه بهر وه نو هغه به ئې پرې کړه.

مروان دې خپلې مشاهدې لره بیانولو سره ګویا اشاره اوکړه د خپل تابعی کیدو طرف ته، بیا چه وړاندې هغه ته کوم حدیث بیانول غواړی هغه روایت کوی چه:

### د روژه ماتی دعا:

ابن عمر رضی الله عنه فرمائی: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَفْطَرَ، قَالَ: ذَهَبَ الظَّمَأُ وَابْتَلَّتِ الْعُرُوقُ وَثَبَتَ الْأَجْرُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ".

او د هغې نه روستو والا په روایت مرسله کښې دا دعا را روانه ده، ﴿كان اذا افطر قال اللهم لک صمت وعلى رزقک افطرت﴾په کتاب الاذکار کښې د ابن سنی په حوالې سره د ابن عباس رضی الله عنه په حدیث کښې دی: کان النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اذا افطر قال: اللهم لک صمنا وعلى رزقک افطرنا فتقبل منا انک انت السميع العليم... حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې د روضة المحتاجین نه نقل فرمائیلې دی چه په مذکوره دعا کښې "وبک امنت"او هم دغه شان "وعليک توکلت"د دې زیادت هیڅ اصل نشته اګر چه معنی د دې صحیح ده خو د دې کتاب نه یو بل ځائې کښې دا هم ظاهرېږی چه دا زیادت په بل روایت کښې موجود دې. اهـ

---

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۴۴۹)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/اللباس ۶۴ (۵۸۹۲) (الشق الأول بسند آخر)، سنن النسائي/اليوم والليلة (۲۹۹) (حسن)

[۲]) هكذا في اكثر النسخ بتقديم الفاء علي القاف، وهو تحريف من النساخ والصواب "المقفع" بتقديم القاف علي الفاء كما في التقريب وغيره. ۱۲)

په دې روايت كښې دا چه د ابن عمر رضي الله عنه په باره كښې راغلي دى ﴿يقبض على لحيته فيقطع ما زاد على الكف ﴾د دې ذكر مونږ سره په كتاب الطهارت كښې "عشر من الفطرة" د لاندې تير شوې دې، په بخارى كښې دى تعليقا كان ابن عمر اذا حج او اعتمر قبض على لحيته فما فضل اخذه. حديث ابن عمر اخرجه ايضا النسائى والحاكم والبيهقى والدارقطنى.

والحديث الثانى اخرجه البيهقى من طريق المصنف، واخرجه الطبرانى فى الاوسط عن انس بن مالک قاله فى المنهل.

[۲۳۵۸](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ زُهْرَةَ، أَنَّهُ بَلَغَهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَفْطَرَ، قَالَ: اللَّهُمَّ لَكَ صُمْتُ وَعَلَى رِزْقِكَ أَفْطَرْتُ".

**ترجمه:** دمعاذبن زهره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه كله به نبى عليه السلام روژه ماتوله نودا دعابه ئې فرمائيله. «اللَّهُمَّ لك صمت وعلى رزقك أفطرت» يعنى اې الله ماستادپاره روژه ونيوله اوستاپه رزق مې ماته كړه.

## بَابُ الْفِطْرِ قَبْلَ غُرُوبِ الشَّمْسِ

### بيان د روژه ماتى مخكښې د نمر پريوتلو نه

[۲۳۵۹](2) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، قَالَتْ: أَفْطَرْنَا يَوْمًا فِي رَمَضَانَ فِي غَيْمٍ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ طَلَعَتِ الشَّمْسُ، قَالَ أَبُو أُسَامَةَ: قُلْتُ لِهِشَامٍ: "أُمِرُوا بِالْقَضَاءِ؟ قَالَ: وَبُدٌّ مِنْ ذَلِكَ".

**ترجمه:** داسماء بنت ابي بكر رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه يوه ورځ مونږ په رمضان كښې روژه ماته كړه او وريځ وه، په زمانه دنبى عليه السلام كښې اوبيانمر راوختو اسامه وائى ماهشام ته اووئيل اياد قضاحكم ورته وشو؟ هغه اووئيل چه دروژې قضاخو لازمي ده.

### توضيح الحديث

**قوله:** أَفْطَرْنَا يَوْمًا فِي رَمَضَانَ فِي غَيْمٍ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ طَلَعَتِ الشَّمْسُ:

يعنى يو ځل مونږ د رسول الله ﷺ په زمانه كښې د وريځ په ورځ باندې روژه افطار كړه، (په دې خيال باندې چه نمر پريوتلې دې) خو بيا نمر راښكاره شو، په دې باندې شاګرد د استاذ نه تپوس اوكړو چه ايا بيا د دې روژې قضاء هم اوكړې شوه؟ هغه اوفرمائيل ﴿وبد من ذلک ﴾ايا بغير د دې نه څه خلاصې وو يعنى قضاء ضرورى وه.

د ائمه اربعه مذهب وجوب قضاء ده په دې كښې داود ظاهرى، اسحاق بن راهويه وغيره اختلاف دې د هغوى په نزد قضاء نشته، حافظ هم په فتح البارى كښې ليكلې دى: وهى مسئلة خلافية، واختلف قول عمر فيها كما سيأتى.

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹٤٤) (ضعيف)

(2): صحيح البخاري/الصوم ٤٦ (۱۹۵۹)، سنن ابن ماجه/الصيام ۱۵ (۱٦٧٤)، (تحفة الأشراف: ۱۵٧٤۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٤٦) (صحيح)

## په حديث الباب کښې اختلاف روايتين :

دا ترجمة الباب او حديث هم دغه شان په روايت د ابو اسامه عن هشام په صحيح بخاري کښې هم دي، ولفظه : قيل لهشام فامروا بالقضاء؟ قال : بدّ من قضاء، وقال معمر : سمعت هشاما يقول: لا ادرى اقضو ام لا، ګويا د هشام يو شاګرد يعنى اسامه خو د هغه نه دا نقل کړل چه بغير د قضاء نه چاره کار نشته، يعنى قضاء ضروري ده.

د ائمه اربعه مذهب وجوب قضاء دې په دې کښې د داود ظاهري او اسحاق بن راهويه وغيره اختلاف دې د هغه په نزد قضاء نشته، حافظ هم په فتح الباري کښې ليکلي دي: وهي مسئلة خلافية، واختلف قول عمر فيها کما سياتي.

## په حديث الباب کښې اختلاف روايتين :

دا ترجمة الباب او حديث هم دغه شان په روايت د ابو اسامه عن هشام په صحيح بخاري کښې هم دي، ولفظه : قيل لهشام فامروا بالقضاء؟ قال : بد من قضاء، وقال معمر سمعت هشاما يقول: لا ادرى اقضوا ام لا.. ګويا د هشام يو شاګرد يعنى اسامه خو د هغه نه دا نقل کړې دى چه بغير د قضاء نه خلاصي نشته، او د هغه بل شاګرد د معمر نه د هغه دا جواب نقل کړې دې چه ماته نه ده معلومه چه صحابه کرامو د دې قضاء راوړې وه يا نه؟ حافظ د دې توجيه دا کړې ده چه د هغه دا فرمائيل چه بغير د قضاء نه خلاصي نشته، دا خبره هغه د څه دليل په بنياد باندې کړې ده يعنى من حيث المسئلة او د معمر په روايت کښې چه د هغه کوم جواب دې د هغې مطلب دا دې چه سيده اسماء ﷞ چه کومه قصه بيانوى د رسول الله ﷺ د زمانې د هغې په باره کښې ماته علم نشته چه قضاء ثابته ده يا نه؟

## په مسئلة الباب کښې د عمر ﷜ مسلک :

حافظ په فتح الباري کښې د سيدنا عمر ﷜ په واقعه کښې په داسې حال کښې چه هغه روژه ماته کړې وه او بيا نمر رابنکاره شوې وو دې باره کښې دوه مختلف روايتونه د مصنف ابن ابى شيبه وغيره نه نقل کړې دى، پس په يو روايت کښې خو دا دى چه سيدنا عمر ﷜ اوفرمائيل : لم نقض، والله ما تجانفنا الاثم، يعنى په مونږ باندې د دې روژې قضاء نشته والله مونږ څه ګناه نه ده کړې، او په يو روايت کښې دى چه هغه اوفرمائيل : الخطب يسير وقد اجتهدنا نقضى يوما. په دې کښې د ګناه هيڅ خبره نشته اجتهادى غلطى ده د يوې روژې قضاء به اوکړى، حافظ ابن حجر ﷫ په دې مسئله کښې د علماء کرامو د اختلاف ليکلو نه پس د جمهور د مسلک تائيد داسې کوى چه که په نهيشتم د شعبان باندې مياشت په نظر رانشى او د هغې په وجه خلق روژه او نه نيسى او بيا روستو دا ثابته شى چه دا مياشت د رمضان ده نو قضاء بالاتفاق واجب ده، پس دغه شان دا دويمه مسئله هم ده.

والحديث اخرجه ايضا البخاري وابن ماجة والبيهقي والدارقطني وقال اسناده صحيح ثابت، قاله في المنهل.

# بَابٌ فِي الْوِصَالِ
## د مسلسل روژو نيولو بيان

[۲۳۶۰] (¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْوِصَالِ، قَالُوا: فَإِنَّكَ تُوَاصِلُ يَا رَسُولَ اللهِ، قَالَ: "إِنِّي لَسْتُ كَهَيْئَتِكُمْ، إِنِّي أُطْعَمُ وَأُسْقَى".

**ترجمه:** دعبدالله بن عمر ﷺ نه روايت ئې فرمائي چه نبی ﷺ دمسلسل روژونيولونه منع فرمائيلي ده داسې چه په مينځ کښې ئې افطارنه وي صحابه کرامو عرض اوکړو تاسو وصال کوئ يا رسول الله نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: زه ستاسوپه شان نه يم ماته خوراك څښاك رارسيږي.

### توضيح الحديث

امام بخاری رحمه الله په دې سلسله کښې دوه بابونه قائم کړي دی، اول "باب الوصال" چه په هغې کښې ئې هغه احاديث راوړي دی چه په هغې کښې مطلقاً د وصال نه منع کړې شوې ده لکه ﴿لا تواصلوا ﴾او ﴿نهی رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عن الوصال ﴾او دويم باب "باب الوصال الى السحر" امام ابوداود دا دواړه قسم روايات په دې يو باب کښې راوړي دی، په بذل کښې ليکی : وصال دا دې چه دوه ورځې يا د دې نه د زياتو روژو تسلسل چه د شپې پکښې افطار نه وی. او په فتح الباری کښې د وصال په تعريف کښې ليکلي دی : د روژو په شپو کښې بالقصد هغه څيزونه ترک کول چه کوم د ورځې ترک کولي شی، لهذا که هغه څيزونه ئې اتفاقا پريخودل نو دا به وصال نه وی، خو په وصال کښې چه کوم ترک وی هغه عام دې د دې نه چه پوره شپه وی يا په بعض حصه کښې.

### د صوم وصال حکم شرعی :

بيا د صوم وصال مسئله مختلف فيه ده، د جمهور علماء او ائمه ثلاث په نزد مکروه ده که تولپه شپه وی يا تر پيشمنی پورې وی، البته امام احمد او اسحاق او بعض شوافع لکه ابن المنذر او ابن خزيمه، او د مالکيانو د يو جماعت په نزد وصال الی السحر جائز دې، بيا د ائمه ثلاث په دې کښې اختلاف دې چه دا کراهت تحريمی دې يا تنزيهی، د احنافو په نزد مکروه تنزيهی دې کما فی الدر المختار، هم دغه شان د مالکيانو او حنابله په نزد هم او د شوافعو په نزد هم د تحريم دپاره دې، کما فی حاشية شرح الاقناع. (الابواب والتراجم)

**قوله:** قَالُوا: فَإِنَّكَ تُوَاصِلُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ، قَالَ: "إِنِّي لَسْتُ كَهَيْئَتِكُمْ، إِنِّي أُطْعَمُ وَأُسْقَى":

صحابه کرامو عرض اوکړو چه يا رسول الله ﷺ ته خو هم وصال کوې! نو وې فرمائيل چه په دې کښې زه ستاسو په شان نه يم او په يو روايت کښې دی ﴿وايکم مثلی ﴾په تاسو کښې زما په شان څوک دې؟ په ما خو خوراک څکاک کولې شی.

---

(¹): صحيح البخاري/الصوم ۲۰ (۱۹۲۲)، ۴۸ (۱۹۶۲)، صحيح مسلم/الصيام ۱۱ (۱۱۰۲)، (تحفة الأشراف: ۸۳۵۳)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصيام ۱۳ (۳۸)، مسند احمد (۱۱۲/۲، ۱۲۸) (صحيح)

**شرح حدیث :**

د دې په شرح کښې د شارحينو ډير اقوال دی، بعض دا په حقیقت طعام وشراب باندې محمول کړې دې، او بیا په دې چه کوم اشکال راځی چه بیا دا وصال څنګه شو، چه دا طعام او شراب د جنت والا دې کوم چه مفسد صوم نه دې، خو د اکثر علماء کرامو رائې دا ده چه د طعام او شراب نه مراد د شراب او طعام لازم دې یعنی کوم طاقت چه په طعام او شراب سره حاصليږی هغه الله پاک ماته بغیر د طعام او شراب نه راکوی، او وئیلې شوې دی چه مقصود په دې سره د احساس نفی ده، یعنی په رسول الله ﷺ چه د تجلیات ربانیه او معارف الهیه کوم فیضان کیږی د هغې په وجه باندې ورته د لوږې او تندې احساس نه کیږی.

والحديث اخرجه ايضا احمد والبخارى ومسلم قاله فى المنهل.

[۲۳۶۱] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، أَنَّ بَكْرَ بْنَ مُضَرَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ خَبَّابٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تُوَاصِلُوا، فَأَيُّكُمْ أَرَادَ أَنْ يُوَاصِلَ فَلْيُوَاصِلْ حَتَّى السَّحَرِ"، قَالُوا: فَإِنَّكَ تُوَاصِلُ، قَالَ: "إِنِّي لَسْتُ كَهَيْئَتِكُمْ، إِنَّ لِي مُطْعِمًا يُطْعِمُنِي وَسَاقِيًا يَسْقِينِي".

**ترجمه:** دابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلې دې چه [۲۳۶۰] او یوه روژه دبلې روژې سره دیوځائې کولو اراده لری نوهغه دې دپیشمنې دوخته پورې یوځائې کړې صحابه کرامو عرض اوکړو اې دالله رسوله ته خوهم پرله پسې روژې نیسې؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل زه تاسوپه شان نه یم زما دپاره خوراك څښاك راکونکې شته دې چه هغه په ما باندې خوروې اوڅکوې.

## بَابُ الْغِيبَةِ لِلصَّائِمِ

### د روژې په حالت کښې د غیبت بیان

[۲۳۶۲] (²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ لَمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّورِ وَالْعَمَلَ بِهِ فَلَيْسَ لِلَّهِ حَاجَةٌ أَنْ يَدَعَ طَعَامَهُ وَشَرَابَهُ". وَقَالَ أَحْمَدُ: فَهِمْتُ إِسْنَادَهُ مِنْ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، وَأَفْهَمَنِي الْحَدِيثَ رَجُلٌ إِلَى جَنْبِهِ، أُرَاهُ ابْنَ أَخِيهِ.

**ترجمه:** دابوهریره نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی هریوکس چه دروژې په حالت کښې ئې بې فائدې خبرې اوبدکارونه کول پرې نږدې نوالله تعالی ته ددې ضرورت نشته چه هغه دې صرف خپل خوراك څښاك پريږدي، امام احمدفرمائی ما ددې حدیث سند دابن ذوئیب نه معلوم کړې دې اوددې حدیث متن مادهغه کس نه معلوم کړې دې څوك چه دده په سنګ کښې ناست وو زماخیال دې چه هغه دده وراره وو.

**شرح حدیث :**

د زور معنی بعض باطل ليکلې ده، او بعض د دې تفسير په کذب او بهتان سره کړې دې چه

¹): صحيح البخاري/الصوم ٤٨ (١٩٦٢)، ٥٠ (١٩٦٧)، (تحفة الأشراف: ٤٠٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٨٣، ٨٧)، سنن الدارمي/الصوم ١٤ (١٧٤٧) (صحيح)

²): صحيح البخاري/الصوم ٨ (١٩٠٣)، سنن الترمذي/الصوم ١٦ (٧٠٧)، سنن ابن ماجه/الصيام ٢١ (١٦٨٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٢١)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ الصوم (٣٢٤٦)، مسند احمد (٢/٤٥٢، ٥٠٥) (صحيح)

کوم سړې ترک نه کړی قول زور او په هغې باندې عمل یعنی د ناجائز او حرام کار ارتکاب، که قولا وی یا عملا نو الله پاک ته د داسې سړی د خوراک او څکاک پریخودلو حاجت نشته، د دې نه مراد عدم التفات او عدم مبالات دې چه دا کنایه ده د عدم قبول نه، هم دغه شان په دې حدیث کښې اشاره ده چه کوم سړې قول باطل او عمل حرام نه د روژې په حالت کښې ځان نه ساتی د هغه روژه د دې قابله نه ده چه د هغې نه په روژې سره تعبیر اوکړې شی، پس په حدیث کښې په ځائې د ﴿فلیس لله حاجة فی صومه﴾ د ترک طعام وشراب لفظ راغلې دې، لکه چه په یو بل حدیث کښې دی ﴿رب صائم لیس له من صیامه الا الجوع، ورب قائم لیس له من قیامه الا السهر﴾... رواه النسائی وابن ماجة عن ابی هریرة رضی الله عنه.

او وړاندې په بل حدیث کښې راځی ﴿اذا کان احدکم صائما فلا یرفث ولا یجهل فان امرء قاتله وشاتمه فلیقل انی صائم﴾.... ﴿یرفث﴾ د فاء په ضمې او کسرې سره دواړو طریقو سره صحیح ده، یعنی کلام فاحش، د بې حیایئ خبرې، او بې هوده خبرې ویطلق الرفث ایضا علی الجماع ومقدماته... او د جهالت کارونه دې نه کوی، د جهل معنی چه څنګه عدم علم راځی د جاهلانه حرکت هم راځی، کما فی قوله:

الا لا یجهلن احد علینا فنجهل فوق جهل الجهالینا

[۲۳٦۳] ()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الصِّيَامُ جُنَّةٌ، إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ صَائِمًا فَلَا يَرْفُثْ وَلَا يَجْهَلْ، فَإِنِ امْرُؤٌ قَاتَلَهُ أَوْ شَاتَمَهُ، فَلْيَقُلْ: إِنِّي صَائِمٌ إِنِّي صَائِمٌ".

**ترجمه:** دابوهریره نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی روژې یو دال دې کله چه په تاسو کښې د چاروژه وي نوده لره پکاردي چه ئې فائدې خبرې نه کوي اونه دې دجهالت عملونه کوي که چرې څوك دده سره جنګ کوي یا ورته کنځل کوي نودې دې ورته اووائی چه زه روژه داریم

**تشریح:** بیا وړاندې په حدیث کښې دی چه که د روژه دار سره څوک جهګړې کوی او هغه ته کنځلې کوی نو هغه له پکار دی چه داسې اوائی چه زما روژه ده، د بعض رائې دا ده چه مراد دا دې چه هغه کنځلې کونکی ته اوائی چه زما روژه ده ما سره جهګړه مه کوه، او بعض دا وئیلې دی چه دا مراد دې چه خپل نفس ته اوائی او هغه دې پوهه کړی، حکی القولین الامام الخطابی، امام نووی رحمه الله اول مطلب ته راجح وئیلې دې په کتاب الاذکار کښې او په شرح مهذب کښې فرمائی والقول باللسان اقوی ولو جمعهما لکان حسنا. خو امام رافعی د اکثر ائمه کرامو نه دویمه معنی نقل کړې ده، او دریم قول دا دې چه که د رمضان روژه وی نو په ژبې سره دې اوائی او که نفلی وی نو په خپل زړه کښې دې اوائی. اهـ مختصرا من الاوجز.

[1]: صحیح البخاري/الصوم ۲ (۱۸۹٤)، ۹ (۱۹۰٤)، سنن النسائي/الصیام ۲۳ (۲۲۱۸)، سنن ابن ماجه/الصیام ۲۱ (۱٦۹۱)، (تحفة الأشراف: ۱۳۸۱۷)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/الصیام ۳۰ (۱۱۵۱)، سنن الترمذي/الصوم ۵۵ (۷٦٤)، موطا امام مالك/الصیام ۲۲ (۵۷)، مسند احمد (۲/۲۳۲)، سنن الدارمي/الصوم ۵۰ (۱۸۱۲) (صحیح)

مصنف ترجمه قائم کړې وه په غیبت سره، په حدیث کښې اګرچه صریح لفظ غیبت مذکور نه دې خو ﴿قول زور﴾ یعنی قول باطل وحرام د خپل عموم په بناء باندې غیبت ته هم شامل دې.

ځان پوهه کړه چه په دې کښې خو د چا اختلاف هم نشته چه کلام فاحش او کنزلو سره د روژې ثواب کمیږي، خو په دې کښې اختلاف دې چه په دې څیزونو سره روژه فاسدیږي یا نه. د سفیان ثوری او اوزاعی نه نقل دی چه غیبت مفسد صوم دې.

الحدیث الاول اخرجه ایضا احمد والبخاری وابن ماجة والترمذی والنسائی والبیهقی.

والحدیث الثانی اخرجه ایضا مسلم والبیهقی، واخرجه مالک فی الموطاء، والترمذی ومسلم والبخاری مطولا، قاله فی المنهل.

## بَابُ السِّوَاكِ لِلصَّائِمِ

### باب دې په بیان د مسواک وهلو د روژه دار دپاره

[۲۳٦٤] (1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَاكُ وَهُوَ صَائِمٌ"، زَادَ مُسَدَّدٌ: مَا لَا أَعُدُّ وَلَا أُحْصِي.

**ترجمه:** عبیدالله بن عامر بن ربیعه دخپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه ما نبی ﷺ د روژې په حالت کښې اولیدو چه مسواک ئې وهلو دمسدد په روایت کښې دا اضافه ده چه دومره ییرې ئې مسواک اووهلو چه زه ئې نه شم شمیرلې.

### توضیح الحدیث

قوله: عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَاكُ وَهُوَ صَائِمٌ"، زَادَ مُسَدَّدٌ: مَا لَا أَعُدُّ وَلَا أُحْصِي: عامر بن ربیعه فرمائی چه ما ډیر کرته رسول الله ﷺ په مسواک کولو باندې لیدلې دې په داسې حال کښې چه هغه به روژه دار وو.

### په سواک للصائم کښې مذاهب ائمه:

د دې حدیث نه د روژه دار دپاره د سواک استحباب معلومیږی مطلقا، که قبل الزوال وی یا بعد الزوال وی، په ائمه کرامو کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله هم دا مذهب دې، د نورو ائمه کرامو په دې کښې اختلاف دې........ د امام شافعی رحمه الله مشهور مذهب دا دې استحباب سواک قبل الزوال، او بعد الزوال کراهة، او د امام مالک رحمه الله په نزد د رطب او یابس فرق دې یعنی که مسواک تر وی نو مکروه او که اوچ وی نو مکروه نه دې، امام احمد دا دواړه مذاهب راجمع کړې دی، یعنی قبل الزوال کراهت دې صرف د تر مسواک او بعد الزوال مطلقا مکروه دې که تر وی او که خشک وی، او په احنافو کښې د امام ابویوسف رحمه الله رائې دا ده لکه چه په بذل کښې د "بدائع" نه منقول دی چه د هغوی په نزد استیاک بالسواک المبلول (یعنی کوم چه په اوبو کښې تر کړې شوې وی) مکروه دې چه د هغې وجه دا فرمائی: فیه ادخال الماء فی الفم من غیر حاجة، صاحب بدائع فرمائی: او زمونږ دلیل دا

(1): سنن الترمذي/الصوم ۲۸ (۷۲۵)، (تحفة الأشراف: ٥٠٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۴٥/۳، ٤٤٦) (ضعيف)

دي چه رسول اللهﷺ فرمائي ﴿خير خلال الصائم السواک ﴾چه په هغې کښې د مبلول او غير مبلول هيڅ قيد نشته. اهـ

**تنبيه** : امام ترمذي رحمه الله د حديث الباب نه روستو فرمائي : **والعمل على هذا عند اهل العلم، لا يرون بالسواک للصائم باسا، الا ان بعض اهل العلم کرهوا السواک للصائم بالعود الراطب وکرهوا له السواک اخر النهار، ولم ير الشافعي بالسواک باسا اول النهار واخره، وکره احمد واسحاق اخر النهار.** اهـ امام ترمذي رحمه الله د امام شافعي رحمه الله مسلک مطلقا د استحباب مسواک نقل کړې دې خو دا خلاف مشهور دې، مشهور مذهب د هغه هم هغه دې کوم چه اوليکلې شو، په صحيح بخاري کښې دی امام ابن سيرين رحمه الله فرمائي چه په حالت صوم کښې په تر مسواک کښې هيڅ باک نشته، **قيل له طعم، قال : والماء له طعم وانت تمضمض به.** يعني چا هغه ته اووې چه د لوند لرګی په مسواک کښې خو د لرګی خوند وی نو هغه ورته جواب ورکړو چه په اوبو کښې خو هم ذائقه وی او ته يرې د روژې په حالت کښې خوله کنګالوې.

**په دې مسئله کښې د شوافع استدلال** :

د شوافعو استدلال په قبل الزوال وبعد الزوال کښې د هغه مشهور حديث نه دې **لخلوف فی الصائم اطيب عند الله من ريح المسک**، د هغه طريق استدلال دا دې چه د روژې د وجې نه چه د روژه دار په خوله کښې کومه بدبوئي پيدا کيږی هغه بعد الزوال پيدا کيدل شروع شی، حال دا چه هغه د الله پاک په نزد خوښ او محبوب دې، او په مسواک سره هغه زائل کيږی، د دې مشهور جواب دا دې چه خلوف هغه بدبوئي ته وئيلې شی کوم چه د معدې د خالی کيدو د وجې نه پيدا کيږی چه د هغې ازاله په مسواک سره نه کيږی، په مسواک سره صرف د ظاهر فم د بوئی ازاله کيږی خپله حافظ هم د دې اعتراف کړې دې چه د شوافعو استدلال د دې حديث نه صحيح نه دې.

**فائده** : امام نسائي رحمه الله په ابواب السواک کښې يو باب په دې عنوان سره هم قائم کړې دې "**باب السواک للصائم بعد العشی**"د دې د لاندې ئې هغه حديث راوړې دې "**لولا ان اشق على امتی لامرتهم بالسواک عند کل صلاة**"دا د هغه يو لطيف استنباط دې ځکه چه په دې حديث کښې رسول اللهﷺ فرمائي چه د هر يو مونځ په وخت زما دپاره د امر بالسواک نه يو څيز هم مانع نه دې سوا د مشقت د ويرې نه، معلومه شوه چه صوم يو وخت هم د سواک نه مانع نه دې.

**وحديث الباب اخرجه احمد والبيهقی وابن خزيمة فی صحيحه، والترمذی وقال حسن، والبخاری تعليقا قاله فی المنهل.**

..............

## بَابُ الصَّائِمِ يَصُبُّ عَلَيْهِ الْمَاءَ مِنَ الْعَطَشِ وَيُبَالِغُ فِي الِاسْتِنْشَاقِ

**باب: روژه دار د تندې په وجه ځان باندې اوبه واچوی او په پوزه کښې اوبه اچولو کښې مبالغه اوکړی نو ددې د حکم بيان**

[۲۳٦۵]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سُمَيٍّ مَوْلَى أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ النَّاسَ فِي سَفَرِهِ عَامَ الْفَتْحِ بِالْفِطْرِ، وَقَالَ: "تَقَوَّوْا لِعَدُوِّكُمْ"، وَصَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، قَالَ أَبُو بَكْرٍ: قَالَ الَّذِي حَدَّثَنِي: لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعَرْجِ يَصُبُّ عَلَى رَأْسِهِ الْمَاءَ وَهُوَ صَائِمٌ مِنَ الْعَطَشِ أَوْ مِنَ الْحَرِّ.

**ترجمه:** سمي څوك چه دابوبکر بن عبدالرحمن آزاد کړې شوې غلام دې په صحابه کرامو کښې ديوکس نه روايت کوی فرمائی چه ما نبی ﷺ اوليدو په کوم کال چه مکه فتحه شوې وه خلقوته ئې دسفرپه دوران کښې دروژې ماتولوحکم کړې وو اوفرمائيلي ئې وو تاسو ددشمن مقابلې ته ځان طاقتور کړئ، أبوبکر رضی الله عنه اووئيل ماته دغه صحابي اوويل يقينا ما نبی ﷺ اوليدوچه هغه په عروج مقام کښې دروژې په حالت کښې پخپل سرباندې اوبه اچولې ددې دپاره چه په تنده اودګرمی په شدت کښې کمې راشي.

### توضيح الحديث

دلته دا حديث مختصر دې، وړاندې "باب الصوم فی السفر"کښې سيدنا ابوسعيد خدری رضی الله عنه په يو روايت کښې داسې دی هغه فرمائی چه د فتح مکه په کال باندې د رمضان په مياشت کښې مونږ د رسول الله ﷺ سره په سفر کښې وو، هغه چه کله يو منزل ته اورسيدو په داسې حال کښې چه خپله ئې روژه وه خو صحابه کرامو ته ئې اوفرمائيل : ﴿انکم قد دنوتم من عدوکم والفطر اقوی لکم ﴾چه اوس تاسو دشمن ته نزدې شوئ (ګويا د مقابلې وخت راروان دې) په داسې صورت کښې افطار ستاسو دپاره د قوت سبب دې، بيا وړاندې په حديث الباب کښې دا دی صحابی فرمائی چه ما رسول الله ﷺ اوليدو په مقام عرج کښې (دا د مکې او مدينې ترمينځه د يو منزل نوم دې) چه هغه په خپل سر مبارک باندې اوبه اچولې په داسې حال کښې چه هغه روژه دار وو، د تندې يا ګرمئ د وجې نه.

د دې حديث نه معلومه شوه چه د روژه دار دپاره د روژې په حالت کښې د تندې او ګرمئ د تخفيف دپاره غسل کول يا په سر باندې اوبه اچول يا تر کپړه په سر باندې کيخودل جائز دی، هم دا د جمهورو رائې ده، په احنافو کښې د امام ابويوسف هم دا رائې ده، او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد داسې کول مکروه تنزيهی دی. کما فی البذل عن البدائع. پس دا حديث د هغه خلاف شو، د دې جواب دا کړې شوې دې چه د امام صاحب په نزد کراهت په هغه صورت کښې دې چه کله داسې کول اظهارا للضجر (د روژې نه تنګيدلو او ويريدلو سره) وی او د ضعف او عجز د اظهار په طور وی نو بيا مکروه نه دی.

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵٦۸۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصيام ۷ (۲)، مسند احمد (۴۷۵/۳، ٦۳/۴، ۳۷٦/۵، ۳۸۰، ۴۰۸، ۴۳۰) (صحيح)

والحديث اخرجه مالک فی الموطاء والشافعی فی مسنده، واحمد والنسائی والحاكم والبيهقی وصححه ابن عبدالبر، قاله فی المنهل.

[۲۳۶۶]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ لَقِيطِ بْنِ صَبْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ لَقِيطِ بْنِ صَبْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بَالِغْ فِي الِاسْتِنْشَاقِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ صَائِمًا".

**ترجمه**: لقيط بن صبره دخپل پلارنه روايت کوي فرماني چه نبی ﷺ فرمائيلی دی چه په پوزه کښي په اوبوا چولوکښي مبالغه کوئ ليکن که چرې ستاسو روژه وي نو مبالغه مه کوي (هسي نه چه په زورسره دماغوته ورسيږي)

## توضيح الحديث

دا حديث تفصيلا په کتاب الطهارت کښي تير شوې دې، په دې حديث کښي په حالت صوم کښي د مبالغه فی الاستنشاق نه منع کړې شوې ده، په ترجمة الباب کښي دوه اجزاء وو د يو جزء مناسب د باب اولني حديث دې، د دويم جزء مناسب دا حديث ثانی دې، د مبالغه فی الاستنشاق ممانعت په دې وجه دې چه په دې صورت کښي احتمال دې د وصول ماء الی الدما کوم چه مفسد صوم دې لهذا که يو سړی مبالغه اوکړه او د هغې د وجي نه ئې اوبه دماغو ته اورسيدې يعنی خطاء نو د احنافو او مالکيانو په نزد به ئې روژه فاسد شي او د هغه په ذمه باندې به قضاء وی، او د امام احمد، اسحاق او اوزاعی په نزد به فاسد نه وی، خطاء لره په نسيان باندې قياس کولو سره، او د امام شافعی نه دواړه روايتونه دی د فساد صوم او عدم فساد، مزنی د فساد قائل دې او نور اصحاب شافعی د عدم فساد.

## اصل کلی مستفاد من الحديث:

د دې حديث نه زمونږ فقهاء کرامو دا قاعده مستنبط کړې ده چه د يو څيز جوف دماغ يا جوف بطن ته رسيدل مفسد صوم دی، او بيا په دې اصول باندې زمونږ د زماني دوه مسئلې متفرع کيږی، مسئله شرب الدخان (تمباکو څکل، لکه چيلم او سګريټ وغيره) دويمه مسئله د انجکشن، په اوله مسئله کښي خو د فقهاء کرامو اتفاق دې چه هغه مفسد صوم دې، البته په مسئله ثانيه يعنی انجکشن کښي د علماء عصر اختلاف دې خو راجح او مفتی به هم دا ده چه هغه مفسد صوم نه دې، چه د هغې وجه دا ده چه روژه هغه وخت مفسد صوم وی چه کله يو څيز جوف بطن يا جوف دماغ ته د منافذ اصليه په ذريعه اورسولې شی، او د انجکشن حال دا دې چه بعض انجکشن خو داسې دی چه د هغې په ذريعه دوائی جوف دماغ يا جوف بطن ته نه رسيږی، او بعض اګر چه داسې دی چه هغې سره دوائی هلته اورسيږی خو دا رسيدل په منافذ اصليه سره نه دی بلکه عروق يعنی د رګونو په لاره باندې رسيږی او هغه د منافذه اصليه نه نه دی.

والحديث اخرجه ايضا النسائی وابن ماجة فی الوضوء، واخرجه الترمذی فی الصيام وللبيهقی نحو حديثه، قاله فی المنهل.

[1]: انظر حديث رقم: (۱۴۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۷۲) (صحيح)

## بَابٌ فِي الصَّائِمِ يَحْتَجِمُ

### د روژه دار لپاره د ښکر لګولو بيان

دلته دوه خيزونه دی، احتجام فی الصوم او په دې کښې مذاهب ائمه، دويم بحث دليل مسئله.

### بحث اول:

ځان پوهه کړه چه دې باره کښې روايات مختلف دی، د منع او جواز په اعتبار سره، هم دغه شان مصنف دلته دوه بابونه قائم کړې دی، په اول باب کښې د منع روايات، او په دويم باب کښې د رخصت او د جواز روايات ذکر کړې دی، ابن رشد په بداية المجتهد کښې، په دې کښې د علماء کرامو درې مذاهب ليکلي دی.

۱: په حالت صوم کښې د حجامت نه بچ کيدل واجب دی، او هغه دا چه مفطر صوم دې، هم د دې قائل دی امام احمد، داود ظاهری، اوزاعی او اسحاق بن راهويه.

۲: دويم قول د کراهت دې او دا چه هغه مفطر صوم نه دې، د دې قائل دی امام مالک، امام شافعی او سفيان ثوری.

۳: عدم کراهت يعنی بغير د کراهت نه جائز دی، د دې قائل دی امام ابوحنيفه او د هغه اصحاب، وسبب اختلافهم تعارض الاثار الواردة فی ذلک الی اخره. [1]

هم دغه شان امام ترمذی رحمه الله هم په دې باب دوه بابونه قائم کړې دی د منع او د جواز دواړو، امام ترمذی د امام شافعی نه اولا د هغه دا قول نقل کړې دې چه که يو سړې د روژې په حالت کښې ښکر اولګوی نو زه هغه مفطر نه ګنړم خو زما په نزد دې نه ځان ساتل غوره دی، امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه د امام شافعی رحمه الله دا رائې هغه وخت وه چه کله هغه په بغداد کښې وو او مصر ته د تلو نه پس هغه د رخصت طرف ته مائل شو او په دې کښې به ئې څه باک نه ګڼړلو، او په دليل کښې ئې دا اوفرمائيل چه د رسول الله ﷺ نه په حجة الوداع کښې د روژې په حالت کښې صوم احتجام ثابت دې او علامه طيبی شافعی په دې کښې درې مذاهب ليکلي دی، د امام احمد او اسحاق په نزد مفسد صوم کيدل، او مسروق، حسن بصری او ابن سيرين په نزد کراهت او د اکثر علماء کرامو په نزد چه په هغوی کښې ئې امام مالک، شافعی او ابوحنيفه هم شمار کړې دې عدم کراهت ليکلي دې، امام محمد رحمه الله په موطاء کښې د احنافو مسلک د عدم کراهت ليکلي دې په دې شرط چه د ضعف راتلو ويره نه وی ګينې مکروه دې اه مولانا عبدالحی صاحب د دې په تائيد کښې په حواله د طحاوی د دې قسم ډير روايات ذکر کړې دی چه د صائم دپاره د حجامت کراهت د ضعف د وجې نه دې، او بيا مولانا د حازمی نه د امام مالک او شافعی مسلک هم نقل کړې دې، او هم دغه شان مذاهب حضرت شيخ په اوجز کښې ليکلي دی، يعنی د احنافو [2] او د مالکيانو په نزد کراهت عند خوف الضعف، پس حاصل دا شو چه د امام احمد په نزد مفسد صوم اود مسروق، حسن بصری او ابن سيرين په نزد کراهت مطلقا، او د احنافو او

---

[1]) ابن رشد چه کوم مذاهب ليکلي دی په هغې کښې غلطی ده لکه چه روستو به معلوم شی.

[2]) ففي كتاب الكافي لابن عبدالبر ۲۵۲/۱، ولا باس بالحجامة للصائم اذا لم يخش الضعف عن تمام صومه اهـ.

مالکیانو په نزد د ضعف د وجې نه کراهت ګیني اباحت، او د امام شافعي رحمه الله مسلک د امام ترمذي رحمه الله په کلام کښې تیر شوې دی چه په شروع هغه د ترک د اولی کیدو قائل وو او روستو د رخصت.

[۲۳۶۷] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ هِشَامٍ ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا حَسَنُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، جَمِيعًا عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ يَعْنِي الرَّحَبِيَّ، عَنْ ثَوْبَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَالْمَحْجُومُ". قَالَ شَيْبَانُ: أَخْبَرَنِي أَبُو قِلَابَةَ، أَنَّ أَبَا أَسْمَاءَ الرَّحَبِيَّ، حَدَّثَهُ أَنَّ ثَوْبَانَ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** دثوبان نه روایت دي فرمائي چه نبی علیه السلام فرمائیلي دي چاچه په روژه کښې ښکراولګولو نودده روژه ماته شوه او چاته چه ښکراولګیدو دهغه هم روژه ماته شوه، دابو قلابه په واسطه باندې ابو اسماء الرجي دثوبان نه داروایت مرفوع بیان کړې دي.

[۲۳۶۸] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا حَسَنُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ يَحْيَى، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو قِلَابَةَ الْجَرْمِيُّ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّ شَدَّادَ بْنَ أَوْسٍ بَيْنَمَا هُوَ يَمْشِي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** دشداد بن أوس رضی الله عنه نه راویت دي فرمانې چه زه د نبی علیه السلام سره روان وم او پاتې روایت دتیر شوي روایت په شان دي.

[۲۳۶۹] (۳) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْأَشْعَثِ، عَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى عَلَى رَجُلٍ بِالْبَقِيعِ وَهُوَ يَحْتَجِمُ وَهُوَ آخِذٌ بِيَدِي لِثَمَانِ عَشْرَةَ خَلَتْ مِنْ رَمَضَانَ، فَقَالَ: "أَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَالْمَحْجُومُ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَى خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، بِإِسْنَادِ أَيُّوبَ، مِثْلَهُ.

**ترجمه:** دشداد بن أوس رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبی علیه السلام په بقیع مقام کښې یوکس ته ورغې اوهغه به خلقو ته ښکر لګول اونبی علیه السلام زمالاس نیولې وو، نبی علیه السلام اوفرمائیل دښکرلرونکي او چاته چه ښکرلږوي ددواړو روژه ماتیږي، دا واقعه داتلسم رمضان وه، امام ابوداود فرمائي چه خالد الحذاء دابو قلابه نه اوهغه دایوب نه په خپل سند سره روایت نقل کړې دي.

[۲۳۷۰] (۴) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، وَعَبْدُ الرَّزَّاقِ ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي مَكْحُولٌ، أَنَّ شَيْخًا مِنَ الْحَيِّ، قَالَ عُثْمَانُ فِي حَدِيثِهِ: مُصَدَّقٌ أَخْبَرَهُ، أَنَّ ثَوْبَانَ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَالْمَحْجُومُ".

---

[۱]: سنن ابن ماجه ۱۸/الصیام ۱۸ (۱۶۸۰)، (تحفة الأشراف: ۲۱۰٤)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري (۳۱۳۵)، مسند احمد (۲۷۶/۵، ۲۷۷، ۲۸۰، ۲۸۲، ۲۸۳)، سنن الدارمي /الصوم ۲٦ (۱۷۷٤) (صحیح)

[۲]: سنن ابن ماجه /الصیام ۱۸ (۱٦۸۱)، (تحفة الأشراف: ٤۸۲۳)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري (۳۱٤٤)، مسند احمد (۱۲۳/٤، ۱۲٤، ۱۲۵)، سنن الدارمي /الصوم ۲٦ (۱۷۷۱) (صحیح)

[۳]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤۸۱۸)، وقد أخرجه: سنن النسائي /الكبري (۳۱٤۱)، مسند احمد (۱۲۲/٤، ۱۲۲٤) (صحیح)

[٤]: انظر حدیث رقم: (۲۳٦۸)، (تحفة الأشراف: ۲۱۰٤) (صحیح)

**ترجمه:** دثوبان نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی ښکر لګونکی او چاته چه ښکرولږي دواړو خپله روژه ماته کړه.

[۲۳۷۱]()حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ، حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا الْعَلَاءُ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ الرَّحَبِيِّ، عَنْ ثَوْبَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَالْمَحْجُومُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ ابْنُ ثَوْبَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَكْحُولٍ، بِإِسْنَادِهِ مِثْلَهُ.

**ترجمه:** دثوبان نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی ښکر لګونکي او چاته چه ښکرولږي دواړو خپله روژه ماته کړه، امام ابوداود فرمائیلي دي ابن ثوبان د خپل پلار په واسطه دمکحول نه داسي روایت نقل کړي دي.

## بحث ثانی: کلام علی الدلائل

امام ابوداود په اول باب کښي ﴿افطر الحاجم والمحجوم﴾ اولا د حضرت ثوبان حدیث ثانیا شداد بن اوس رضی الله عنه حدیث ذکر فرمائیلي دي، او امام ترمذی رحمه الله هم دا حدیث ﴿افطر الحاجم والمحجوم﴾ د رافع بن خدیج رضی الله عنه د روایت ذکر کولو نه پس فرمائی: وفي الباب عن سعد وعلى وشداد بن اوس وثوبان واسامة بن زيد وعائشة ومعقل بن يسار وابى هريرة وابن عباس وابى موسى وبلال، قال ابو عيسى: حديث رافع بن خديج حديث حسن صحيح.

د دې نه پس امام ابوداود په بل باب کښي باب الرخصة فی ذلک کښي اولا د ابن عباس حديث ان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احتجم وهو صائم، او په بل طریق کښي ﴿احتجم وهو صائم محرم﴾ ذکر کړي دي چه رسول الله ﷺ په حجة الوداع کښي ښکر اولګولو د صوم په حالت کښ، دا حدیث د باب اول د حدیث خلاف دې، د دې نه جواز حجامت فی الصوم معلومیږی، هم په دې وجه باندې مصنف په دې باندې د رخصت باب قائم فرمائیلي دې، اوس دلته دا کتل دی چه په دې دواړو احادیثو کښي کوم یو زیات صحیح دې.

## حدیث ثوبان او حدیث ابن عباس تخریج

پس ځان پوهه کړه چه باب اول والا حدیث، افطر الحاجم والمحجوم. دا د سنن روایت دې او په صحیحین کښي په یو کښي هم نشته، البته امام بخاری دا د ترجمة الباب د لاندې تعلیقا ذکر فرمائیلي دې او هغه هم په صیغه د تمریض یعنی "ویروی" او حدیث رخصت یعنی حدیث ابن عباس دا په څو طریقو سره نقل دې ۱ احتجم وهو محرم، واحتجم وهو صائم ۲: احتجم وهو صائم، ۳: احتجم وهو محرم. په صحیح بخاری کښي خو دا حدیث په دې تولو طرقو سره مذکور دې، او په صحیح مسلم کښي صرف اخری صورت یعنی ﴿احتجم وهو محرم﴾ دې، الحاصل د بخاری په روایت کښي د ابن عباس په حدیث کښي احتجام فی الصوم او احتجام فی الاحرام دواړه ذکر دی، هم په دې وجه باندې امام بخاری دا حدیث په کتاب الحج او کتاب الصوم دواړو ځایونو کښي راوړې دې، او د مسلم شریف په روایت کښي چونکه صرف احتجام مذکور دې په دې وجه هغه دا صرف په کتاب الحج کښي راوړې دې،

(): انظر حديث رقم: (۲۳٦۸)، (تحفة الأشراف: ۲۱۰٤) (صحيح)

د دې تخريج نه معلومه شوه چه حديث ابن عباس، کوم چه په جواز باندې دلالت کوی هغه د بخاری حديث دې او حديث ﴿افطر الحاجم والمحجوم﴾ نه زيات صحيح دې.

**تنبيه** : په ترمذی کښې حديث داسې نقل دې ﴿عن ابن عباس قال احتجم رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وهو محرم صائم﴾، قال ابو عيسى : هذا حديث صحيح، په دې باندې په تحفة الاحوذی کښې ليکلې دی واخرجه الشيخان. د پورته ذکر شوی تفصيل نه معلومه شوه چه د مسلم په روايت کښې ﴿احتجم وهو صائم﴾ موجود نه دې لهذا د شيخين طرف ته د دې نسبت کول صحيح نه دی.

## د جمهورو د طرف نه د افطر الحاجم والمحجوم جوابات :

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه جمهور علماء او ائمه ثلاث په نزد کوم چه د جواز حجامت فی الصوم قائل دی د هغوی د طرف نه د ﴿افطر الحاجم والمحجوم﴾ والا حديث مختلف جواب ورکړې شوې دی، مولانا عبدالحئ صاحب په التعليق الممجد کښې د جمهورو د طرف نه د دې دوه جوابونه ورکړې دی،

**(رومبې جواب)**: اول دا چه د منسوخ دې، ځکه چه د دې حديث په بعض رواياتو کښې د دې خبرې تصريح ده چه هغه دا حديث د فتح مکه په کال باندې ارشاد فرمائيلې وو، پس شداد بن اوس د چا د روايت حواله چه امام ترمذی رحمه الله وفی الباب د لاندې ورکړې ده د هغه روايت داسې دې : انه مر مع رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمن الفتح علی رجل يحتجم لثمان عشرة خلت من رمضان فقال افطر الحاجم والمحجوم. نور هم ډير صحابه کرام کوم چه امام ترمذی د وفی الباب د لاندې ذکر فرمائيلې دی د هغوی په رواياتو کښې هم دغه شان دی، او د رسول الله ﷺ د احتجام قصه چه د هغې راوی ابن عباس دې هغه د حجة الوداع ده، لهذا حديث الافطار په وجه د تقدم منسوخ او حديث ابن عباس د هغه دپاره ناسخ شو.

**(دويم جواب)**: بل جواب مولانا دا نقل کړې دې چه د رسول الله ﷺ ارشاد د حجامت د وجې نه نه وو بلکه څنګه چه د ابن مسعود وغيره صحابه نه نقل دی چه رسول الله ﷺ په داسې دوه کسانو باندې راتير شو چه په هغوی کښې يو بل لره ښکر لګولو، په هغوی کښې يو د بل چا غيبت کولو چه په هغې باندې دويم نکير اونکړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿افطر الحاجم والمحجوم﴾ قال ابن مسعود ولا للحجامة ولکن للغيبة. اهـ په بذل المجهود کښې د شرح السنة نه دا نقل کړې دی چه ﴿افطر الحاجم والمحجوم﴾ معنی دا ده ای تعرضا للافطار، يعنی دې دواړو خپله روژه په خطره کښې واچوله، حاجم خو په دې وجه چه په دې کښې ويره ده چه د وينې يو څاڅکې د هغه حلق ته لاړ نه شی د وينې راښکلو د وجې نه، او محجوم په دې وجه چه ممکنه ده هغه ته څه ضعف اورسيږی چه د هغې د وجې نه هغه په افطار باندې مجبوره شی، او بله توجيه ئې هم هغه د غيبت والا نقل کړې ده، اوس دا دوه جوابونه شو اول د نسخ او دويم د تاويل،

**(دريم جواب)**: دا کيدې شی کوم چه د دې مقام سره متعلق شروح حديث کتلو نه مستفاد

کیږي چه حدیث رخصت کوم چه جمهور فقهاء کرامو اختیار کړې دي هغه اقوي دي د حدیث منع نه، ځکه چه د حدیث رخصت (حدیث ابن عباس رضي الله عنه) تخریج امام بخاري رحمه الله په خپل صحیح کښې په ډېرو مواضع کښې کړې دي او د دې په سند کښې هیڅ اختلاف او اضطراب هم نشته، په خلاف د دویم حدیث چه هغه اګر چه د ډېرو صحابه کرامو نه نقل دي لکه چه د امام ترمذي د کلام نه پورته نقل کړې شو، خو په کومو مختلف طرق نه چه دا حدیث نقل دې په هغې کښې د بعض په بعض باندې ترجیح کښې د حضرات محدثینو سخت اختلاف موندلې شي بعض که یو ته ترجیح ورکوی نو بعض بل طریق ته، هم دغه شان امام بخاري دا حدیث اولا تعلیقا ذکر کړې دې په صیغه د تمریض سره بیا وړاندې تلو سره ئې اګر چه د هغې وصل هم کړې دې خو باقاعده نه بلکه د مذاکره په طور باندې، او په دې طریق موصول کښې هم راوی د حدیث په اخر کښې د رفع او وقف په لحاظ سره خپل تردد والله اعلم وئیلو سره ظاهر کړې دې، هم دغه شان حافظ په فتح الباری کښې په دې حدیث باندې د بحث د لاندې لیکلي دي : واطنب النسائی فی تخریج طرق هذا المتن وبیان الاختلاف فیه، او هم په دې مقام باندې وړاندې تلو سره لیکی :

وقال الشافعي فی اختلاف الحدیث... بعد ان اخرج حدیث شداد ولفظه. ثم ساق حدیث ابن عباس انه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احتجم وهو صائم قال وحدیث ابن عباس امثلهما اسنادا الی اخر ما ذکر.

وانما اطنبت فی هذا المقام لانی لم اراحدا ممن اجاب عن الجمهور انه اختار[1] طریق ترجیح حدیث ابن عباس علی حدیث ثوبان وغیره من حیث الاسناد صراحة بل اجابوا باجوبة اخری کما تقدم.

## بَاب فِي الرُّخْصَةِ فِي ذٰلِكَ

### باب د روژې په حالت کښې د ښکر لګولو د اجازت بیان

[۲۳۷۲]([2])حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ وَهُوَ صَائِمٌ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ وُهَيْبُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، بِإِسْنَادِهِ مِثْلَهُ، وَجَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ، وَهِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، مِثْلَهُ.

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام ښکرولګولو او دهغه روژه وه، امام ابوداود سجستاني وئیلي دي وهیب بن خالد هم دایوب نه په خپل سند سره ددسې په شان روایت ذکرکړې دې. اوجعفربن ربیعه وهشام بن حسان هم دعکرمه اوهغه دابن عباس رضي الله عنه نه ددې په شان روایت نقل کړې دې.

[۲۳۷۳]([3])حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "احْتَجَمَ وَهُوَ صَائِمٌ مُحْرِمٌ".

---

[1]) کومو خلقو چه د جمهورو د طرف نه جوابات ورکړې دی هغوی طریق ترجیح نه دې اختیار کړې سوا د امام شافعي نه.

[2]): صحیح البخاري/الصوم ۳۲ (۱۹۳۸)، الطب ۱۲ (۵۶۹۴)، سنن الترمذي/الصوم ۶۱ (۷۷۵)، (تحفة الأشراف: ۵۹۸۹)، وقد أخرجه: مسند أحمد (۳۵۱/۱) (صحیح)

[3]): سنن الترمذي/الصیام ۶۱ (۷۷۷)، سنن ابن ماجه/الصیام ۱۸ (۱۶۸۲)، (تحفة الأشراف: ۶۴۹۵)، وقد أخرجه: مسند أحمد (۲۱۵/۱، ۲۲۲، ۲۸۶) (ضعیف)

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضي الله عنه روایت دي فرمائي چه نبی عليه السلام ښکرولګولو اودهغه روژه وه، اواحرام ئي هم تړلي وو.

[۲۳۷٤]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَابِسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْحِجَامَةِ وَالْمُوَاصَلَةِ وَلَمْ يُحَرِّمْهُمَا إِبْقَاءً عَلَى أَصْحَابِهِ، فَقِيلَ لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّكَ تُوَاصِلُ إِلَى السَّحَرِ، فَقَالَ: "إِنِّي أُوَاصِلُ إِلَى السَّحَرِ وَرَبِّي يُطْعِمُنِي وَيَسْقِينِي".

**ترجمه:** عبدالرحمن بن أبی لیلي په صحابه کرامو کښي ديوکس نه روایت کوی چه نبی عليه السلام منع فرمائيلي ده دحجامت (ښکرلګولونه اود وصال دروژو (پرله پسي) نه لیکن دشفقت دوجي نه ئي حرام نه دی ګرځولي خلقو عرض اوکړواي دالله رسوله ته خود پیشمني سره وژه یوځای کوي؟نبی عليه السلام اوفرمائيل زه خوداسي کوم لیکن ماته زما رب خوراك او څښاك راکوي.

## توضیح الحدیث

یعنی رسول الله ﷺ منع فرمائيلي ده : د حجامت یعنی ښکر لګولو نه او د صوم وصال نه، خو دي دواړو ته ئي حرام نه دی وئیلی، وړاندي راوی د دي ممانعت مصلحت بیانوی، ابقاء یعنی شفقة علی اصحابه. لهذا ﴿ابقاء﴾علت شو ددي نهی، او د دي تعلق د عدم تحریم سره نه دي.

په دي حديث کښي دوه حکمونه ذکر شوي دی یو د منع عن الوصال او منع عن الحجامة. په دي روایت کښي خو دا منع اګر چه مطلقا ده خو مراد د دي نه مقید دي یعنی حجامة فی حال الصوم چه د هغي دوه قريني دی اول دا چه مطلقا د حجامت نه منع په یو روایت کښي هم نه ده راغلي بلکه روایاتو کښي د دي ترغیب راغلي دي، بله قرينه داده چه هم دا روایت په بیهقی کښي دي (کما فی المنهل) چه د هغي الفاظ دا دی "نهی رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عن المواصلة والحجامة للصائم الخ"

والحديث اخرجه ایضا احمد وعبدالرزاق فی المصنف، واخرجه البیهقی الخ قاله فی المنهل.

[۲۳۷۵]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ الْمُغِيرَةِ، عَنْ ثَابِتٍ، قَالَ: قَالَ أَنَسٌ: "مَا كُنَّا نَدَعُ الْحِجَامَةَ لِلصَّائِمِ إِلَّا كَرَاهِيَةَ الْجَهْدِ".

**ترجمه:** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روایت ئي فرمائي چه مونږ به روژه دارته ښکرنه لګولو په دي فکرباندي چه چرته روژه دار کمزوري نه شي (یعنی دروژي ماتولوته مجبوره نه شي).

## توضیح الحدیث

قوله: عَنْ ثَابِتٍ، قَالَ: قَالَ أَنَسٌ: "مَا كُنَّا نَدَعُ الْحِجَامَةَ لِلصَّائِمِ إِلَّا كَرَاهِيَةَ الْجَهْدِ:

د دي نه د جمهورو د مذهب تائيد کيږی چه په روژه کښي د حجامت ممانعت مطلقا نه دي بلکه د مشقت او ویري د وجي نه دي. والحديث اخرجه ایضا الطحاوی، والبخاری والبیهقی قاله فی المنهل.

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٤/٤، ٣١٥، ٣٦٣/٥، ٣٦٤) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٢٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصوم ٣٢ (١٩٤٠) (صحيح)

## بَابٌ فِي الصَّائِمِ يَحْتَلِمُ نَهَارًا فِي شَهْرِ رَمَضَانَ

### باب دې په بیان د احتلام د روژه دار په ورځ د رمضان کښې

[۲۳۷۶]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِهِ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُفْطِرُ مَنْ قَاءَ وَلَا مَنِ احْتَلَمَ وَلَا مَنِ احْتَجَمَ".

**ترجمه:** زید بن اسلم په خپلو ملګروکښې دیوکس نه روایت کوی اوهغه په صحابه کراموکښې دیوکس نه روایت کړې دې چه څوك قې اوکړې نوروژه ئې نه ماتیږي اونه دهغه چاچه احتلام مسئله ورته پیښه شي اونه دهغه چا چه ښکرولګوي

### توضيح الحديث

د ترجمة الباب والا مسئله اجماعی ده چه احتلام مفسد صوم نه دې

دې حدیث کښې د قئ په باره کښې دی چه هغه مفطر نه دې، دا مسئله اتفاقی ده یعنی د قئ مفطر نه کیدل، د ائمه اربعه په نزد والجمهور حتی حکی علیه الاجماع لکن فیه خلاف لبعض السلف کالاوزاعی وابی ثور. (الابواب والتراجم) او بل خیز دې استقاء یعنی قصدا قئ کول د هغې باب وړاندې مستقل راروان دې. والحديث أخرجه البيهقي والترمذی قاله فی المنهل.

## بَابٌ فِي الْكُحْلِ عِنْدَ النَّوْمِ لِلصَّائِمِ

### باب دې په بیان د اوده کیدو په وخت کښې د روژه دار دسترګوتورولو

[۲۳۷۷]()حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ ثَابِتٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ النُّعْمَانِ بْنِ مَعْبَدِ بْنِ هَوْذَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ "أَمَرَ بِالْإِثْمِدِ الْمُرَوَّحِ عِنْدَ النَّوْمِ". وَقَالَ: "لِيَتَّقِهِ الصَّائِمُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ لِي يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ: هُوَ حَدِيثٌ مُنْكَرٌ يَعْنِي حَدِيثَ الْكُحْلِ.

**ترجمه:** دمعبدبن هوذة رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی عليه السلام راته حکم اوکړوچه د اوده کیدو په وخت کښې د مشکوسره مکس شوي رانجه لګوه اودائې هم وفرمائیل چه روژه دار دې ددې نه بچ شي. امام ابوداود دیحي بن معین نه نقل کوي چه دا - روایت منکردې.

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه :

د ترجمة الباب والا مسئله یعنی اکتحال فی حال الصوم د جمهور علماء ائمه ثلاث په نزد بغیر د کراهت نه جائز دی، البته د امام احمد یو روایت د کراهت دې، او دریم مسلک په دې کښې د ابن شبرمه او ابن ابی لیلی دې، د هغوی په نزد مفسد صوم دې، امام ترمذی رحمه الله د مسئلة الباب متعلق لیکی واختلف اهل العلم فی الكحل للصائم فكرهه بعضهم وهو قول سفيان وابن المبارك واحمد واسحاق ورخص بعض اهل العلم فی الكحل للصائم وهو قول الشافعی، د حدیث الباب راوی معبد بن هوذة الانصاری د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه نقل کوی چه هغه

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۰۱) (ضعيف)

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱٤٦۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/٤٧٦، ٤٩٩، ٥٠٠)، سنن الدارمي/الصوم ۲۸ (۱۷۷٤) (ضعيف)

اثمد یعنی د اصفهان رانجه المروح یعنی مطیب بالمسک (د مشک خوشبوئی والا) د اوده کیدو په وخت د استعمالول حکم اوفرمائیلو او دا ئې هم اوفرمائیل چه روژه دار له پکار دی چه د دې نه دې ځان اوساتی، یعنی د ورځې.

دا حدیث د امام احمد رحمه الله د یو روایت موافق دې، او اګر چه مصنف حنبلی دې علی ما هو المشهور... خو مصنف په دې حدیث باندې امام یحیی بن معین نه د نکارت حکم نقل کړې دې، هم په دې وجه بیا مصنف روایات داله علی الاباحت ذکر فرمائیلې دی.

والحدیث اخرجه ایضا احمد، والبخاری فی تاریخه، وقال ابن عدی انه موقوف. (المنهل)

[۲۳۷۸](¹) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عُتْبَةَ أَبِي مُعَاذٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُ كَانَ "يَكْتَحِلُ وَهُوَ صَائِمٌ".

**ترجمه:** دانس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مابه دروژې په حالت کښې رانجه استعمالول.

[۲۳۷۹](²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْمُخَرِّمِيُّ، وَيَحْيَى بْنُ مُوسَى الْبَلْخِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عِيسَى، عَنْ الْأَعْمَشِ، قَالَ: "مَا رَأَيْتُ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِنَا يَكْرَهُ الْكُحْلَ لِلصَّائِمِ، وَكَانَ إِبْرَاهِيمُ يُرَخِّصُ أَنْ يَكْتَحِلَ الصَّائِمُ بِالصَّبِرِ".

**ترجمه:** داعمش نه روایت دې فرمائی چه ما په عالمانو کښې څوک هم داسې نه دې لیدلې چه دروزه دار دپاره رانجه استعمالول بدګڼړي اوابراهیم رحمه الله به ددې اجازت ورکولو چه روزه داردې صبر (یوقسم رانجه) اولګوي.

**تشریح:** وکان ابراهیم یرخص ان یکتحل الصائم بالصبر

صبر (د صاد فتح او باء کسرې سره) کوم ته چه ایلوه وئیلې شی، کوم چه طبیبان په دوائی کښې استعمالوی، کوم چه په تریخ والی کښې ضرب المثل دې، کوم چه د رنجو په طور هم په سترګو کښې استعمالولې شی، صاحب منهل لیکلې دی : وقال قتادة : یجوز بالاثمد ویکره بالصبر، دغه شان هغوی د مالکیانو مذهب دا لیکلې دې چه که د اکتحال نه روستو د کحل وصول په حلق کښې متحقق شی نو ناجائز او مفسد صوم دې، او که صرف شک وی نو مکروه دې.

## بَابُ الصَّائِمِ يَسْتَقِيءُ عَامِدًا

### د روژه دار دپاره په قصد سره دقې کولو بیان

[۲۳۸۰](³) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ ذَرَعَهُ قَيْءٌ وَهُوَ صَائِمٌ فَلَيْسَ عَلَيْهِ قَضَاءٌ، وَإِنِ اسْتَقَاءَ فَلْيَقْضِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ أَيْضًا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ هِشَامٍ، مِثْلَهُ.

---

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۵) (حسن موقوف)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۴۰۰، ۱۸۷۸۶) (حسن)

³): سنن الترمذي/الصوم ۲۵ (۷۲۰)، سنن ابن ماجه/الصیام ۱۶ (۱۶۷۶)، (تحفة الأشراف: ۱۴۵۴۲)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبرى (۳۱۳۰)، حم (۴۹۸/۲)، سنن الدارمي/الصوم ۲۵ (۱۷۷۰) (صحیح)

**ترجمه:** دابوهریره ﷛ نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی په چاباندې چه دروژې په حالت کښې قې کول غالب شي نو په ده باندې دروژې قضاء راوړل لازمي نه دی اوڅوك چه په قصد سره قې اوکړی نوهغه لره پکاردي چه دروژې قضاء راوړی.آبوداؤد وائی چه حفص بن غیاث هم دهشام پشان نقل کړې دي

## توضیح الحدیث

یعنی په کوم سړی باندې چه قئ غالب راشي یعنی بغیر د هغه د ارادې نه وی د روژې په حالت کښې، نو په هغه باندې د هغه روژې قضاء نشته یعنی د هغه روژه صحیح سالم ده، او څوک چه قئ طلب کړی په خپل طبیعت سره یعنی قصدا قئ اوکړی نو دهغه په ذمه قضاء ده.

## مسئلة الباب :

د قئ مسئله خو مخکښې تیره شوه، او د استقاء په صورت کښې د ائمه اربعه په نزد قضاء مطلقا واجب ده او د امام ابویوسف ﷫ په نزد په دې شرط چه په ډکه خوله وی وهو روایة عن احمد، او په دې مسئله کښې د ابن مسعود، ربیعه او عکرمه نه عدم الفطر منقول دې، یعنی روژه ئې باقی ده د قضاء حاجت نشته او د دې بالمقابل د عطاء او ابو ثور په نزد قضاء مع الکفارة واجب ده، وفی نور الایضاح فی بیان ما یفسد الصوم : او استقاء ولو دون ملا الفم فی ظاهر الروایة، وشرط ابویوسف ملا الفم وهو الصحیح. اھ هم دغه شان د قئ بلا قصد په صورت کښې هم که هغه قئ دننه طرف ته قصدا واپس کړی او وی هم قئ ملا الفم نو بیا به روژه فاسده شي. والحدیث اخرجه ایضا احمد وابن ماجة والدارقطنی والحاکم وصححه، وابن حبان والطحاوی والبیهقی والترمذی. (المنهل)

[۲۳۸۱](1)حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ، عَنْ يَحْيَى، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَمْرٍو الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ يَعِيشَ بْنِ الْوَلِيدِ بْنِ هِشَامٍ، أَنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ، حَدَّثَنِي مَعْدَانُ بْنُ طَلْحَةَ، أَنَّ أَبَا الدَّرْدَاءِ حَدَّثَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَاءَ فَأَفْطَرَ"، فَلَقِيتُ ثَوْبَانَ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ، فَقُلْتُ: إِنَّ أَبَا الدَّرْدَاءِ حَدَّثَنِي أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاءَ فَأَفْطَرَ. قَالَ: صَدَقَ، وَأَنَا صَبَبْتُ لَهُ وَضُوءَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** د ابوالدرداء ﷛ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ کانګې اوکړی او روژه ئې ماته کړه بیازماسره ددمشق په جومات کښې ثوبان دنبی ﷺ آزاد کړې شوې غلام ملاو شو ما ترې تپوس اوکړو چه ماته ابوالدرداء حدیث بیان کړې دې چه نبی ﷺ قې اوکړو اوروژه ئې ماته کړه، هغه اووئیل ابوالدرداء رښتیا وئیلي دي ما په نبی ﷺ باندې په دغه وخت کښې داودس اوبه اچولي وي (یعنی نبی ﷺ ته مې اوبه اچولې کله چه هغه اودس کولو).

## مضمون حدیث :

د ابوالدرداء ﷛ نه روایت دې چه یو ځل رسول الله ﷺ باندې قئ راغلو چه هغې سره د هغه روژه ماته شوه، معدان بن طلحه فرمائی چه ماته دا حدیث ابوالدرداء ﷛ بیان کړې وو، د

(1): سنن الترمذي/الطهارة ٦٤ (٨٧)، سنن النسائي/ الكبرى/ الصوم (٣١٢٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٩٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤٣/٦، ٤٤٩)، سنن الدارمي/الصوم ٢٤ (١٧٦٩) (صحيح)

هغې نه روستو چه زه د رسول الله ﷺ د مولی سیدنا ثوبان رضی الله عنه سره د دمشق په مسجد کښې ملاؤ شوم نو ما هغه ته اوويې چه ماته ابوالدرداء رضی الله عنه د رسول الله ﷺ دا واقعه بیان کړې ده چه په رسول الله ﷺ باندې قئ راغلې وو پس هغه افطار اوکړو، نو هغه په دې اوريدلو سره اوفرمائیل چه ابوالدرداء رضی الله عنه صحیح وئیلي دی، او په دې موقع باندې د هغه د اودس دپاره اوبه ما برابر کړې وې.

په دې حدیث کښې دی ﴿قاء فافطر﴾ چه د هغې نه په ظاهره کښې د قئ مفطر صوم کیدل معلومیږی کوم چه د ائمه اربعه خلاف دې، امام ترمذی رحمه الله د جمهورو د طرف نه د دې حدیث توجیه دا کړې ده چه کله به هغه له قئ ورغلو نو د ضعف د راتلو د وجې نه ئې قصدا روژه ماته کړه، او دا مطلب نه دې چه د قئ کیدو د وجې نه افطار اوشو بلکه قصدا ئې افطار اوکړو، بله مسئله په دې حدیث کښې دا ده چه د دې نه په ظاهره کښې د قئ ناقض وضوء کیدل ثابتیږی لکه چه د احنافو او حنابله مذهب دې، شوافع د دې جواب دا ورکوی چه دلته د وضوء نه مراد وضوء لغوی دې، خوله کنګالول وغیره، یا په استحباب وضوء باندې محمول دې.

والحدیث اخرجه ایضا الترمذی والنسائی والدارمی والحاکم وابن حبان والدارقطنی والبیهقی والطبرانی وابن مندة وقال اسناده صحیح متصل. (المنهل)

## بَابُ الْقُبْلَةِ لِلصَّائِمِ

### باب دې په بیان د خکلولو د روژه دار

[۲۳۸۲][1] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، وَعَلْقَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُقَبِّلُ وَهُوَ صَائِمٌ، وَيُبَاشِرُ وَهُوَ صَائِمٌ، وَلَكِنَّهُ كَانَ أَمْلَكَ لِإِرْبِهِ".

**ترجمه:** دام المومنین عائشة رضی الله عنها روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به خکلول کول او دهغه به روژه وه او مباشرت به ئې کولو او دهغې به روژه وه داځکه چه دهغه په خپل ځان باندې اختیار وو (یعنی په خپل ځان باندې ئې باور وو).

**تشریح:** قوله: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُقَبِّلُ وَهُوَ صَائِمٌ":

مباشرت د تقبیل نه عام دې ځکه چه د دې معنی ده التقاء البشرتین یعنی د بدن سره بدن یوځائې کول، لهذا دا د قبیل ذکر العام بعد الخاص دې.

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه:

د دې حدیث نه په حالت صوم کښې د تقبیل مراة او مباشرت جواز معلومیږی په دې کښې مشهوره دا ده چه د احنافو او شوافعو په نزد د شیخ په حق کښې اباحت او د شاب په حق کښې کراهت دې، د امام مالک رحمه الله په نزد مطلقا کراهت. دریم مذهب د اباحت علی الاطلاق دې، قاضی عیاض فرمائی چه هم دا مذهب اختیار کړې دې د صحابه کرامو او

[1]: صحیح مسلم/الصوم ۱۲ (۱۱۰۶)، سنن الترمذي/الصوم ۳۲ (۷۲۹)، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۰، ۱۵۹۳۲، ۱۷۴۰۷)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الصوم ۲۴ (۱۹۲۸)، سنن ابن ماجه/الصیام ۱۹ (۱۶۸۴)، موطا امام مالك/الصیام ۶(۱۸)، مسند احمد (۶/۲۳۰)، سنن الدارمي/المقدمة ۵۳ (۶۹۸) والصوم ۲۱ (۱۷۶۳) (صحیح)

تابعینو یو جماعت، والیه ذهب احمد واسحاق وداود من الفقهاء ومنهم من کرهها علی الاطلاق وهو مشهور قول مالک، ومنهم من کرهها للشاب واباحها للشیخ وهو المروی عن ابن عباس، وهو مذهب ابی حنیفة والشافعی والثوری والاوزاعی ومنهم من اباحها فی النفل ومنعها فی الفرض وهی روایة ابن وهب عن مالک. اهـ من الاوجز

حافظ فرمائی "واباحها قوم مطلقا بل بالغ بعض اهل الظاهر فاستحبها" اهـ قاضی عیاض چه د امام احمد مسلک مطلقا د اباحت لیکلي دي په دي باندې حضرت شیخ په اوجز (ج ۴ ص۲۲) کښې لیکی چه کیدې شی د هغه نه یو روایت داسي وی ګینې په الروض المربع کښې (چه د فقه حنبلی کتاب دې) کښې لیکلي دی: تکره القبلة ودواعی الوطی لمن تحرک شهوته لانه علیه السلام نهی عنها شابا ورخص للشیخ. رواه ابوداود.

ولکنه کان املک لاربه... ﴿ارب﴾ دوه طریقو سره ضبط کړې شوې دې، ﴿ارب﴾ بفتحین په معنی د حاجات او ﴿ارب﴾ بکسر الهمزة وسکون الراء، د دې معنی ده حاجت او عضو مخصوص دواړه لیکلي شوې دی.

## شرح حدیث:

سیده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ به د روژې په حالت کښې تقبیل او مباشرت فرمائیلو، خو هغه په خپل خواهش او حاجت باندې زیات قابو لرونکي وو ګویا په دې کښې اشاره ده دې طرف ته چه هغوی ځان په رسول الله ﷺ باندې قیاس نه کړی، او بله معنی د دې جملې دا هم کیدې شی چه کله هغه په خپل نفس باندې د قابو موندلو باوجود مباشرت کولو نو د نورو دپاره به په دې کښې ګنجائش په طریق اولی وی. اول معنی د جمهورو د مسلک مناسب ده، او دویمه معنی د هغه خلقو موافق ده کوم چه مطلقا د اباحت قائل دی. والحدیث اخرجه ایضا احمد والبخاری ومسلم والترمذی، واخرجه ابن ماجة ومسلم ایضا من طریق عبیدالله بن القاسم. (المنهل)

[۲۳۸۳] (۱) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُقَبِّلُ فِي شَهْرِ الصَّوْمِ".

**ترجمه:** دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به خکلول کول د روژې په میاشت کښې (یعنی رمضان کښې).

[۲۳۸۴] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عُثْمَانَ الْقُرَشِيَّ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُقَبِّلُنِي وَهُوَ صَائِمٌ وَأَنَا صَائِمَةٌ".

**ترجمه:** دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به زه خکلولم او دهغه به روژه وه اوزما به هم روژه وه.

(۱): صحیح مسلم/الصوم ۱۲ (۱۱۰۶)، سنن الترمذي/الصیام ۳۱ (۷۲۷)، سنن ابن ماجه/الصیام ۱۹ (۱۶۸۳)، (تحفة الأشراف: ۱۷۴۲۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۱۳۰، ۲۲۰، ۲۵۶، ۲۵۸، ۲۶۴)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۱۶٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۱۳٤، ۱۶۲، ۱۷۵، ۱۷۹، ۲۹۶، ۲۷۰) (صحیح)

[۲۳۸۵](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. ح وحَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: هَشَشْتُ فَقَبَّلْتُ وَأَنَا صَائِمٌ. فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، صَنَعْتُ الْيَوْمَ أَمْرًا عَظِيمًا، "قَبَّلْتُ وَأَنَا صَائِمٌ". قَالَ: أَرَأَيْتَ لَوْ مَضْمَضْتَ مِنَ الْمَاءِ وَأَنْتَ صَائِمٌ، قَالَ عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ فِي حَدِيثِهِ: قُلْتُ: "لَا بَأْسَ بِهِ". ثُمَّ اتَّفَقَا، قَالَ: فَمَهْ.

**ترجمه:** جابر بن عبد الله رضی الله عنه وائی چه عمربن الخطاب رضی الله عنه فرمائیلي دي چه زه خوشحاله ووم او بوسه مې واخستله اوبيا مي نبی علیه السلام ته عرض اوکړو اې د الله رسوله نن مايوه ډيره لويه غلطي کړې ده چه دروژې په حال کښې مې بوسه واخستله نبی علیه السلام ورته اوفرمائيل که چرې ته دروژې په حالت مضمضه اوکړې نوستاڅه خيال دې؟ دعيسي بن حماد په روايت کښې دي ما ووئيل هيڅ قسم حرج نشته نبی علیه السلام اوفرمائيل بياڅه اوشول؟

## توضيح الحديث

سيدنا عمر رضی الله عنه فرمائی چه يو ځل زما طبعيت تازه وو پس باوجود د روژې ما تقبل اوکړو زه لاړم او ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چه نن زما نه يو ډير بد کار اوشو، هغه اوفرمائيل: اوايه ته که په خپله خوله کښې اوبه اخستلو سره خوله کنګال کړې د روژې په حالت کښې (نو ايا په دې کښې څه باک شته؟) ما عرض اوکړو، نه، نو هغه اوفرمائيل نو دا څه دی؟ يعنی دا تقبيل هم داسې دې.

لفظ ﴿ مه ﴾ کښې دوه احتمالات دی يو دا چه دا په اصل کښې ﴿ما ﴾استفهاميه وو د دې الف حذف کولو سره هاء سکته د هغې په عوض کښې راوړلې شوه، دويم قول دا دې چه ﴿مه﴾کلمه زجرده کومه چه د بندولو په معنی ده ﴿ای اکفف عن السوال﴾ يعنی دا سوال مه کوه.

والحديث اخرجه ايضا احمد والطحاوی والنسائی وقال حديث منکر، واخرجه الحاکم وقال صحيح علی شرط الشيخين، وقال البزار لا نعلمه يروی عن عمر الا من هذا الوجه وصححه ابن خزيمة وابن حبان. (المنهل)

## بَابُ الصَّائِمِ يَبْلَعُ الرِّيقَ

### د روژه دار دپاره د لاړو (توکانړو) تيرولو بيان

[۲۳۸۶](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دِينَارٍ، حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ أَوْسٍ الْعَبْدِيُّ، عَنْ مِصْدَعٍ أَبِي يَحْيَى، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُقَبِّلُهَا وَهُوَ صَائِمٌ وَيَمُصُّ لِسَانَهَا"، قَالَ ابْنُ الْأَعْرَابِيِّ: هَذَا الْإِسْنَادُ لَيْسَ بِصَحِيحٍ.

**ترجمه:** دام المومنين عائشة رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به خکلولم اودهغه به روژه وه اوزما ژبه به ئې چوپله.

---

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۰۴۲۲)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ الصوم (۳۰۴۸)، مسند احمد (۲۱/۱، ۵۳)، سنن الدارمي/الصوم ۲۱(۱۷۶۵) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۶۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۳/۶، ۲۳۴) (ضعيف)

## توضيح الحديث

... د دې حديث جزء اول خو ظاهر دې هغه په اول باب کښې تير شو.

## په حديث باندې اشکال:

البته دا اخرى جزء يعنى مص لسان دا قابل اشکال دې ځکه چه په دې کښې ابتلاع ريق مونډلې شى، يعنى د بل انسان لاړې تيرول، د خپلو لاړو تيرول د روژې په حالت کښې خو بالاتفاق جائز دى، زمونږ فقهاء کرامو ليکلي دى چه ابتلاع ريق مفسد صوم دې او په دې کښې د روژې قضاء واجب ده، او که هغه غير د هغه محبوب وى نو په دې صورت کښې به پرې کفاره هم واجب وى، بهرحال د دې حديث دا جزء قابل اشکال دې، د دې يو جواب خو دا دې چه دا حديث ضعيف دې، په دې کښې محمد بن دينار متفرد دې وهو ضعيف، هم دغه شان سعد بن اوس هم ضعيف دې، او د دې نه علاوه په بل حديث سره مص لسان ثابت نه دې، بل جواب دا کړې شوې دې چه ﴿ويمص لسانها﴾ مستقل جمله ده دا واو عاطفه نه دې بلکه استينافيه دې، په دې صورت کښې به د دې تعلق د ﴿وهو صائم﴾ سره باقى پاتې نه شى بلکه دا به يوه مستقل خبره وى چه په هغې کښې هيڅ اشکال نشته، او که د دې په ماقبل باندې عطف اومنلې شى نو بيا دا تاويل هم ممکن دې چه داسې اوئيلې شى چه رسول الله ﷺ به ريق عائشه تيرولو بالقصد. او کان قليلا لا يبلغ حد الابتلاع. اه من المنهل.

والحديث اخرجه ايضا البيهقى. (المنهل)

# باب كَرَاهِيَتِهِ لِلشَّابِّ

## د ځوان د پاره مباشرت مکروه دې

[۲۳۸۷] (١) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ يَعْنِي الزُّبَيْرِيَّ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي الْعَنْبَسِ عَنِ الْأَغَرِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُبَاشَرَةِ لِلصَّائِمِ فَرَخَّصَ لَهُ، وَأَتَاهُ آخَرُ فَسَأَلَهُ فَنَهَاهُ. فَإِذَا الَّذِي رَخَّصَ لَهُ شَيْخٌ وَالَّذِي نَهَاهُ شَابٌّ".

**ترجمه:** دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه يوکس دنبى کريم ﷺ نه تپوس اوکړو په باره دمباشرت کښې دروژه دار دپاره نوهغه ته ئې اجازت ورکړو بيابل کس دنبى ﷺ په خدمت کښې حاضرشوهغه هم ترې همدا تپوس اوکړونوهغه ئې منع کړو، نو مونږ وليدل چه چاته ئې اجازت ورکړو هغه بوډا وواوخوک چه ئې منع کړو هغه ځوان وو.

**تشريح:** ددې باب تعلق د تقبيل سره دې چه په هغې باندې کلام په مخکښې باب کښې ذکر شو، حديث الباب دترجمة الباب مطابق دې يعنى دتقبيل په باره کښې فرق بين الشاب والشيخ.

وحديث الباب اخرجه ايضا البيهقى... وابن ماجة عن ابن عباس، واخرجه احمد والطبرانى عن ابن عمر رضى الله تعالى عنهم.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢١٩٨) (حسن صحيح)

## بَابٌ فِيمَنْ أَصْبَحَ جُنُبًا فِي شَهْرِ رَمَضَانَ

### باب دې په بيان د رمضان کښې د سحر په وخت د جنابت په حالت کښې پاڅيدل

[۲۳۸۸]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ الْأَذْرَمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ عَائِشَةَ وَأُمِّ سَلَمَةَ زَوْجَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُمَا قَالَتَا: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصْبِحُ جُنُبًا"، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ الْأَذْرَمِيُّ فِي حَدِيثِهِ: فِي رَمَضَانَ مِنْ جِمَاعٍ غَيْرِ احْتِلَامٍ ثُمَّ يَصُومُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَمَا أَقَلَّ مَنْ يَقُولُ هَذِهِ الْكَلِمَةَ يَعْنِي يُصْبِحُ جُنُبًا فِي رَمَضَانَ، وَإِنَّمَا الْحَدِيثُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُصْبِحُ جُنُبًا وَهُوَ صَائِمٌ".

**ترجمه**: دام المومنين عائشه اوام سلمه رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام په داسې حال سحر کړو چه هغه په جنابت کښې وو، عبدالله اذرمی په خپل حديث کښې وئيلي دي چه په رمضان کښې دجماع په وجه باندې نه چه داحتلام په وجه باندې، اوبيابه ئي روژه کړه.

### شرح حديث:

دا حديث دلته مختصر دې، په بخاری کښې مطولا (اورد) دې چه د هغې خلاصه دا ده چه سيدنا ابوهريره رضي الله عنه په شروع کښې د دې خبرې قائل وو چه د کوم سړی اراده د روژې وی او په شپه کښې هغه ته جنابت اورسيږی نو د هغه دپاره د طلوع فجر نه مخکښې غسل کول واجب دی. د هغه دا رائي سيده عائشه او سيده ام سلمه رضي الله عنهما ته اورسيده، هغوی دواړو په دې باندې رد کولو سره اوفرمائيل کوم چه دلته په حديث الباب کښې دی يعنی بعض وخت به رسول الله ﷺ د رمضان په شپه کښې جنبی وو او د صبا راختلو نه روستو به ئي غسل فرمائيلو.

دا مسئله اتفاقی ده، ابوهريره رضي الله عنه هم د دې حديث نه روستو د خپلې رائې نه رجوع کړې وه، البته ابن حزم دا وائی چه که يو داسې سړې چه هغه د جنابت په حالت کښې روژه نيولې ده په غسل کښې دومره تاخير اوکړی ترديې چه نمر راوخيژی او د هغه د سحر مونځ قضاء شی نو د داسې انسان روژه به فاسده وی. په مسئلة الباب باندې امام نووی رحمه الله د علماء کرامو اجماع نقل کړې ده استقر عليه الاجماع. او ابن دقيق العيد فرمائی انه صار ذلک اجماعا او کالاجماع، امام بخاری رحمه الله هم دا ترجمه قائم کړې ده، باب الصائم يصبح جنبا.

حضرت شيخ په الابواب والتراجم کښې ليکی: قال الحافظ ای هل يصح صومه ام لا، وهل يفرق بين العامد والناسی، او بين الفرض والتطوع، وفی کل ذلک خلاف للسلف، والجمهور علی الجواز مطلقا، فصارت المسئلة کالاجماعية بعد ما کانت کثيرة الاختلاف، وذکر العلامة العينی فيها سبعة اقوال کما ذکر فی هامش اللامع.

د دې حديث په اخرکښې دی ﴿من جماع غير احتلام﴾ شارحين حديث فرمائی چه په دې حديث

[1]): صحيح البخاري/الصوم ۲۲(۱۹۲۵)، صحيح مسلم/الصيام ۱۳ (۱۱۰۹)، سنن الترمذي/الصوم ۶۳ (۷۷۹)، سنن ابن ماجه/الصيام ۲۷(۱۷۰۳)، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۹۶، ۱۸۲۲۸، ۱۸۱۹۰، ۱۸۱۹۲)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصيام ٤(۱۰)، مسند احمد (۲۱۱/۱، ۳۴/۶، ۳۶، ۳۸، ۲۰۳، ۲۱۳، ۲۱۶، ۲۲۹، ۲۶۶، ۲۷۸، ۲۸۹، ۲۹۰، ۳۰۸)، سنن الدارمي/الصوم ۲۲(۱۷۶۶) (صحيح)

کښي د رسول الله ﷺ نه د احتلام نفي کړې شوي ده ځکه چه هغه ته به احتلام نه کېدو ځکه چه هغه د شيطان د طرف نه وي او رسول الله ﷺ معصوم دي، او بعض شارحينو د دې په خلاف خبره ليکلې ده چه په ﴿من غير احتلام﴾ سره خو اشاره ده د جواز احتلام طرف ته، گيني د استثناء څه ضرورت وو، د دې يو جواب دا کړې شوې دې چه د احتلام اطلاق کله په نفس انزال باندې هم کيږي بغير د دې نه چه په خوب کښي څه اويني، حضرت شيخ په اوجز ۳/۲۱ کښي د حضرت گنگوهي د تقرير نه نقل کړې دی چه محقق قول او معتمد دا دې چه انبياء عليهم السلام د دې قسم احتلام نه محفوظ وي کوم چه په جماع وغيره خوب کتلو سره وي، لکه چه عام وي، او! البته دا ممکنه ده چه هغوی ته انزال بغير د رؤية شئ نه وي د امتلاء اوعيه مني وغيره د وجې نه. اهدا بحث احتلام د ازواج مطهرات په باره کښي هم په كتاب الطهارة کښي د عائشي رضي الله عنها په قول ﴿تربت يمينک وهل ترى ذلک المراءة﴾ د لاندې تير شوي دي والحديث اخرجه ايضا مالک في الموطاء والبخاری والدارمي والنسائي والطحاوی. (المنهل)

[۲۳۸۹](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ يَعْنِي الْقَعْنَبِيَّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَعْمَرٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِي يُونُسَ مَوْلَى عَائِشَةَ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ رَجُلًا، قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ وَاقِفٌ عَلَى الْبَابِ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أُصْبِحُ جُنُبًا وَأَنَا أُرِيدُ الصِّيَامَ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَأَنَا "أُصْبِحُ جُنُبًا وَأَنَا أُرِيدُ الصِّيَامَ، فَأَغْتَسِلُ وَأَصُومُ". فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّكَ لَسْتَ مِثْلَنَا، قَدْ غَفَرَ اللَّهُ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ. فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: وَاللَّهِ إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَخْشَاكُمْ لِلَّهِ وَأَعْلَمَكُمْ بِمَا أَتَّبِعُ.

**ترجمه:** دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه يوکس نبی عليه السلام ته اوفرمائيل اوهغه په دروازه کښي ولاړوو اې دالله رسوله زه دجنابت په حالت کښي سحرکوم اودروژې اراده مې وي نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل زه هم دجنابت په حال کښي سحرکوم اودروژې اراده مې وي بياغسل اوکړم او روژه شم، هغه عرض اوکړو اې دالله رسوله ته خوزمونږ په شان نه ئې تاته خوالله مخکني او وروستني گناهونه معاف کړي دي، ددې په اوريدو سره نبی عليه السلام په غصه شواو وئې فرمائيل په الله قسم زما اميد دې چه زه په تاسوکښي دالله نه ډير ويدونکي يم اودڅه چه تابعداري کوم په هغې ستاسونه ښه پوهيږم.

## توضيح الحديث

سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه يو سړی د رسول الله ﷺ نه سوال اوکړو په داسې حال کښي چه هغه په دروازه باندې ولاړ وو،(2) په ظاهره هغه کور ته تشريف اوړلو او لا په دروازه باندې وو، او دا هم ممکنه ده چه د څه ضرورت په بنياد باندې ئې دروازې ته

(1): صحيح مسلم/الصيام ۱۳ (۱۱۱۰)، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۱۰)، وقد أخرجه: موطا امام مالک/الصيام ٤ (۹)، مسند احمد (۶/۶۷،۱۵۶،۲٤۵) (صحيح)

(2): په دې صورت کښي د وهو واقف ضمير د رسول الله ﷺ طرف ته راجع شو، او حضرت په بذل کښي او هم دغه شان صاحب منهل د ضمير مرجع رجل منلي ده، مونږ چه کومه شرح کړې ده د خپل استاذ محترم حضرت مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله د رائې مطابق کړې ده)

تشريف راوړلي وي، او عائشي ﷞ دننه اوريدلو، هغه عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! بعض وخت داسي وي چه د صبح صادق په وخت باندې جنبي يم او زما د روژې نيولو هم اراده وي (يعني دا صورت صحيح دې داسې روژه کيږي؟) په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د دې حاجت خو ماته هم راځي او زه د صبا راختلو نه روستو غسل کوم، په دې باندې هغه سړي عرض اوکړو يا رسول الله! (زمونږ خبره جدا ده او ستاسو جدا) تاسو زمونږ په شان خو نه يئ ستاسو خو الله پاک مخکښې روستو ټول ګناهونه معاف کړي دي، په دې خبره باندې رسول الله ﷺ خفه شو، ناراضتيا ئې په ظاهره کښې په دې وجه راغله چه د هغه سړي د کلام نه دا خبره ذهن ته راځي چه تا خو به الله پاک په دې باندې نه رانيسي په څه نامناسب فعل باندې، او مونږ پرې نيولي کيدې شو، اوس ظاهره خبره ده چه د هغه دا انداز د رسول الله ﷺ د شان نبوت خلاف وو، او که په دې کښې د هغه څه نقصان نه لازميدو خود ويوتکي خو په دې کښې ضرر کيدې شو. وقال: والله انى لا ارجوا ان اكون اخشاكم لله واعلمكم بما اتبع... چه والله زما اميد دې د دې خبرې چه زه تاسو ټولو نه زيات د الله پاک نه ويره کونکې يم او په تاسو کښې د ټولو نه زيات علم لرونکې يم د هغه کارونو کوم چه زه کوم، او کول پکار دي، علامه سندهي په دې باندې يو لطيف او غوره خبره ليکلې ده ﴿ولعل استعماله الرجاء من جملة الخشية والا فكونه اخشى واعلم متحقق قطعا﴾ يعنى د رسول الله ﷺ د خپل ځان اخشى (ډير ويريدونکي) او اعلم (ډير پوهه) کيدو په رجاء او اميد سره تعبير کول حال دا چه د هغه اخشى او اعلم کيدل يقيني دي دا هم د خشيت د وجې نه دي. والحديث اخرجه ايضا مالك واحمد ومسلم والنسائى وابن خزيمة والطحاوى والبيهقى. (المنهل)

## بَابُ كَفَّارَةِ مَنْ أَتَى أَهْلَهُ فِي رَمَضَانَ

### په رمضان کښې د جماع کولو د کفارې بيان

[۲۳۹۰]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ مُسَدَّدٌ: حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: أَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: هَلَكْتُ. فَقَالَ: مَا شَأْنُكَ؟ قَالَ: "وَقَعْتُ عَلَى امْرَأَتِي فِي رَمَضَانَ. قَالَ: فَهَلْ تَجِدُ مَا تُعْتِقُ رَقَبَةً؟ قَالَ: لَا. قَالَ: فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تَصُومَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ؟ قَالَ: لَا. قَالَ: فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تُطْعِمَ سِتِّينَ مِسْكِينًا؟ قَالَ: لَا. قَالَ: اجْلِسْ. فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَقٍ فِيهِ تَمْرٌ، فَقَالَ: تَصَدَّقْ بِهِ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا أَهْلُ بَيْتٍ أَفْقَرُ مِنَّا. فَضَحِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَتْ ثَنَايَاهُ، قَالَ: فَأَطْعِمْهُ إِيَّاهُمْ"، وَقَالَ مُسَدَّدٌ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ: أَنْيَابُهُ.

**ترجمه:** دابوهريره ﷛ نه روايت دې فرمائي چه يوکس دنبى ﷺ په خدمت کښې حاضرشواوعرض ئې اوکړوچه هلاك شوم نبى ﷺ ورته اوفرمائيل څه خبره ده؟ هغه ووئيل دخپلې ښځې سره مې په رمضان کښې جماع اوکړه، نبى ﷺ ورته اوفرمائيل آيا يوغلام

[1]): صحيح البخاري/الصوم ۳۰ (۱۹۳٦)، الهبة ۲۰ (۲٦۰۰)، النفقات ۱۳ (۵۳٦۸)، الأدب ٦۷ (٦۰۸۷)، ۹۵ (٦۱٦٤)، كفارات الأيمان ۲ (٦۷۰۹)، ۳ (٦۷۱۰)، ٤ (٦۷۱۱)، صحيح مسلم/الصيام ۱٤ (۱۱۱۱)، سنن الترمذي/الصوم ۲۸ (۷۲٤)، سنن ابن ماجه/الصيام ۱٤ (۱٦۷۱)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۷۵)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصيام ۹(۲۸)، مسند احمد (۲/۲۰۸، ۲٤۱، ۲۷۳، ۲۸۱، ۵۱٦) ، سنن الدارمي/الصوم ۱۹ (۱۷۵۷) (صحيح)

ازادولي شي؟ نوده ووئيل نه نونبي ﷺ ورته اوفرمائيل ايادوه مياشتي روژې نيولي شي؟نوده ووئيل نه نونبي ﷺ ورته اوفرمائيل اياشپيته مسکينانوته خوراك ورکولي شي؟نوده ووئيل نه نونبي ﷺ ورته اوفرمائيل کينه نونبي ﷺ ته يوه بوجۍ راوړلي شوه او په هغې کښي کهجورې وې ورته ئې اوفرمائيل دا کهجورې واخله اوصدقه ئې کړه ده عرض اوکړو اې دالله رسوله مديني په دواړوجانبوکښي زمانه څوك غريب نشته نبي ﷺ چه دا واوريدل نو اوئې خندل تردې چه دوه غاښونه مبارك ئې ښکاره شول، راوي وائي چه دغه کهجورې ئې بياهم ده ته ورکړې، دمسدد په بل روايت کښي دثنايا په ځائې باندې دانياب لفظ ذکرشوي دي

**تشريح:** يعني کوم سړې چه د رمضان روژه د ورځې جماع کولو سره فاسد کړي د هغه د کفاره په بيان کښ.

**(د رجل تعيين)**

د دې رجل تعيين کښي د شارحينو اختلاف دې، بعض د دې مصداق سلمه بن صخر البياضي منلي دې چه د هغه قصه په باب الظهار کښي تيره شوې ده. خو حافظ په دې باندې اشکال کړې دې چه سلمه بن صخر صاحب قصه ظهار د جماع واقعه د شپې ده لکه چه په روايت کښي د دې تصريح ده. او په حديث الباب کښي د جماع واقعه د صوم په حالت کښي د ورځې ده، لهذا دواړه واقعې مختلف دي.

مضمون حديث دا دې چه يو سړې راغلو او د رسول اللهﷺ په خدمت کښي ئې عرض اوکړو چه ما د روژې په حالت کښي جماع اوکړه، په دې باندې رسول اللهﷺ چه کوم څيزونه په کفاره کښي واجب کيږي هغه د هغه نه ترتيب وار اوتپوسل، چه ايا ته د دې طاقت لرې چه په کفاره کښي داسې اوکړې؟ هغه به په نفي کښي جواب کولو، په اخر کښي چه کله د اطعام خبره راغلله نو هغه د دې نه هم انکار اوکړو، هغه اوفرمائيل چه ښه کينه! (چه که د چرته نه غله راغله نو د دې بندوبست به اوکړې) ..........

پس رسول اللهﷺ ته د چرته نه يو لوئې زنبيل د کهجورو راغلو، دغه زنبيل ئې هغه ته حواله کړو چه لاړ شه او دا صدقه کړه په دې باندې هغه عرض اوکړو يا رسول الله! د مديني منورې پوره کلي کښي زمونږ د کورنۍ نه زيات څوک هم ضرورت مند نشته، په دې باندې رسول اللهﷺ ډير اوخندل، اخر هغه ته ئې اوفرمائيل چه دا يوسه او د خپل کور په خلقو باندې ئې اوخروه.

په دې حديث کښي د کفارې په باره کښي چه کوم درې څيزونه ذکر شوې دی په هغې کښي د پورته ذکر شوې ترتيب رعايت د ائمه ثلاثه په نزد واجب دې او د امام مالک په نزد په دې کښي تخيير دې، د اطعام ستين مسکين په مقدار کښي چه دا ئمه کرامو کوم اختلاف دې هغه په باب الظهار کښي تير شوې دې، يعني ﴿مد من کل شئ عند الشافعي ومدان من کل شئ عند مالک وقيل مالک مع الشافعي، وعند الحنفية مقداره مثل مقدار صدقة الفطر لکل مسکين وعند احمد من البر مد، ومن التمر وغيره مدان﴾.

**په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه :**

ځان پوهه کړه چه که یو سړې د جماع په ذریعه فرض روژه فاسد کړی نو په دې باندې د ائمه اربعه په نزد کفاره مع القضاء واجب ده، په دې کښې دوه مذاهب نور دی کوم چه شاذ دی یو دا چه په دې صورت کښې صرف قضاء صوم واجب دې یعنی یو د روژې په قضاء روژه، او دویم مذهب دا چه صرف کفاره واجب دې دون القضاء.

**افساد صوم بالاکل والشرب کښې اختلاف ائمه :**

بل یو مشهور اختلاف دلته دا دې چه د امام ابوحنیفه او مالک په نزد چه کوم حکم د افساد صوم بالجماع دې هم هغه د افساد صوم بالاکل والشرب دې، او د امام احمد، شافعی او ظاهریه په نزد دا کفاره صرف د جماع په صورت کښې ده د اکل وشرب په صورت کښې نه ده، ځکه چه د کفاره ذکر په حدیث کښې صرف د جماع سره راغلې دې، او د افساد صوم بالاکل والشرب هیڅ قصه په هیڅ حدیث کښې نه ده راغلې، په دې وجه د دې حضراتو په نزد کفاره مختص ده د جماع سره، هغوی وائی چه په جماع کښې د کفاره وجوب بالنص دا خلاف قیاس دې، ځکه چه کفاره د اسقاط اثم دپاره وی او هغه سړې د رسول اللهﷺ په خدمت کښې تائبا او نادما حاضر شوې وو، په توبه او پښیمانتیا سره ګناه معاف کیږی خو د دې باوجود رسول اللهﷺ په هغه باندې کفاره واجب کړه لهذا دا حکم خلاف قیاس شو، او مشهوره قاعده ده چه کوم حکم خلاف قیاس په نص سره ثابت وی هغه په خپل مورد پورې منحصر وی، زمونږ علماء کرام فرمائی چه په بعض صحیح روایاتو کښې هم دغه شان راځی، ﴿ان رجلا افطر فی رمضان فامره علیه السلام ان یعتق رقبة﴾ رواه مسلم وابوداود، او لفظ ﴿افطر﴾ د خپل عموم د وجې نه جماع او غیر جماع ټولو ته شامل دې، کذا قال الزیلعی فی شرح الکنز، زه وایم دا حدیث هم د دې سیاق سره په موطاء کښې هم دې، ان رجلا افطر فی رمضان فامر رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان یکفر الحدیث، په موطاء محمد کښې امام محمد د دې حدیث نه روستو فرمائی ﴿وبهذا ناخذ اذا افطر الرجل متعمدا فی شهر رمضان باکل او شرب او جماع فعلیه قضاء یوم مکانه وکفارة الظهار، وهی ان یعتق رقبة الی اخره﴾ د امام محمد رحمه الله استدلال هم د عموم الفاظ د وجې نه دې د قیاس نه نه دې، باقی دا خو جدا خبره ده چه په دې روایت کښې په ظاهره د دې رجل نه مراد هم هغه سړې دې کوم چه په روایات مفصله کښې راځی چه د هغې تعلق د جماع سره دې، د دې نه علاوه یو روایت په دې سلسله کښې د صریح اکل په باره کښې هم ملاویږی کوم چه مولانا عبدالحی صاحب په حاشیه د موطاء کښې نقل کړې دې چه د هغې الفاظ دا دی ﴿عن ابی هریرة ان رجلا اکل فی رمضان فامره النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان یعتق رقبة﴾ الحدیث، اخرجه الدارقطنی، اګر چه دا حدیث سندا ضعیف دې خو اول خو د بعض صحیح روایاتو د سیاق عموم، دویم احتیاط، د دې مجموعې د وجې نه دا حجت صحیح دې.

[۲۳۹۱]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، بِهَذَا الْحَدِيثِ بِمَعْنَاهُ، زَادَ الزُّهْرِيُّ: وَإِنَّمَا كَانَ هَذَا رُخْصَةً لَهُ خَاصَّةً، فَلَوْ أَنَّ رَجُلًا فَعَلَ ذَلِكَ الْيَوْمَ لَمْ يَكُنْ لَهُ بُدٌّ مِنَ التَّكْفِيرِ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، وَالْأَوْزَاعِيُّ، وَمَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ، وَعِرَاكُ بْنُ مَالِكٍ، عَلَى مَعْنَى ابْنِ عُيَيْنَةَ، زَادَ فِيهِ الْأَوْزَاعِيُّ: وَاسْتَغْفِرِ اللَّهَ.

**ترجمه:** معمر دزهري نه همدا روايت نقل كړي دي مګر دا اضافه ئي كړي ده چه دا اجازت دهمدغه كس دپاره مخصوص وو، اوس كچيري څوك داسي اوكړي نودكفاري نه نه شي بچ كيدلي، امام ابوداود فرمائي چه دا روايت ليث بن سعد داوزاعي اوهغه دمنصوربن معمرنه اوهغه دعراك بن مالك نه اوهغه دابن عينه په شان روايت بيان كړي دي او اوزاعي داستغفرالله دلفظ اضافه كړې ده.

**تشريح:** قال الزهرى : وانما كان هذا رخصة له خاصة فلو ان رجلا فعل ذلک اليوم لم يكن له بد من التكفير. زهرى فرمائي چه مذكوره شخص چه كله د خپل فقر اظهار اوكړو نو د رسول الله ﷺ هغه ته دا فرمائيل ﴿اطعمه اهلک﴾ د دې مطلب دا شو چه رسول الله ﷺ د هغه كفاره ساقط كړه ګينې په كفاره كښې اطعام په كور والا چرته كيږي، لهذا دا د اعسار (تنګدستئ) د وجې نه د كفارې ساقط كيدل د هغه سړی خصوصيت شو.

ځان پوهه كړه چه دا خو صحيح ده چه د جمهور او ائمه اربعه په نزد د فقر د وجې نه خو كفاره نه ساقط كيږي خو په دې حديث كښې د رسول الله ﷺ مراد دا دی چه دې وخت كښې خو ته دا غله په خپل كور والو تقسيم كړه د هغې نه روستو چه دې كله قدرت پيدا شي نو كفاره وركړه، په دې صورت كښې به دا حديث په خصوصيت باندې د محمول كولو حاجت نه وی، لهذا زهري چه كومه خبره كوی دا د هغه خپله رائې ده.

[۲۳۹۲]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ رَجُلًا أَفْطَرَ فِي رَمَضَانَ، فَأَمَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُعْتِقَ رَقَبَةً أَوْ يَصُومَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ أَوْ يُطْعِمَ سِتِّينَ مِسْكِينًا. قَالَ: لَا أَجِدُ. فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اجْلِسْ. فَأُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَقٍ فِيهِ تَمْرٌ، فَقَالَ: خُذْ هَذَا فَتَصَدَّقْ بِهِ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا أَحَدٌ أَحْوَجُ مِنِّي. فَضَحِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَتْ أَنْيَابُهُ، وَقَالَ لَهُ: كُلْهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَلَى لَفْظِ مَالِكٍ، أَنَّ رَجُلًا أَفْطَرَ، وَقَالَ فِيهِ: أَوْ تُعْتِقَ رَقَبَةً، أَوْ تَصُومَ شَهْرَيْنِ، أَوْ تُطْعِمَ سِتِّينَ مِسْكِينًا.

**ترجمه:** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه يو كس په رمضان كښې روژه ماته كړه نونبي عليه السلام ورته حكم اوكړو چه غلام آزاد كړه اويابه دوه مياشتې پرله پسې روژې نيسي اويابه شپيته مسكينانو ته خوراك وركوي نوده ووئيل هيڅ هم راسره نشته نونبي عليه السلام ورته او فرمائيل :كېنه نونبي عليه السلام ته يوه بوجی راوړلي شوه او په هغې كښې كهجورې وې ورته ئې اوفرمائيل دا كهجورې واخله اوصدقه ئې كړه ده عرض اوكړو اې دالله رسوله زمانه بل زيات غريب نشته، نبی عليه السلام چه دا واوريدل نو اوئې خندل تردې چه دوه غاښونه مبارك ئې

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۷۵) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم : (۲۳۹۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۷۵) (صحيح)

ښکاره شول، او ورته ئې اوفرمائيل چه خوره ئې، امام ابوداود وائی چه ابن جريج دزهري نه دمالك په شان الفاظ نقل كړي دي چه يوكس روژه ماته كړه.او په دې روايت كښې داسې الفاظ مروي دي او په دې روايت كښې داسې الفاظ مروي دي «أو تعتق رقبة أو تصوم شهرين أو تطعم ستين مسكينا»

[۲۳۹۳]()حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْطَرَ فِي رَمَضَانَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ. قَالَ: فَأُتِيَ بِعَرَقٍ فِيهِ تَمْرٌ قَدْرُ خَمْسَةَ عَشَرَ صَاعًا، وَقَالَ فِيهِ: كُلْهُ أَنْتَ وَأَهْلُ بَيْتِكَ وَصُمْ يَوْمًا وَاسْتَغْفِرِ اللَّهَ.

**ترجمه:** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت داسې فرمائی چه يوكس دنبی عليه السلام په خدمت كښې حاضر شواو په رمضان كښې ئې روژه ماته كړې وه اوباقی حديث ئې دتير شوي روايت په شان بيان كړو مګرددې اضافي سره چه: نبی عليه السلام ته يوه بوجئ راوړلي شوه او په هغې كښې دپنځلس وسقو په قدركهجورې وې، او پكښې دا الفاظ هم دي چه په خپله ئې خوره - او په خپله كورنئ ئې خوره او يوه ورځ روژه ونيسه اودا لله تعالى نه بخښنه اوغواړه.

**تشريح:** ﴿حدثنا جعفر بن مسافر ﴾... د دې روايت په اخر كښې دی ﴿وصم يوما واستغفر الله ﴾چه د هغې د ظاهر نه معلوميږی چه په هغه سړی باندې صرف د يوې ورځې قضاء ده او استغفار، يعنی كفاره واجب نه ده، حال دا چه د جمهورو په نزد قضاء مع الكفارة واجب ده د دې جواب دا كړې شوې دې چه په دې حديث كښې دا زيادت د هشام بن سعد راوی د طرف نه دې كوم چه ضعيف دې.

## يو تحقيق انيق :

اعلم ارشدک الله! د رجل مجامع چه كومه قصه په متعدد طرق سره تر اوسه پورې تيره شوې ده په هغې كښې دا دی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه ته اوفرمائيل ﴿اطعمه اهلک ﴾چه هر كله ته فقير ئې نو هغه طعام كفاره د خپل كور په خلقو باندې خرچ كړه چه د هغې معنى جمهور علماء كرامو دا كړې ده چه د فقر په وجه دې فى الحال داسې اوكړی بيا د قدرت په وخت كفاره وركړه. (كما في شرح الخطابي وابن القيم) خو د دې تيرو رواياتو نه په يو روايت كښې د قضاء صوم ذكر نشته چه د هغې په وجه باندې بعض علماء صرف د كفارې د وجوب قائل دی نه د قضاء، خو د جمهورو په نزد د كفارې سره د يوې ورځې هم واجب ده خو په دې يو طريق كښې د قضاء صوم زيادت هم مذكور دې كوم چه د جمهورو د مسلک عين موافق دې، لهذا اوس د دې مجموعی روايت حاصل دا شو چه كفاره ستا په ذمه باندې واجب شوه او د يوې روژې قضاء دې هغه وخت اوكړې، پس ابن قدامه او علامه زرقانی په وجوب قضاء باندې استدلال هم ددې روايت نه كړې دې، په دې صورت كښې د دې زيادت والا روايت د څه قسم توجيه او تاويل حاجت نشته، خو كه د مجموعه روايت مطلب دا واخستلې شی چه كفاره ستا نه د فقر په وجه باندې ساقط ده صرف د يوې روژې قضاء دې

(): تفرد به أبو داود، وانظر حديث رقم :(۲۳۹۰)، (تحفة الأشراف: ۱۵۳۰٤) (صحيح)

اوکړی نو بیا به دا زیادت یقینا د جمهورو خلاف وی، اوس چه کوم حضرات شارحینو چه په هغې کښې صاحب بذل هم دې او په دې زیادت باندې کلام کوی او دا چه په دې کښې هشام بن سعد راوی ضعیف دې او دا زیادت ثابت نه دې بلکه وهم دې دا حضرات کیدې شی چه د دې زیادت هم دا معنی مراد اخلی، والله تعالی اعلم. بیا روستو د مزید غور کولو نه پس په دې پوهه شوم چه کوم حضرات په دې زیادت باندې کلام کوی هغه د نفس ثبوت په اعتبار سره نه دې بلکه صحیح دا ده چه دا زیادت مرسلا ثابت دې لکه چه د موطاء په روایت کښې دی، او د ابوداود په دې روایت کښې هشام بن سعد دا زیادت په دې حدیث کښې مسندا روایت کړې دې. فزال الخلجان فلله الحمد والمنة.

[۲۳۹۴] (¹) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْقَاسِمِ، حَدَّثَهُ أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، حَدَّثَهُ أَنَّ عَبَّادَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقُولُ: أَتَى رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ فِي رَمَضَانَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، احْتَرَقْتُ. فَسَأَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا شَأْنُهُ. قَالَ: "أَصَبْتُ أَهْلِي. قَالَ: تَصَدَّقْ. قَالَ: وَاللَّهِ مَا لِي شَيْءٌ وَلَا أَقْدِرُ عَلَيْهِ. قَالَ: اجْلِسْ. فَجَلَسَ، فَبَيْنَمَا هُوَ عَلَى ذَلِكَ أَقْبَلَ رَجُلٌ يَسُوقُ حِمَارًا عَلَيْهِ طَعَامٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيْنَ الْمُحْتَرِقُ آنِفًا؟ فَقَامَ الرَّجُلُ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَصَدَّقْ بِهَذَا. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَعَلَى غَيْرِنَا؟ فَوَاللَّهِ إِنَّا لَجِيَاعٌ مَا لَنَا شَيْءٌ. قَالَ: كُلُوهُ".

**ترجمه:** د ام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې چه فرمائیل ئې نبی علیه السلام ته یوکس راغې اوهغه په جومات کښې وواوعرض ئې اوکړوچه اې دالله رسوله اوسوزیدم نبی علیه السلام دهغه دحال تپوس اوکړونو اوئې وئیل چه دخپلې ښځې سره مې جماع کړې ده نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل صدقه ورکړه هغه عرض اوکړو هیڅ راسره نشته او په صدقه باندې قادرنه یم، نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل کینه نوهغه کیناستو، نبی علیه السلام لا په دې حال کښې ووچه یوکس خر را روان کړې وو او راروان وو اودخوراك غله ئې وربandې بارکړې وه نبی علیه السلام تپوس اوکړو هغه سوزیدلې څه شو؟نوهغه پاځیدونبی علیه السلام ورته اوفرمائیل داواخله اود الله په لاره کښې ئې خرچ کړه ده عرض اوکړو اې د الله رسوله ایازه بل چاته صدقه ورکړم په الله قسم مونږ په خپله وږی یونبی علیه السلام ورته او فرمائیل خوره ئې

[۲۳۹۵] (²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَائِشَةَ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: فَأُتِيَ بِعَرَقٍ فِيهِ عِشْرُونَ صَاعًا.

**ترجمه:** عباد بن عبدالله دام المومنین عائشې رضی الله عنها نه ددې روایت په شان روایت نقل کړې دې چه نبی علیه السلام ته یوه بوجۍ دخوراك مال پیش کړې شوه په کومه کښې چه شل صاعه دخوراك سامان وو.

¹: صحيح البخاري/الصوم ۲۹ (۱۹۳۵)، صحيح مسلم/الصيام ۱٤ (۱۱۱۲)، (تحفة الأشراف: ۱٦۱۷٦)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبرى/الصوم (۳۱۱۰)، مسند احمد (٦/۱٤۰، ۲۷٦)، سنن الدارمي/الصوم ۱۹(۱۷۵۹) (صحيح)

²: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱٦۱۷٦) (منكر)

## بَابُ التَّغْلِيظِ فِي مَنْ أَفْطَرَ عَمْدًا

### په قصد سره د روژې ماتولو دسزا بيان

[۲۳۹۶](۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنِ ابْنِ مُطَوِّسٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ ابْنُ كَثِيرٍ: عَنْ أَبِي الْمُطَوِّسِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَفْطَرَ يَوْمًا مِنْ رَمَضَانَ فِي غَيْرِ رُخْصَةٍ رَخَّصَهَا اللَّهُ لَهُ لَمْ يَقْضِ عَنْهُ صِيَامُ الدَّهْرِ".

**ترجمه**: دابو المطوس پلار دابوهريره عنه نه روايت كوى فرمائى چه نبى عليه السلام ارشاد فرمائيلي دي څوك چه په رمضان كښي يوه ورځ روژه ماته كړي بغيردهغه رخصتونونه كوم چه الله تعالى راليږلي دي نو چه تمام عمر روژې اونيسي ددې جبيره به ادانكړې شي.

### توضيح الحديث

يعني كوم سړې چه بغير د عذر او رخصت نه د رمضان يوه روژه ترک کړی نو روستو كه هغه ټول عمر روژه اونيسى نو د هغې كمي نه شي پوره كيدي يعني د فضيلت په لحاظ سره، ګيني د يوې روژې قضاء په يوې روژې سره كيږى، خو د حديث د ظاهر نه مطلقا د قضاء نفى كيږى فهذا من باب التغليظ والتشديد، دا د ائمه اربعه او جمهور علماء د مسلک په اعتبار سره دي ګيني د نورو علماء كرامو په دې كښي اختلاف دې. فقد قال ربيعة لا يحصل القضاء الا باثنى عشر يوما وقال بن المسيب يصوم عن كل يوم شهرا وقال النخعي لا يقضى الا بالف يوم، وقال على وابن مسعود لا يقضيه صوم الدهر، كذا فى الميزان للشعرانى، من هامش البذل.

والحديث اخرجه ايضا ابن ماجة والدارمي والبيهقي والدارقطني واخرجه البخارى معلقا. (المنهل)

[۲۳۹۷](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي حَبِيبٌ، عَنْ عُمَارَةَ، عَنِ ابْنِ الْمُطَوِّسِ، قَالَ: فَلَقِيتُ ابْنَ الْمُطَوِّسِ فَحَدَّثَنِي، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَ حَدِيثِ ابْنِ كَثِيرٍ وَسُلَيْمَانَ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَاخْتُلِفَ عَلَى سُفْيَانَ وَشُعْبَةَ عَنْهُمَا ابْنُ الْمُطَوِّسِ وَأَبُو الْمُطَوِّسِ.

**ترجمه**: عماره دابن مطوس نه اوهغه دخپل پلارنه اوهغه دابوهريره نه مرفوع روايت په مثل دابن كثير اوسليمان نقل كړې دې، امام ابوداود فرمائى چه چه دشعبه اوسفيان په مينځ كښي اختلاف دې چه دراوى نوم ابن المطوس دې اوكه ابو المطوس دې.

## بَابُ مَنْ أَكَلَ نَاسِيًا

### په هيره سره د روژه دارد خوراک څڅاک كولوبيان

اكل وشرب ناسيا (په هيره خوراک څکاک) دجمهور په نزد مفسد صوم نه دې، په دې كښي امام مالک او د ابن ابى ليلى اختلاف دې، د هغوى په نزد مفسد دې، او عطاء او سفيان ثورى د دې دواړو اكل وشرب او جماع ترمينځه فرق كړې دې چه جماع ناسيا مفسد دې اكل وشرب مفسد نه دې.

---

(۱): سنن الترمذي/الصوم ۲۷ (۷۲۳)، سنن ابن ماجه/الصيام ۱۵ (۱۶۷۲)، (تحفة الأشراف: ۱۴۶۱۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۸۶/۲، ۴۴۲، ۴۵۸، ۴۷۰)، سنن الدارمي/الصوم ۱۸ (۱۷۵۶) (ضعيف)

(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۴۶۱۶) (ضعيف)

[۲۳۹۸](۱)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، وَحَبِيبٍ، وَهِشَامٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَكَلْتُ وَشَرِبْتُ نَاسِيًا وَأَنَا صَائِمٌ. فَقَالَ: "اللَّهُ أَطْعَمَكَ وَسَقَاكَ".

**ترجمه:** ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه يو كس دنبي ﷺ په خدمت كښې حاضر شو اوعرض ئې اوكړو اې دالله رسوله روژه راته هيره وه اوخوراك څښاك مې اوكړو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل داخوراك اوڅناك دربانديې الله تعالىٰ كړې دې (يعنى په هيره سره په روژه كښې دخوراك څښاك كولو په وجه باندې روژه نه ماتيږي).

## توضيح الحديث

د ﴿ رجل ﴾نه مراد خپله ابوهريره رضي الله عنه قاله الحافظ. مضمون حديث واضح دې، والحديث اخرجه ايضا البخارى ومسلم والترمذى والنسائى والدارقطنى والحاكم وابن خزيمة والدارمي والبيهقى من طرق بالفاظ متقاربة. (المنهل)

# بَابُ تَأْخِيرِ قَضَاءِ رَمَضَانَ

## د رمضان د روژو په قضاء راوړلو كښې د تاخير بيان

[۲۳۹۹](۲)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّهُ سَمِعَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا تَقُولُ: "إِنْ كَانَ لَيَكُونُ عَلَيَّ الصَّوْمُ مِنْ رَمَضَانَ فَمَا أَسْتَطِيعُ أَنْ أَقْضِيَهُ حَتَّى يَأْتِيَ شَعْبَانُ".

**ترجمه:** دام المومنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه په ما باندې درمضان دروژو قضا واجب شوې وه اوما اونه نيول شوې تردې چه دشعبان مياشت راغله

## شرح حديث:

سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي زما په ذمه چه د رمضان كومې روژې وې پوره كال د هغې د ساتلو حاجت نه راتلو تردې چه شعبان به راغلو په دې كښې به هغه روژې نيولې، د دې تاخير وجه هغه ده چه د هغې طرف ته اشاره د بخارى ومسلم په روايت كښې دى، ففى البخارى الشغل بالنبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولفظ مسلم لمكان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يعنى خپل خاوند د رسول الله ﷺ په رعايت كښې د دې دپاره چه د هر نوع د خدمت دپاره تيار اوسى او په شعبان كښې د ساتلو ضرورت به په دې وجه راتلو اول خو په دې وجه چه اوس د مزيد تاخير گنجائش نشته، دويم دا چه په دې مياشت كښې به رسول الله ﷺ خپله په كثرت سره روژې نيولې.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۴۳۰، ۱۴۴۶۰، ۱۴۴۷۹)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصوم ۲۶(۱۹۳۳)، صحيح مسلم/الصيام ۳۳ (۱۱۵۵)، سنن الترمذي/الصوم ۲۶ (۷۲۱)، سنن ابن ماجه/الصيام ۱۵ (۱۶۷۳)، مسند احمد (۳۹۵/۲، ۵۱۳، ۴۱۵، ۴۹۱)، سنن الدارمي/الصوم ۲۳ (۱۷۶۷) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الصوم ۴۰ (۱۹۵۰)، صحيح مسلم/الصيام ۲۶ (۱۱۴۶)، ن الصيام ۳۶ (۲۳۲۱)، سنن ابن ماجه/الصيام ۱۳ (۱۶۶۹)، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۷۷)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصيام ۶۶ (۷۸۳)، موطا امام مالك/الصيام ۲۰ (۵۴)، مسند احمد (۱۲۴/۶، ۱۷۹) (صحيح)

### د رمضان ثانی پورې که ئې تاخير اوکړو :

که د يو سړی په ذمه باندې د رمضان د روژو قضاء وی او هغه دومره تاخير اوکړو بغير د عذر نه چه رمضان ثانی راغلو نو بيا په دې باندې جمهور علماء او ائمه ثلاث په نزد قضاء مع الفدية واجب ده، او حنفيه، حسن بصری او نخغی په نزد صرف قضاء ده فديه نه ده، او سعيد بن جبير اوقتاده مذهب دا دې چه په دې صورت کښې صرف فديه ده قضاء نشته، كذا قال الخطابی وابن القيم،اوپه دې کښې علامه عينی رحمه الله د امام طحاوی ميلان د جمهور د مسلک طرف ته ليکلې دې. والحديث اخرجه ايضا البخاری ومسلم وابن ماجة والبيهقی. (المنهل)

## بَاب فِيمَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامٌ

### د چا په ذمه چه روژې وې او مړشی

[۲۴۰۰](۱)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامٌ صَامَ عَنْهُ وَلِيُّهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا فِي النَّذْرِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ.

**ترجمه**: د ام المومنين عائشة رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی څوک چه په داسې حال کښې مړ شې چه په ده باندې دروژو قضالازم شوې وې نودده وارث به دده دطرف نه روژې نيسې. امام ابوداود وائی داحکم دنذرپه باره کښې ئې اوهمدا د امام احمد بن حنبل قول دې۔

### مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه :

که يو سړې وفات شی او حال دا چه د هغه په ذمه باندې د روژې قضاء وی نو د مړی د ولی د طرف نه روژه نيولې شی يا نه؟ په دې مسئله کښې حافظ ابن القيم رحمه الله درې مذاهب نقل کړې دی. ۱: لا مطلقا... يعنی ولی د هغه د طرف نه روژه نه شی نيولې برابره خبره ده که واجب اصلی وی لکه قضاء رمضان يا غير اصلی لکه صوم منذور، دا مذهب دې د امام مالک، ابوحنيفه او ظاهر مذهب شافعی. ۲: نعم، مطلقا، دا مذهب دې د ابوثور او امام شافعی يو روايت. ۳: واجب غير اصلی يعنی صوم منذور نيولې شی نه فرض اصلی، دا مذهب دې د ابن عباس او امام احمد کوم چه د هغوی نه صراحة منصوص دې، او هم دا منقول دی د ليث بن سعد نه. اه امام ابن القيم رحمه الله چه د امام شافعی رحمه الله کوم قول ته ظاهر مذهب وئيلی دې هغه د هغه قول قديم دې کوم چه هغه په صحت حديث باندې معلق کړې وو لکه چه د هغه وصيت مشهور دې، او امام نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې هم هغه قول قديم ته الصحيح المختار ليکلی دې هغه فرمائی : وهو الذی صححه محققوا اصحابنا الجامعين بين الفقه والحديث لقوة الاحاديث الصحيحة الصريحة. اه من المنهل، په بذل کښې د ملا علی قاری نه د داود ظاهری مذهب هم هغه نقل کړې دې کوم چه د امام احمد مذهب منصوص دې.

---

(۱): صحيح البخاري/الصوم ۴۲(۱۹۵۲)، صحيح مسلم/الصيام ۲۷ (۱۱۴۷)، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶۹/۶)، ويأتي هذا الحديث في الأيمان (۳۳۱۱) (صحيح)

## د جمهورو د طرف نه د حديث توجيه :

په دې پورته ذکر شوې مذاهبو د وجې نه دا حديث د جمهور بلکه د ائمه اربعه خلاف دې، البته د ابوثور او امام شافعی د يو روايت موافق دې، لهذا دا حديث د جمهورو په نزد مؤول دې، صام عنه وليه کښې د صوم نه بدل صوم يعنی فديه مراد ده، د جمهورو دليل د عائشې رضي الله عنها حديث دې : لا تصوموا عن موتاکم واطعموا عنهم... هم دغه شان په موطاء کښې د ابن عمر رضي الله عنهما اثر دې ﴿لا يصوم احد عن احد ﴾

## په کومو عباداتو کښې نيابة عن الغير جائز دې؟

د پورته ذکر شوی اختلاف نه معلومه شوه چه د امام احمد او ظاهريه په نزد په صوم منذور کښې نيابة عن الغير جائز دې خلافا للجمهور. زمونږ په نزد دا مسئله په کومو عباداتو کښې نيابة عن الغير جائز دې او په کومو کښې جائز نه دې، کتاب الحج کښې باب الحج عن الغير د لاندې تير شوې دې. والحديث اخرجه ايضا البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجة والنسائی والدارقطنی والبيهقی. (المنهل)

[۲۴۰۱]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي حُصَيْنٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "إِذَا مَرِضَ الرَّجُلُ فِي رَمَضَانَ ثُمَّ مَاتَ وَلَمْ يَصُمْ أُطْعِمَ عَنْهُ وَلَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ قَضَاءٌ، وَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ نَذْرٌ قَضَى عَنْهُ وَلِيُّهُ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی کله چه يو کس په رمضان کښې مريض شي اوبيا مرشي اوروژې ئې نيولې نه وي نو دده دطرف نه به مسکينانوته خوراك ورکولې شي اوپه ده باندې قضا نشته دې اوکه چرې په ده باندې دنذر روژې پاتې وي نودهغې قضابه دده وارث راوړی.

## توضيح الحديث

هم دا دې د ابن عباس رضي الله عنهما هغه قول منصوص کوم چه د ابن قيم په کلام کښې تير شو، يعنی فرق بين الواجب الاصلی وغير الاصلی.

## اختلاف نسخ او د صحيح نسخه تحقيق :

د دې نه پس پوهه شه چه د ابوداود زمونږ په نسخه کښې هم دغه شان دی، ﴿ثم مات ولم يصح ﴾بلکه په اکثر نسخ هنديه کښې دی هم دغه شان دی او دا تصحيف دې، کما فی البذل بيا وراندې حضرت ليکی والصواب ما فی النسخة المصرية. ﴿ لم مات لم يصم ﴾هم په دې وجه زه وايم چه په سبق کښې ﴿لم يصح ﴾... لم يصح ([2]) د دې وجه دا ده چه د اکثر اهل علم په دې باندې اتفاق دې چه که يو سړې د مرض يا سفر د وجې نه روژه نه نيسی او بيا د هغه د طرف نه په قضاء کښې څه تفريط نه وی مونډلې شوې تردې چه وفات شو نو په دې صورت کښې به په هغه باندې يو څيز هم واجب نه وی، او؛ که د هغه د طرف نه په قضاء کښې تفريط بيا مونډلې شی يعنی د مرض نه وتلو سره صحت مند شی او په قضاء باندې هغه نه قدرت

---

[1]: تفرد به ابو داود (صحيح)
[2]: يعنی دا لفظ لم يصح صحيح نه دې

حاصل شي او بيا بغير د قضاء نه مړ شي نو بيا د هغه د طرف نه فديه وغيره واجب وي.
والاثر اخرجه ايضا البيهقي في سننه (المنهل)

**ايا په ولي باندې د مړي د طرف نه فديه ورکول واجب دي :**

پورته دا مسئله تيره شوه چه ﴿صام عنه وليه﴾ نه مراد د جمهورو په نزد بدل صوم يعنی فديه ده، اوس دا چه په ولي باندې د مړي د طرف نه فديه واجب ده يا غير واجب، په دې کښې د احنافو مذهب دا دې چه په ولي باندې د وجوب فديه دپاره ايصاء ميت شرط دې که وصيت اونکړي نو بيا واجب نه دې، که تبرعا ئې فديه ورکړه نو کافی به شي ان شاء الله تعالى. بلکه دا چه د وصيت نفاذ هم په ثلث مال کښې دې د دې نه په زيات کښې واجب نه دې، كذا في الدر المختار. ملا علي قاري رحمه الله فرمائي چه په وارث باندې د لزوم فديه دپاره زمونږ په نزد ايصاء من الميت ضروري ده خلافا للشافعي. اوجز ۶۲/۳، د کتب شافعيه نه هم دا معلوميږي چه د هغوی په نزد وصيت ضروري نه دې، د هغوی په کتابونو کښې دي ﴿يخرج من تركته لكل يوم مد طعام﴾(مغني المحتاج ۴۳۸/۱) او هم دا مذهب د امام احمد رحمه الله دې. (كما يظهر من المغني ۸۲/۳) ففيه : الحال الثاني ان يموت بعد امكان القضاء فالواجب ان يطعم عنه لكل يوم مسكين. اهـ په دې کښې هم د وصيت څه قيد نشته.

## بَابُ الصَّوْمِ فِي السَّفَرِ

**د سفر په دوران کښې د روژو نيولو او نه نيولو د اختيار بيان**

دې باره کښې هم په رواياتو کښې مجموعی لحاظ سره اختلاف دې او د فقهاء کرامو ترمينځه هم، هم په دې وجه باندې مصنف درې ابواب قائم کړې دی او په هر يو باب کښې ئې د هغې مناسبت سره روايات راوړې دی، اولني باب الصوم فی السفر، دويم باب اختيار الفطر، دريم باب اختيار الصيام.

**صوم في السفر کښې مذاهب ائمه :**

او په دې کښې مذاهب داسې دي:

۱: د ظاهريه په نزد صوم في السفر ناجائز دې که چا اونيوه نو هم صحيح به نه وي.

۲: حنفيه شافعيه مالکيه، د دې ائمه ثلاث په نزد چه کوم سړې بغير د مشقت نه روژه نيولې شي نو د هغه دپاره افضليت صوم، ګينې افطار اولی دې.

۳: د امام احمد او اوزاعی وغيره په نزد مطلقا افطار افضل دې.

۴: افطار او صوم دواړه برابر دی، يو ته هم په بل باندې ترجيح نشته، رواية عن الشافعي.

[۲٤۰۲]([1]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ حَمْزَةَ الْأَسْلَمِيَّ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي رَجُلٌ أَسْرُدُ الصَّوْمَ، أَفَأَصُومُ فِي السَّفَرِ؟

[1]: صحيح مسلم/الصيام ۱۷ (۱۱۲۱)، (تحفة الأشراف: ۱٦۸۵۷)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصوم ۳۳ (۱۹٤۲)، سنن الترمذي/الصوم ۱۹ (۷۱۱)، سنن النسائي/الصيام ۳۱ (۲۳۰۸)، ٤۳ (۲۳۸٦)، سنن ابن ماجه/الصيام ۱۰ (۱٦٦۲)، موطا امام مالك/الصيام ۷ (۳٤)، مسند احمد (٦/٤٦، ۹۳، ۲۰۲، ۲۰۷)، سنن الدارمي/الصوم ۱۵ (۱۷٤۸) (صحيح)

قَالَ: صُمْ إِنْ شِئْتَ، وَأَفْطِرْ إِنْ شِئْتَ".

**ترجمه**: دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه حمزه اسلمي به دنبي ﷺ نه تپوس اوکړو عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله زه يو داسې سړې يم چه متواترې روژې نيسم نوايا په سفرکښې ئې هم ونيسم؟ نبي ﷺ ورته اوفرمائيل که دې خوښه وي نواونيسه اوکه دې خوښه وي نوماتې ئې کړه.

[۲۴۰۳](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ الْمَدَنِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ حَمْزَةَ بْنَ مُحَمَّدِ بْنِ حَمْزَةَ الْأَسْلَمِيَّ، يَذْكُرُ أَنَّ أَبَاهُ، أَخْبَرَهُ عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي صَاحِبُ ظَهْرٍ أُعَالِجُهُ أُسَافِرُ عَلَيْهِ وَأُكْرِيهِ، وَإِنَّهُ رُبَّمَا صَادَفَنِي هَذَا الشَّهْرُ يَعْنِي رَمَضَانَ، وَأَنَا أَجِدُ الْقُوَّةَ وَأَنَا شَابٌّ وَأَجِدُ بِأَنْ أَصُومَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَهْوَنَ عَلَيَّ مِنْ أَنْ أُؤَخِّرَهُ فَيَكُونُ دَيْنًا، أَفَأَصُومُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَعْظَمُ لِأَجْرِي، أَوْ أُفْطِرُ؟ قَالَ: أَيَّ ذَلِكَ شِئْتَ يَا حَمْزَةُ".

**ترجمه**: حمزه بن عمرو اسلمي دخپل پلارنه اوهغه دده دنيکه نه روايت کوي فرمائي چه ماعرض اوکړو اې دالله سوله زه دسورلئ خاروو والايم اودوي بوځم اوسفرونه کوم په کرايه باندې بعضې وخت دسفرپه دوران کښې درمضان مياشت شروع شي اوزما دروژو نيولو طاقت وي اوحال دادې چه زه ځوان يم ماته روژې نيول اسان ښکارې په نسبت دقضا راوړلو باندې ځکه چه هغه دقرض په شان په سرباندې بوج وي نوايازه په سفرکښې روژې اونيسم په کوم کښې چه اجرهم زيات دې اوکه اونه نيسم؟ نبي ﷺ اوفرمائيل اې حمزه څنګه چه دې زړه غواړي کوه.

**شرح حديث :**

حمزه بن عمرو الاسلامي رضي الله عنه فرمائي چه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! زه سورلئ والا يم، يعنې ما سره اوښه شته چه په هغې کښې مشغول يم او په هغې سفر کوم او هغه په کرايه باندې بوځم، ډير کرته هم دې دوران کښې د رمضان مياشت راشي او زه ځوان سړې يم او طاقت ور يم، زه د خلقو سره د رمضان روژه اونيسم دا زما دپاره زياته اسان ده د دې په نسبت چه هغه وخت خو ئې افطار کړم د سفر د وجې نه او بيا ئې د رمضان تيريدو نه پس په واپسئ باندې اونيسم، يعنې د ټولو سره ئې په رمضان کښې اونيسم اګر چه سفر وي دا زما دپاره ډير اسانه ده، هغه وائي چه ما رسول الله ﷺ ته د دې صورت حال د عرض کولو نه پس اووې چه يا رسول الله! په داسې صورت کښې د روژې زيات ثواب دې يا د افطار؟ هغه اوفرمائيل چه څه ته غواړې هغه شان کوه.

﴿اى ذلک شئت يا حمزة﴾ نه په ظاهره کښې تخيير بين الامرين معلوميږي، يعنې په صوم او افطار دواړو کښې مساوات لکه چه په دې مذاهب اربعه مذکوره کښې څلورم مذهب دې، ځکه چه پورته ذکر شوې صورت حال اوريدلو نه پس هم رسول الله ﷺ هغه ته هم دا فرمائي چه څه غواړې کوه، صوم يا افطار، دويم احتمال په دې کښې دا هم دې چه داسې اوئيلې شي چه په دې صورت کښې رسول الله ﷺ صوم ته ترجيح ورکړه په دې لحاظ سره چه وې فرمائيل چه په دې صورت کښې چه ته څه غواړې هغه اوکړه، او دا ظاهره ده چه

(1): تفرد المؤلف بهذا السياق، وانظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ۳۴۴۰) (ضعيف)

هغه روژه نیول غوښتل لهذا هم دې ته ترجیح شوه.

والحدیث اخرجه ایضا الحاکم والبیهقی. (المنهل)

[۲۴۰۴]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَدِينَةِ إِلَى مَكَّةَ حَتَّى بَلَغَ عُسْفَانَ، ثُمَّ دَعَا بِإِنَاءٍ فَرَفَعَهُ إِلَى فِيهِ لِيُرِيَهُ النَّاسَ وَذَلِكَ فِي رَمَضَانَ. فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ: قَدْ "صَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَفْطَرَ، فَمَنْ شَاءَ صَامَ وَمَنْ شَاءَ أَفْطَرَ".

**ترجمه**: د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دمدینې نه مکې ته روان شو تردې چه عسفان ته ورسیدو بیائې اوبه راوغوښتلې اوخولې ته ئې پورته کړې ددې دپاره چه خلق ئې ووینې اودا واقعه په رمضان کښې پیښه شوې وه ابن عباس به فرمائیل چه نبی علیه السلام دسفرپه دوران کښې روژه نیولې وه اودسفرپه دوران کښې ئې روژې ماتې کړې هم دې نودچاړه چه غواړي روژې دې اونیسي اودچاړه چه غواړي نه دې نیسي.

## توضیح الحدیث

سیدنا ابن عباس رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو سفر حال بیان فرمائی چه کوم د رمضان په میاشت کښې د مدینې نه مکې طرف ته شوې وو، یعنی د فتح مکې والا کال لکه چه په راتلونکې حدیث کښې به راشي، په دې سفر کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مدینې منورې نه د روژې په حالت کښې روان وو تردې چه کله مکې مکرمې ته نزدې مقام عسفان ته اورسیدو، د دې ځائې نه ئې افطار شروع کړو، او په قافله والو باندې د افطار ظاهرولو دپاره یو لوښی کښې اوبه راغوښتلو سره ئې هغه لږ لوړ اونیولو او هغه اوبه ئې اوڅکلې.

امام نووی رحمه الله په دې حدیث باندې لیکی: په دې کښې دلیل دې د مذهب جمهور چه په سفر کښې صوم او افطار دواړه جائز دی او دا هم چه د مسافر دپاره دا هم جائز دی چه په بعض ورځو کښې روژه اونیسي او په بعض کښې افطار اوکړي.

**تنبیه**: پورته په حدیث کښې د ﴿عسفان﴾ ذکر راغلې دې، دا د مکې او مدینې ترمینځه د یو مشهور قریه او منزل نوم دې، د مکې نه د شپږ دیرشو میلو په فاصله باندې دې، ملا علی قاری رحمه الله فرمائی او هغه چه ابن الملک وئیلې دی چه دا د یو ځائې نوم دې کوم چه مدینې ته نزدې دې نو یا خو دا د هغه د قلم خطائی ده یا واقعی غلطی ده. اهـ زه وایم او د دې نه هم زیاته هغه خبره ده کومه چه د دې حدیث په شرح کښې امام نووی رحمه الله لیکلې ده چه د بعض علماء کرامو نه د دې حدیث په مفهوم کښې غلطی شوې ده چه ﴿کدید﴾ او ﴿کراع الغمیم﴾ (۲) (او هم دغه شان عسفان) مدینې منورې ته نزدې یوځائې دې، او دا چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د روژې ماتولو دا واقعه هم د دې ورځې ده چه په کومه ورځ باندې هغه د مدینې منورې نه روان شو، یعنی هغه د مدینې نه روژه نیولو سره روان شو بیا د هغه

[1]: صحیح البخاري/الصوم ۳۸ (۱۹۴۸)، صحیح مسلم/الصیام ۱۵ (۱۱۱۳)، سنن النسائي/الصیام ۳۱ (۲۲۹۳)، (تحفة الأشراف: ۵۷۴۹)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصیام ۱۰ (۱۶۶۱)، موطا امام مالك/الصیام ۷ (۲۱)، مسند احمد (۲۴۴/۱، ۳۵۰)، سنن الدارمي/الصوم ۱۵ (۱۷۴۹) (صحیح)

[2]: دا دوه نومونه د مسلم په روایت کښې دی.

راتي بدله شوه او دا روژه ئي كراع الغميم ته رسيدو سره افطار كړه، هغه ليكي : او مزيد په دې باندې دې قائل د دې نه دا مسئله مستنبط كړې ده چه كه يو سړې د روژې نيت كولو نه پس د طلوع فجر نه پس سفر شروع كړي نو د داسې مسافر دپاره روژه نيولو سره افطار كول جائز دى، حال دا چه د جمهورو په نزد داسې جائز نه دى، او د مسافر دپاره جائز دى چه كه هغه د ورځې په شروع كښې د روژې نيت اوكړي نو روستو افطار كولې شى. (يعنى مقيم ... كه د روژې نيت اوكړى د فجر صادق په وخت او بيا سفر شروع كړي نو اوس د هغه دپاره افطار جائز نه دې) اهـ. والحديث اخرجه ايضا البخارى ومسلم والنسائى والطحاوى والبيهقى والدارمى بالفاظ متقاربة (المنهل)

[۲۴۰۵](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: سَافَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ، فَصَامَ بَعْضُنَا وَأَفْطَرَ بَعْضُنَا. "فَلَمْ يَعِبِ الصَّائِمُ عَلَى الْمُفْطِرِ وَلَا الْمُفْطِرُ عَلَى الصَّائِمِ".

**ترجمه:** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږ په رمضان كښې دنبى عليه السلام سره سفر اوكړو په مونږ كښې بعضوكسانوروژه نيولې وه اوبعضونه وه نيولې، نه به روژه نيونكو په روژه نه نيونكو باندې اعتراض كولو اونه به روژه نه نيونكو په نيونكو باندې اعتراض كولو.

[۲۴۰۶](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَوَهْبُ بْنُ بَيَانٍ، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ يَزِيدَ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ عَنْ قَزَعَةَ، قَالَ: أَتَيْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ وَهُوَ يُفْتِي النَّاسَ وَهُمْ مُكِبُّونَ عَلَيْهِ، فَانْتَظَرْتُ خَلْوَتَهُ. فَلَمَّا خَلَا سَأَلْتُهُ عَنْ صِيَامِ رَمَضَانَ فِي السَّفَرِ. فَقَالَ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ عَامَ الْفَتْحِ. فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ وَنَصُومُ حَتَّى بَلَغَ مَنْزِلًا مِنَ الْمَنَازِلِ، فَقَالَ: "إِنَّكُمْ قَدْ دَنَوْتُمْ مِنْ عَدُوِّكُمْ وَالْفِطْرُ أَقْوَى لَكُمْ". فَأَصْبَحْنَا مِنَّا الصَّائِمُ وَمِنَّا الْمُفْطِرُ. قَالَ: ثُمَّ سِرْنَا فَنَزَلْنَا مَنْزِلًا، فَقَالَ: "إِنَّكُمْ تُصَبِّحُونَ عَدُوَّكُمْ وَالْفِطْرُ أَقْوَى لَكُمْ، فَأَفْطِرُوا". فَكَانَتْ عَزِيمَةً مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو سَعِيدٍ: ثُمَّ لَقَدْ رَأَيْتُنِي أَصُومُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ ذَلِكَ وَبَعْدَ ذَلِكَ.

**ترجمه:** دقزعة رحمه الله نه روايت دې فرمائي چه زه دابوسعيد خدري نه په خدمت كښې حاضر شوم اوهغه خلقوته فتوي وركوله اوخلق په ده باندې راټول شوي وو، زه د فرصت په انتظار كښې وم چه كله هغه يواځې شي نوزه به ترې دمسئلې تپوس اوكړم كله چه يواځې شوما ترې تپوس اوكړو چه دسفرپه دوران كښې درمضان روژې نيول څه حكم لرى؟ هغه اوفرمائيل دفتح مكې په كال مونږ دنبى عليه السلام سره يوځائي روان شو دهغه هم روژه وه او مونږ هم روژې نيولې وې تردې چه نبى عليه السلام يوځائي ته ورسيدو نبى عليه السلام اوفرمائيل اوس ستاسو دشمن ته رانزدې شوئ روژې مه نيسئ په روژوماتولوكښې ستاسو دپاره طاقت

(۱): صحيح البخاري/الصوم ۳۷ (۱۹۴۷)، صحيح مسلم/الصيام ۱۵ (۱۱۱۸)، (تحفة الأشراف: ٦٦٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصيام ۷ (۲۳) (صحيح)

(۲): صحيح مسلم/الصيام ۱٦ (۱۱۲۰)، (تحفة الأشراف: ٤٢٨٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الصيام ۳۱ (۲۳۱۱)، مسند احمد (۳/۳۵) (صحيح)

دې نوصبا له په مونږ کښې بعضې کسان روژه شول او بعضې کسان روژه نه شول او مونږه روان شو یوبل ځائې ته لاړو نبی ﷺ اوفرمائیل سحربه تاسو د دشمن سره مخامخ شئ اوس روژه مه نیسئ نومونږ ټولو روژه اونه نیوله ځکه چه دنبی ﷺ حکم، ابوسعید خدری په اوفرمائیل مادد دې نه مخکښې هم دنبی ﷺ سره روژې نیولې وې اودد دې نه پس مې هم ورسره روژې نیولې دي.

## توضیح الحدیث

یعنی چه کله رسول الله ﷺ په پورته ذکر شوی سفر کښې مکې مکرمې ته اورسیدو نو وې فرمائیل چه نزدې تاسو دشمن سره ملاقات کولو والا یئ (د مقابلې وخت راروان دې) لهذا اوس روژه بنده کړئ.

**فائده** : د دې حدیث د لاندې په بذل المجهود کښې یوه بله مسئله لیکلې ده هغه دا چه په دې حدیث کښې رسول الله ﷺ صحابه کرامو لره د لقاء عدو په بنیاد باندې د افطار صوم حکم فرمائیلې دې، یعنی د سفر د وجې نه ئې نه دی فرمائیلی بلکه د دشمن سره د مقابلې په بنیاد باندې، لهذا دلته دا سوال پیدا کیږی چه.

## مصلحت حرب د وجې نه روژه افطار کول :

ایا د مصلحت مذکوره د وجې نه په حضر کښې هم د رمضان روژه افطار کولې شی؟ دا سوال قائمولو سره حضرت د دې جواب د البحر الرائق نه دا نقل فرمائیلې دې، صاحب بحر لیکی چه فقهاء کرام فرمائی چه که غازی ته د دې خبرې یقین راشی چه د رمضان په میاشت کښې د دشمن سره مقابله کول دی او د هغه دا خیال دې چه د رمضان روژه ئې نه ده افطار کړې نو ضعف به راشی نو د هغه دپاره جائز دی دا خبره چه د جنګ شروع کیدو نه مخکښې روژه افطار کړی اګر چه لا سفر ئې شروع کړې هم نه وی. اه زه وایم چه دا مسئله اګر چه امام ابوداود په خپل سنن کښې نه ده بیان کړې خو امام ترمذی په دې باندې مستقل باب قائم کړې دې. باب ما جاء فی الرخصة للمحارب فی الافطار... او هغه د دې د لاندې دا حدیث راوړې دې "عن ابن المسیب انه ساله عن الصوم فی السفر فحدث ان عمر بن الخطاب قال غزونا مع رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فی رمضان غزوتین یوم بدر والفتح فافطرنا فیهما"امام ترمذی رحمه الله فرمائی : وقد روی عن عمر بن الخطاب انه رخص فی الافطار عند لقاء العدو وبه یقول بعض اهل العلم. والحدیث اخرجه مسلم والطحاوی والبیهقی. (المنهل)

## بَابُ اخْتِيَارِ الْفِطْرِ

### باب دې چه د سفر په دوران کښې روژې نه نیول اختیارول

[۲۴۰۷](۱)حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ سَعْدِ بْنِ زُرَارَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَسَنٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يُظَلَّلُ عَلَيْهِ

(۱): صحیح البخاري/الصوم ۳۶ (۱۹۴۶)، صحیح مسلم/الصیام ۱۵ (۱۱۱۵)، سنن النسائي/الصیام ۲۷ (۲۲۶۴)، (تحفة الأشراف: ۲۶۴۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۹/۳، ۳۱۷، ۳۱۹، ۳۵۲، ۳۹۹) (صحیح)

وَالزِّحَامُ عَلَيْهِ. فَقَالَ: "لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ الصِّيَامُ فِي السَّفَرِ".

**ترجمه:** د جابر بن عبد الله رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبی عليه السلام يو کس اوليدو چه سوري ورباندې شوي وو او ډيره ګڼره ورباندې جوړه شوي وه (اوروژه ئي هم وه نو په دې وخت کښې نبی عليه السلام اوفرمائيل: دسفرپه حالت کښې روژه نيول نيک کارنه دې.

## توضيح الحديث

يعنی رسول الله صلی الله عليه وسلم په يو سفر کښې يو روژه دار صحابی اوليدو چه د هغه د روژې او ګرمئ د وجې نه بد حال وو او خلق ورته راجمع وو، هغوی لره د دهوپ نه د بچ کولو دپاره په هغوی باندې سورې کړې وو، چه کله ئي دا صورت حال اوليدو نو وي فرمائيل چه په سفر کښې روژه ساتل هيڅ قسم نيکی نه ده.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والدارمی والبيهقی بالفاظ متقاربة، واخرجه النسائی من طريق يحيی بن ابی کثير... واخرج الطحاوی نحوه، واخرجه ايضا عن ابن عمر رضي الله عنهما. (المنهل)

[٢٤٠٨] (١) حَدَّثَنَا شَيْبَانُ بْنُ فَرُّوخَ، حَدَّثَنَا أَبُو هِلَالٍ الرَّاسِبِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ سَوَادَةَ الْقُشَيْرِيُّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، رَجُلٍ مِنْ بَنِي عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبٍ إِخْوَةِ بَنِي قُشَيْرٍ، قَالَ: أَغَارَتْ عَلَيْنَا خَيْلٌ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْتَهَيْتُ، أَوْ قَالَ: فَانْطَلَقْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَأْكُلُ. فَقَالَ: اجْلِسْ فَأَصِبْ مِنْ طَعَامِنَا هَذَا. فَقُلْتُ: إِنِّي صَائِمٌ. قَالَ: اجْلِسْ أُحَدِّثْكَ عَنِ الصَّلَاةِ وَعَنِ الصِّيَامِ "إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى وَضَعَ شَطْرَ الصَّلَاةِ أَوْ نِصْفَ الصَّلَاةِ وَالصَّوْمَ عَنِ الْمُسَافِرِ وَعَنِ الْمُرْضِعِ أَوِ الْحُبْلَى وَاللَّهِ لَقَدْ قَالَهُمَا جَمِيعًا أَوْ أَحَدَهُمَا". قَالَ: فَتَلَهَّفَتْ نَفْسِي أَنْ لَا أَكُونَ أَكَلْتُ مِنْ طَعَامِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** انس بن مالك ونه (څوك چه دبني كعب بن عبد الله قبيلي والا دې، هغه انس بن مالك مراد نه دې كوم چه مشهور دې اوخادم الرسول دې) نه روايت دې فرمائي چه دنبی عليه السلام شهسوارانو په مونږ باندې حمله اوكړه دې وائی زه لازم اودرسول الله په خدمت كښې حاضر شوم اوهغه خوراك كولو ماته ئې اوفرمائيل كينه زمونږ ددې خوراك به څه وخوره كوم چه دادې ماورته اووئيل زما روژه ده راته ئې اوفرمائيل دروژې او مونځ متعلق درته څه وايم الله جل جلاله نيم مونځ او روژه مسافرته معاف كړې ده او همدارنګې روژه كې هم معاف كړې ده تې وركونكي اوحاملې ښځې ته په الله مې دې قسم وې نبی عليه السلام ددواړو نوم واخستو (حامله اوتې وركونكې) پائې د يوې ذكروكړو انس وائی ماته افسوس راغې اوبياې دنبی عليه السلام دخوراك نه خوراك وكړو (يعنی روژه خونفلي وه دابياهم نيولې كيدې شوه خودابركت اوسعادت بيا نه شي ملاويدې نوپه دې وجه مې دنبی عليه السلام سره خوراك وكړو.

## توضيح الحديث

دا انس بن مالک کعبی القشیری دې لکه چه د هغه د دې نسب مذکور نه هم معلومیږی، او کوم انس رضي الله عنه چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم مشهور خادم دې، هغه انس بن مالک بن النضر الانصاری الخزرجی دې، د دې انس رضي الله عنه په باره کښې لیکلې دی : من رجال الاربعة

(١): سنن الترمذي/الصوم ٢١ (٧١٥)، سنن النسائي/الصيام ٢٨ (٢٢٧٦)، سنن ابن ماجه/الصيام ١٢ (١٦٦٧)، (تحفة الأشراف: ١٧٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤٧/٤، ٢٩/٥) (حسن صحيح)

ليس له الا هذا الحديث الواحد.

بهرحال دا فرمائی چه زمونږ په قوم باندې د رسول اللهﷺ لښکر حمله اوکړه، او هغه خپله اسلام قبول کړې وو په دې وجه هغه د خپل قوم نه جدا کیدو سره وائی چه زه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شوم په داسې حال کښې چه هغه خوراک کولو، هغه فرمائی چه رسول اللهﷺ ماته اوفرمائیل چه راشه کینه ته هم مونږ سره په خوراک کښې شریک شه، ما عرض اوکړو زما روژه ده، رسول اللهﷺ اوفرمائیل ته کینه راځه (زه تاته د مسافر د روژې حکم بیانوم) بیا ئې اوفرمائیل : الله پاک مسافر ته د سفر په حالت کښې روژه معاف کړې ده، او د هغه په حق کښې ئې مونځ نیم کړې دې، او د مرضع او حبلی (پئ ورکونکې او امیدواره زنانه) په باره کښې ئې هم فرمائیلې دی چه د هغوی روژه ئې معاف کړې ده، هغه وائی چه والله دا ماته یاد پاتې نه شو چه مرضع او حبلی دواړه ئې فرمائیلې وو یا په دوی کښې یو (د روایت د سیاق نه معلومیږی چه د دې باوجود هم رسول اللهﷺ سره په خوراک کښې شریک نه شو لکه چه هغه وراندې فرمائی) ﴿فتهلفت نفسی ﴾او د ترمذی په روایت کښې دی ﴿فیا لهف نفسی ﴾چه زه افسوس کوم په ځان باندې رسول اللهﷺ سره په خوراک نه کولو باندې.

په دې روایت کښې دا دی چه ﴿فانطلقت الی رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴾چه کله مسلمانانو زمونږ په قوم باندې حمله اوکړه نو زه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شوم، دلته سوال دا دې چه هغه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې دې وخت کښې ولې راغلو، حضرت په بذل کښې لیکلي دی چه د مسند احمد په روایت کښې دی ﴿فی ابل لجار لی اخذت ﴾، او د نسائی په روایت کښې دی ﴿فی ابل کان لی اخذت ﴾یعنی دې لښکر زما په اوښانو باندې قبضه کړې وه یعنی هغه لره مال غنیمت جوړولو سره، ځکه چه لښکر ته خو د هغوی په باره کښې معلومه نه وه چه دوی مسلمانان شوی دی، لهذا په دې سلسله کښې هغه رسول اللهﷺ ته راغلې وو.

**یو بل سوال او د هغې جواب:**

په دې حدیث باندې دا سوال پیدا کیږی چه دا د رمضان د میاشتې قصه ده یا د غیر رمضان، که د رمضان ده نو رسول اللهﷺ څنګه خوراک کولو؟ هغه خو مسافر نه وو، او که د غیر رمضان ده نو په غیر رمضان کښې د مسافر نه د روژې د معاف کیدلو څه معنی؟ اوس یا خو به دا وئیلې شی چه کیدې شی خپله رسول اللهﷺ هم په سفر کښې وی، په یو منزل باندې ایسار شوې وی، او د لښکر دا دسته ئې وراندې لیږلې وی یا داسې اوئیلې شی چه دا واقعه د غیر رمضان ده، رسول اللهﷺ په مدینه منوره کښې وو او دې صحابی نفلی روژه نیولې وه نو رسول اللهﷺ هغه ته اوفرمائیل، چه د هغې حاصل دا ده چه د مسافر نه خو د رمضان فرض روژه هم معاف ده او تا خو نفلی روژه نیولې ده. والله تعالی اعلم ولم يتعرض لهذا احد من الشراح.

والحديث اخرجه ايضا احمد وابن ماجة والترمذی....... والبيهقی (المنهل)

# بَابُ فِيمَنِ اخْتَارَ الصِّيَامَ

## د سفر په دوران کښې د روژو نيولو بيان

[۲۴۰۹]( )حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، حَدَّثَتْنِي أُمُّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: "خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ غَزَوَاتِهِ فِي حَرٍّ شَدِيدٍ حَتَّى إِنَّ أَحَدَنَا لَيَضَعُ يَدَهُ عَلَى رَأْسِهِ أَوْ كَفَّهُ عَلَى رَأْسِهِ مِنْ شِدَّةِ الْحَرِّ، مَا فِينَا صَائِمٌ إِلَّا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَوَاحَةَ".

**ترجمه:** دابو الدرداء رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږ دنبي عليه السلام سره اووتو په بعضو غزاګانو دهغه کښې اوسخته ګرمي وه تردې چه په مونږ کښې به يوکس پخپل سرباندې لاس کيخودو اويابه ئې ورغوې کيخودو په سرباندې په وجه دسختوالي دګرمي اوپه مونږ کښې دنبي عليه السلام اودعبد الله بن رواحه نه علاوه دبل چاروژه نه وه ددې حديث نه معلومه و شوه که چرې دچا طاقت وي نوروژه نيول افضل دي.

[۲۴۱۰]( )حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ ح وحَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ، حَدَّثَنَا أَبُو قُتَيْبَةَ، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ حَبِيبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْأَزْدِيُّ، حَدَّثَنِي حَبِيبُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ سِنَانَ بْنَ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبِّقِ الْهُذَلِيَّ، يُحَدِّثُ عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَتْ لَهُ حَمُولَةٌ تَأْوِي إِلَى شِبَعٍ فَلْيَصُمْ رَمَضَانَ حَيْثُ أَدْرَكَهُ".

**ترجمه:** دسنان بن سلمه رضي الله عنه نه روايت دې فرماني چه نبي عليه السلام اوفرمائيل دچاسره چه داسې سورلئ وي چه په اسانئ سره منزل ته رسيږي او په مړه خيټه ورته خوراك ملاويږي هغه لره پکاردي چه کله درمضان مياشت راشي روژې دې ونيسي.

### شرح حديث:

د دې حديث دوه مطلبونه کيدې شي، اول دا چه د کوم سړي سره سورلي وي او مختصر شان د هغه سفر وي، او د ماښام پورې خپل منزل ته رسيدو سره په خپل وخت باندې خوراک څکاک کولې شي او څه مشقت هغه ته نه وي نو هغه له پکار دی چه د رمضان روژه اونيسي چه کله هم د رمضان مياشت شروع شي، دې مطلب ته ئې په بذل کښې بعيد وئيلي دی، په ظاهره کښې دې وجه باندې چه هر کله د هغه سړي سفر قصير دې نو بيا په هغه باندې روژه واجب ده که هغه سره سورلئ وي يا نه وي، لهذا صحيح مطلب دا دې چه کوم سړې مسافر شرعي وي اګر چه د هغه مسافت هر څومره اوږد وي او هغه سره سورلئ هم وي چه د هغې د وجې نه په لاره کښې په منزل باندې د خوراک څکاک کولو په وخت رسيدلې شي نو په داسې سړي باندې چه چرته هم د رمضان مياشت راشي نو هغه له روژه نيول پکار دی، يعنی اګر چه جائز افطار هم دې خو د عدم مشقت د وجې نه هغه له روژه نيول پکار دی.

[1]: صحيح البخاري/الصوم ۳۵(۱۹۴۵)، صحيح مسلم/الصيام ۱۷(۱۱۲۲)، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۷۸)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصيام ۱۰ (۱۶۶۳)، مسند احمد (۱۹۴/۵، ۱۴۴/۶) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۴۵۶۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۷۴/۳، ۴۷۶، ۷/۵) (ضعيف)

[۲٤۱۱]([1])حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ الْمُهَاجِرِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ حَبِيبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ سِنَانِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبَّقِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَدْرَكَهُ رَمَضَانُ فِي السَّفَرِ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** حبيب رضي الله عنه دسنان بن سلمه رضي الله عنه نه اوهغه دسلمه بن المحبق نه دنبي ﷺ نه دتير شوي روايت په شان روايت بيان کړې دې مګر په دې کښې دا الفاظ دي: « من أدركه رمضان في السفر، ، فذكر معناه.

## باب مَتَى يُفْطِرُ الْمُسَافِرُ إِذَا خَرَجَ

**مسافر چه کله سفر شروع کړی نودکوم ځائې نه به افطارکوي**

**د ترجمة الباب شرح :**

په ظاهره کښې د ترجمة الباب مطلب دا دې چه کوم سړې د خپل کور نه د سفر دپاره اوځي او مياشت د رمضان وی نو هغه لره کوم وخت خوراک څکاک کول پکار دی، يعنی که د روژې نيولو اراده ئې نه وی، د دې جواب دا کيدې شی چه کله د خپل کلي نه اوځی هغه وخت دې خوراک څکاک اوکړی د مبارکې مياشت په رعايت کښې، خو دا څه د خاص مسئلې خبره نه شوه، دويم مطلب د ترجمة الباب دا کيدې شی چه يو سړې لا په کور باندې دې خو د هغه اراده په سفر باندې د تلو ده يعنی تر اوسه پورې ئې سفر نه دې شروع شوې نو هغه په دې صورت کښې روژه ماتولې شی يا نه؟ جواب دا دې چه د دې مدار په طلوع فجر باندې دې که هغه سړې د طلوع فجر په وخت په خپل کور کښې مقيم وی او د صبا راختلو نه پس د هغه سفر شروع شو نو بيا خو افطار کولې شی، د دې نه روستو په دې باندې ځان پوهه کړئ چه :

**ايا د مسافر دپاره د روژې د نيت کولو نه پس افطار کول جائز دی؟**

دلته يوه اختلافی مسئله بله ده، هغه دا چه که مسافر سړې د روژې نيت اوکړی نو ايا د نيت کولو نه پس هم د هغه دپاره افطار جائز دې؟ هم دغه شان که په شروع کښې يو سړې مقيم وو او هغه د روژې نيت کړې وو بيا د ورځې دوران کښې هغه سفر شروع کړو نو په دې دواړو صورتونو کښې په يو صورت کښې د روژې د نيت کولو نه پس هغه دپاره روژه ماتول جائز دی يا نه؟ جواب دا دې چه د احنافو په نزد په دواړو صورتونو کښې افطار ناجائز دې، ([2]) اود امام احمد په نزد په دواړو صورتونو کښې جائز دې، او د باقی دواړو يعنی امام مالک او امام شافعی په نزد په اول صورت کښې افطار جائز دې، په دويم صورت کښې ناجائز، د دې نه روستو حديث الباب واخلئ.

[۲٤۱۲]([3])حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ. ح وحَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَحْيَى الْمَعْنَى، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، وَزَادَ جَعْفَرٌ، وَاللَّيْثُ، حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ أَبِي حَبِيبٍ، أَنَّ كُلَيْبَ بْنَ

[1]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٥٦١) (ضعيف)
[2]) ففي الخسامي : اذا اصبح صائما وهو مسافر او مقيم فسافر لا يباح له الفطر)
[3]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٤٤٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٧، ٣٩٨) سنن الدارمي/الصوم ١٧(١٧٥٤) (صحيح)

ذُهْلِ الْحَضْرَمِيِّ، أَخْبَرَهُ عَنْ عُبَيْدٍ، قَالَ جَعْفَرٌ ابْنُ جَبْرٍ، قَالَ: "كُنْتُ مَعَ أَبِي بَصْرَةَ الْغِفَارِيِّ صَاحِبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفِينَةٍ مِنَ الْفُسْطَاطِ فِي رَمَضَانَ، فَرُفِعَ ثُمَّ قُرِّبَ غَدَاهُ. قَالَ جَعْفَرٌ فِي حَدِيثِهِ: فَلَمْ يُجَاوِزِ الْبُيُوتَ حَتَّى دَعَا بِالسُّفْرَةِ. قَالَ: اقْتَرِبْ. قُلْتُ: أَلَسْتَ تَرَى الْبُيُوتَ؟ قَالَ أَبُو بَصْرَةَ: أَتَرْغَبُ عَنْ سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟". قَالَ جَعْفَرٌ فِي حَدِيثِهِ: فَأَكَلَ.

**ترجمه:** دجعفربن جبيرنه روايت دې چه زه دابوبصره غفاري سره درمضان په مياشت کښې دفسطاط نه دروانيدو په وخت کښې په يوه کيشتئ کښې سور وم مونږ چه کله دفسطاط نه روان شو نود کشتئ لنګر (زنځيرونه) پورته شو مونږ ته دسحر ناشته راغله او مونږه دښاردکورونو دحدونونه لانه وو وتلي چه يودسترخوان ئې راوغوښتو اوماته ئې ووئيل راشه خوراک وکړه ماورته اووئيل اياته دښارداکورونه نه وينې ابوبصره راته اووئيل آيا ته دنبى ﷺ دسنتونه نفرت کوې؟ اوبيائې خوراک شروع کړو.

## شرح حديث:

﴿عن عبيد قال جعفر : ابن جبر﴾عبيد کوم چه د کليب استاذ دې د هغه په باره کښې د مصنف يو استاذ يعنى عبيدالله بن عمر خو دومره وئيلي دى، او د مصنف دويم استاذ جعفر بن مسافر عبيد بن جبر وئيلي دى.

**قوله:** قَالَ: "كُنْتُ مَعَ أَبِي بَصْرَةَ الْغِفَارِيِّ صَاحِبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفِينَةٍ مِنَ الْفُسْطَاطِ فِي رَمَضَانَ، فَرُفِعَ ثُمَّ قُرِّبَ غَدَاهُ. قَالَ جَعْفَرٌ فِي حَدِيثِهِ: فَلَمْ يُجَاوِزِ الْبُيُوتَ حَتَّى دَعَا بِالسُّفْرَةِ. قَالَ: اقْتَرِبْ. قُلْتُ: أَلَسْتَ تَرَى الْبُيُوتَ؟

ابو بصره صحابى، د هغه نوم حميل بن بصرة دې.

عبيد بن جبر فرمائى چه ما يو ځل د ابو بصرة الغفارى رضي الله عنه سره سفر کولو په کشتئ کښې د فسطاط يعنى مصر نه سواره شوې وو (تلل وو اسکندريه ته) د رمضان په مياشت کښې، چه کله په کشتئ کښې کيناستلو او لنګر ئې پاسولې شو دلته ﴿رفع﴾ضمير د غير مذکور طرف ته راجع دې اى رفع مرساها يعنى د کشتئ لنګر، که د اوبو جهاز وى يا کشتي چه کله هغه په ساحل باندې اودرولې شى نو هغه کشتئ لره د ايسارولو دپاره يو ايسارونکې (د لرګى نه جوړ شوې موګې وغيره) وى هغه پکښې واچولې شى هم هغه ته لنګر وئيلې شى. بيا چه کله روانيږى نو هغه ترې لرې کړې شى لکه چه دلته په روايت کښې دى چه کله د کشتئ لنګر اوچت کړې شو، بل احتمال دا دې چه د ﴿رفع﴾ضمير د ابوبصره طرف ته راجع دې يعنى کله چه ابو بصره اوچتولو سره په کشتئ کښې کينولې شو، راوى وائى چه په کشتئ کښې فورا د کيناستلو نه پس د هغوى خوراک ورنزدې کړې شو لا ئې د هغه علاقې د کورونو نه تجاوز هم نه وو کړې چه هغوى دسترخوان راوغوښتلو او ماته ئې اوفرمائيل چه خوراک ته رانزدې شه، ما عرض اوکړو چه ايا بيوت مصر ته نه ګورئ تاسو؟ هغه اوفرمائيل ايا د رسول الله ﷺ د سنت نه اعراض کوى ﴿فاکل﴾يعنى دا فرمائيلو سره هغوى خوراک شروع کړو يعنى ما هم د هغوى سره خوراک اوکړو، لکه چه حضرت په بذل کښې ليکلې دى د مسند احمد د روايت د وجې نه، نو دا مضمون حديث شو.

**په حدیث باندې کلام من حیث الفقه :**

چه د هغې نه په ظاهره معلومیږی چه دې صحابی د روژې نیولو نه پس افطار اوکړو خو مونږ ته د دې خبرې معلومات نشته چه هغه په فسطاط کښې مقیم وو یا مسافر، په دې کښې دوه احتمالات دی او د باب په شروع کښې چه کومه مسئله بیان کړې شوې ده چه په هغې کښې د احنافو دا مذهب بیان کړې شوې دې چه انسان مسافر وی یا مقیم د روژې د نیت کولو نه پس د دواړو دپاره افطار ناجائز دې، نو دا صحابی ابو بصره فسطاط کښې مقیم وو یا مسافر، په دې کښې دواړه احتمالات دی، په دواړو صورتونو کښې د هغه دپاره افطار جائز نه وو د احنافو په نزد، او د شوافعو او مالکیانو په نزد د هغه دپاره په یو صورت کښې افطار جائز وو او په یو صورت کښې ناجائز، یعنی که په فسطاط کښې مسافر وو او د روژې نیت ئې کړې وو نو بیا خو ورله افطار کول جائز وو او که په فسطاط کښې مقیم وو او د روژې نیت ئې کړې وو نو په دې صورت کښې ناجائز وه، حاصل د حدیث دا شو چه د احنافو په دواړو صورتونو کښې او د شافعیه او مالکیه په یو صورت کښې خلاف راځی، البته د امام احمد په دواړو صورتونو کښې موافق دې.

لهذا د دې حدیث توجیه به د احنافو د مسلک مطابق کولې شی چه دا صحابی په فسطاط کښې مقیم وو او دې د فسطاط نه طلوع فجر نه مخکښې بغیر د روژې د نیت کولو نه روان شو او په کشتئ کښې د سوریدو نه پس چه کله مسافر شو او بیوت مصر نه واوختل نو بیا ئې روژه افطار کړه یعنی د افطار اظهار، ځکه چه د روژې نیت خو ئې کړې نه وو، که په دې باندې دا اشکال وی چه په روایت کښې خو دا دی ﴿فلم یجاوز البیوت﴾د دې جواب دا دې چه وړاندې هم په دې روایت کښې دی ﴿الست تری البیوت﴾معلومه شوه چه صورت حال دا وو چه ﴿تجاوزعن البیوت﴾خو شوې وو خو هغه بیوت په کشتئ کښې د کیناستلو نه پس تر اوسه پورې په نظر راتلل. فلا اشکال. او که دا فرض کړې شی چه دا صحابی په فسطاط کښې مسافر وو نو په دې صورت کښې به صرف دا توجیه کافی وی چه هغوی په دې ورځ باندې د روژې نیولو نیت نه وو کړې، او یوه عام توجیه کومه چه په دواړو صورتونو کښې کیدې شی که هغه مقیم وی یا مسافر دا دې چه ممکنه ده د هغه صحابی مسلک هم دا وی کوم چه د امام احمد دې، او دا چه د هغه په نزد د یو حدیث نه ثابت وی چه د هغې په بناء هغوی اوفرمائیل : اترغب عن سنة رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ګینې فی الواقع خو په دې مسئله کښې هیڅ صریح حدیث نه دې نقل شوې. اهـ من المنهل.

والحدیث اخرجه ایضا احمد والبیهقی والدارمی (المنهل)

........

## بَابُ قَدْرِ مَسِيرَةِ مَا يُفْطِرُ فِيهِ

### بيان د مقدار د مسافې د روژې پريښودلو دپاره

[۲۴۱۳]()حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ مَنْصُورٍ الْكَلْبِيِّ، "أَنَّ دِحْيَةَ بْنَ خَلِيفَةَ خَرَجَ مِنْ قَرْيَةٍ مِنْ دِمَشْقَ مَرَّةً إِلَى قَدْرِ قَرْيَةِ عُقْبَةَ مِنَ الْفُسْطَاطِ وَذَلِكَ ثَلَاثَةُ أَمْيَالٍ فِي رَمَضَانَ. ثُمَّ إِنَّهُ أَفْطَرَ وَأَفْطَرَ مَعَهُ نَاسٌ، وَكَرِهَ آخَرُونَ أَنْ يُفْطِرُوا. فَلَمَّا رَجَعَ إِلَى قَرْيَتِهِ، قَالَ: وَاللَّهِ لَقَدْ رَأَيْتُ الْيَوْمَ أَمْرًا مَا كُنْتُ أَظُنُّ أَنِّي أَرَاهُ، إِنَّ قَوْمًا رَغِبُوا عَنْ هَدْيِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابِهِ". يَقُولُ ذَلِكَ لِلَّذِينَ صَامُوا. ثُمَّ قَالَ عِنْدَ ذَلِكَ: اللَّهُمَّ اقْبِضْنِي إِلَيْكَ.

**ترجمه**: د منصور کلبي نه روايت دې فرمائي چه يوځل دحيه بن خليفه رمضان کښې د دمشق دکلي نه په دومره فاصله لرې تلي وو څومره فاصله چه دفسطاط نه عقبه پورې ده اودا درې ميله فاصله ده نوهغه روژه اونه نيوله اودده نورو ملګروهم اونه نيوله ليکن ډيرو عالمانو دفاصلي دکم والي په وجه روژه ماتول مکروه وګنړل، کله چه دحيه خپل کلي ته واپس راغي هغه اووئيل په الله قسم نن ما يوه داسي خبره ليدلي ده دکومي دليدلوچه زما ګمان نه وو، چه خلقو دنبي ﷺ دطريقي نه اودصحابه کرامودطريقي نه نفرت کړې دي ددې نه هغه کسان مراد وو چاچه په سفرکښې روژه نيولي وه ددې نه پس هغه دعا وغوښتله اې ربه ماخپل ځان ته درولي (وفات مې کړې). ر

### شرح حديث:

منصور کلبي وائي چه دحيه بن خليفه رضي الله عنه مشهور صحابي يو ځل د دمشق په يوه کوځه کښې (چه د هغې نوم مزه دې) روان وو او لا دومره لرې نه وو تلي چه څومره فاصله د قريه عقبه او فسطاط ترمينځه ده کومه چه درې ميله ده، راوي فرمائي او دا د رمضان مياشت وه، بيا وړاندې په روايت کښې دي چه تقريبا درې ميله رسيدلو نه پس هغه روژه افطار کړه او د هغه په اصحابو کښې بعض خو افطار کړه او بعض نه ده افطار کړې، بيا چه کله دا صحابي واپس کيدو سره خپلي کوڅي ته راغلو نو وې وئيل چه ما نن د خپلو خلقو نه داسي څيز اوليدو چه د هغې زما د هغوی نه توقع نه وه، د خلقو عجب حال دې چه د رسول الله ﷺ د طريق نه اعراض کوی، د هغه خلقو طرف ته اشاره وه چا چه افطار نه وو کړې، او بيا ئې دعا اوکړه: **اللهم اقبضني اليک**، يعني اوس زه په دې دنيا کښې اوسيدل نه غواړم.

په ترجمة الباب سره د مصنف غرض چه په کوم سفر کښې افطار کولې شي د هغې مقدار مسافت بيانول وو، د ائمه اربعه په نزد د افطار مسافت هم هغه دې کوم چه د قصر في الصلاة دې کوم ته چه سفر شرعي وئيلې شي چه د هغې په مقدار کښې ائمه ثلاث او د احنافو څه نه څه اختلاف دې، او د ظاهريه په نزد صرف درې ميله مسافت دې، او په دې حديث کښې هم صرف درې ميله مذکور دي، پس دا حديث د ظاهريه موافق او د جمهورو خلاف شو، جواب دا دې چه په دې حديث کښې خو دا دی چه درې ميله سفر کولو نه پس

---

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٥٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٩٨٦) (ضعيف)

هغه افطار اوکړو د منتهاء سفر خو په دې حديث کښې بالکل ذکر نشته کيدې شی چه هغه وړاندې ځی، او دا افطار د سفر دوران کښې وی لکه چه په هغه حديث کښې راځی کوم چه په کتاب الصلاة کښې تير شوې دې چه رسول الله ﷺ د مدينې منورې نه روان شو او ذوالخليفه ته رسيدو سره ئې قصر مونځ اوکړو، دلته خو هم دا وئيلې شی چه دا د سفر دوران وه او سفر منزل وو. والحديث اخرجه ايضا احمد والطحاوی والبيهقی. (المنهل)

[٢٤١٤]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ "يَخْرُجُ إِلَى الْغَابَةِ فَلَا يُفْطِرُ وَلَا يَقْصِرُ".

**ترجمه**: دنافع نه روايت دې چه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به غابه (ځنګل) ته تلو اونه به ئې روژه پريخودله اونه به ئې په مونځ کښې قصر کولو.

## بَابُ مَنْ يَقُولُ صُمْتُ رَمَضَانَ كُلَّهُ

### باب دې چه که څوک اووائی ما د رمضان ټولې روژې ونيولې

[٢٤١٥]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ الْمُهَلَّبِ بْنِ أَبِي حَبِيبَةَ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ إِنِّي صُمْتُ رَمَضَانَ كُلَّهُ وَقُمْتُهُ كُلَّهُ". فَلَا أَدْرِي أَكَرِهَ التَّزْكِيَةَ، أَوْ قَالَ: لَا بُدَّ مِنْ نَوْمَةٍ أَوْ رَقْدَةٍ.

**ترجمه**: دابوبکر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام اوفرمائيل په تاسو کښې دې يو کس داسې نه وائی چه ما ټول رمضان روژې نيولې دې اوعبادت مې کړې دې، راوی وائی چه نبی عليه السلام خپل تعريف کؤل بد ګنړلې دې ځکه چه په دې موده کښې خوب لږ اوده شوې هم وی (نو په دې وجه باندې داسې وئيل خلاف واقع هم دی).

### توضيح الحديث

رسول الله ﷺ فرمائی چه په تاسو کښې دې يو سړې دا خبره نه کوی چه ما د پوره رمضان روژې اونيولې او ټول رمضان مې قيام ليل اوکړو، د دې علت وړاندې راوی د خپل طرف نه بيانوی چه ممکنه ده چه رسول الله ﷺ د دې نه په دې وجه باندې منع فرمائيلې وی چه په دې کښې د خپل نفس تزکيه مونډلې شی قال تعالی: فلا تزكوا انفسكم هو اعلم بمن اتقى... او يا ئې په دې وجه منع فرمائيلې وی چه څه نه څه غفلت او خوب مونډلې شی بيا ټول رمضان وئيل څنګه صحيح کيدې شی.

يو ادب خو دا شو کوم چه په دې حديث کښې مذکور دې او مصنف په دې باندې ترجمه قائم کړې ده.

### رمضان وئيل پکار دی يا شهر رمضان:

د لفظ رمضان متعلق په حديث کښې وړاندې يو بل ادب هم راځی چه په هغې باندې امام بخاری ترجمه قائم کړې ده، باب هل يقال رمضان او شهر رمضان؟ يعنی مطلق رمضان وئيلې

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:) (صحيح موقوف)

[2]: سنن النسائي/الصيام ٤ (٢١١١)، (تحفة الأشراف: ١١٦٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٤٠، ٤١، ٤٨، ٥٢) (ضعيف)

شو یا شهر رمضان وئیل پکار دی؟ ځکه چه په یو ضعیف حدیث کښې راځي ﴿لا تقولوا رمضان فان رمضان اسم من اسماء الله تعالى، ولكن قولوا شهر رمضان ﴾امام نسائی رحمه الله هم د دې دپاره یوه ترجمه قائم کړې ده چه په هغې کښې هغوی جواز ثابت کړې دې، په هغې کښې داسې دی "باب الرخصة فى ان يقال لشهر رمضان، رمضان" او بيا ئي د هغې د لاندې د ابوداود والا حديث كوم چه پورته ذكر شو ﴿لا يقولن احدكم صمت رمضان الخ ﴾ذکر کړې دې، چه د هغې نه بغير د اضافت نه د شهر رمضان استعمال ثابتيږي، حافظ فرمائي چه د اصحاب مالک نه په دې کښې کراهت منقول دې، او اکثر شوافعو په قرينه باندې مدار ساتلې دې يعنی که په شهر باندې قرينه موجود وی نو هلته لفظ رمضان بغير د اضافة شهر وئيلې شی او که داسې مقام دې چه هلته رمضان لره په دواړو معنو باندې محمول کيدې شی نو بيا مناسب نه دہ، خو جمهور علماء کرام مطلقا د جواز قائل دی. اه

والحديث اخرجه ايضا احمد من عدة طرق والنسائي (المنهل)

## بَابٌ فِي صَوْمِ الْعِيدَيْنِ

### داخترونو په ورځ د روژې نيولو بيان

يعنی په عيد الفطر او عيد الاضحى دواړو کښې روژه نيول بالاتفاق حرام دی، البته صحت نذر کښې اختلاف دې چه که يو سړې د عيدين د روژې منخته اوکړی نو د احنافو په نزد جائز دې نذر به منعقد شی خو په دې ورځو کښې روژه نيول حرام دی بلکه قضاء به واجب وی، او د جمهورو په نزد نذر نه منعقد کيږی لهذا قضاء به هم واجب نه وی.

[۲۴۱٦] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَزُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، وَهَذَا حَدِيثُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ، قَالَ: شَهِدْتُ الْعِيدَ مَعَ عُمَرَ فَبَدَأَ بِالصَّلَاةِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ صِيَامِ هَذَيْنِ الْيَوْمَيْنِ، أَمَّا يَوْمُ الْأَضْحَى فَتَأْكُلُونَ مِنْ لَحْمِ نُسُكِكُمْ، وَأَمَّا يَوْمُ الْفِطْرِ فَفِطْرُكُمْ مِنْ صِيَامِكُمْ".

**ترجمه**: دابوعبيد نه روايت دې چه زه داخترپه ورځ دعمرفاروق سره عيدګاه ته راغلم نوهغه داخترمونځ دخطې نه مخکښې وركړو اوبيايې اوفرمائيل يقينًا نبی صلی الله علیه وسلم منع فرمائيلې ده دروژو نيولونه په دې دوه ورځو کښې هرچه دلوې اختر ورځ ده نوتاسوبه په دې کښې خپلې قربانۍ غوښې خورئ او هر چه دواړه اختر ورځ ده دادروژو د ماتولو ورځ ده.

### توضيح الحديث

رسول الله صلی الله علیه وسلم علت منع بيان فرمائی په عيدين کښې د روژې نيولو ،هغه دا چه يوم الاضحى د الله پاک د طرف نه د ميلمستيا ورځ ده چه په هغې کښې د قربانۍ غوښه خوړلې شی، په دې ورځ باندې روژه نيولو کښې اعراض عن الضيافة لازم دې، او په يوم الفطر کښې منع په دې وجه ده چه هغه شرعا د افطار ورځ ده، ځنګه چه په رمضان کښې صوم مامور به دې هم دغه شان د دې ورځې وظيفه د صوم ضد يعنى افطار دې او روژه نيول په دې کښې فعل

(۱): صحيح البخاري/الصوم ٦٦ (١٩٩٠)، الأضاحي ١٦ (٥٥٧١)، صحيح مسلم/الصيام ٢٢ (١١٣٧)، سنن الترمذي/الصوم ٥٨ (٧٧١)، سنن ابن ماجه/الصيام ٣٦ (١٧٢٢)، (تحفة الأشراف: ١٠٦٦٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/العيدين ٢ (٥)، مسند احمد (٢٤/١، ٣٤، ٤٠) (صحيح)

شیطان دي.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجة والبیهقی والترمذی وصححه. (المنهل)

[۲٤۱۷](۱)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صِيَامِ يَوْمَيْنِ يَوْمِ الْفِطْرِ وَيَوْمِ الْأَضْحَى، وَعَنْ لِبْسَتَيْنِ الصَّمَّاءِ، وَأَنْ يَحْتَبِيَ الرَّجُلُ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ، وَعَنِ الصَّلَاةِ فِي سَاعَتَيْنِ بَعْدَ الصُّبْحِ وَبَعْدَ الْعَصْرِ".

**ترجمه:** دابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبی علیه السلام منع فرمائیلي ده دروژونیولونه په دوه ورځوکښي یودواړه اختر ورځ ده اوبله دلوي اختر ورځ ده او منع ئې فرمائیلي ده دڅان نه دجامود رانغښتلو، او داحتبا کولونه په یوه جامه کښي احتبادي ته وائي چه څنګنونه او ملا په یوڅادر وتړي اودمونځ کولونه په دوه وختونوکښي دسحردمونځ نه پس اودمازیګردمونځ نه پس.

## بَابُ صِيَامِ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ

### په ایام تشریق کښي د روژونیولوبیان

تحریم صوم د عیدین سره مخصوص نه دې، بعض ایام نور هم دی چه په هغې کښي روژه ممنوع ده یعنی ایام تشریق خو د صوم عیدین تحریم خو متفق علیه دې.

### مذاهب ائمه:

او د ایام تشریق نهی مختلف فیه دې، په دې کښي علامه عینی د علماء کرامو نهه اقوال ذکر کړې دی، چه په هغې کښي مشهور درې دی.

۱: لا یجوز مطلقا عندنا والشافعی فی الجدید.

۲: عند مالک واحمد یجوز للمتمتع والقارن وبه قال الشافعی فی القدیم.

۳: یجوز مطلقا عند ابی اسحاق من الشافعیة وبعض اهل العلم، دا مذاهب په کتاب الحج کښي تیر شوي دی هغه دې اوکتلې شي.

### د ایام تشریق وایام نحر تعیین:

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه د ایام تشریق تعداد او تعیین کښې د علماء کرامو فی الجمله اختلاف دې او د ناقلین مذاهب د هغوی نه زیات کما یظهر ذلک بالرجوع الی شروح الحدیث. ومنها فی الاوجز، خو تحقیق دا دې کما فی الابواب والتراجم چه د ایام تشریق مصداق د جمهورو ومنهم الائمة الاربعة کما فی الاوجز عن کتب فروعهم درې ورځې دی، یولسمه. دولسمه او دیارلسمه من ذی الحجة. اهـ او د ایام نحر مصداق د جمهورو په نزد درې دی لسمه ورځ او دوه ورځې د هغې نه روستو، لهذا لسم تاریخ د ذی الحجة په ایام نحر کښي داخل دې په ایام تشریق کښې غیر داخل، او دیارلسم د ذی الحجه د ایام تشریق نه دې نه د ایام نحر نه، او په مینځ کښې د دواړو شمار په دواړو کښې دې، خو د شوافعو د

(۱): صحیح البخاري/الجمعة ٦ (٨٨٤)، وجزاء الصيد ٢٦ (١٨٦٤)، والصوم ٦٨ (١٩٩٦)،صحیح مسلم/الصوم ٢٢ (٨٢٧)، سنن الترمذي/الصوم ٥٨ (٧٧٢)، (تحفة الأشراف: ٤٤٠٤)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصيام ٣٦ (١٧٢٢)، مسند احمد (٣/٣٤، ٩٦)، سنن الدارمي/الصوم ٤٣ (١٧٩٤) (صحيح)

ایام نحر په تعداد کښې اختلاف دې د هغوی په نزد هغه څلور ورځې دی دیارلسم د ذی الحجه هم په دې کښې داخل دی.

[۲۴۱۸](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْهَادِ، عَنْ أَبِي مُرَّةَ مَوْلَى أُمِّ هَانِئٍ، أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو عَلَى أَبِيهِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ فَقَرَّبَ إِلَيْهِمَا طَعَامًا، فَقَالَ: "كُلْ. فَقَالَ: إِنِّي صَائِمٌ. فَقَالَ عَمْرٌو: كُلْ، فَهَذِهِ الْأَيَّامُ الَّتِي كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا بِإِفْطَارِهَا وَيَنْهَانَا عَنْ صِيَامِهَا. قَالَ مَالِكٌ: وَهِيَ أَيَّامُ التَّشْرِيقِ".

**ترجمه:** دام هاني دازاد کړې شوي غلام ابومره نه روایت دې چه هغه د عبدالله بن عمر رضی الله عنه دهغه پلار عمرو بن العاص ته لاړل هغه مونږ دواړوته خوراک پیش کړو عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما ته ئې اووئیل خوره زما پلار اووئیل زماروژه ده عمرو اووئیل اوخوره داهغه ورځې دي چه نبی علیه السلام به مونږ ته په دې کښې دروژو ماتولوحکم کولو او په دې ورځوکښې به ئې مونږ دروژو نیولونه منع کولو مالك وائی دا دایام التشریق ورځې وي.

## د ایام تشریق وجه تسمیه:

د ایام تشریق په وجه تسمیه کښې څو اقوال دی:

۱: شرق په معنی د نشر فی الشمس څکه چه په دې ورځو کښې د قربانئ غوښې خلق په ګرمئ کښې خوروی د اوچولو دپاره،

۲: دویم قول ایام تشریق ورته په دې وجه وئیلې شی چه د قربانئ د څاروی نحر د شروق شمس نه روستو وی.

۳: دا تسمیه د صلاة عید په اعتبار سره ده کوم چه د شروق شمس په وخت باندې وی.

۴: تشریق په معنی د تکبیر کومه چه په دې ورځو کښې د فرض مونځونو نه روستو وئیلې شی. اهـ من الابواب والتراجم، والحدیث اخرجه مالك وابن خزیمة والحاکم وصححاه، والنسائی وابن المنذر والبیهقی والدارمی. (المنهل)

[۲۴۱۹](2) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا وَهْبٌ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَلِيٍّ ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ مُوسَى بْنِ عَلِيٍّ، وَالْإِخْبَارُ فِي حَدِيثِ وَهْبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي، أَنَّهُ سَمِعَ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَوْمُ عَرَفَةَ وَيَوْمُ النَّحْرِ وَأَيَّامُ التَّشْرِيقِ عِيدُنَا أَهْلَ الْإِسْلَامِ وَهِيَ أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ".

**ترجمه:** دعقبة بن عامر نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام اوفر مائیل د عرفې ورځ اودلوئی اختر ورځ اودتشریق ورځې دمسلمانانو داختر ورځې دي اوداورځې دخوراك څښاك دپاره دي.

## صوم عرفه باره کښې اختلاف روایات ومذاهب علماء:

په دې حدیث کښې د یوم النحر او ایام تشریق سره یوم عرفه هم په ایام منهیه کښې شمار

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۰۷۵۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ٤٤(۱۳۷)، مسند احمد (۱۹۷/٤)، سنن الدارمي/الصوم ٤٨ (۱۸۰۸) (صحيح)

(2): سنن الترمذي/الصوم ٥٩ (۷۷۳)، سنن النسائي/المناسك ۱۹٥ (۳۰۰۷)، (تحفة الأشراف: ۹۹٤۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱٥۲/٤)، سنن الدارمي/الصوم ٤۷ (۱۸۰٥) (صحيح)

کړې شوې ده، د بعض اهل علم مذهب خو هم دا دې هغوی دا وائی چه په دې ورځ باندې رسول الله ﷺ په حجة الوداع کښې روژه نه وه نیولې ځکه چه دا د اهل موقف د اختر ورځ ده، د دې قول تائید د هغه حدیث نه کیږی، او د بعض روایاتو نه د دې ورځې د روژې کراهت ثابتیږی خاص په عرفات کښې یعنی د حاجی دپاره، پس امام ترمذی رحمه الله باب تړلې دې، ما جاء فی کراهیة صوم یوم عرفة بعرفة... او په هغې کښې ئې دا حدیث ذکر کړې دې (عن ابن عباس ان النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افطر بعرفة الحدیث. امام ترمذی رحمه الله فرمائی: والعمل علی هذا عند اکثر اهل العلم یستحبون الافطار بعرفة لیتقوی به الرجل علی الدعاء وقد صام بعض اهل العلم یوم عرفة بعرفة. اهـ تردې چه د یحیی بن سعید انصاری مذهب ئې دا لیکلې دې چه د هغوی په نزد د حاجی دپاره یوم عرفه کښې افطار واجب دې او د بعض روایاتو نه مطلقا د دې روژې استحباب معلومیږی لکه چه مشهور حدیث دې "ان النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال صیام یوم عرفة انی احتسب علی الله ان یکفر السنة التی بعده والسنة التی قبله)... اخرجه الترمذی من حدیث ابی قتادة واخرجه مسلم مطولا،

معلومه شوه چه د صوم یوم عرفه په باره کښې درې قسم روایات دی:

۱: مطلقا استحباب، ۲: مطلقا کراهت، ۳: کراهة للحاج،

د ائمه اربعه تقریبی طور باندې مذهب په دې مسئله کښې دا دې چه د غیر حاجی دپاره مستحب ده مطلقا، او د حاجی دپاره استحباب دې خو په شرط د عدم ضعف، خو ضعف خو څه نه څه راځی، لهذا د دې حاصل عدم استحباب للحاج شو،

ثم رایت الابواب والتراجم ۱۵۴/۳: ففیه فی کتاب الحج قال ابن الهمام: صوم عرفة لغیر الحاج مستحب وللحاج ان کان یضعفه عن الوقوف والدعوات فالمستحب ترکه، وقیل یکره وهی کراهة تنزیهیة. اهـ وقال ابن حجر صومه للحاج خلاف الاولی. اهـ ای وان لم یضعف کما قال النووی وهو الاصح عند الشافعیة، ومکروه عند المالکیة کما قال الدردیر وقال الموفق ترکه افضل (ای عند احمد) لحدیث ام الفضل. اهـ وفیه فی کتاب الصوم ۲۲۰/۳ وتقدم اختلاف الائمة الاربعة فی صوم عرفة للحاج، واما لغیر الحاج فاتفقت الائمة الاربعة علی ندبه بل قال الامام الشافعی بتاکده کما فی الاوجز.

اوس زمونږ په وړاندې درې مختلف روایات دی، حدیث ابی قتاده تکفیر سنتین والا حدیث، حدیث عقبه د کوم چه بیان شروع دې، او حدیث ابی هریره "نهی رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عن صوم یوم عرفة بعرفات" اخرجه احمد وغیره، وذکره الترمذی بقوله وفی الباب، یعنی د یو حدیث نه مطلقا استحباب او د دویم نه مطلقا منع او د دریم حدیث نه جمع بین الروایتین صورت معلوم شو یعنی د حاجی دپاره منع او د غیر حاجی دپاره استحباب. کذا فی البذل عن الشوکانی.

والحدیث اخرجه ایضا النسائی والحاکم والبزار والبیهقی والدارمی والترمذی. (المنهل)

## بَابُ النَّهْیِ أَنْ یُخَصَّ یَوْمُ الْجُمُعَةِ بِصَوْمٍ

### باب دې په بيان د روژې نيولو دپاره د جمعې د ورځې د خاص کولو د مما نعت کښې

### صوم جمعه بانفراده کښې مذاهب ائمه :

د ترجمة الباب تعلق د صوم يوم الجمعة منفردا سره دې چه د هغې د حکم تصريح مصنف په ترجمة الباب کښې خپله ذکر فرمائيلې دې يعنی کراهت او منع، د شوافعو راجح قول هم دا دې او هم دغه شان د امام احمد هم، (مصنف هم حنبلی دې د شيخ په نزد) او د امام مالک په نزد تخصيص يوم جمعة د روژې سره بغير د کراهت نه جائز بلکه مستحسن ده، د اکثر فروع حنفيه نه هم دا معلوميږی ([1]) وفی بعض کتبنا الکراهة، قال مالک فی الموطاء : لم اسمع احدا من اهل العلم والفقه ومن يقتدى به ينهى عن صيام يوم الجمعة وصيامه حسن. اهـ البته امام ابويوسف رحمه الله صرف د جمعې ورځې روژې ته خلاف احتياط وئيلې ده، د احنافو او مالکيانو استدلال د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د حديث نه دې([2]). کان رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يصوم من کل شهر ثلاثة ايام وقلما کان يفطر يوم الجمعة، رواه النسائی والترمذی وحسنه، وابن حبان وصححه وفی المنهل قال النووی: السنة مقدمة علی ما راه مالک وقد ثبت النهی عن صوم يوم الجمعة، ومالک معذور فی انه لم يبلغه النهی.

[۲۴۲۰] ([3]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَصُمْ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ إِلَّا أَنْ يَصُومَ قَبْلَهُ بِيَوْمٍ أَوْ بَعْدَهُ".

**ترجمه:** دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه پيغمبر پاک صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي روژه دې نه نيسي يوکس په تاسو کښې په ورځ دجمعې باندې مگر هغه چه يوه ورځ مخکښې ددې نه روژه اونيسي يايوه ورځ وروسته ددې نه روژه اونيسي.

### توضيح الحديث

دا حديث په کراهة تخصيص باندې دال دې لکه چه د مصنف په ترجمة الباب کښې دی، امام ترمذی رحمه الله اولا ما جاء فی صوم الجمعة... ترجمه قائم کولو سره په دې کښې هغه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه هغه حديث ذکر فرمائيلې دې د کوم نه چه مالکيانو او احنافو استدلا ل کړې دې کوم چه اوس پورته ذکر شو، د دې په باره کښې امام ترمذی رحمه الله فرمائی : حديث عبدالله حديث حسن غريب، او بيا بله ترجمه ما جاء فی کراهية صوم يوم الجمعة وحده، قائم کولو سره د ابوهريره رضی الله عنه دا حديث زيات قوی دې او کيدل هم پکار دی ځکه چه دا حديث متفق عليه دې، د علامه عينی ميلان هم د نهی طرف ته دې، او هغه د احنافو او

---

[1] لکه در مختار، شامی، بحر الرائق، خانيه او صاحب بدائع فرمائی، کره بعضهم صوم يوم الجمعة بانفراده وکذا صوم يوم الاثنين والخميس وقال عامتهم انه مستحب لان هذه الايام من الايام الفاضلة، فکان تعظيما بالصوم مستحبا. اهـ من الاوجز ۹۸/۳.

[2] خو په دې استدلال باندې اشکال دې کما سياتي.

[3] صحيح مسلم/الصيام ۲۴ (۱۱۴۴)، سنن الترمذي/الصوم ۴۲ (۷۴۳)، سنن ابن ماجه/الصيام ۳۷ (۱۷۲۳)، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۰۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصوم ۶۳ (۱۹۸۵)، مسند احمد (۴۵۸/۲) (صحيح)

مالکیانو په استدلال باندې (د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د حدیث نه) رد کړې دې چه د دې نه تخصیص یوم باندې استدلال صحیح نه شی کیدې، هغه به د جمعې نه یوه ورځ مخکښې یا روستو شاملولو، په کوکب کښې د حضرت ګنګوهی رائې په دې باره کښې دا ده چه د یوم جمعه تخصیص د صوم سره مکروه خو نه دې خو خلاف اولی دې مناسب نه دې، او په الحل المفهم (د حضرت ګنګوهی افادات په صحیح مسلم باندې) کښې دا دې، د کومو ورځو تخصیص چه د رسول الله ﷺ نه ثابت دې لکه یوم الاثنین، یوم الخمیس، یوم عرفه، یوم عاشوراء هغه خو مشروع او مستحب دی، او د کومو ورځو تخصیص چه د هغه نه ثابت نه دې یا ئې د هغې د تخصیص نه منع فرمائیلې ده د هغې تخصیص مکروه دې، پس که د جمعې د ورځې روژه څوک د خصوصیت جمعه د وجې نه نیسی نو دا مکروه ده، خو که خصوصیت د وجې نه نه وی بلکه یوم من الایام په حیثیت سره ئې یا ئې د خپل څه سهولت او مصلحت د وجې نه نیسی نو هیڅ باک نشته. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم وابن ماجة واحمد والحاکم والبیهقی والترمذی وقال حدیث حسن صحیح. (المنهل)

## بَابُ النَّهْيِ أَنْ يُخَصَّ يَوْمُ السَّبْتِ بِصَوْمٍ

### د روژې نیولو دپاره د خالی د ورځې دخاص کولو ممانعت بیان

### په صوم یوم السبت کښې د مذاهب ائمه تحقیق:

په درمختار کښې دی، والمندوب کایام البیض من کل شهر ویوم الجمعة ولو منفردا او عرفة ولو کان لم یضعفه، والمکروه تحریما کالعیدین، وتنزیها کعاشوراء وحده، وسبت وحده. اهـ د دې نه معلومه شوه چه زمونږ په نزد د یوم السبت تخصیص د روژې سره مکروه تنزیهی دې، هم دغه شان د شافعیه په نزد دلته هم مکروه دې ففی شرح الاقناع ۲۲۶/۱ ویکره افراد یوم الجمعة بالصوم لقوله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لا یصم احدکم یوم الجمعة الا ان یصوم یوما قبله او یوما بعده وکذا افراد السبت او الاحد لخبر "لا تصوموا یوم السبت الا فیما افترض علیکم" ولان الیهود تعظیم یوم السبت والنصاری یوم الاحد. اهـ او هم دغه شان د حنابله په نزد هم مکروه دې، پس په الروض المربع ۱۸۷ کښې دی "وکره افراد یوم الجمعة لقوله ﷺ لا تصوموا یوم الجمعة الا قبله یوم او بعده یوم. متفق علیه... وافراد یوم السبت لحدیث لا تصوموا یوم السبت الا فیما افترض علیکم. رواه احمداهـ د دې نقلونو نه معلومه شوه چه د ائمه ثلاث په نزد د یوم السبت تخصیص مکروه دې، په فروع مالکیه کښې مونږ ته دا مسئله ملاؤ نه شوه البته په منهل کښې د ائمه ثلاثه مذهب کراهت لیکلو نه پس فرمائی: وقال مالک وجماعة لا یکره صومه ولو منفردا، وقالوا حدیث عبدالله بن بسر منسوخ، وعلی تقدیر عدم نسخه هو ضعیف لا تقوم به حجة فان مالکا قال: هذا الحدیث کذب، الی اخر ما ذکر. ([1])

---

[1]) وفیه اعل بالاضطراب: فانه روي عن عبدالله بن بسر عن اخته الصماء کما في المصنف وروي عن عبدالله عن النبي صَلَّي اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عند ابن حبان، الي ان قال: لکن لا دلیل علي النسخ، وان ارادوا ان ناسخه حدیث ام سلمة المتقدم فلیس بمسلم لما علمت من ان النهي عنه محمول علي صومه مفرداً والجمع متي امکن کان المصیر الیه ............٩٦

[۲۴۲۱] (¹) حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حَبِيبٍ. ح وحَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ قُبَيْسٍ مِنْ أَهْلِ جَبَلَةَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، جَمِيعًا عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ السُّلَمِيِّ، عَنْ أُخْتِهِ، وَقَالَ يَزِيدُ الصَّمَّاءِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَصُومُوا يَوْمَ السَّبْتِ إِلَّا فِي مَا افْتُرِضَ عَلَيْكُمْ وَإِنْ لَمْ يَجِدْ أَحَدُكُمْ إِلَّا لِحَاءَ عِنَبَةٍ أَوْ عُودَ شَجَرَةٍ فَلْيَمْضَغْهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا حَدِيثٌ مَنْسُوخٌ.

**ترجمه:** دعبدالله بن بسرسلمي نه روايت دې فرمائی چه مادخپلي خورنه اوريدلي دي چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی تاسو د شنبی (خالي) په ورځ روژه مه نيسئ مګرفرض روژه آوکه چرې په تاسوکښي يوکس ته دهغتې په ورځ څه ملاونشی نو د انګورو پاڼړې يا لرګي دي اوجويوي (اوروژه دي ماته کړي)، امام ابوداود فرمائی چه دا حديث دجويريه په حديث باندې کوم چه راروان دې منسوخ شوې دې.

## توضيح الحديث

عبدالله بن بصر د خپلي خور صماء بنت بسر نه روايت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د يوم السبت روژه مه نيسئ سوا د فرض روژې نه، لکه صوم رمضان يا صوم نذر وکفاره وغيره، او وې فرمائيل چه که په تاسو کښې چاته څه څيز ملاؤ نه شی د روژې د ماتولو دپاره سوا د انګور د پوستکی نه يا د يو اونې د پوستکی نه پس پکار ده چه هم هغه دې اوژوی او تير دې کړی. (د دې دپاره چه که روژه ئې نيولې هم وی نو چه باقی پاتې نه شی)

قال ابوداود : هذا الحديث منسوخ

**حديث الباب کوم چه د جمهورو دليل دې په هغې باندې د مصنف او امام مالک نقد :**

د دې حديث نه د يوم السبت د روژې کراهت معلوميږی لکه جمهور علماء او ائمه ثلاث مذهب دې چه په هغې کښې احناف هم دی خو مصنف په دې مسئله کښې د جمهورو سره نه دې هغه د جواز تخصيص قائل دې هم په دې وجه مصنف په دې حديث باندې نقد کړې دې، يو دا چه دا منسوخ دې، بل نقد په وړاندې باب کښې د امام مالک رحمه الله نه نقل کړې دې (قال ابوداود قال مالک هذا کذب) مونږ په خپله عربی حاشيه کښې دا خبره ليکلې ده چه دا دواړه نقدونه صحيح نه دی، امام ترمذی رحمه الله د دې حديث نه روستو فرمائی : هذا حديث حسن ومعنى الكراهية في هذا ان يختص الرجل يوم السبت. اهـ امام ترمذی رحمه الله د علت کراهت طرف ته اشاره فرمائی چه په دې کښې تشبه باليهود ده ځکه چه هغوی د يوم السبت د تعظيم قائل دی او هغه ورځ په روژه نيولو کښې د دې تعظيم دې، علامه شامی هم علت کراهت هم دا ليکلې دې، کوم خلق چه دې حديث ته منسوخ وائی لکه امام ابوداود او امام مالک کيدې شی چه د هغوی استدلال د ام سلمه رضي الله عنها د هغه حديث نه دې چه د هغې نسائی

---

ل ........اولي من النسخ، وقول مالك "انه كذب لم يتبين وجهه ولما اضطرابه بهذه الكيفية فلا يقدح في صحة الحديث" لانه دائر بين الصحابة وكلهم عدول، علي ان الحديث قد صححه ابن السكن والحاكم وقال علي شرط البخاري اذا علمت هذا التعلم ان القول بكراهة صيامه مفردا هو الراجح. اهـ

¹): سنن الترمذي /الصوم ۴۳ (۷۴۴)، سنن ابن ماجه /الصيام ۳۸ (۱۷۲۶)، (تحفة الأشراف: ۱۵۹۱۰، ۱۸۹۶۴، ۱۹۲۵۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۳۶۸)، سنن الدارمي /الصوم ۴۰ (۱۷۹۰) (صحيح)

او بيهقي وغيره تخريج كړې دي چه د هغې مضمون دا دې : كريب فرمائي چه بعض صحابه كرامو زه ام سلمه رضي الله عنها ته اوليږلم د دې معلومات دپاره چه په كومو ورځو كښې به رسول الله ﷺ په كثرت سره روژې نيولې، نو هغوى اوفرمائيل يوم السبت والاحد، او دا چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دا دواړه د مشركانو اخترونه دى فانا اريد ان اخالفهم، خو د دې حديث نه استدلال صحيح نه دې ځكه چه جمهور كوم چه د كراهت قائل دى هغه د كراهة منفردا قائل دى د مطلقا كراهة قائل نه دى، هغه د كراهة منفردا قائل دى د مطلقا كراهة قائل نه دى، او په دې حديث كښې افراد نشته بلكه د يوم السبت سره يوم الاحد هم دې، لهذا د دې حديث نه د امام مالك وغيره استدلال صحيح نه دې.

خو يو ځيز بل دې قابل تامل هغه دا چه حديث ام سلمه رضي الله عنها نه دا مستفاد كيږى چه د اهل كتاب مخالفت روژه نيولو كښې دې چه د هغې مطلب دا شو چه د هغوى موافقت او تشبه وترك صوم كښې دې، وهكذا يستفاد من كلام بعض الفقهاء... هغوى وائى د اختر خو دا حكم دې چه په دې كښې روژه كينځودلې شى، لهذا تشبه ترك صوم كښې موندلې شى نه په صوم كښې. فتدبر. وحديث الباب اخرجه ايضا احمد والنسائى والدارمى وابن ماجة والحاكم وصححه وقال على شرط البخارى، واخرجه البيهقى وابن حبان والطبرانى وابن السكن، وصححه الترمذى وقال حديث حسن. (المنهل)

## بَابُ الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

### باب د خيالى د ورځې د روژې نيولو د اجازت بيان

### د باب د امام مالك په تائيد كښې دې :

يعنى يواځې د خالى د ورځې د روژې جواز چه د هغې په ائمه كرامو كښې صرف امام مالك قائل دې، د مصنف ميلان هم دې طرف ته دې، وقد اشرنا اليه فى الباب السابق، بيا د دې باب د لاندې مصنف دوه احاديث راوړې چه د هغې نه مخكښې دا دې :

[۲٤۲۲](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ. ح وحَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ حَفْصٌ الْعَتَكِيُّ، عَنْ جُوَيْرِيَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "دَخَلَ عَلَيْهَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَهِيَ صَائِمَةٌ. فَقَالَ: أَصُمْتِ أَمْسِ؟ قَالَتْ: لَا. قَالَ: تُرِيدِينَ أَنْ تَصُومِي غَدًا؟ قَالَتْ: لَا. قَالَ: فَأَفْطِرِي".

**ترجمه:** دجويريه بنت حارث نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام دجمعي په ورځ زمونږ كره راغې اودهغې روژه وه جويريه رضي الله عنها ته ئې اوفرمائيل آيا پرون دې هم روژه نيولې وه هغې عرض اوكړونه نبى عليه السلام ورته اوفرمائيل آيا صبادې دروژې نيولو اراده شته هغې اووئيل نه، نبى عليه السلام ورته اوفرمائيل روژه ماته كړه.

[1]: صحيح البخاري/الصوم ٦٣ (١٩٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٨٩)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ (٢٧٥٤)، مسند احمد (٦/٣٢٤، ٤٣٠) (صحيح)

### د حديث د ترجمة الباب سره عدم مطابقة او د هغې تحقيق :

په دې حديث کښې رسول الله ﷺ سيده جويريه ﷺ له يواځې د جمعې د ورځې د روژې نه منع فرمائيلې ده مګر دا چه وړاندې ورځ يعنې د خالي په ورځ باندې هم روژه اونيسي، په دې صورت کښې رسول الله ﷺ هغه ته د روژې اجازت ورکړو.

د دې مضمون حديث نه واضحه شوه چه دا حديث په دې باب کښې نه دې کيدل پکار بلکه باب النهی ان يخص يوم الجمعة بصوم کښې کيدل پکار دی لکه امام بخاری رحمه الله هم داسې کړې دی يا بيا باب سابق چه په هغې کښې منع راغلې ده په هغې کښې کيدل پکار دی نه د رخصت په باب کښ، او حضرت په بذل کښې ليکلې دی. او په بعض نسخو کښې دی هم دغه شان، لهذا په دې باب کښې د دې حديث ذکر فی غير محله دې، د دې نه روستو په دې باب کښې دوه مستقل ﴿حدثنا﴾ نور راروان دی خو په هغې کښې مصنف بل يو نوې حديث نه دې ذکر کړې بلکه په باب سابق کښې چه د صماء بنت بسر حديث تير شوې دې هم په هغې باندې ئې کلام کړې دې پس په هغې باندې ئې دوه نقدونه ذکر کړې دی يو د ابن شهاب د طرف نه چه دا حديث، حديث حمصی دې، دويم د امام مالک د طرف نه، قال مالک : هذا کذب... يو دريم نقد هم دې کوم چه اوزاعی نقل کړې دې چه ما دا حديث د خلقو نه قصدا پټولو (يعنې باوجود ما سره د کيدو به ما دا نه روايت کولو) تردې چه ما اوکتل چه دا حديث خو هر ځائې کښې خور شوې دې.

[٢٤٢٣](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ اللَّيْثَ، يُحَدِّثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، "أَنَّهُ كَانَ إِذَا ذُكِرَ لَهُ أَنَّهُ نُهِيَ عَنْ صِيَامِ يَوْمِ السَّبْتِ، يَقُولُ ابْنُ شِهَابٍ: هَذَا حَدِيثٌ حِمْصِيٌّ".

**ترجمه:** د وهب بن ليث نه روايت دې فرمائی چه کله به ابن شهاب ته اووئيلې شول چه دهفتې په ورځ دروژونيولونه منع راغلې ده نوهغه به وئيل داحديث حمصي يعنې کمزورې دې اوددې حديث نه اهل مدينه خبر نه دې.

[٢٤٢٤](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، قَالَ: مَا زِلْتُ لَهُ كَاتِمًا حَتَّى رَأَيْتُهُ انْتَشَرَ يَعْنِي حَدِيثَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ هَذَا فِي صَوْمِ يَوْمِ السَّبْتِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مَالِكٌ: هَذَا كَذِبٌ.

**ترجمه:** اوزاعي نه روايت دې فرمائی چه مابه دعبد الله بن بسر حديث پټ ساتلو تردې چه ماوليدل هغه حديث مشهور شو مالك وئيلي دي چه داحديث دروغ دي.

### د "هذا حديث حمصی" شرح :

دا چه ابن شهاب فرمائی : هذا حديث حمصی... د دې په شرح کښې مختلف اقوال دی په دې باندې خو ټول متفق دی چه د ابن شهاب غرض په دې سره تضعيف حديث دې اوس دا چه د ضعف څه وجه ده، صاحب عون المعبود ليکلې دی چه د دې حديث په سند کښې دوه راويان حمصی دی ثور بن يزيد، خالد بن معدان او دا دواړه متکلم فيه دی، حضرت په بذل

(1): تفرد به أبو داود، انظر حديث (٢٤٢١)، (تحفة الأشراف: ١٥٩١٠) (صحيح)
(2): تفرد به أبو داود، انظر حديث (٢٤٢١)، (تحفة الأشراف: ١٥٩١٠) (صحيح)

کښې دا خبره رد کړې ده وتبعه صاحب المنهل چه دا خبره صحيح نه ده چه دا دواړه راويان متکلم فيه دی، بلکه دواړه ثقه دی، علامه سندهی فرمائی چه د ضعف وجه دا ده چه په دې حديث کښې چه کومه نهی راغلې ده د هغې وجه فهم ته نه راځی څه ده، هم دغه شان بعض دې حديث ته منسوخ وائی او بعض ضعيف. اه زما په دې باندې دا اشکال دې چه د نهی وجه خو معلومه ده چه په دې کښې تشبه باليهود دې، زه په دې پوهه شوې يم چه د ابن شهاب غرض دا دې چه د دې حديث شهرت د حمص خلقو کړې دې په دې وجه دا حديث مشهور شو ګينې اهل عراق او اهل حجاز وغيره دا نه پيژندلو، د دې معنی فی الجمله تائيد د اوزاعی په کلام کښې دې ﴿ما زالت له کاتما حتی رايته انتشر﴾نو دا شهرت او اشاعت دهغوی اهل حمص کړې وو، اوزاعی هم شامی دې اوحمص دشام يو ښهردې.والله تعالی اعلم
والحديث اخرجه ايضا احمد والبخاری والنسائی وابو نعيم والبيهقی. (المنهل)

## بَابٌ فِي صَوْمِ الدَّهْرِ تَطَوُّعًا

### باب دې دهميشه د نفلی روژو نيولوپه بيان کښې

مصنف په دې باب کښې د منع روايات ذکر کړې دی، پس احناف د صوم الدهر د کراهت قائل دی او هم دغه شان اسحاق بن راهويه او ظاهريه، او ابن حزم خو د حرمت قائل دی، خو جمهور علماء کرام د دې د کراهت قائل نه دی، هغوی د صوم الدهر د جواز قائل دی، هغوی وائی: په احاديثو کښې چه کومه نهی راغلې ده هغه د ايام خمسه د شمول په صورت کښې مطلقا نه ده.

[٢٤٢٥](١)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ غَيْلَانَ بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْبَدٍ الزِّمَّانِيِّ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ تَصُومُ؟ فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قَوْلِهِ. فَلَمَّا رَأَى ذَلِكَ عُمَرُ، قَالَ: رَضِينَا بِاللَّهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا، نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ غَضَبِ اللَّهِ وَمِنْ غَضَبِ رَسُولِهِ. فَلَمْ يَزَلْ عُمَرُ يُرَدِّدُهَا حَتَّى سَكَنَ غَضَبُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ بِمَنْ يَصُومُ الدَّهْرَ كُلَّهُ؟ قَالَ: لَا صَامَ وَلَا أَفْطَرَ. قَالَ مُسَدَّدٌ: لَمْ يَصُمْ وَلَمْ يُفْطِرْ، أَوْ مَا صَامَ وَلَا أَفْطَرَ، شَكَّ غَيْلَانُ. قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ بِمَنْ يَصُومُ يَوْمَيْنِ وَيُفْطِرُ يَوْمًا؟ قَالَ: أَوَيُطِيقُ ذَلِكَ أَحَدٌ؟ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَكَيْفَ بِمَنْ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا؟ قَالَ: ذَلِكَ صَوْمُ دَاوُدَ. قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَكَيْفَ بِمَنْ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمَيْنِ؟ قَالَ: وَدِدْتُ أَنِّي طُوِّقْتُ ذَلِكَ. ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ثَلَاثٌ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ وَرَمَضَانُ إِلَى رَمَضَانَ، فَهَذَا صِيَامُ الدَّهْرِ كُلِّهِ، وَصِيَامُ عَرَفَةَ إِنِّي أَحْتَسِبُ عَلَى اللَّهِ أَنْ يُكَفِّرَ السَّنَةَ الَّتِي قَبْلَهُ وَالسَّنَةَ الَّتِي بَعْدَهُ، وَصَوْمُ يَوْمِ عَاشُورَاءَ إِنِّي أَحْتَسِبُ عَلَى اللَّهِ أَنْ يُكَفِّرَ السَّنَةَ الَّتِي قَبْلَهُ".

**ترجمه:** دابوقتاده ده نه روايت دې فرمائی چه يو کس دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او تپوس ئې اوکړو چه ته په کومه ورځ روژه نيسې ددې په اوريدوسره نبی ﷺ غصه شو کله چه عمر فاروق نه دنبی ﷺ غصه اوليدله نو وئې وئيل راضي يو مونږ د الله تعالی نه چه

(١): صحيح مسلم/الصيام ٣٦ (١١٦٢)، سنن الترمذي/الصوم ٥٦ (٧٦٧)، سنن النسائي/الصيام ٤٢ (٢٣٨٥)، سنن ابن ماجه/الصيام ٣١ (١٧٣٠)، (تحفة الأشراف: ١٢١١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٥/٥، ٢٩٦، ٢٩٧، ٢٩٩، ٣٠٣، ٣٠٨، ٣١٠) (صحيح)

هغه زمونږه رب دې او په اسلام باندې چه هغه زمونږه دين دې اوپه محمد باندې چه هغه زمونږ نبی د پناه غواړوپه الله باندې دغضب دالله نه اودغضب درسول دهغه نه او عمر به دا كلمات بيا بيا تكرارول تردې چه دنبنبی ﷺ غصه ختمه شوه نوده اووئيل اې دالله رسوله دهغه كس متعلق څه حكم دې څوك چه هميشه روژې نيسي نبی ﷺ اوفرمائيل ده خونه افطار اوكړو اونه ئې روژه اونيوله، اودمسدد په روايت كښې لم يصم اولم يفطر الفاظ ذكر شوی دی بياعمر رضی اللہ عنہ اووئيل اې دالله رسوله دهغه كس په باره كښې څه حكم دې څوك چه دوه ورځې روژې نيسي اويوه ورځ ئې نه نيسي نبی ﷺ اوفرمائيل اياڅوك دداسې عمل طاقت لري؟ عمر رضی اللہ عنہ عرض اوكړو اې دالله رسوله دداسې كس په باره كښې څه حكم دې څوك چه يوه ورځ روژه نيسي اويوه ورځ ئې نه نيسي؟ نبی ﷺ اوفرمائيل دا د داود ﷺ روژه ده بياعمر فاروق عرض اوكړو اې دالله رسوله دهغه كس په باره كښې څه حكم دې څوك چه يوه ورځ روژه نيسي اودوه ورځې نه نيسي؟ نبی ﷺ اوفرمائيل داسې روژې زماهم خوښې دې چه زه ددې دپاره قوت حاصل كړم بيانبی ﷺ اوفرمائيل چه په هره مياشت كښې درې روژې نيول ديورمضان نه دبل رمضانه پورې دروژو نيولو برابر اجرلري نودا داسې ده لكه چاچه ټول عمر روژې نيولې وي اود عرفې په ورځ روژه دالله نه زه اميدارم چه دده ديوكال مخكنی اوديوكال وروستنې ګناهونه به معاف شي اود عاشورې دورځې روژه نيول ديوكال تير شوو ګناهونودپاره كفاره.

## توضيح الحديث

يو صحابی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چه ته تاسو روژه څنګه نيسئ؟ يعنی ستاسو د نفلی روژو په باره كښې څه معمول دې؟ د هغه سړی په سوال كولو باندې رسول الله ﷺ خفه شو، هلته عمر رضی اللہ عنہ موجود وو، چه كله هغه د رسول الله ﷺ غصه محسوس كړه نو د رسول الله ﷺ په وړاندې ئې د هغې لوستل شروع كړل كوم چه دلته په كتاب كښې مذكور دې چه په هغې كښې الله پاک او د هغې رسول په ناراضګئ سره پناه طلب كړې شوې ده هغه دا بار بار لوستلو تردې چه د رسول الله ﷺ ناخوښی ختمه شوه، شارحينو ليكلې دی چه رسول الله ﷺ د هغه په تپوس باندې غصه په دې وجه راغله چه د هغه سوال خلاف ادب او خلاف قاعده وو، څكه چه هغه لره خو دا سوال كول پكار وو چه زه به روژه څنګه نيسم نه دا چه د هغه نه تپوس اوكړی چه ستاسو په روژه نيولو كښې څه معمول دې، څكه چه د هر سړی احوال او مصالح جدا جدا وی، رسول الله ﷺ به د خپل حالت مطابق روژې نيولې په يوه مياشت كښې كمې او په بله مياشت كښې زياتې، څنګه چه به موقع وه، او بيا د انبيا ﷺ مصالح هغه د هغوی شايان شان وو، امام نووی رحمہ اللہ فرمائی هم په دې وجه باندې چه كله بعض صحابه كرامو د رسول الله ﷺ نه هم دغه شان تپوس اوكړو چه تاسو فلانې عبادت څنګه كوئ او فلانې څنګه كوئ؟ نو د هغه په جواب باندې هغه صحابه كرامو دا مقدار كم اوګڼړلو چه د هغې خبر رسول الله ﷺ ته اوشو او په دې باندې ئې د خفګان اظهار اوفرمائيلو.

بيا په حديث الباب كښې وړاندې داسې دی چه كله د رسول الله ﷺ خفګان ختم شو

نو بیا سیدنا عمر رضی الله عنه خپله د رسول الله ﷺ نه د نفلي روژو باره کښې مناسب انداز کښې تپوس اوکړو.

﴿ فقال یا رسول الله! کیف بمن یصوم الدهر کله؟ قال: لا صام ولا افطر ﴾او په دویم روایت کښې دی لم یصم ولم یفطر... سیدنا عمر رضی الله عنه ترتیب وار تپوس اوکړو، اول د صوم الدهر په باره کښې اوبیا دهغې نه کم او بیا د هغې نه کم، هغه د صوم الدهر په باره کښې اوفرمائیل: لا صام ولا افطر... چه داسې سړی نه روژه اونیوله او نه ئې افطار اوکړو، افطار نه کول خو ظاهر دی چه ټوله ورځ د خوراک څکاک نه بند وو، او د صوم نفي د کمال او فضیلت په اعتبار سره دې، یعنې څنګه روژه چه انسان له نیول پکار دی هغه دغه شان روژه او نه نیوله، دا روژه ولې کامل نه ده؟ یا خو په دې وجه چه د دې نه په حدیث کښې منع راغلې ده.

نو په دې کښې د حدیث مخالفت دې او یا په دې وجه چه د عبادت حقیقت چه په هغې کښې روژه هم داخله ده په مخالفت نفس کښې دې، او په صوم الدهر کښې د روژې د عادي کیدو په وجه باندې روژه د هغه عادت جوړ شي چه په هغې کښې د نفس مخالفت او مشقت باقي نه پاتې کیږي، او وئیلې شوې دي چه دا جمله دعائیه ده یعنې خیرې چه څوک داسې اوکړي الله پاک دې هغه ته نه د روژې موقع ورکړي او نه د افطار.

﴿قال یا رسول الله! کیف بمن یصوم یومین ویفطر یوما؟ ﴾سائل تپوس اوکړو چه که یو سړې مسلسل د دوه ورځو روژه او یوه ورځ افطار کوي نو څنګه ده؟ رسول الله ﷺ دا خبره هم خوښه نه کړه او وې فرمائیل چه که په چا کښې د دې طاقت او همت وي نو هغه دې داسې اوکړي.

بیا سائل تپوس اوکړو ﴿فکیف بمن یصوم یوما ویفطر یوما؟ ﴾که یوه ورځ روژه او یو ورځ افطار کوي نو دا څنګه ده؟ رسول الله ﷺ د دې تعریف افرمائیلو ﴿ذلک صوم داود ﴾چه دا روژه داودي روژه ده، په بذل کښې لیکلي دي: په یو روایت کښې راغلي دي "افضل الصیام صیام داود علیه السلام"او دا چه د روژې دا طریقه ډیر مناسب او معتدل ده، خیر الامور اوساطها وشرها تفریطها وافراطها، ولذا قال بعض العلماء اجتهد فی العلم بحیث لا یمنعک من العمل، واجتهد فی العمل بحیث لا یمنعک من العلم. اه

بیا سائل تپوس اوکړو ﴿فکیف بمن یصوم یوما ویفطر یومین؟ ﴾رسول الله ﷺ اوفرمائیل: دا طریقه خو داسې ده چه د دې په باره کښې زه خپله غواړم چه ماته دې الله پاک د دې توفیق او طاقت راکړي.

اوسه پورې خو رسول الله ﷺ سیدنا عمر رضی الله عنه چه څنګه تپوس کولو د هغې مطابق ئې جواب ورکولو، اوس هغه د خپل طرف نه د روژې کیفیت تعلیم او تلقین فرمائي څنګه چه امت لره کیخودل پکار دی او ظاهره ده کومه طریقه د تعلیم چه رسول الله ﷺ فرمائیلې ده هغه د ټولو نه افضل هم ده او اسانه هم ده، د هغې نه مخکښې چه کومې طریقې ذکر شوې په هغې کښې دا دواړه صفات یوځائې نه شي موندلې کیدې، یعنې د افضل کیدو سره اسانیدل او هغه دا دې.

﴿ثلاث من كل شهر، ورمضان الى رمضان ﴾چه د رمضان د مياشتې پوره روژې او باقي يولس مياشتې کښې هره مياشت درې روژې، بيا ئې اوفرمائيل چه دا کيفيت او طريقه د روژو د صوم الدهر برابر ده چه د هغې وجه مشهوره ده ﴿الحسنة بعشرة امثالها ﴾، په هره مياشت کښې درې روژې ګويا د پوره مياشتې روژې شوې، بيا د هغې نه پس رسول الله ﷺ د کال په مياشتو کښې د بعض مخصوص روژو فضيلت بيان اوفرمائيلو، يو صوم عرفه چه د هغې په باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زه اميد لرم چه په دې سره به د دوه کالو ګناه معاف شي، تير کال او راروان کال، دويم يوم عاشوراء يعنى د لسم محرم روژه، او دا چه زه اميد لرم چه الله پاک به د دې د وجې نه د يو کال ګناهونه معاف کړي.

امام نووي رحمه الله فرمائي چه د ذنوب نه مراد صغائر دي، او که د چا صغائر نه وي او صرف کبائر وي نو اميد کولې شي د هغې د تخفيف اوکړو، او که دواړه قسم نه وي نو اميد کيدې شي د رفع درجات.

د راروان کال د ګناهونو د معاف کيدو مطلب چه لا صدور ئې هم نه وي شوې؟ وئيلې شوې دي چه د تکفير نه مراد حفظ دې، يعنى په راروان کال کښې د ګناهونو نه محفوظ کيدل، او وئيلې شوې دي : د مخکښې او راروان کال د ګناهونو معاف کيدو مطلب دا دې چه الله پاک هغه ته د خپل رحمت او ثواب دومره لويه حصه ورکوى کوم چه د راروان کال د ګناهونو د کفارې دپاره کافى شي، د دې حديث نه ﴿صوم ثلاثة ايام من كل شهر﴾ يعنى هره مياشت د درې روژو نيولو فضيلت ثابتيږى برابره خبره ده که هغه اول وى يا اخر يا په مينځ کښې درې روژې کومو ته چه ايام بيض وئيلې شي، او بل قول دا دې چه د دې درې روژو نه د ايام بيض روژې مراد دي. والحديث اخرجه مسلم والنسائى وابن ماجة مختصرا ومطولا، وكذا البيهقى من طريق ابان بن يزيد الخ. (المنهل)

[۲۴۲۶]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا مَهْدِيٌّ، حَدَّثَنَا غَيْلَانُ،عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَعْبَدٍ الزِّمَّانِيِّ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، زَادَ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، "أَرَأَيْتَ صَوْمَ يَوْمِ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمِ الْخَمِيسِ؟ قَالَ: فِيهِ وُلِدْتُ وَفِيهِ أُنْزِلَ عَلَيَّ الْقُرْآنُ".

**ترجمه:** عبدالله بن معبد زماني دابوقتاده نه دتيرشوي روايت په شان روايت بيان کړې دې مګردا اضافه ئې کړې ده چه عمرفاروق په اووئيل اې دالله رسوله د دوشمبې اودزيارت په ورځ دروژې نيولو څه حکم دې نبى ﷺ اوفرمائيل ددوشمبې په ورځ زه ا پيدا شوې يم او په همدې ورځ باندې په ما باندې قرآن کريم نازل شوې دې (يعنى په دې کښې روژه نيول بهتر دي).

**تشريح:** هم د دې حديث په دويم طريق کښې دى : ﴿ارايت صوم يوم الاثنين ويوم الخميس؟ قال فيه ولدت وفيه انزل على القران ﴾په بذل کښې ليکلې دى چه په دې سوال کښې دوه احتمالات دى يا خو مطلقا په دې دواړو کښې روژه معلومول دى يا د سوال مقصد دا دې چه تاسو چه

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۱۷) (صحيح)

په دې ورځو کښې په کثرت سره روژې نيسئ د دې څه وجه ده؟ د دې په جواب کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿فيه اى فى يوم الاثنين﴾ چه د ګل په ورځ زما پيدائش دې، او هم په دې ورځ باندې په ما د نزول قران ابتداء ده، يعنى دا ورځ زما دپاره د كمال صورى او كمال معنوى دواړو د ظاهريدو ورځ ده.

ځان پوهه کړه چه سوال د دوه ورځو په باره کښې او د جواب تعلق صرف د يوم الاثنين سره دې د دې تحقيق صاحب منهل داسې کړې دې چه په دې روايت کښې د ﴿يوم الخميس﴾ زيادت وهم دې.

[٢٤٢٧]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: لَقِيَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "أَلَمْ أُحَدَّثْ أَنَّكَ تَقُولُ لَأَقُومَنَّ اللَّيْلَ وَلَأَصُومَنَّ النَّهَارَ؟ قَالَ: أَحْسَبُهُ، قَالَ: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَدْ قُلْتُ ذَاكَ. قَالَ: قُمْ وَنَمْ وَصُمْ وَأَفْطِرْ وَصُمْ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَذَاكَ مِثْلُ صِيَامِ الدَّهْرِ. قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ. قَالَ: فَصُمْ يَوْمًا وَأَفْطِرْ يَوْمَيْنِ. قَالَ: فَقُلْتُ: إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ. قَالَ: فَصُمْ يَوْمًا وَأَفْطِرْ يَوْمًا وَهُوَ أَعْدَلُ الصِّيَامِ وَهُوَ صِيَامُ دَاوُدَ. قُلْتُ: إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عمر بن العاص نه روايت دې فرمائى چه زما سره دنبى ﷺ ملاقات اوشو اوراته ئې اوفرمائيل زه خبرشوې يم چه ته وائې چه زه به ټوله شپه عبادت کوم اوټوله ورځ به روژه نيسم عبدالله اووئيل هو، بې شكه اې دالله رسوله ماهم داسې وئيلي وونبى ﷺ اوفرمائيل ته عبادت هم کوه او اوده کيږه هم، روژه هم نيسه او کوجه (خوراک څکاک) هم کوه اوپه هرمياشت کښې درې روژې نيسه ددې ثواب دهميشه روژوبرابر دې ماعرض اوکړو اې دالله رسوله زه ددې نه دزياتو طاقت لرم نبى ﷺ اوفرمائيل يوه ورځ روژه نيسه اويوه ورځ ناغه (خوراک څکاک) کوه اودا بهترينې روژې دي او دا دداود ﷺ روژه و ماعرض اوکړو زه ددې نه هم دزياتو طاقت لرم نبى ﷺ اوفرمائيل ددې نه افضل نشته.

والحديث اخرجه ايضا مسلم والبيهقى مختصرا. (المنهل)

## توضيح الحديث

رسول الله ﷺ عبدالله بن عمرو ﷺ ته يوه ورځ د ملاقات په وخت اوفرمائيل: ايا ماته ستاسو متعلق دا خبره نه ده رارسيدلې؟ (يعنى رارسيدلې ده) چه تاسو دا وايئ چه زما اراده دا ده چه ټوله شپه به ويخ يم، قيام ليل به کوم، او د ورځې به روژه نيسم؟ نو هغوى د دې خبرې اعتراف اوکړو چه بيشکه ما داسې وئيلي دى رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د شپې قيام هم کوئ او ارام هم، او د ورځې روژه هم نيسئ او افطار هم، او وې فرمائيل چه هره مياشت درې روژې نيسئ، په دې باندې هغوى عرض اوکړو يا رسول الله! په ما کښې د دې نه د زياتو روژو طاقت دې (افضل په معنى د اکثر ګينې بيا به اشکال دا وى چه افضل

[1]): صحيح البخاري/الصوم ٥٦ (١٩٧٦)، وأحاديث الأنبياء ٣٨ (٣٤١٨)، /النكاح ٩٠ (٥١٩٩)، صحيح مسلم/الصيام ٣٥ (١١٥٩)، (تحفة الأشراف: ٨٦٤٥، ٨٩٦٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصوم ٥٧ (٧٧٠)، سنن النسائي/الصوم ٤٥ (٢٣٩٤)، سنن ابن ماجه/الصيام ٣١ (١٧٢١)، مسند احمد (٢/١٦٠، ١٦٤)، سنن الدارمي/الصوم ٤٢ (١٧٩٣) (صحيح)

خو هغه طريقه کيدل پکار دی کومه چه رسول الله ﷺ اختياروی نه هغه کومه چه صحابی بيانوی) رسول الله ﷺ په دې باندې اضافه کولو سره اوفرمائيل چه بيا داسې اوکړئ چه يوه ورځ روژه او دوه ورځې افطار کوه، يعنی پوره مياشت داسې کوه، په دې صورت کښې به په يوه مياشت کښې روژې لس او افطار به شل شی، بيا ئې د هغه په سوال باندې اضافه کولو سره يوه ورځ روژه او يوه ورځ د افطار حکم اوکړو او دا چه دا اعدل الصيام دې او هم دا صوم داودی دې.

والحديث اخرجه ايضا البخارى فى عدة مواضع، ومسلم والنسائى وابن ماجة، وكذا البيهقى من طريق يحيى. (المنهل)

## بَابٌ فِي صَوْمِ أَشْهُرِ الْحُرُمِ

### باب دې د حرمت په مياشتو کښې د روژو نيولو په بيان کښې

**د اشهر حرم تعارف:**

اشهر الحرم څلور دی درې يوځائې او يوه يواځې، (ذی قعده، ذی الحجة او محرم دا درې يوځائې دی يعنی مسلسل او رجب دا فرد ده يعنی د هغه درې واړو نه جدا، په تسلسل کښې شامل نه ده، د اشهر حرم ذکر په قران کريم کښې هم دې:

﴿إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِنْدَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي كِتَابِ اللَّهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ﴾: د دې مفرد الشهر الحرام دې لکه چه په بل آيت کريمه کښې دی ﴿الشهر الحرام بالشهر الحرام والحرمات قصاص﴾ حرام په معنی د حرمت والا، دې مياشتو ته اشهر حرم په دې وجه وئيلې شی چه دا حرمت والا دی، او هم په دې وجه په زمانه جاهليت کښې او ابتداء اسلام کښې په دې څلورو مياشتو کښې قتال حرام وو، بيا روستو د قتال حرمت منسوخ شو د جمهور په نزد وقال عطاء بعدم النسخ.

[۲٤۲۸](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سَعِيدٍ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي السَّلِيلِ، عَنْ مُجِيبَةَ الْبَاهِلِيَّةِ، عَنْ أَبِيهَا أَوْ عَمِّهَا، أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ انْطَلَقَ. فَأَتَاهُ بَعْدَ سَنَةٍ وَقَدْ تَغَيَّرَتْ حَالُهُ وَهَيْئَتُهُ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَمَا تَعْرِفُنِي؟ قَالَ: وَمَنْ أَنْتَ؟ قَالَ: أَنَا الْبَاهِلِيُّ الَّذِي جِئْتُكَ عَامَ الْأَوَّلِ. قَالَ: فَمَا غَيَّرَكَ وَقَدْ كُنْتَ حَسَنَ الْهَيْئَةِ؟ قَالَ: مَا أَكَلْتُ طَعَامًا إِلَّا بِلَيْلٍ مُنْذُ فَارَقْتُكَ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لِمَ عَذَّبْتَ نَفْسَكَ؟ ثُمَّ قَالَ: "صُمْ شَهْرَ الصَّبْرِ وَيَوْمًا مِنْ كُلِّ شَهْرٍ". قَالَ: زِدْنِي فَإِنَّ بِي قُوَّةً. قَالَ: صُمْ يَوْمَيْنِ. قَالَ: زِدْنِي. قَالَ: صُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ. قَالَ: زِدْنِي. قَالَ: صُمْ مِنَ الْحُرُمِ وَاتْرُكْ، صُمْ مِنَ الْحُرُمِ وَاتْرُكْ، صُمْ مِنَ الْحُرُمِ وَاتْرُكْ". وَقَالَ بِأَصَابِعِهِ الثَّلَاثَةِ، فَضَمَّهَا ثُمَّ أَرْسَلَهَا.

**ترجمه:** مجيبه الباهليه دخپل پلار ياتره نه روايت کوی فرمائی چه هغه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوې وو بيا لاړو او بيا يوکال پس بيا ورغې اودهغه حالت تبديل شوې وو بل قسم شکل ئې وو اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله آيا ما پيژنې؟ نبی ﷺ تپوس اوکړو ته

(1): سنن ابن ماجه/(۱۷٤۱)، (تحفة الأشراف: ۵۲٤۰)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ الصيام (۲۷٤۳)، مسند احمد (۲۸/۵) (ضعيف)

څوک ئي هغه اووئيل زه هم هغه باهلی يم کوم چه دلته يو کال مخکښې راغلې وم نبي ﷺ ورته اوفرمائيل ستاشکل ولې بدل شوې دې په هغه وخت کښې خو ستاشکل ښه وو هغه اووئيل کله چه زه ستانه رخصت شوم نوما به صرف دشپې ډوډئ خوړله (يعنی مسلسل روژې مې نيولې دي) نبي ﷺ ورته اوفرمائيل تا ولې خپل ځان په تکليف کښې مبتلا کړې دې؟ اوددې نه پس ئي ورته اوفرمائيل دټول رمضان روژې نيسه اوبيا په هره مياشت کښې يوه يوه روژه نيسه هغه عرض اوکړو ددې نه ئي راته زيات کړه نبي ﷺ ورته اوفرمائيل په هره مياشت کښې دوه دوه نيسه، هغه اووئيل چه ددې نه زيات طاقت لرم نبي ﷺ ورته اووئيل: درې درې روژې نيسه هغه اووئيل ددې نه ئي هم راته زيات کړه نبي ﷺ ورته اوفرمائيل دحرمت په مياشتوکښې (ذي القعده ذي الحجه محرم رجب) کښې روژې نيسه او پرېږده، نيسه او پرېږده، نيسه او پرېږده او په درې ګوتوسره ئي اشاره اوکړه اول ئي موټې بند کړو اوبيائي کولا و کړو (مراد دادې چه ته درې ورځې روژې نيسه اودرې ورځې چټې کوه).

### مضمون حديث:

**قوله**: عن مجيبة الباهلية عن ابيها او عمها: مجيبه باهليه د خپل پلار نه روايت کوی چه د هغه نوم عبدالله بن الحارث رضي الله عنه دې، يا دخپل تره نه چه د هغه نوم معلوم نه دې چه د هغې پلار يا تره يو ځل مدينې منورې ته د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، څو ورځې ايساريدو سره وطن ته واپس لاړو، دوباره يو کال پس بيا حاضر شو (وقد تغيرت حاله وهيئته) يعنی دې ځل د هغوی حالت ډير خراب او متغير شوې وو (چه د هغې د وجې نه رسول الله ﷺ او نه پيژندلې شو چه دا هم هغوی دی) هغوی عرض اوکړو چه زه هم هغه باهلي يم کوم چه تاسو ته مخکښې کال راغلې وو، رسول الله ﷺ ترې تپوس اوکړو چه ستا دا حالت متغير شوې ولې دې ته خو د دې نه په غوره حالت کښې وې؟ هغه ورته اووئيل چه ما مسلسل روژې نيولې دی ځکه بيا نبي ﷺ هغه ته اوفرمائيل چه داسې کوه چه رمضان او د دې نه علاوه په هره مياشت کښې يوه روژه نيسه، هغوی عرض اوکړو چه نور راته څه زيات کړئ، بيا ئي اوفرمائيل چه په هره مياشت کښې دوه روژې نيسه، هغه بيا عرض اوکړو چه لږې زياتې ئي کړه، نو وې فرمائيل چه هره مياشت درې روژې نيسه، هغه ترې نوره اضافه طلب کړه نو په دې باندې ئي اوفرمائيل، ﴿صم من الحرم واترک، صم من الحرم واترک، صم من الحرم واترک﴾ وې فرمائيل چه په اشهر حرم کښې درې روژې نيسه او بيا درې پرېږده، هم دغه شان رسول الله ﷺ فرمائی چه په اشهر حرم کښې درې روژې نيولو سره درې پرېږده، بيا درې نيولو سره درې پرېږده، هر ځل رسول الله ﷺ په خپلو درې ګوتو سره اشاره فرمائيله او هغه ئي بندوله بيا ئي هغه پرانستلې.

ددې اخری حکم نه مخکښې رسول الله ﷺ هغوی ته هره مياشت ددرې روژو حکم فرمائيلې وو، بيا چه کله هغوی نور هم زيادت طلب کړو نو دا اخری خبره ئي اوفرمائيله، اوس دلته دوه احتمالا تدی يا خو دا چه صرف په دې اخری حکم باندې عمل کوه، او يا مطلب دا دې

چه د دې اخرې نه چه مخکښې کومه مشوره ورکړې وه يعنې هره مياشت د درې روژو نيولو هغه او دا دواړه راجمع کړه، په اول صورت کښې يعنې د انفراد په صورت کښې د نفلي روژو تعداد به شپيته وی او رمضان يوځائې کولو سره به نوی (۹۰) شي، او دويم صورت يعنې جمع والا احتمال کښې به صيام تطوع يو اتيا شي او د رمضان سره يو سل يولس.

والحديث اخرجه النسائي والبيهقي وكذا ابن ماجة عن ابي مجيبة الباهلي واحمد. (المنهل)

## بَابٌ فِي صَوْمِ الْمُحَرَّمِ

### باب دې په محرم کښې د روژې نيولو په بيان کښې

محرم هم د اشهر حرم نه دې چه د هغې بيان اوس تير شو.

[۲۴۲۹] (1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفْضَلُ الصِّيَامِ بَعْدَ شَهْرِ رَمَضَانَ شَهْرُ اللَّهِ الْمُحَرَّمُ، وَإِنَّ أَفْضَلَ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْمَفْرُوضَةِ صَلَاةٌ مِنَ اللَّيْلِ". لَمْ يَقُلْ قُتَيْبَةُ: شَهْرُ، قَالَ: رَمَضَانُ.

**ترجمه**: دابوهريره نه روايت دې فرمائي چه رسول الله فرمائيلي دي يقيناغوره دروژونه پس دمياشتې درمضان دالله تعالى دمحرم مياشتې روژې نيول دي او يقينا غوره په مونځونوکښې پس دفرضونه دتهجدو مونځ دې، دقتيبه په روايت کښې شهرلفظ نشته دې هغه درمضان لفظ ذکرکړې دې۔

### توضيح الحديث

د دې حديث نه معلوميږی چه د رمضان نه پس د ټولو نه غوره مياشت د روژه دپاره د محرم مياشت ده، دا حديث په صحيح مسلم کښې هم دې، او په دې باندې امام نووی "فضل صوم المحرم" باب تړلې دې.

### د حديث الباب متعلق بعض سوال او جواب:

امام نووی رحمه الله د دې حديث نه پس فرمائي: فيه تصريح بانه افضل الشهور للصوم... د دې نه روستو بيا د يو اشکال جواب ورکوی هغه دا چه بيا رسول الله ﷺ د شعبان په مياشت کښې د روژو نيولو کثرت ولې کولو، پس په ابو داود کښې وړاندې باب راروان دې د صوم شعبان په باب کښې ﴿كان احب الشهور الى رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان يصومه شعبان ثم يصله برمضان﴾، امام نووی رحمه الله فرمائي چه: "وقد سبق الجواب عن اكثار النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من صوم شعبان دون المحرم، وذكرنا فيه جوابين" هغه دوه جوابونه دا دی: اول دا چه ممکنه ده چه رسول الله ﷺ ته د صوم محرم د افضليت علم د ژوند په اخرې حصه کښې شوې وی په دې وجه ورته په دې کښې د اکثار صوم موقع ملاؤ نه شوه، بل جواب دا دې چه ممکنه ده د محرم په مياشت کښې د روژې نيولو نه څه عذرونه پيښيږی، سفر يا مرض وغيره. اهـ

(1): صحيح مسلم/الصيام ۳۸ (۱۱۶۳)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۰۷ (۴۳۸)، الصوم ۴۰ (۷۴۰)، سنن النسائي/قيام الليل ۶ (۱۶۱۴)، سنن ابن ماجه/الصيام ۴۳ (۱۷۴۲)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۹۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۰۲، ۳۲۹، ۳۴۲، ۳۴۴، ۵۳۵) (صحيح)

هسې خو د صوم شعبان فضیلت هم په یو حدیث کښې راغلې دې کوم چه په ترمذی شریف کښې په کتاب الزکاة... باب ما جاء فی فضل الصدقة کښې د انس رضی الله عنه په روایت باندې دې ﴿سئل رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ای الصوم افضل بعد رمضان؟ قال شعبان لتعظیم رمضان﴾ خو دا حدیث ضعیف دې، لکه چه امام ترمذی فرمائی هذا حدیث غریب وصدقة بن موسی لیس عندهم بذلک القوی. هم دا جواب ورکړې دې حافظ عراقی چه د ترمذی دا روایت د صحیح مسلم د روایت معارض نه شی کیدې، او علامه ابو الطیب سندی د دې تعارض یوه بله توجیه کړې ده هغه دا چه علی الاطلاق خو افضل الصیام بعد رمضان صیام محرم دی، او د تعظیم رمضان په حیثیت افضل الصیام صیام شعبان دی.

## د فضیلت په لحاظ سره د میاشتو ترتیب:

**فائده:** د فضیلت په لحاظ سره د میاشتو ترتیب څنګه دې؟ د دې په باره کښې حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې مختلف کتب فقه نه عبارتونه نقل فرمائیلې دی کوم چه لاندې لیکلې شی، وفی الانوار الساطعة (من مسلک الشافعیة) رمضان افضل الشهور ثم المحرم ثم رجب ثم ذو الحجة ثم ذو القعده ثم شعبان، ثم باقی الشهور انتهی، ویخالفه ما فی شرح الاحیاء من النووی، افضلها بعدرمضان المحرم ویلیه شعبان، وقال الغزالی:افضلها ذی الحجة،وفی الشرح الکبیر للدردیر افضلها المحرم فرجب فذوی قعده وذوی الحجة. اهـ حضرت شیخ هم په دې حاشیه د بذل کښې یوې بلې خبرې ته توجه پیدا کړې ده هغه دا چه په حدیث کښې راځی ﴿افضل الصیام صوم داود﴾ او بیا ئې د دې په باره کښې د امام طحاوی د مشکل الاثار نه نقل کړې دی چه دا افضلیت د شهور په لحاظ سره نه دې بلکه د کیفیت صیام په لحاظ سره دې یعنی د دوام په مقابله کښې، وړاندې په حدیث کښې دی: وان افضل الصلاة بعد المفروضة صلاة من اللیل.

## په رواتب او تهجد کښې افضل څه دی؟

د دې حدیث نه په ظاهره معلومیږی چه د قیام لیل او تهجد مونځ رواتب یعنی د سنن مؤکده نه هم افضل دې، پس ابو اسحاق مروزی او بعض علماء کرام هم د دې قائل دی، خو اکثر علماء د رواتب د افضلیت قائل دی چه د فرائضو سره چه کوم سنن مؤکده لوستلې شی هغه د تهجد د مونځ نه غوره دی، او هغه فرمائی چه دا حدیث د دې رائې خلاف نه دې، ځکه چه رواتب د صلاة مفروضه ملحقات نه دې لهذا د تهجد مونځ د ټولو نوافل مطلقه نه غوره شو نه د هغه نوافلو نه کوم چه ملحق بالفرائض دی (من البذل والمنهل)

والحدیث اخرجه ایضا مسلم والدارمی والبیهقی، وکذا ابن ماجة والترمذی مقتصرین فیه علی الصیام. (قاله فی المنهل)

[۲٤۳۰] (۱) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ يَعْنِي ابْنَ حَكِيمٍ، قَالَ: سَأَلْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنْ صِيَامِ رَجَبٍ. فَقَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَصُومُ حَتَّى نَقُولَ لَا

[1]: صحیح مسلم/الصیام ۳٤ (۱۱۵۷)، (تحفة الأشراف: ۵۵۵٤)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الصیام ٤۱ (۲۳٤۸، ۲۳٤۸)، سنن ابن ماجه/الصیام ۳۰ (۱۷۱۱)، مسند احمد (۱/۲۲۷، ۲۲۷، ۲۳۱، ۳۲۶) (صحیح)

يُفْطِرُ وَيُفْطِرُ حَتَّى نَقُولَ لَا يَصُومُ".

ترجمه: د عبد الله بن عباس ﷺ نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ به دومره روژې نيولې تردې چه مونږ به وئيل چه دې هډو افطار نه كوي اودومره افطار به ئې كولو تردې چه مونږ به وئيل دې دو روژې نه نيسي..

شرح حديث:

قوله: قَالَ: سَأَلْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنْ صِيَامِ رَجَبٍ. فَقَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَصُومُ حَتَّى نَقُولَ لَا يُفْطِرُ وَيُفْطِرُ حَتَّى نَقُولَ لَا يَصُومُ".

د دې باب دويم حديث دې، خو باب خو متعلق دې د صوم محرم سره او د دې حديث تعلق دې د رجب سره، لهذا حديث د ترجمة الباب سره متعلق نه دې، او صاحب منهل چه كومه نسخه اختيار كړې ده په هغې كښې په دې حديث باندې د صوم رجب ترجمه ده.

اوس دا چه د دې حديث نه د صوم رجب فضيلت ثابتيږي يا نفي فضيلت په دې كښې دواړه احتمالات دي ځكه چه راوي وائي چه رسول اللهﷺ به بعض وخت د رجب په مياشت كښې مسلسل روژې نيولې، او بعض وخت به ئې مسلسل افطار كولو نو په دې كښې دواړه جهتونه موندلې شي د اثبات هم او د نفي هم، صاحب منهل د نفي طرف اختيار كړې دې، او زمونږ حضرت په بذل كښې د اثبات اړخ اختيار كړې دې.

خو حضرت په بذل كښې د حديث د ترجمة الباب سره د غير مطابق كيدو نه تعرض نه دې كړې، په ظاهره كښې به د حضرت په ذهن كښې هم دا وى چه ترجمة الباب د صوم رجب سره متعلق دې. فتامل

**د صوم رجب په فضيلت كښې حديث شته يا نه؟**

اوس دا چه د صوم رجب د فضيلت په باره كښې يو حديث ثابت دې يا نه؟ نو د دې متعلق د حافظ ابن حجر يو مستقل تصنيف دې، تبيين العجب بما ورد في فضل رجب... چه د هغې په شروع كښې هغه ليكلي دى چه د رجب د مياشتې يا د صيام رجب په باره كښې يو صحيح حديث كوم چه قابل حجت وى ثابت نه دې، او وړاندې ليكى: خو دا خبره مشهوره ده چه د فضائلو په باره كښې اهل علم مسامحت كوى او په دې كښې احاديث ضعيفه اخلى په دې شرط چه موضوع نه وى، كذا في "الحل المفهم" ۳۱۰، والحديث اخرجه ايضا مسلم، واخرجه البخارى وابن ماجة والترمذى بدون ذكر رجب. (قاله في المنهل)

## بَابٌ فِي صَوْمِ شَعْبَانَ

**باب دې په شعبان كښې د روژې نيولو په بيان كښې**

[۲۴۳۱] (1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَيْسٍ، سَمِعَ عَائِشَةَ تَقُولُ: كَانَ "أَحَبَّ الشُّهُورِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَصُومَهُ شَعْبَانُ ثُمَّ يَصِلُهُ بِرَمَضَانَ".

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۲۸۰)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ الصيام (۲۶۵۹) (صحيح)

**ترجمه**: ام المومنین عائشة ﷺ روایت دي فرمائي چه دشعبان دمیاشتې روژې نیول دنبی ﷺ ډیر خوښ وو او بیا به ئې دشعبان دمیاشتې روژې درمضان سره متصل کولې.

**توضيح الحديث**

په دې حدیث باندې کلام په مخکښې باب کښې تیر شو، رسول الله ﷺ به په دې میاشت کښې په کثرت سره روژې ولې نیولې حافظ د دې په حکمت کښې مختلف اقوال لیکلي دی، او بیا ترجیح هغه قول ته ورکړې ده کوم چه خپله د رسول الله ﷺ نه منقول دې لکه چه په نسائی کښې دی د اسامه بن زید ﷺ د حدیث نه چه هغه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه زه وینم چه تاسو څومره په کثرت سره د شعبان روژې نیسئ په بل میاشت کښې دومره نه نیسئ نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دا داسې میاشت ده چه په دې کښې خلق غافل وی، دا داسې میاشت ده چه په دې کښې د خلقو اعمال الله رب العالمین ته پیش کیږی په دې وجه زه دا غواړم چه زما عمل هلته په داسې حال کښې اورسیږی چه زه روژه دار یم، ﴿فاحب ان یرفع عملي وانا صائم﴾

**تنبیه** : د فتح الباری په نسخه کښې ئې دا حدیث د نسائی، ابوداود او ابن خزیمه طرف ته منسوب کړې دې، خو د حافظ نه علاوه علامه عینی، قسطلانی وغیره دا حدیث د ابوداود طرف ته نه دې منسوب کړې. فالظاهر انه سبق قلم من الحافظ.

والحدیث اخرجه ایضا النسائي والحاکم والبیهقی (المنهل)

## بَابٌ فِي صَوْمِ شَوَّالٍ

### باب دې د روژې نیولو په بیان کښې

[٢٤٣٢]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ الْعِجْلِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ مُوسَى، عَنْ هَارُونَ بْنِ سَلْمَانَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مُسْلِمٍ الْقُرَشِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَأَلْتُ أَوْ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صِيَامِ الدَّهْرِ، فَقَالَ: "إِنَّ لِأَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا، صُمْ رَمَضَانَ وَالَّذِي يَلِيهِ وَكُلَّ أَرْبِعَاءَ وَخَمِيسٍ، فَإِذَا أَنْتَ قَدْ صُمْتَ الدَّهْرَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَافَقَهُ زَيْدٌ الْعُكْلِيُّ وَخَالَفَهُ أَبُو نُعَيْمٍ. قَالَ: مُسْلِمُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ.

**ترجمه**: عبیدالله بن مسلم القرشي دخپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې تپوس اوکړو اوکه دنبی ﷺ نه تپوس اوشو دهمیشه روزر نیولو متعلق نوئې فرمائیل یقینا ستاداهل په تاباندې حق دې درمضان روژې نیسه اوکوې چه ددې سره متصل دي اودهرچارشمبې اودزیارت په ورځ روژه نیسه کله چه دې داسې اوکړل نودا داسې ده لکه چه تا تمام عمر روژې نیولې وي، امام ابوداود وائی مسلم بن عبیدالله وئیلي دي چه ددې سره موافقت کړې دې زید عکلي اوددې مخالفت کړې دې ابونعیم

**توضيح الحديث**

د رسول الله ﷺ نه د صوم الدهر په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغه اجازت ورنکړو او دا ئې اوفرمائیل چه په رمضان کښې روژې نیسه، او په هغه میاشت کښې کومه چه ورسره

[1]: سنن الترمذي/الصوم ٤٥ (٧٤٨)، (تحفة الأشراف: ٩٧٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٦/٣، ٧٨/٤) (ضعيف)

متصل ده او د هرې ګل او زيارت په ورځ بس هم دا دې ستا دپاره صوم الدهر. ﴿والذى يليه﴾ مصداق په ظاهره کښې شوال دې، خو ترجمة الباب خو د شعبان په باره کښې دې پس کيدې شی چه مصنف د دې نه شعبان مراد کړې وی چه په هغې کښې هيڅ اشکال نشته، د رمضان په يو طرف کښې شوال دې، او په بل طرف کښې شعبان، خو په بعض نسخو کښې په دې حديث باندې مستقل د شوال ترجمة الباب قائم دې په دې صورت کښې به د دې نه مراد شوال وی.

ځان پوهه کړه ﴿صم رمضان والذى يليه﴾ د دې سياق نه دا فهميږی چه د رمضان سره چه کومه متصل مياشت ده د دې نه پوره مراد ده، خو په يو حديث کښې صراحة د شوال د پوره مياشت روژو مطلوب کيدل نه دی وارد شوی، په خلاف د شعبان د هغه په باره کښې داسې روايات دی لهذا راجح هم دا ده چه ﴿والذى يليه﴾ نه پوره مياشت نه ده مراد کړې بلکه د شوال صرف شپږ روژې ځکه چه د نورو احاديثو نه هم د دې مطلوب کيدل ثابت دی، خو په دې صورت کښې به اشکال دا وی چه د شوال د شپږو روژو ترجمه مستقل وړاندې راروانه ده. والحديث اخرجه الترمذى (المنهل) وزاد المنذرى النسائى ايضا.

## بَابٌ فِي صَوْمِ سِتَّةِ أَيَّامٍ مِنْ شَوَّالٍ

### باب دې په شوال کښې د شپږو روژو نيولو په بيان کښې

### د شوال د شپږو روژو متعلق د علماء کرامو اختلاف:

د دې روژو په باره کښې مشهوره دا ده چه جمهور علماء کرام د دې د استحباب قائل دی په خلاف د امام مالک چه هغه د دې انکار کړې دې په موطاء کښې، امام مالک رحمه الله فرمائی: ما رايت احدا من اهل العلم يصومها، امام نووی رحمه الله د امام مالک سره امام ابوحنيفه رحمه الله هم ذکر کړې دې هغه ليکی: وقال مالک وابوحنيفه يکره ذلک، ([1]) او حضرت په بذل کښې ليکلي دی واما مذهب الحنفية فی ذلک فقال فی نور الايضاح وشرحه مراقی الفلاح "واما القسم الرابع وهو المندوب فهو صوم ثلاثة ايام من کل شهر، ويندب کونها الايام البيض، ومن هذا القسم صوم يوم الاثنين ويوم الخميس ومنه صوم ست من شهر شوال، قال الطحطاوی فی شرحه: قوله وصوم ست من شهر شوال : قال فی البحر الست من الشوال صومها مکروه عند الامام متفرقة او متابعة، لکن عامة المتاخرين لم يروا به باسا.

دويم بحث دلته دا دې چه په دې روژو کښې توالی او تتابع اولی دې يا تفريق؟ د شوافعو په نزد د عيد الفطر نه روستو علی التوالی نيول مستحب دی، قال النوويفان فرقها او اخرها عن اوائل شوال الی اواخره حصلت فضيلة المتابعة، لانه يصدق انه اتبعه ستا من شوال. اهـ او د احنافو په نزد دلته په دې کښې دواړه اقوال دی، قيل الظاهر وصلها الظاهر قوله "فاتبعه" (ځکه چه فاء د تعقيب بلا فصل دپاره راځی) وقيل تفريقها، اظهارا لمخالفة اهل الکتاب فی التشبيه بالزيادة علی المفروض. اهـ من المراقی. او په در مختار کښې دی وندب تفريق صوم الست من شوال صومها

[1] د امام مالک د مسلک تحقيق وړاندې راروان دې،

مکروه عند الامام متفرقة او متتابعة لکن عامة المتاخرين لم رووا به بأسًا ولا يکره التتابع على المختار خلافا للشافعي. اهـ يعنى زمونږ په نزد تفريق د هغه روژو اولی دې خو تسلسل هم مکروه نه دې په قول راجح کښې، البته د امام ابويوسف رحمه الله په نزد مکروه دې او د امام احمد رحمه الله مذهب په منهل کښې دا ليکلې دې: وقال احمد: لا فرق بين المتتابع وعدمه فى الفضل، هم دغه شان صاحب منهل دا هم ليکلې دی چه فقهاء مالکيه هم د دې روژو د استحباب قائل دی خو متفرقا. او اوجز ۹٦/۳ کښې حضرت شيخ ليکی: د شوافعو په نزد دا روژې بالاتفاق مستحب دی بلکه تاکد سره، او هم دغه شان د حنابله په نزد هم سنت دی لکه چه د هغوی په کتابونو کښې دی، او د امام مالک رحمه الله مسلک د شرح حديث او د کتب خلافيات لکه "بداية المجتهد" وغيره کښې مشهور دې چه د هغوی په نزد مطلقا مکروه دی خو "الشرح الکبير" او په دسوقی کښې دی چه د امام مالک په نزد کراهة امور خمسة سره مقيد دې که په دې کښې يو مفقود شي نو کراهت نشته، او هغه قيوديه دی. ۱: کيخودلو والا مقتدی به او د وخت پيشوا وی. ۲: د رمضان نه روستو متصلا، ۳: تسلسل سره بغير د تفريق نه، ۴: دا روژې علانيه طور نيول. ۵: د سنية اتصال قائل کيدل. اهـ

[۲٤۳۳](1) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، وَسَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ صَاحِبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ صَامَ رَمَضَانَ ثُمَّ أَتْبَعَهُ بِسِتٍّ مِنْ شَوَّالٍ فَكَأَنَّمَا صَامَ الدَّهْرَ".

**ترجمه:** د ابوايوب نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی چاچه درمضان روژې اونيولې اوبيائې ورپسې دشوال شپږ روژې اونيولې نوداداسې ده لکه ده چه تمام عمر روژې نيولې وي.

## د دې روژو په مشروعيت کښې مصلحت:

د دې روژو په مشروعيت کښې مصلحت او حکمت علماء کرامو دا بيان کړې دې چه دا په منزله د سنن رواتب دې کوم چه د فرض مونځونو سره مشروع دې چه د هغې فائده د نقصان کمې پوره کول دی کوم چه د فرض مونځ نه روستو واقع شوې وی، على هذا القياس د دې روژو مشروعيت په صيام رمضان کښې د نقص کمې پوره کولو دپاره ده. اهـ من المنهل.زه وايم او هم دا مصلحت په حديث شريف کښې د صدقة الفطر د مشروعيت په باره کښې راغلې دې کما تقدم فى کتاب الزکاة عن ابن عباس قال : فرض رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زکاة الفطر طهرة للصيام من اللغو والرفث وطعمة للمساکين الحديث.

.......

(1): صحيح مسلم/الصيام ۲۹ (۱۱٦٤)، سنن الترمذي/الصوم ۵۳ (۷۵۹)، سنن ابن ماجه/الصيام ۳۳ (۱۷۱٦)، (تحفة الأشراف: ۳٤۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤۱۷/۵، ٤۱۹)، سنن الدارمي/الصوم ٤٤ (۱۷۹۵) (صحيح)

## باب كَيْفَ كَانَ يَصُومُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم

### باب دې چې نبي عليه السلام به په څه طريقه روژې نيولې

### د مصنف يو عادت:

د مصنف يو عادت شريفه دې چه هغه د رسول الله ﷺ طرف ته منسوب كولو سره هم مستقل تراجم قائموی پس په كتاب الصلاة كښې د ابواب المواقيت په ضمن كښې يوه ترجمه ده "باب فى وقت صلاة النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" هم دغه شان د دې نه مخكښې په كتاب الطهارة كښې "باب صفة وضوء النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" او هم دغه شان په كتاب الحج كښې "باب صفة حجة النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" خو په كتاب الزكاة كښې ئې داسې څه باب نه دې تړلې، په ظاهره كښې دې وجه باندې چه د اكثر علماء كرامو په نزد په انبياء عليهم السلام باندې زكاة نه واجب كيږي، بهرحال په دې باب سره د مصنف غرض په نفل روژو كښې د رسول الله ﷺ معمول بيانول دى، ځكه چه نفلى روژې خو اختيارى دى د هغوى داسې څه ضابطه او قانون خو دې نه چه د هغې رعايت واجب وى د خلقو د حال مطابق دې.

[۲۴۳۴]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَصُومُ حَتَّى نَقُولَ لَا يُفْطِرُ وَيُفْطِرُ حَتَّى نَقُولَ لَا يَصُومُ، وَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَكْمَلَ صِيَامَ شَهْرٍ قَطُّ إِلَّا رَمَضَانَ. وَمَا رَأَيْتُهُ فِي شَهْرٍ أَكْثَرَ صِيَامًا مِنْهُ فِي شَعْبَانَ".

**ترجمه:** دام المومنين عائشه رضي الله عنها روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام به روژې نيولې تردې چه مونږ به ګمان اوكړو چه دې هډو افطار نه كوي او افطار به ئې هم كولو تردې چه مونږ به ګمان اوكړو چه دې هډو روژې نه نيسي او مونږ هيڅ كله نبى عليه السلام نه دې ليدلې چه پوره مياشت روژې ئې نيولې وي علاوه د رمضان نه او ما نه دې ليدلې نبى عليه السلام چه په بله مياشت كښې ئې دشعبان نه زياتې روژې نيولې وي.

### مضمون حديث:

يعنى رسول الله ﷺ به په بعض مياشتو كښې روژې دومره په كثرت سره نيولې چه زمونږ به دا خيال راغلو چه كيدې شى په دې مياشت كښې به روژه بالكل افطار كوى نه، او په بعض مياشتو كښې به ئې صرف افطار كولو تردې چه زمونږ خيال پيدا شو چه دې مياشت كښې به بالكل يوه روژه هم نه نيسى، بيا وراندې فرمائى او دا خبره هم متعين وه چه رسول الله ﷺ به د رمضان نه علاوه د بوې مياشتې پوره روژه نه ساتله، بيا وراندې فرمائى او د ټولو نه زياتې روژې به ئې د شعبان په مياشت كښې نيولې، د دې نه پس مصنف هم دا مضمون د ابوهريره رضي الله عنه په روايت سره ذكر كړې دې او په هغې كښې د شعبان د روژې په

[1] صحيح البخاري/الصوم ۵۲ (۱۹۶۹)، صحيح مسلم/الصيام ۳۴ (۱۱۵۶)، سنن الترمذي/الصوم ۳۷ (۷۳۶)، سنن النسائي/الصيام ۱۹ (۲۱۷۹)، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۱۰)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصيام ۳۰ (۱۷۱۰)، موطا امام مالك/الصوم ۲۲ (۵۶)، مسند احمد (۳۹/۶، ۸۰، ۸۴، ۸۹، ۱۰۷، ۱۲۸، ۱۴۳، ۱۵۳، ۱۶۵، ۱۷۹، ۲۳۳، ۲۴۲، ۲۴۹، ۲۶۸) (صحيح)

باره کښې دومره زائد دی : وكان يصومه الا قليلا بل كان يصومه كله... يعنى بس په دې ځان پوهه کړئ چه د شعبان خو به رسول اللهﷺ پوره میاشت روژې نیولې.

**تنبيه** : حضرت په بذل کښې دا لیکلي دي چه په صحیح مسلم کښې دا زیادت کوم چه مصنف د ابوهريرهرضی الله عنه طرف ته منسوب کړې دې هم په دې حدیث کښې ذکر کړې دې کوم چه دلته په ابوداود کښې د دې نه مخکښې تیر شوې دې يعنى حديث ابى سلمة عن عائشة، حضرت لیکی چه دا زیادت ما په کتب حديث کښې د ابوهريرهرضی الله عنه نه من طريق ابى سلمة چرته اوموندلو او نه من غير طريق ابى سلمة. والله تعالى اعلم

[۲۴۳۵](¹)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ. زَادَ: كَانَ يَصُومُهُ إِلَّا قَلِيلًا، بَلْ كَانَ يَصُومُهُ كُلَّهُ.

**ترجمه**: ابوهريره دتيرشوی روایت په شان روایت بیان کړې دې مګرپه دې روایت کښې دا اضافه ده چه په شعبان کښې به ئې لږې روژې نیولې بلکه ټوله میاشت به ئې هم نیولې.

**تشریح**: په دې دويم روايت کښې دی ﴿بل كان يصومه كله﴾دې باره کښې امام ترمذی د حضرت ابن المبارک نه نقل کړې دی چه داسې په کلام عرب کښې جائز دی چه کله یو سړې د میاشتې اکثره حصه کښې روژه نیسی نو هغه ته وئیلې شی چه ﴿صام الشهر كله﴾او هم دغه شان وئیلې شی ﴿قام فلان ليلة اجمع﴾چه فلانې سړې ټوله شپه د تهجد په مونځ باندې ولاړ وو ﴿ولعله تعشى واشتغل ببعض امره﴾يعنى کیدې شی هغه دې دوران کښې بل څه کار هم کړې وی، خوراک ئې کړې وی یا ئې بل داسې قسم کار کړې وی، خو علامه طیبی د دې رائې سره اتفاق نه کوی چه هر کله په لفظ د ﴿كل﴾سره راوی تصریح کوی کوم چه د تاکید شمول دپاره دې نو بیا ئې په اکثریت باندې محمول کول صحیح نه دی، لهذا داسې وئیل پکار دی چه بعض وخت د شعبان هغه پوره روژې اونیولې او بعض وخت اکثر روژې، او بعض د ﴿كله﴾مطلب دا بیان کړې دې چه روژې خو به ئې د اکثر شعبان نیولې، د ټول شعبان نه، خو د دې صورت به دا وو چه کله به ئې د میاشتې د شروع نه اکثر نیولې او کله د میاشتې د اخر په اعتبار سره اکثر، او کله د میاشتې د مینځ په اعتبار سره اکثر نیولې، په داسې طریقه روژې پوره میاشتې ته شامل شوې، خو حافظ دې ته تکلف وئیلې دې او د ابن المبارک رائې ته ئې ترجیح ورکړې ده.

## بَابٌ فِي صَوْمِ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ

### باب دې د دوشنبې (زيارت) په ورځ دروژې نيولوبيان

[۲۴۳۶](²)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي الْحَكَمِ بْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ مَوْلَى قُدَامَةَ بْنِ مَظْعُونٍ، عَنْ مَوْلَى أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، أَنَّهُ انْطَلَقَ مَعَ أُسَامَةَ إِلَى وَادِي الْقُرَى فِي طَلَبِ مَالٍ لَهُ، فَكَانَ

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۰۱۶) (حسن صحيح)

²): سنن النسائي/الصيام ۴۱ (۲۳۶۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۰۰/۵، ۲۰۱)، سنن الدارمي/الصوم ۴۱ (۱۷۹۱) (صحيح)

يَصُومُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيسِ. فَقَالَ لَهُ مَوْلَاهُ: لِمَ تَصُومُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيسِ وَأَنْتَ شَيْخٌ كَبِيرٌ؟ فَقَالَ: إِنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَصُومُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيسِ. وَسُئِلَ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: إِنَّ أَعْمَالَ الْعِبَادِ تُعْرَضُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيسِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: كَذَا قَالَ هِشَامٌ الدَّسْتَوَائِيُّ: عَنْ يَحْيَى، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي الْحَكَمِ.

**ترجمه:** د أسامه بن زيد رضی اللہ عنہ دازاد کړي شوي غلام نه روايت دې فرمائی چه زه د أسامه بن زيد سره وادي القرى مقام ته لاړم دپاره دلټولو دمال دده اوهغه به روژه نيوله د دوشمنبی او د زيارت په ورځ خپل غلام ورته اووئيل ددوشمني اودزيارت په ورځ ولې روژې نيسي اوحال دادې ته کمزورې اوبوډايې؟ هغه اوفر مائيل يقينا عملونه دانسانانو پيش کيږی په ورځ ددوشمني اودزيارت امام ابوداود وائی همدارنګې روايت بيان کړې هشام دستوائی ديحيي نه اوهغه دعمربن ابي الحکم نه.

## مضمون حديث :

د اسامه بن زيد رضی اللہ عنہ د مولی نه روايت دې يعنی د هغه د خادم او ازاد کړی غلام نه چه يو ځل هغه دخپل اقا اسامه بن زيد سره د وادی القری طرف ته روان وو د خپل مال د طرف کولو دپاره، د اسامه مولی وائی چه په دې سفر کښې ما اوليدل چه اسامه به د ګل او د زيارت په ورځ باندې روژه نيوله، ما هغه ته اووې چه ته دومره بوډا شوې او بيا په سفر کښې دوه روژې نيسې، د دې څه وجه ده؟ نو هغه اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ به دا روژې نيولې او چه کله د هغه نه تپوس اوکړې شو نو د دې وجه ئې دا بيان اوفرمائيله چه په دې دواړو ورځو کښې د بندګانو اعمال الله پاک ته پيش کيږی.

د دې حديث په سند کښې دوه راويان دی چه د هغوی حال معلوم نه دې، مولی قدامه او مولی اسامه، وادی القرای يوه وادی ده د مدينې او شام ترمينځه (د تبوک په سړک باندې راځی) د خيبر نه روستو په ۷ هجری کښې رسول الله ﷺ دا عنوة فتح کړې وه بيا په جزيه باندې مصالحت شوې وو. (بذل)

## د رفع العمل الی السماء په باره کښې مختلف روايات :

ابن الملک فرمائی : دا حديث د هغه حديث منافی نه دې چه په هغې کښې دی ﴿يرفع عمل الليل قبل عمل النهار وعمل النهار قبل عمل الليل﴾ ځکه چه په يوځائې کښې د رفع ذکر دې او په بل ځائې کښې د عرض، يعنی روزانه اعمال د رفع نه روستو هلته جمع کيږی او بيا په دې دوه ورځو کښې هغه پيش کولې شی، او هم دغه شان هغه حديث کوم چه اوس نزدې تير شو چه په هغې کښې دا وو چه د اعمالو رفع الی السماء د شعبان په مياشت کښې وی، په دې دواړو کښې هيڅ منافات نشته، ځکه چه ممکنه ده اسبوع يعنی د ټولې هفتې د اعمالو رفع مفصلا وی، او د پوره کال د اعمالو په شعبان کښې مجملا. (من المنهل)

د يوم الاثنين او يوم الخميس د روژو مندوب کيدل،د صوم ستة ايام من شوال په باب کښې تير شو

والحديث اخرجه ايضا احمد (المنهل)

## بَابٌ فِي صَوْمِ الْعَشْرِ

### د لسم ذی الحجې پورې د روژې نيولو بيان

يعنی عشر ذی الحجة، يعنی يکم ذی الحجة نه تر د نهم ذی الحجة پورې د روژو د فضيلت بيان.

[۲۴۳۷](۱)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنِ الْحُرِّ بْنِ الصَّبَّاحِ، عَنْ هُنَيْدَةَ بْنِ خَالِدٍ، عَنِ امْرَأَتِهِ، عَنْ بَعْضِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَصُومُ تِسْعَ ذِي الْحِجَّةِ وَيَوْمَ عَاشُورَاءَ وَثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ أَوَّلَ اثْنَيْنِ مِنَ الشَّهْرِ وَالْخَمِيسَ".

**ترجمه:** هنيده بن خالد دخپلې ښځې نه روايت کوی اوهغه دنبی عليه السلام د يوې بی بی نه روايت کوی وائی چه نبی عليه السلام به روژه نيوله په نهم ذي الحجه باندې اوپه ورځ دعاشوراء اودرې ورځې روژې به ئې په هره مياشت کښې نيولې او دمياشتې اولنی پير اودزيارت په ورځ.

**شرح حديث:**

د بعض ازواج نه مراد ام المومنين ام سلمه رضی الله عنها ده لکه چه په نسائی کښې روايت دې، په دې حديث کښې د درې قسم نفلی روژو ذکر دې، تسع ذی الحجة، يعنی د يکم ذی الحجة نه تر نهم ذی الحجه پورې، ځکه چه يوم العاشر خو د اختر ورځ ده، او يوم عاشوراء يعنی د لسم محرم روژه، او په هره مياشت کښې درې روژې داسې چه د مياشتې رومبنې ګل او جمعرات خو دا خو دوه روژې شوې، لهذا په دې دواړو ورځو کښې يو لره مکرر کول دی يعنی دوه د ګل او يو د زيارت، يا د دې عکس يعنی دوه د زيارت او يو ګل، پس د مسند احمد په روايت کښې دی ﴿اول اثنين والخميسين﴾او د نسائی په روايت کښې دی ﴿اول خميس والاثنين والاثنين﴾د دې دواړو روژو مندوبيت "صوم ستة ايام من شوال" والا باب کښې د فقهاء کرامو په کلام کښې تير شوې دې.

والحديث اخرجه احمد والنسائی والبيهقی (المنهل)

[۲۴۳۸](۲)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، وَمُجَاهِدٍ، وَمُسْلِمٍ الْبَطِينِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ أَيَّامٍ الْعَمَلُ الصَّالِحُ فِيهَا أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ مِنْ هَذِهِ الْأَيَّامِ يَعْنِي أَيَّامَ الْعَشْرِ. قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَلَا الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ؟ قَالَ: وَلَا الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، إِلَّا رَجُلٌ خَرَجَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فَلَمْ يَرْجِعْ مِنْ ذَلِكَ بِشَيْءٍ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی الله تعالی په نورو ورځو کښې اعمال دومره نه خوښوي څومره چه په دې ورځو کښې خوښوي يعنی لس ورځې رمبنې د ذی الحجه صحابه کرامو عرض اوکړو اې دالله رسوله اونه جهاد هم دالله په

---

(۱): سنن النسائي/الصيام ٤١ (٢٣٧١)، ٥١ (٢٤١٩)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧١/٥)، ويأتي هذا الحديث برقم (٢٤٥٢) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/العيدين ١١ (٩٦٩)، سنن الترمذي/الصوم ٥٢ (٧٥٧)، سنن ابن ماجه/الصيام ٣٩ (١٧٢٧)، (تحفة الأشراف: ٥٦١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٤/١، ٣٣٨، ٣٤٦)، سنن الدارمي/الصيام ٥٢ (١٨١٤) (صحيح)

لاره کښې؟ نبي ﷺ اوفرمائيل اونه جهادهم په لاره دالله کښې مګرهغه سړې چه دخپل مال اوجان سره وتلې وي اودهغې نه هيڅ واپس رانوړي.

## توضيح الحديث

رسول اللهﷺ فرمائي، داسې ورځې نشته چه په هغې کښې نيک عمل کول الله پاک ته زيات محبوب وي د دې لسو ورځو نه، يعنې د ذي الحجه د شروع لس ورځې، يعنې د دې ورځو اعمال صالحه د باقي ټولو ورځو د اعمالو نه افضل دي. د دې حديث نه معلومه شوه چه د ذي الحجه عشره اولی د ټولو مياشتو د عشرو نه غوره ده، چه د هغې تقاضه دا ده چه که يو سړې نذر اومني چه په ټولو عشرو کښې د ټولو نه افضل عشره کښې فلانې نيک عمل کوم نو دهغه د نذر ايفاء به په دې عشره کښې د عمل نه وي، پس علامه عيني فرمائي که يو سړې نذر اومنلو په افضل الايام کښې د عمل کولو پس که د هغه مراد يوه ورځ ده نو په دې صورت کښې به عشره ذي الحجة کښې يوم عرفه متعين وي ځکه چه د دې عشرې په ورځو کښې د ټولو نه افضل هم داده او که دهغه مراد افضل ايام اسبوع دې نو د جمعې ورځ به متعين وي، حديث ابي هريرة خيريوم طلعت فيه الشمس يوم الجمعة د وجې نه (من المنهل)

### التفضيل بين العشرة الاولى من ذي الحجة والعشرة الاخيرة من رمضان:

په مرقاة کښې دي چه د علماء کرامو په دې کښې اختلاف دې، چه د ذي الحجه په عشره اولی او د رمضان په عشره اخير کښې کومه ورځ افضل ده، د بعض رائې د دې حديث د وجې نه دا ده چه عشره ذي الحجه افضل ده او بعض وائي چه عشره رمضان افضل ده د روژو د وجې نه او د ليلة القدر د وجې نه. او قول مختار دا دې چه ايام خو د عشره ذي الحجه افضل دي د عشره رمضان د ايام نه. او ليالي عشره د رمضان افضل دي د عشره ذي الحجه د ليالي نه، ځکه چه په ټولو ايام کښې يوم عرفه افضل ده، او په ټولو ليالي کښې ليلة القدر افضل ده. والحديث اخرجه ايضا البخاري وابن ماجة والبيهقي والترمذي وقال حديث حسن غريب، واخرجه ابو عوانة وابن حبان من حديث....

## بَابٌ فِي فِطْرِ الْعَشْرِ

### د لسم ذي الحجې پورې دروژو نه نيولوبيان

يعنې د هغه حديث بيان چه په هغې کښې د عشره ذي الحجة د افطار يعنې ترک صوم مضمون راغلې دي.

[۲۴۳۹][1]حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَائِمًا الْعَشْرَ قَطُّ".

**ترجمه:** دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه ما نبي ﷺ دلوې اختر دلسو ورځو په روژونيولو باندې کله هم نه دې ليدلې.

[1]: صحيح مسلم/الاعتكاف ٤ (١١٧٦)، سنن الترمذي/الصوم ٥١ (٧٥٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٤٩)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصيام ٣٩ (١٧٢٩)، مسند احمد (٦/٤٢، ١٢٤، ١٩٠) (صحيح)

## د حديث تشريح او توجيه :

پورته حديث کوم چه د ام سلمه رضي الله عنها نه روايت شوې وو په هغې کښې تير شوې دی چه رسول الله ﷺ به د تسع ذی الحجه روژې نيولې، خو د عائشې رضي الله عنها په دې حديث کښې د دې خلاف دی چه ما کله هم رسول الله ﷺ د عشره ذی الحجة په روژو نيولو نه دې ليدلې، په دې حديث کښې چه د نفی کوم انداز دې د دې نه دا معلوميږی چه ګويا په عشره ذی الحجة کښې روژې ساتل مکروه دی، حال دا چه داسې نه ده بلکه په دې عشره کښې خو د اعمال صالحه ډير فضيلت راغلې دې، او روژه نيول هم د رسول الله ﷺ نه ثابت دی، لهذا دا روايت بيشکه تاويل او توجيه ته محتاج دی.

يوه توجيه دا کولې شی چه سيده عائشه رضي الله عنها د صوم نفی نه فرمائی چه رسول الله ﷺ به په دې عشره کښې روژه نه نيوله بلکه د خپل رويت نفی کوی، عقلا خو دا توجيه صحيح ده خو عادة فهم کښې نه راځی چه د هغې علم کښې ولې دا مسئله رانغله چه رسول الله ﷺ به په دې عشره کښې روژې نيولې، بله توجيه دا کولې شی چه عائشه رضي الله عنها د روژې نفی د کامل عشره په اعتبار سره فرمائی او دا صحيح ده ځکه چه رسول الله ﷺ خو به صرف د نهو ورځو روژې نيولې، خو دا توجيه هم صرف منطقی شان ده، لهذا د دې حديث څه تسلی بخش جواب په ظاهره کښې نشته. والله تعالی اعلم

والحديث اخرجه ايضا مسلم والنسائي وابن ماجة والبيهقي والترمذي. (المنهل)

## بَابٌ فِي صَوْمِ يَوْمِ عَرَفَةَ بِعَرَفَةَ

### په عرفات کښې د عرفې په ورځ د روژې نيولو بيان

[٢٤٤٠]([1]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَوْشَبُ بْنُ عُقَيْلٍ، عَنْ مَهْدِيٍّ الْهَجَرِيِّ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ، قَالَ: كُنَّا عِنْدَ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي بَيْتِهِ، فَحَدَّثَنَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ صَوْمِ يَوْمِ عَرَفَةَ بِعَرَفَةَ".

**ترجمه:** د عکرمه رحمه الله نه روايت دې فرمائی چه مونږ دابوهريرة سره دهغه په کورکښې ناست وو مونږته ئې حديث بيان کړوچه نبی عليه السلام منع فرمائيلې ده د روژې دورځې د عرفې نه په عرفات کښې.

### په بخاری کښې د صوم عرفه حديث شته يا نه؟

په صوم يوم عرفه باندې تفصيلی کلام په باب صيام ايام التشريق کښې تير شو ، مصنف مطلق د صوم عرفه په باره کښې څه مستقل ترجمه نه ده قائم کړې البته د دې ذکر د نورو ابوابو په احاديثو کښې راتلو، د صوم عرفه په باره کښې مستقل ترجمه مصنف بس هم دا قائم کړې ده کومه چه د عرفات سره مقيد ده، يعنې د حاجی دپاره امام بخاری ترجمه قائم کړې ده، باب صوم يوم عرفة... په دې باندې حافظ ليکی ای ما حکمه وکانه لم تثبت الاحاديث الواردة فی الترغيب فی صومه علی شرطه،واصحها حديث ابی قتادة انه يكفر السنة الاتية والسنة الماضية اخرجه مسلم وغيره. اه کوم چه وړاندې هم په دې باب کښې راروان دې او د دوه کالو د ګناه معاف

[1]): سنن ابن ماجه/الصيام ٤٠ (١٧٣٢)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٠٤،٤٤٦) (ضعيف)

کیدو والا حدیث په صحیح مسلم کښې دې، امام بخاري رحمه الله هغه نه دې ذکر کړې لعدم کونه علی شرطه.والحدیث اخرجه ایضا النسائي وابن ماجة والحاکم والبیهقي وصححه ابن خزیمة (المنهل)

[۲۴۴۱]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ، "أَنَّ نَاسًا تَمَارَوْا عِنْدَهَا يَوْمَ عَرَفَةَ فِي صَوْمِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ: هُوَ صَائِمٌ. وَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَيْسَ بِصَائِمٍ. فَأَرْسَلَتْ إِلَيْهِ بِقَدَحِ لَبَنٍ وَهُوَ وَاقِفٌ عَلَى بَعِيرِهِ بِعَرَفَةَ فَشَرِبَ".

**ترجمه:** د ام الفضل بنت الحارث رضي الله عنها نه روایت دې فرمائي چه خلقو دده سره جګړه شروع کړه په باره دروژه دنبي عليه السلام کښې په ورځ د عرفې، بعضو اووئیل چه نبي عليه السلام د عرفې په ورځ روژه نیولې وه اوبعضواووئیل چه نه ئې وه نیولې.نوما نبي عليه السلام ته دشودو یوه پیاله ورولیږله اوهغه وخت هغوی عليه السلام پخپل اوښ باندې وقوف کړې وو په عرفه کښې او وئې څکل

## توضیح الحدیث

د حدیث مضمون واضح دې، ام الفضل رضي الله عنها د عباس رضي الله عنه زوجه او د رسول الله ﷺ چاچي فرمائي چه په حجة الوداع کښې په میدان عرفات کښې د څه خلقو په دې خبره کښې تردد او اختلاف پیدا شو چه نن د رسول الله ﷺ روژه ده یا نه؟ (د روایاتو نه معلومیږي چه خپله هغې ته هم معلومه نه وه په دې وجه هغې د دې مناسب تدبیر اختیار کړو) پس هغې په یوه پیاله کښې پئ د هغه په خدمت کښې اولیږل او هغه په خپله سورلئ باندې سوریدو سره وقوف کولو، یعني وقوف عرفه، او په یو روایت کښې دی چه هغه خطبه ورکوله، چه کله قاصد د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راورسیدو او پئ ئې په هغه باندې پیش کړل نورسول الله ﷺ هغه اوڅکل، د بخاري په یو روایت کښې دی والناس ینظرون چه رسول الله ﷺ تولو خلقو په څکلو باندې اولیدو (دې سره تولو ته دا خبره معلومه شوه چه دې وخت کښې رسول الله ﷺ روژه نه دې) په دې روایت کښې د استاذی تصریح نشته چه دچا په لاس باندې هغې پئ ورلیږلي وو، حافظ فرمائي چه د نسائي د یو روایت نه معلومیږي چه هغه ابن عباس وو

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه امام بخاري د صوم یوم عرفه په باب کښې پرلپسې دوه احادیث ذکر کړې دی اولا هم دا یعني د ام الفضل او د دویم د سیده میمونه رضي الله عنها، من طریق کریب عن میمونة، چه په هغې کښې دا دی چه سیده میمونه رضي الله عنها د خلقو په اختلاف باندې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې پئ اولیږل، دواړه روایتونه په صحیح بخاري کښې دی په دې کښې د تعارض څه خبره نشته تعدد واقعه کیدې شي چه دواړو ته جدا جدا د داسې کولو موقع ملاؤ شوې وي او بل احتمال دا دې چه دې دواړو خویندو خپل مینځ کښې چه کله یوځائې کښې وې او هغوی ته د رسول الله ﷺ په روژه کښې تردد پیدا شو نو دواړو یوځائې پئ ورلیږلي وي لهذا دواړو ته د ارسال نسبت صحیح دې. (قاله الحافظ)

وحدیث الباب اخرجه ایضا البخاري في عدة مواضع، واخرجه مسلم والبیهقي(المنهل)

[1]: صحيح البخاري/الحج ٨٥ (١٦٥٨)، الصوم ٦٥ (١٩٨٨)، الأشربة ١٢ (٥٦٠٤)، صحيح مسلم/الصيام ١٨ (١١٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٥٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ٤٣ (١٣٢)، مسند احمد (٦/٣٣٨، ٣٤٠) (صحيح)

## بَابٌ فِي صَوْمِ يَوْمِ عَاشُورَاءَ

### په لسم محرم باندې د روژې نیولو بیان

هم دغه شان دا ترجمه په صحیح بخاری کښې هم ده.

[۲۴۴۲]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ يَوْمُ عَاشُورَاءَ يَوْمًا تَصُومُهُ قُرَيْشٌ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُهُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ. فَلَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ "صَامَهُ وَأَمَرَ بِصِيَامِهِ، فَلَمَّا فُرِضَ رَمَضَانُ كَانَ هُوَ الْفَرِيضَةَ، وَتُرِكَ عَاشُورَاءُ فَمَنْ شَاءَ صَامَهُ وَمَنْ شَاءَ تَرَكَهُ".

**ترجمه:** دام المومنین عائشة رضي الله عنها روایت دې فرمائی چه عاشوره هغه ورځ وه په کومه چه دجاهلیت په زمانه کښې به هم خلقو روژه نیوله اونبی علیه السلام به هم په دې ورځ دجاهلیت په زمانه کښې روژه نیوله، کله چه نبی علیه السلام مدینې منورې ته راغې نود عاشورې روژه ئې اونیوله اونوروخلقوته ئې هم په دې ورځ دروژې نیولوحکم اوکړو، ددې نه پس چه کله درمضان روژې فرض شوې نودرمضان روژې فرض پاتې شوې اود عاشورې روژه نبی علیه السلام پریخوده اوس که دچا زړه غواړي نود عاشورې په ورځ دې روژه اونیسي اوکه دچازړه غواړي نه دې نیسي.

### توضیح الحدیث

سیده عائشه رضي الله عنها فرمائی چه یوم عاشوراء یعنی د لسم محرم ورځ داسې ورځ وه چه په هغې کښې به قریشو روژه نیوله په زمانه جاهلیت کښ، او رسول الله صلی الله علیه وسلم به هغه ورځ روژه نیوله هم په دغه زمانه کښې یعنی د هجرت نه مخکښ، بیا چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم هجرت فرمائیلو سره مدینې منورې ته تشریف راوړلو نو دلته راتلو سره هم رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ورځ دا روژه اونیوله او صحابه کرامو ته ئې هم د هغه روژې حکم اوفرمائیلو (استحبابا یا وجوبا، استحبابا کما عند الشافعي ووجوبا عند الحنفية) بیا چه کله د رمضان روژه فرض شوه نو فرض روژه صرف هم هغه شوه او د عاشوراء روژه ترک شوه چه د چا زړه غواړی هغه دې اونیسی چه د چا زړه نه غواړی نه دې نیسی.

### شرح حدیث:

د دې حدیث په شرح کښې حافظ وغیره لیکلي دی چه په دې ورځ باندې به قریشو روژه ولې نیوله؟ پس کیدې شی چه هغوی دا څیز حاصل کړې وی د څه قدیم شریعت نه، او هم دغه شان د هغه خلقو دا فعل چه هغوی د دې ورځې تعظیم کولو، د کسوة کعبه په ذریعه، یعنی کعبه باندې به ئې غلاف خیژولو او هم دغه شان بعض نور کارونه، او د حضرت گنګوهی تقریر "الحل المفهم" او هم دغه شان "الکوکب الدري" کښې دا دی چه څنګه یهود په دې ورځ کښې روژه د الله پاک د بعض انعاماتو د وجې نه (چه د هغې ذکر په حدیث کښې

[1]): صحیح البخاري/الحج ۸۵ (۱۶۵۸)، الصوم ۶۵ (۱۹۸۸)، الأشربة ۱۲ (۵۶۰۴)، صحیح مسلم/الصیام ۱۸ (۱۱۲۳)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۵۴)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ۴۳ (۱۳۲)، مسند احمد (۶/۲۳۸، ۳۴۰) (صحیح)

دي) نیوله هم دغه شان کیدې شي، د قریشو په تیرو لویو خلقو باندې هم د الله پاک څه انعام شوي وي چه د هغې په شکریه کښې هغوی هم په دې ورځ باندې روژه نیسي.

اوس پاتې شوه دا خبره چه رسول الله ﷺ مکه کښې قبل الهجرة ولې نیوله؟ دې باره کښې د حضرت ګنګوهی تقریر په "الحل المفهم" کښې دا دي چه رسول الله ﷺ به دا روژه نیوله د قریشو په موافقت کښې په داسې امورو کښې چه کوم طاعت محموده او د عبادت د قبیل نه دي، او قرطبی هم دې ته نزدې خبره کړې ده، یعنی په حیثیت د موافقت فی امور الخیر، کما فی الحج، یعنی څنګه چه به رسول الله ﷺ حج کولو، د نورو خلقو په شان، او یا دا چه الله پاک هغه ته د دې اجازت ورکړې وي په دې اعتبار سره چه هغه فعل خیر دې، او د هغې نه په روستو روایت کښې دي:

لما قدم النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ المدینة وجد الیهود یصومون عاشوراء فسئلوا عن ذلک فقالوا هو الیوم الذی اظهر الله فیه موسی علی فرعون ونحن نصومه تعظیما له، فقال رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نحن اولی بموسی منکم وامر بصیامه،،.

## د دې مقام مکمل توضیح وتنقیح من کلام الشراح والشیخ الجنجوهی:

د دې روایت مضمون دا دې چه ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه کله رسول الله ﷺ مدینې منورې ته هجرت فرمائیلو سره راورسیدو نو هلته ئې اوکتل یعنی معلومه شوه چه یهودو به د عاشوراء روژه نیوله، رسول الله ﷺ د هغوی نه د دې د نیولو وجه اوتپوسله نو هغوی ورته اووې چه دا داسې ورځ ده چه په هغې کښې الله پاک زمونږ نبی موسی علیه السلام ته د هغه د دشمن فرعون باندې غلبه ورکړې وه نو چونکه دا د فتح او غلبې ورځ ده په دې وجه مونږ د دې ورځ په تعظیم کښې روژه نیسو، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه موسی علیه السلام ته مونږ ستاسو نه زیات نزدې یو، او رسول الله ﷺ هغه ورځ د روژې نیولو حکم اوفرمائیلو، په کوکب الدری کښې لیکلې دي چه د دې نه دې دا خیال اونکړې شي چه دا د روژې حکم د موافقت یهود په بناء وو بلکه د روژې امر خو د رسول الله ﷺ د طرف نه د مخکښې نه وو، دا جدا خبره ده چه یهودو هم په دې ورځ باندې روژه نیوله او هغه ته په دې معامله کښې د هغوی مخالفت کول نه وو، لهذا امر سابق هم باقی پاتې شو او دا مزید وجه هم مخې ته راغله د اتباع موسی علیه السلام والا، هم دغه شان د دې دوارو احادیثو د یوځائې کولو نه معلومه شوه چه صوم عاشوراء چه څنګه په زمانه جاهلیت کښې قریشو نیوله، په څه وجه باندې، چه هر څه وجه وي، نو هم دغه شان به یهودو هم نیوله چه د هغې سبب هغه وو کوم چه خپله هغوی بیان کړو، لهذا په نفس روژه نیولو کښې خو د فریقینو سره موافقت اوشو اګر چه سبب د دوارو مختلف دې، لهذا په دوارو روایتونو کښې خپل مینځ کښې هیڅ تعارض نشته، ښه ځان پوهه کړئ.

[۲۴۴۳]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ عَاشُورَاءُ يَوْمًا نَصُومُهُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ. فَلَمَّا نَزَلَ رَمَضَانُ، قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَذَا يَوْمٌ مِنْ أَيَّامِ اللهِ فَمَنْ شَاءَ صَامَهُ وَمَنْ شَاءَ تَرَكَهُ"

**ترجمه:** دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه عاشوره هغه ورځ وه په کومه چه دجاهليت په زمانه کښې به مونږ روژه نيوله، بياچه کله درمضان روژې فرض شوې نونبي عليه السلام اوفرمائيل دا ورځ هم دالله تعالى په ورځوکښې يوه ورځ ده که څوك غواړي نو په دې ورځ دې روژه اونيسي اوکه څوك غواړي نوپريخودلې دې شي.

[۲۴۴۴]()حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا أَبُو بِشْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ وَجَدَ الْيَهُودَ يَصُومُونَ عَاشُورَاءَ، فَسُئِلُوا عَنْ ذَلِكَ. فَقَالُوا: هَذَا الْيَوْمُ الَّذِي أَظْهَرَ اللهُ فِيهِ مُوسَى عَلَى فِرْعَوْنَ، وَنَحْنُ نَصُومُهُ تَعْظِيمًا لَهُ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَحْنُ أَوْلَى بِمُوسَى مِنْكُمْ. "وَأَمَرَ بِصِيَامِهِ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائي کله چه نبي عليه السلام مديني منورې ته راغي نو يهوديان ئې اوليدل چه د عاشورې روژه ئې نيوله نبي عليه السلام ددوينه ددې دوجې تپوس اوکړو نويهوديانو اووئيل چه په دې ورځ باندې الله تعالى په فرعون باندې موسى ته غلبه ورکړې وه اومونږ دهغه دتعظيم دوجې نه په دې ورځ روژه نيسو نبي عليه السلام اوفرمائيل موسى عليه السلام ته مونږه ستاسونه زيات نزدې يو اونبي عليه السلام په دې ورځ باندې د عاشورې دروژې نيولو حکم اوکړو.

**تشريح:** د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه ﴿لما قدم المدينة وجد اليهود يصومون عاشوراء﴾ په دې باندې دا اشکال کولې شی چه راوی خو وائی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم چه کله مديني منورې ته اورسيدو نو هلته تلو سره ئې يهوديان اوليدل چه هغوی به د عاشوراء په ورځ باندې روژه نيوله، د دې نه په ظاهره دا معلوميږی چه يهود په دې ورځ (چه په کومه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم مديني ته اورسيدو) روژه نيولې وه، حال دا چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم قدوم مديني منورې ته د ربيع الاول په مياشت کښې شوې وو نه د محرم په مياشت کښ، يا په يوم عاشوراء کښ، د دې جواب دا کړې شوې دې چه د راوی مراد دا دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د دې خبرې علم (د يهودو د يوم عاشوراء د روژې نيولو) د قدوم مدينه نه روستو اوشو د دې نه مخکښې ورته د دې علم نه وو، او يا دې زيات نه زيات دا اومنلې شی چه دلته څه عبارت مقدر دې چه کله رسول الله صلى الله عليه وسلم مديني منورې ته اورسيدو او د رسيدو نه پس يوم عاشوراء راغله او په دې کښې ئې يهود په روژه نيولو باندې اوليدل، بيا ترې رسول الله صلى الله عليه وسلم تپوس اوکړو، يا بيا

[1]): صحيح البخاري/الصوم ٦٩ (٢٠٠٢)، والتفسير ٢٤ (٤٥٠١)، صحيح مسلم/الصيام ٢٠ (١١٢٦)، (تحفة الأشراف: ٨١٤٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصيام ٤١ (١٧٣٧)، مسند احمد (٥٧/٢)، سنن الدارمي/الصوم ٤٦ (١٨٠٣) (صحيح)

[2]): صحيح البخاري/الصوم ٦٩ (٢٠٠٤)، أحاديث الأنبياء ٢٤ (٣٣٩٧)، المناقب ٥٢ (٣٩٤٣)، التفسير ٢ (٤٧٣٧)، صحيح مسلم/الصيام ١٩ (١١٣٠)، (تحفة الأشراف: ٥٤٥٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصوم ٤٩ (٧٥٣)، سنن ابن ماجه/الصيام ٤١ (١٧٣٤)، مسند احمد (٢٣٦/١، ٣٤٠)، سنن الدارمي/الصوم ٤٦ (١٨٠٠) (صحيح)

داسي اوئيلي شي كه دا حديث د دې په ظاهر باندې اوساتلې شي چه ممكنه ده يهود په يوم عاشوراء كښې د سنين شمسيه حساب كوى ا و د هغوى په دې حساب سره يوم عاشوراء په هغه ورځ باندې واقع شوې وى چه په كومه ورځ باندې رسول الله ﷺ مديني منورې ته اورسيدو، حافظ فرمائى چه قابل اعتماد اوله توجيه ده. (من البذل)

دلته يو اختلاف دا هم دې چه ﴿وامر بصيامه﴾ كښې د امر نه مراد امر وجوبى دې يا استحبابى، احناف د وجوب قائل دى چه په شروع كښې صوم عاشوراء واجب وه، او د شوافعو په اشهر القولين كښې دا امر د استحباب دپاره وو، خو دا به منلې شى چه د دې صوم وجوب يو كال پورې وو بيا هم په دې كال باندې منسوخ شو. په دې وجه د رسول الله ﷺ قدوم مدينه كښې د كال په شروع كښې د محرم د تيريدو نه پس په ربيع الاول كښې شوې دې، بيا چه كله د هجرت په دويم كال شروع كښې چه كله د محرم مياشت راغله په دې كښې د دې فرضيت بيا موندلې شو بيا هم د دې كال په اخر يعنى شعبان ۲ هجرى كښې نزول رمضان كيدو سره د دې روژې وجوب منسوخ شو. وحديث الباب اخرجه ايضا البخارى ومسلم والنسائى والبيهقى والدارمى والترمذى وقال حديث صحيح. (المنهل)

## بَابُ مَا رُوِيَ أَنَّ عَاشُورَاءَ الْيَوْمُ التَّاسِعُ

### باب دې په بيان ددې چه عاشوره په نهم محرم باندې ده

### د عاشوراء متعلق څو بحثونه :

خان پوهه كړه ه په صوم عاشوراء كښې ډير بحثونه دى، په اوجز المسالك كښې حضرت شيخ پنځه بحثونه بالتفصيل ذكر كړې دى، الاول لغة هل هو بالمداو بالقصر، واختلفوا فى مصداقه ايضا هل هو اليوم العاشر كما قال به الجمهور او اليوم التاسع او الحادى عشر، والثانى فى وجه التسمية بذلك، والمشهور انه سمى به لانه عاشر المحرم، وقيل سمى به لانه تعالى اكرم فيه عشرة من الانبياء، بعشر كرامات ذكرت فى الاوجز. [1] يعنى دې ورځې ته عاشورا په دې وجه وئيلې شى چه چونكه هغه د محرم لسم تاريخ او لسمه ورځ ده او يا په دې وجه چه الله پاک مختلف زمانو كښې مختلف لس انبياء عليهم السلام باندې يو نبى باندې يو خاص انعام اوفرمائيلو په دې ورځ كښې يعنى د محرم په يوم عاشر كښې، په دې وجه دې ته يوم عاشوراء وئيلې شى. هغه لس انبياء كوم كوم دى او په هغوى كښې په هر يو باندې انعام

[1] ) ففيه الصواب المشهور عند اهل اللغة والحديث انه سمي بذلك لانه عاشر المحرم، وقيل لان الله تعالي اكرم فيه عشرة من الانبياء عليهم السلام بعشر كرامات.. يعنى الله پاک په دې ورځ كښې په لس انبياء عليهم السلام باندې لس انعام او اكرام اوفرمائيل، په هر يو نبى باندې يو خاص انعام، الاول موسى عليه السلام اذا نصره فيه وغرق فرعون، والثاني نوح عليه السلام اذا استوت فيه سفينة علي الجودي، والثالث يونس عليه السلام انجي فيه من بطن الحوت، الرابع تاب الله فيه علي ادم عليه السلام الخامس اخرج فيه يوسف عليه السلام من الجب، السادس عيسي عليه السلام اذ ولد فيه ورفع فيه، السابع تاب الله علي داود عليه السلام الثامن ولد فيه ابراهيم عليه السلام التاسع يعقوب عليه السلام رد فيه بصره، العاشر نبينا سيد ولد ادم محمد صَلَّي اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غفر له فيه ما تقدم من ذنبه وما تاخر، الي اخر ما في الاوجز والزيادة عليه، اللهم صل علي سيدنا محمد واله وعلي جميع اخوانه من الانبياء والمرسلين)

کړې شوې دې هغه په حاشیه کښې اوګورئ. البحث الثالث فی اعمال ذلک الیوم غیر الصوم، الرابع هل کان صومه واجبا فی الاسلام او مستحبا؟ الخامس فی حکم صومه الان، وبسط الکلام علی هذه الابحاث فی الاوجز. اه من هامش اللامع (الحل المفهم)

د پورته ذکر شوې مضمون نه معلومه شوه چه یو بحث دلته دا دې چه د یوم عاشوراء مصداق کومه ورځ ده لسم محرم یا نهم؟ پس جمهور علماء د صحابه او تابعین نه او هم په دوی کښې ائمه اربعه هم دی، د هغوی په نزد د دې مصداق الیوم العاشر یعنی د محرم لسمه ورځ ده، قال الخلیل هو الیوم العاشر والاشتقاق یدل علیه، او د ابن عباس رضی الله عنهما نه مشهوره دا ده چه هغه الیوم التاسع یعنی د نهم محرم ورځ ده او دریم قول په دې کښې دا دې چه د دې مصداق یولسم محرم دې نقله العینی عن تفسیر ابی اللیث السمرقندی، امام ترمذی رحمه الله باب تړلې دې "ما جاء فی عاشوراء ای یوم هو" او د هغې د لاندې ئې دا روایت راوړې دې، حکم بن الاعرج فرمائی چه زه ابن عباس رضی الله عنهما ته لاړم، هغه د زمزم کوهی ته نزدې د خپل څادر تکیه جوړه کړې ملاست وو، ما هغه ته عرض اوکړو ﴿اخبرنی عن یوم عاشوراء ای یوم اصومه، چه د عاشوراء د ورځې په باره کښې ماته بیان اوکړئ چه د دې روژه زه په کومه ورځ باندې اونیسم، نو هغه جواب راکړو چه کله ته د محرم میاشت وینې نو ورځې شماره. ﴿ثم اصبح من یوم التاسع صائما﴾ بیا نهم تاریخ لره صبا کړه ته د روژې په حالت کښې، هغه وائی ما د هغه نه تپوس اوکړو چه ایا رسول الله ﷺ به دا روژه هم دغه شان نیوله؟ نو هغوی اوفرمائیل او جی!

د دې روایت نه په ظاهره کښې هم دا معلومیږی چه د هغه په نزد د دې مصداق یوم تاسع دې، د دې نه پس امام ترمذی رحمه الله بل روایت دا ذکر کړې دې عن الحسن عن ابن عباس قال امر رسول الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بصوم عاشوراء یوم العاشر... بیا د دې نه روستو امام ترمذی رحمه الله په دې ورځ کښې د اهل علم اختلاف نقل کړې دې قال بعضهم یوم التاسع، وقال بعضهم یوم العاشر، وروی عن ابن عباس انه قال صوموا التاسع والعاشر وخالفوا الیهود وبهذا الحدیث یقول الشافعی واحمد واسحاق. اه

د بعض حضراتو رائې د ابن عباس رضی الله عنهما په باره کښې دا ده چه هغه په دې کښې د جمهورو سره دې او د ترمذی په اول روایت چه د هغې نه په ظاهره معلومیږی چه د هغه په نزد یوم التاسع دې د هغې تاویل هغه دا کوی چه هغه د یوم عاشوراء مصداق نه بیانوی بلکه د سائل په سوال کښې دی لفظ یوم عاشوراء نه پس "ای یوم اصومه" که زه د صوم عاشوراء روژه نیسم نو څنګه او په کومه ورځ اونیسم؟ نو هغه د دې په جواب کښې اوفرمائیل چه د محرم په نهم تاریخ باندې اونیسه یعنی د نهم محرم نه ئې شروع کړه، یعنی د یوم عاشوراء سره د نهم تاریخ روژه هم شامل کړه، بیا وړاندې د سائل په سوال کښې دی چه ایا رسول الله ﷺ به هم داسې روژه نیوله نو هغه اوفرمائیل او! د دې مطلب دا دې چه او رسول الله ﷺ هم دا غوښتل چه دا روژه داسې اونیولې شی، ځکه چه د ابوداود په حدیث الباب کښې دی چه کله صحابه کرامو رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه د هغه ورځ تعظیم کښې

خو به یهودو نصاری روژه نیوله نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کله بل کال راشي نو مونږ به د نهم تاریخ روژه هم نیسو، خو په هغه باندې د راروان کال د روژو نیولو موقع رانغله بلکه د هغې نه مخکښې وفات شو، نو د رسول الله ﷺ مراد هم دا وو چه د یوم عاشر سره به د یوم تاسع روژه هم نیسی د دې دپاره چه تشبه بالیهود لازم نه شي

هم دغه شان د جمهورو تائید د دې ورځې د وجه تسمیه نه هم کیږی لکه چه پورته د خلیل په کلام کښې تیر شو، هو الیوم العاشر والاشتقاق یدل علیه. زمونږ استاذ محترم مولانا محمد اسعد الله صاحب رحمه الله تعالی به فرمائیل چه که د یوم عاشوراء مصداق یوم العاشر وی نو بیا خو په دې تسمیه کښې لحاظ کړې شوې دې د لیله ماضیه، او که د دې مصداق یوم التاسع اومنلې شی نو په دې صورت کښې په تسمیه کښې لحاظ کړې شوې دې د لیلة اتیه. هم دغه شان علماء کرامو لیکلي دی چه درې مراتب دی، ادنی درجه دا ده چه صرف یوم العاشر باندې روژه اونیولې شی او د دې نه غوره دا ده چه د دې سره دې تاسع هم شامل کړې شی، او د دې نه هم غوره دا ده چه د دې سره نهم او یولسم دواړه شامل کړې شی

[٢٤٤٥]()حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، أَنَّ إِسْمَاعِيلَ بْنَ أُمَيَّةَ الْقُرَشِيَّ، حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا غَطَفَانَ يَقُولُ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ يَقُولُ: حِينَ صَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عَاشُورَاءَ وَأَمَرَنَا بِصِيَامِهِ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهُ يَوْمٌ تُعَظِّمُهُ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَإِذَا كَانَ الْعَامُ الْمُقْبِلُ صُمْنَا يَوْمَ التَّاسِعِ". فَلَمْ يَأْتِ الْعَامُ الْمُقْبِلُ حَتَّى تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** د عبدالله بن عباس رضی الله عنه روایت دې کله چه نبی علیه السلام د عاشورې په ورځ روژه ونیوله او مونږ ته ئې په دې ورځ دروژې نیولو حکم اوکړو نوصحابه کرامو عرض اوکړو اې دالله رسوله دا خو هغه ورځ ده دکومې چه یهودیان اونصارې تعظیم کوې نبی علیه السلام اوفرمائیل که چرې زه دبل کال پورې ژوندې پاتې شوم نوپه نهم تاریخ به روژه نیسم بیاراروان کال دشروع کیدو نه مخکښې نبی علیه السلام وفات شو.

## توضیح الحدیث

جمهور علماء کرام خو د دې معنی دا اخلی ای مع العاشر، خو دلته چونکه ترجمة الباب د الیوم التاسع دې په دې وجه به دا ونیلې شی چه د مصنف په ذهن کښې دا دی چه د ابن عباس رضی الله عنه په نزد په دې حدیث کښې صرف یوم التاسع مراد دې او دا نه شی وئیلې کیدې چه خپله د مصنف رائې هم دا ده. والحدیث اخرجه ایضا مسلم والبیهقی.

[٢٤٤٦]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ سَعِيدٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ غَلَّابٍ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، أَخْبَرَنِي حَاجِبُ بْنُ عُمَرَ، جَمِيعًا الْمَعْنَى عَنِ الْحَكَمِ بْنِ الْأَعْرَجِ، قَالَ: أَتَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ وَهُوَ مُتَوَسِّدٌ رِدَاءَهُ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ، فَسَأَلْتُهُ عَنْ صَوْمِ يَوْمِ عَاشُورَاءَ. فَقَالَ: "إِذَا رَأَيْتَ هِلَالَ الْمُحَرَّمِ فَاعْدُدْ، فَإِذَا كَانَ يَوْمُ

[1]: صحيح مسلم/الصيام ٢٠ (١١٣٤)، (تحفة الأشراف: ٦٥٦٦) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الصيام ٢٠ (١١٣٣)، سنن الترمذي/الصوم ٥٠ (٧٥٤)، (تحفة الأشراف: ٥٤١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٩، ٢٤٦، ٢٨٠، ٣٤٤، ٣٦٠) (صحيح)

التَّاسِعِ فَأَصْبِحْ صَائِمًا". فَقُلْتُ: كَذَا كَانَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ؟ فَقَالَ: كَذَلِكَ كَانَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ.

**ترجمه**: دحکم بن اعرج نه روايت دې فرمائی چه زه ابن عباس ته لاړم او هغه پخپل څادر کښې ډډه وهلې وه اوپه مسجد حرام کښې ناست وو ما ترې د عاشورې دروځې په باره کښې تپوس اوکړو هغه اوفرمائيل کله چه د محرم مياشت اووينې نوشمير شروع کړه کله چه نهم تاريخ شي نوروژه اونيسه ما عرض اوکړو چه آيا نبی ﷺ به په دې ورځ باندې روژه نيوله هغه اووئيل او، نبی ﷺ به هم په دې ورځ باندې روژه نيوله.

## توضيح الحديث

دا حديث د ترمذی په حوالې سره مخکښې تير شوې دې، واخرجه ايضا مسلم والنسائی، واخرجه البيهقی. (المنهل)

# بَابٌ فِي فَضْلِ صَوْمِهِ

## باب د عاشوره د روژې د فضيلت بيان

د صوم عاشوراء متعلق په مباحث خمسه کښې بحث خامس دا وو چه د دې روژې حکم فی الحال څه دې، حافظ فرمائی: ابن عبدالبر په دې خبره باندې اجماع نقل کړې ده چه صوم عاشوراء اوس د چا په نزد هم واجب نه ده، بلکه اجماع ده د دې په استحباب باندې، البته د ابن عمر رضی الله عنهما منقول دی چه هغه به بالقصد د دې ورځې په تعيين سره روژه نيول مکروه ګڼړل، اوس د دې قول هم قائل څوک پاتې نه شو.

## صوم عاشوراء به څنګه نيولې شی؟

په اوجز ۵۹/۳ کښې د درمختار نه نقل کړې دی چه صرف د عاشوراء روژه نيول مکروه تنزيهی دی ځکه چه په دې کښې تشبه باليهود ده، او "مراقی الفلاح" کښې صوم عاشوراء مع الصوم التاسع ته مسنون وئيلې ده، طحطاوی فرمائی: يا د لسم سره د يولسم تاريخ روژه اونيولې شی، يو ورځ مخکښې يا يو ورځ روستو روژو ي، ځائې کولو سره کراهت منتفی کيږی، او د نورو ائمه کرامو مذاهب دې په دې سلسله کښې په اوجز کښې اوکتلې شی، د پورته حديث په شرح کښې هم د دې درې طريقې تيرې شوې.

[۲۴۴۷] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمِنْهَالِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَسْلَمَةَ، عَنْ عَمِّهِ، أَنَّ أَسْلَمَ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "صُمْتُمْ يَوْمَكُمْ هَذَا؟" قَالُوا: لَا. قَالَ: "فَأَتِمُّوا بَقِيَّةَ يَوْمِكُمْ وَاقْضُوهُ". قَالَ أَبُودَاوُدَ: يَعْنِي يَوْمَ عَاشُورَاءَ".

**ترجمه**: مسلمه دخپل تره نه روايت کوی فرمائی چه د اسلم قبيلې خلق د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شول نبی ﷺ تپوس اوکړو اياتاسو په دې نن ورځ روژه نيولې ده خلقو اووئيل نه نبی ﷺ اوفرمائيل د نننۍ ورځې چه څومره حصه باقی پاتې ده د دې روژه پوره کړئ او بيا د دې قضا راوړئ. ابوداؤد وائی يعنی د عاشورې د ورځ.

---

(¹): سنن النسائي/الصيام ۳۶ (۲۳۲۰) (تحفة الأشراف: ۱۵۶۲۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹/۵، ۳۶۷، ۴۰۹) (ضعيف)

## توضيح الحديث

قوله: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَسْلَمَةَ([1])، عَنْ عَمِّهِ أَنَّ أَسْلَمَ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "صُمْتُمْ يَوْمَكُمْ هَذَا؟ قَالُوا: لَا. قَالَ: فَأَتِمُّوا بَقِيَّةَ يَوْمِكُمْ وَاقْضُوهُ:

اسلم چه د يوې قبيلې نوم دې، د دې قبيلې بعض خلق د رسول اللهﷺ په خدمت کښې راغلل او د عاشوراء ورځ وه، تپوس ئې ترې ارفرمائيلو چه ستاسو هم روژه ده؟ هغوی عرض اوکړو چه نه جي! نو وې فرمائيل چه څومره ورځ باقي پاتې شوې ده دا د روژې په شان پوره کړئ يعنې بغير د خوراک او څکاک نه د تشبه بالصائمين دپاره. او وې فرمائيل چه روستو د دې روژې قضاء راوړئ.

### صوم عاشوراء ابتداء واجب وه:

د دې حديث نه د احنافو د قول تائيد کيږي چه صوم عاشوراء په شروع کښې واجب وه، خطابي د شوافعو د طرف نه د دې تاويل دا کړې دې چه دا امر بالقضاء د استحباب دپاره دې د ايجاب دپاره نه دې، ځکه چه د طاعت او عبادت چه کوم وختونه وی هغه قابل احترام وی چه د هغې رعايت کولې شي، هم په دې چه رسول اللهﷺ اوغوښتل چه د هغوی د يو داسې خيز طرف ته رهنمائی اوکړې شي چه په هغې کښې فضيلت او ثواب دې، د دې دپاره چه کله د بيا دپاره د دې وخت راشي نو چه غفلت اونکړي. والحديث اخرجه ايضا النسائی، واخرجه البخاری والبيهقی والدارمی نحوه عن سلمة بن الاکوع رضي الله عنه (المنهل)

## بَابٌ فِي صَوْمِ يَوْمٍ وَفِطْرِ يَوْمٍ

### يوه ورځ روژه نيول او يوه ورځ روژه نه نيول

[۲۴۴۸]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، وَمُسَدَّدٌ، وَالْإِخْبَارُ فِي حَدِيثِ أَحْمَدَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: سَمِعْتُ عَمْرًا، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ أَوْسٍ، سَمِعَهُ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَحَبُّ الصِّيَامِ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى صِيَامُ دَاوُدَ، وَأَحَبُّ الصَّلَاةِ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى صَلَاةُ دَاوُدَ، كَانَ يَنَامُ نِصْفَهُ وَيَقُومُ ثُلُثَهُ وَيَنَامُ سُدُسَهُ، وَكَانَ يُفْطِرُ يَوْمًا وَيَصُومُ يَوْمًا".

**ترجمه:** دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام ماته اوفرمائيل يقينا محبوبې په روژوکښې الله تعالی ته روژې دداود عليه السلام دي اويقينا محبوب مونځ په مونځونوکښې الله تعالی ته د داود عليه السلام دې هغه به نيمه شپه اوده کيدو او په دريمه حصه کښې به پاځيدو او په شپږمه حصه کښې به بيا اوده کيدو او يوه ورځ به ئې روژه وه او يوه ورځ به نه وه.

## توضيح الحديث

دا د عبدالله بن عمرو رضي الله عنه د حديث يو بل طريق سره "باب فی صوم الدهر" په يو بل سياق

[1]) ويقال: ابن سلمة: ويقال ابن المنهال بن سلمة الخزاعي اهـ من البذل (ج ۲ ص ۲۸۸) وللمزيد ارجع اليه.

[2]): صحيح البخاري/قيام الليل ۷ (۱۱۳۱)، صحيح مسلم/الصيام ۳۵ (۱۱۵۹)، سنن النسائي/الصيام ۴۰ (۲۳۴۶)، سنن ابن ماجه/الصيام ۳۱(۱۷۱۲)، (تحفة الأشراف: ۸۸۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۰۶)، دي/الصوم (۴۲(۱۷۹۳) (صحيح)

کښې تیر شوې دی، په هغې کښې د صیام داودی ذکر وو د صلاة داودی ذکر پکښې نه وو، په دې کښې د داود علیه السلام د صلاة تهجد دا معمول بیان کړې شوې دې چه هغه به په شروع کښې نیمه شپې پورې آرام فرمائیلو، بیا باقی یو ثلث کښې به ئې مونځ کولو او په سدس اخیر کښې به ئې ارام فرمائیلو. والحدیث اخرجه ایضا مسلم والنسائی وابن ماجة، واخرجه الدارمی یرفعه..... واخرجه البیهقی (المنهل)

## بَابٌ فِي صَوْمِ الثَّلَاثِ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ

### په هره میاشت کښې د درې روژو نیولو دفضیلت بیان

[۲٤٤٩] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ أَنَسٍ أَخِي مُحَمَّدٍ، عَنِ ابْنِ مِلْحَانَ الْقَيْسِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَأْمُرُنَا أَنْ نَصُومَ الْبِيضَ: ثَلَاثَ عَشْرَةَ وَأَرْبَعَ عَشْرَةَ وَخَمْسَ عَشْرَةَ". قَالَ: وَقَالَ: هُنَّ كَهَيْئَةِ الدَّهْرِ.

**ترجمه:** ابن ملحان قیسي دخپل پلار نه روایت کوی هغه فرمائی چه نبی علیه السلام به خلقو ته حکم کولو چه دایام بیض یعنی، ۱۳، ۱۴، ۱۵ تاریخونو روژی نیسئ یقینا ددې ورځو روژې نیول دتمام عمر د روژو نیولو برابر دي.

**تشریح:** د ابن ملحان نوم عبدالملک بن قتاده بن ملحان دې، هغه د خپل پلار یعنی قتاده رضی الله عنه نه روایت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به مونږ ته حکم فرمائیلو په ایام بیض یعنی د هرې میاشتې په دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاریخ باندې د روژې نیولو.

دې درې تاریخونو ته ایام بیض په دې وجه وئیلې شی چه د دې ورځو شپې روښانه وی دا د لیالی مقمره ورځې دی کوم ته چه نحوی صفت بحال متعلق موصوف وائی. او رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه هره میاشت درې روژې نیول د صوم الدهر برابر دی.

[۲٤٥٠] (²) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ زِرٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَصُومُ يَعْنِي مِنْ غُرَّةِ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ".

**ترجمه:** دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به دهرې میاشتې په شروع کښې درې ورځې روژې نیولې یعنی ۱، ۲، ۳، تاریخونو روژی به ئې نیولې.

### توضیح الحدیث

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه هر میاشت د درې روژو استحباب په ډیرو روایاتو کښې راغلې دې. رسول الله صلی الله علیه وسلم به هره میاشت درې روژې خپله هم د نیولو اهتمام فرمائیلو، او خپلو اصحابو ته به ئې هم د دې د نیولو ترغیب ورکولو، خو د دې درې ورځو تعیین او مصداق کښې روایات مختلف دی، په بعض روایاتو کښې د دې ایامو مصداق

¹): سنن النسائي/الصيام ٥١ (٢٤٣٤)، سنن ابن ماجه/الصيام ٢٩ (١٧٠٧)، (تحفة الأشراف: ١١٠٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٥/٤، ٢٧/٥، ٢٨) (صحيح)

²): سنن الترمذي/الصوم ٤١ (٧٤٢)، سنن ابن ماجه/المناسك ٣٧ (١٢٧٥)، (تحفة الأشراف: ٩٢٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٦٧/١) (حسن)

ايام بيض ته وئيلي شوي دي، او د بعض رواياتو نه معلوميږي چه د هرې مياشت په شروع کښې درې ورځې لکه چه د دې باب په دوه احاديثو کښې د دې دواړو ذکر دې، او په بعض رواياتو کښې د دې نه علاوه د نورو ورځو تعيين راغلې دې، پس مصنف ورانديې هم دا اختلاف په نورو بابونو کښې بيانوي، د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه امام بخاري د صيام البيض باب تړلې دې خو حديث ئې په دې کښې د صيام البيض نه دې راوړې بلکه صوم ثلاثه ايام من کل شهرئي راوړې دې او دا په دې وجه چه هغه حديث د سنن دې، د امام بخاري د شرط مطابق نه وو د دې په سند کښې اختلاف دې، ذکره الدارقطني. البته امام بخاري دې حديث شريف طرف ته اشاره کولو سره ترجمه هم ددې قائم کړې ده، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه زمونږ شيخ حافظ عراقي د ترمذي په شرح کښې فرمائي چه د ايام بيض په تعيين کښې نهه اقوال دی (تسعة اقوال) دا اقوال تسعه حضرت شيخ په الابواب والتراجم کښې نقل فرمائيلې دې هم دغه شان دا اقوال د بخاري په حاشيه کښې هم منقول دی او بيا د هغه محشي په دې کښې د يو بل قول اضافه کولو سره پوره لس اقوال کړل.

دلته يو څيز په ذهن کښې د ساتلو دې چه دا پورته چه ذکر شو چه د ايام بيض په تعين کښې نهه يا لس اقوال دی په دې تعبير کښې غلطي ده بلکه داسې وئيل پکار دی چه صوم ثلاثة ايام من کل شهر په تعيين کښې دومره اقوال دی، او د هغې نه يو قول دا هم دې چه د دې مصداق ايام بيض دی، افاده شيخنا رحمه الله تعالى في درس البخاري على ما اتذكر.

## بَابُ مَنْ قَالَ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ

### باب: د دوشنبې (پير) او جمعرات (زيارت) د ورځو د روژو بيان

### د ترجمة الباب تشريح:

يعنې د هغه رواياتو ذکر چه په هغې کښې د ايام ثلاثه مصداق يوم الاثنين والخميس بيان کړې شوې دې.

[۲٤٥۱] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ بَهْدَلَةَ، عَنْ سَوَاءٍ الْخُزَاعِيِّ، عَنْ حَفْصَةَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَصُومُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنَ الشَّهْرِ: الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسَ وَالِاثْنَيْنِ مِنَ الْجُمْعَةِ الْأُخْرَى".

**ترجمه:** د ام المومنين حفصة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام به په مياشت کښې درې روژې نيولې د دوشنبې په ورځ اود زيارت په ورځ او په بله هفته کښې د دوشنبې په ورځ.

### توضيح الحديث

په دې روايت کښې سيده حفصه رضي الله عنها د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا معمول بيانوي چه هغه به په مياشت کښې درې روژې نيولې، د مياشتې په اول کل او اول زيارت او د دويمې هفتې د کل ورځ.

مونږ سره په صوم ستة ايام من شوال په باب کښې د احنافو په نزد چه کومې روژې مستحب

---

۱): سنن النسائي/الصيام ٤۱ (۲۳٦۸)، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۹٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۲۸۷، ۲۸۸)، وانظر ما تقدم برقم: (۲٤۳۷) (حسن)

او مندوب دی د هغې بیان تیر شوې دې هلته هره میاشت دا درې روژې هم تیرې شوې دی، او دا چه د دې ایام بیض کښې مندوب کیدل لهذا چه کوم سړې درې روژې غیر ایام بیض کښې نیسی هغه ته به د یو مندوب ثواب ملاویږی او که دا درې روژې ئې په ایام بیض کښې اونیولې حصل له اجر مندوبین. (کذا فی البذل) وفیه ایضا: چه د ایام بیض د روژو استحباب مستقل دې او صوم ثلاثه ایام من کل شهر استحباب د دې نه علاوه جدا دې. اهـ او دا هم تیر شو... چه د دې دواړو تداخل کیدې شی.

والحدیث اخرجه ایضا البیهقی. (المنهل)

[۲٤٥۲]([1]) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ هُنَيْدَةَ الْخُزَاعِيِّ، عَنْ أُمِّهِ، قَالَتْ: دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ فَسَأَلْتُهَا عَنِ الصِّيَامِ، فَقَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَأْمُرُنِي أَنْ أَصُومَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ، أَوَّلُهَا الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسُ".

**ترجمه:** دام سلمه رضی الله عنها روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به ماته په هره میاشت کښې ددرې ورځوروژونیولو حکم کولو، اولنۍ به ددوشنبې په ورځ وه اودویمه به دزیارت په ورځ.

# بَابُ مَنْ قَالَ لَا يُبَالِي مِنْ أَيِّ الشَّهْرِ

## باب دې په بیان د جواز د روژې نیولو د میاشتې په هره حصه کښې

دا ترجمه بلفظ الحدیث ده، هم دا الفاظ په حدیث الباب کښې راروان دی.

[۲٤٥۳]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ يَزِيدَ الرِّشْكِ، عَنْ مُعَاذَةَ، قَالَتْ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ: أَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ؟ قَالَتْ: نَعَمْ. قُلْتُ: مِنْ أَيِّ شَهْرٍ كَانَ يَصُومُ؟ قَالَتْ: "مَا كَانَ يُبَالِي مِنْ أَيِّ أَيَّامِ الشَّهْرِ كَانَ يَصُومُ".

**ترجمه:** دمعاذة رضی الله عنها روایت دې فرمائی چه دام المومنین عائشة رضی الله عنها مې تپوس اوکړو چه آیانبی علیه السلام به په هره میاشت کښې درې روژې نیولې؟ هغې اوفرمائیل او، او د ورځو او تاریخونوخیال به ئې نه ساته کله چه به ئې زړه اوغوښتل روژه به شو.

## توضیح الحدیث

سیده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به هره میاشت د درې روژو اهتمام فرمائیلو، تپوس کونکې تپوس اوکړو چه د میاشتې په کومه حصه کښې نو هغې جواب ورکړو چه د دې به ئې څه خاص پرواه نه کوله چه په کومه حصه کښې اونیولې شی.

د دې سلسلې یو حدیث د عائشې رضی الله عنها نه په ترمذی کښې منقول دې چه په هغې کښې داسې دی چه په یوه میاشت کښې به ئې دا روژې په خالی، اتوار او گل باندې نیولې، او په بله میاشت کښې به ئې په نهه، چارشنبه او زیارت کښې نیولې، او په یو بل روایت کښې راځی چه ﴿ قلما کان یفطر یوم الجمعة ﴾ په دې صورت کښې د هفتې په ټولو

[1]: سنن النسائي/الصيام ٥١ (٢٤٢١)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٩/٦، ٣١٠) (منكر)

[2]: صحيح مسلم/الصيام ٣٦ (١١٦٠)، سنن الترمذي/الصوم ٥٤ (٧٦٣)، سنن ابن ماجه/الصيام ٢٩ (١٧٠٩)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٥/٦) (صحيح)

ورځو کښې يعنی دوه مياشتې يوځائې کولو سره د روژې ثبوت راځی، او د هرې ورځې په حصه کښې روژه راځی يوه ورځ هم د دې عبادت نه محروم نه پاتې کيږی.

والحديث اخرجه مسلم وابن ماجة والبيهقی، والترمذی وقال: حديث حسن صحيح (المنهل)\

## بَابُ النِّيَّةِ فِي الصِّيَامِ

### بيان د نيت په روژو نيولو کښې

[۲۴۵۴] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي ابْنُ لَهِيعَةَ وَيَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ حَزْمٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ لَمْ يُجْمِعِ الصِّيَامَ قَبْلَ الْفَجْرِ، فَلَا صِيَامَ لَهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ اللَّيْثُ، وَإِسْحَاقُ بْنُ حَازِمٍ أَيْضًا جَمِيعًا عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، مِثْلَهُ، وَوَقَفَهُ عَلَى حَفْصَةَ مَعْمَرٌ وَالزُّبَيْدِيُّ وَابْنُ عُيَيْنَةَ وَيُونُسُ الْأَيْلِيُّ، كُلُّهُمْ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

**ترجمه:** دام المومنين حفصة رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی چاچه دسحرنه مخکښې دروژې نيت اونکړو نو دهغه روژه درسته نه ده. ابوداؤد وائی چه دې لره ليث اوعبدالله بن حازم دعبدالله بن أبی بکر نه ددې په مثل (يعنی مرفوعاً) روايت نقل کړې دې، اودې روايت لره معمر، زبيدي، ابن عيينه او يونس ايلی په ام المؤمنين حفصه رضی الله عنها باندې موقوف کړې دې. دوی ټول د زهری نه روايت کوی.

### توضيح الحديث

﴿ يجمع ﴾ د باب افعال نه دې، اجماع په معنی د عزم، يعنی کوم سړې چه د طلوع فجر نه مخکښې د روژې نيت اونکړی د هغه روژه صحيح نه ده.

### مسئله ثابته من الحديث کښې مذاهب ائمه:

د دې حديث نه د روژې د صحت دپاره د تبييت وجوب ثابتيږی دا مذهب د امام مالک دې مطلقا، او امام احمد او امام شافعی فرق کوی په فرض او نفل کښې، يعنی په فرض روژه کښې تبييت ضروری دې نه په نفلو کښې، په نفل کښې د زوال نه مخکښې نيت کول کافی دی، د احنافو په نزد په دې کښې تفصيل دې هغوی وائی چه په درې قسم روژو کښې تبييت ضروری دې او هغه دا دی: ۱: صوم قضاء، ۲: نذر مطلق، ۳: او کفارات، په دې کښې د شپې نه نيت ضروری دې، او په اداء رمضان، صوم نفل، نذر معين کښې تبييت ضروری نه دې، زمونږ علماء کرامو په دې مسئله کښې چه د روژو کوم تفصيل او اختلاف حکم بيان کړې دې د هغې د دليل دپاره کتب فقه هدايه وغيره طرف ته دې رجوع اوکړې شی. صاحب هدايه د حديث الباب ﴿ لا صيام لمن لم ينو الصيام من الليل ﴾ چه د هغې نه معلوميږی چه مطلقا د شپې نه نيت کول ضروری دی او د صبا راختلو نه روستو نيت معتبر نه دې، د دې ئې دوه توجيهات ذکر کړې دی، يو دا چه دا نفی، نفی د کمال ده، کامل روژه

---

(۱): سنن الترمذي/الصوم ۳۳ (۷۳۰)، سنن النسائي/الصيام ۳۹ (۲۳۳۳)، سنن ابن ماجه/الصيام ۲۶ (۱۷۰۰)، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۰۲)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصيام ۲ (۵)، مسند احمد (۲۷۸/۶)، سنن الدارمي/الصوم ۱۰ (۱۷٤۰) (صحيح)

د هم سرې ده کوم چه د مخکښې نه د هغه دپاره مستعد وي او نيت اوکړي، بله توجيه دا ده "معناه لم ينو انه صوم من الليل" يعنى كوم سړي چه د صبا راختلو نه پس نيت اوکړي هغه له نيت داسې کول پکار دي چه زه روژه نيسم د هغه د ابتداء وقت نه يعنى د صبا راختلو نه او که دا نيت ئې ن وي چه زه د هغه وخت نه روژه نيسم يعنى د وقت حاضر نه او مثلا يوه ګهنټه تيره شوې وي نو دا نيت معتبر نه دې لهذا روژه هم صحيح نه ده، ځکه چه د روژې وخت متجزى نه دې، په خلاف د مونځ چه د هغې وخت د هغه دپاره ظرف دې او د روژې وخت د روژې دپاره معيار دې كما تقرر فى اصول الفقه.

معلومه شوه چه د دې حديث په ظاهره باندې صرف د مالكيانو عمل دې او باقى ائمه ثلاثه په دې کښې د تخصيص قائل دى. والحديث اخرجه ايضا احمد والنسائى وابن ماجة، والدارقطنى وابن خزيمة، وابن حبان وصححاه، والترمذى. (المنهل)

## بَابٌ فِي الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

### باب دې په بيان د روژې د نيت نه کولو د جواز کښې

په دې باب کښې مصنف هغه احاديث راوړې دى چه د هغې نه د ترک تبيت جواز او رخصت معلوميږي.

[۲٤۵۵](1)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، جَمِيعًا عَنْ طَلْحَةَ بْنِ يَحْيَى، عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ عَلَيَّ، قَالَ: "هَلْ عِنْدَكُمْ طَعَامٌ؟ فَإِذَا قُلْنَا: لَا. قَالَ: إِنِّي صَائِمٌ". زَادَ وَكِيعٌ: فَدَخَلَ عَلَيْنَا يَوْمًا آخَرَ، فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، "أُهْدِيَ لَنَا حَيْسٌ فَحَبَسْنَاهُ لَكَ. فَقَالَ: أَدْنِيهِ. قَالَ طَلْحَةُ: فَأَصْبَحَ صَائِمًا وَأَفْطَرَ".

**ترجمه:** دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائى چه نبى ﷺ به كله ماته تشريف راوړو اوونې فرمائيل ايا دخوراك څه شي درسره شته؟ مونږ چه كله ووئيل چه نشته نو هغه اوفرمائيل چه زماخو روژه ده. دوكيع په روايت کښې ورسره دا اضافه ده چه يوه بله ورځ زمونږ خواته راغې مونږ ورته ووئيل چه اې داالله رسوله مونږ ته چا حلوا هديه کړې وه او مونږ تاله ساتلې ده، نبى ﷺ اوفرمائيل رانزدې ئې کړئ دطلحه په روايت کښې ورسره دا اضافه ده چه دسحر نه ئې دروژې نيت کړې وو ليكن بيا ئې ماته كړه.

### توضيح الحديث

سيده عائشه رضي الله عنها فرمائى دير كرته به رسول الله ﷺ د بهر نه كور ته تشريف راوړلو د سحر په وخت او تپوس به ئې کولو چه د خوراک څکاک څه څيز شته؟ که مونږ به عرض اوکړو چه نه نو رسول الله ﷺ به اوفرمائيل چه ښه زه د روژې نيت كوم.

د دې حديث نه ترک تبييت ثابت شو، وړاندې په روايت کښې دى چه يو ځل رسول الله ﷺ تشريف راوړلو نو مونږ عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! مونږ ته د يوځائې نه د هديه

---

(1): صحيح مسلم/الصيام ۳۲ (۱۱۵٤)، سنن الترمذي/الصوم ۳۵ (۷۳٤)، سنن النسائي/الصيام ۳۹ (۲۳۲۷)، سنن ابن ماجه/الصيام ۲٦ (۱۷۰۱)، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۷۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۴۹، ۲۰۷) (حسن صحيح)

په طور حيس (۱) راغلي دي، وې فرمائيل چه ماته ئې رانزدې کړئ او هغه ئې اوخوړولو، فاصبح صائما وافطر... صبا کړې ئې د روژې په نيت وو او بيا ئې افطار اوکړو، بله مسئله په دې حديث کښې نفل روژه شروع کولو سره د هغې د افطار کولو ده چه په دې صورت کښې په قضاء واجب وی يا نه؟ په دې باندې مستقل وړاندې باب راروان دې، حيس يعنی د کهجورو پنير او غوړو شيره. والحديث اخرجه احمد والنسائی وابن ماجة والدارقطنی والبيهقی، واخرجه الترمذی من طريقين (المنهل)

[۲۴۵۶](۲)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أُمِّ هَانِئٍ، قَالَتْ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ الْفَتْحِ فَتْحِ مَكَّةَ، جَاءَتْ فَاطِمَةُ فَجَلَسَتْ عَنْ يَسَارِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُمُّ هَانِئٍ عَنْ يَمِينِهِ. قَالَتْ: فَجَاءَتِ الْوَلِيدَةُ بِإِنَاءٍ فِيهِ شَرَابٌ فَنَاوَلَتْهُ فَشَرِبَ مِنْهُ، ثُمَّ نَاوَلَهُ أُمَّ هَانِئٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ. فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، "لَقَدْ أَفْطَرْتُ وَكُنْتُ صَائِمَةً. فَقَالَ لَهَا: أَكُنْتِ تَقْضِينَ شَيْئًا؟ قَالَتْ: لَا. قَالَ: فَلَا يَضُرُّكِ إِنْ كَانَ تَطَوُّعًا".

**ترجمه:** د ام هاني رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه دفتح مکې په ورځ فاطمة رضي الله عنها راغله اودنبی عليه السلام کس طرف ته کيناسته او ام هاني ئې ښي طرف ته ناسته وه ام هاني وائی چه يوه ماشومه راغله اوپه يولوښي کښې ئې دڅکلوڅه شي راوړل اونبی عليه السلام ته پې پيش کړل نونبی عليه السلام دهغې نه اوڅکل اونبی عليه السلام بيا ام هاني ته ورکړل هغې هم وڅکل او وې وئيل اې دالله رسوله ماخو روژه ماته کړه اوما روژه نيولې وه نبی عليه السلام ورته او فرمائيل آيا تاددې قضا راوړله هغې ووئيل نه نبی عليه السلام اوفرمائيل که چرې نفل وې نوڅه حرج نشته

## توضيح الحديث

د حديث مضمون واضح دې، چه په هغې کښې دا دی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم خپله جوټه ام هانی رضي الله عنها ته ورکړه هغې هغه فورا اوڅکله او بيا ئې عرض اوکړو يا رسول الله صلى الله عليه وسلم زما روژه وه. رسول الله صلى الله عليه وسلم ترې تپوس اوکړو چه نفلی وه که د يوې روژې قضاء وه؟ هغې عرض اوکړو نه قضاء نه وه، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: فلا يضرک ان کان تطوعا.

## د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:

د دې حديث د ترجمة الباب سره هيڅ مناسبت نشته، بيا دا حديث په دې باب کښې د راوړلو توجيه صرف دا کيدې شی چه د دې نه مخکښې حديث کوم چه د ترجمة الباب مطابق وو د هغه حديث يو جزء د افطار نه پس الشروع فی الصوم وو کومه چه اختلافی مسئله ده او بل حديث کښې هم دا مسئله ده، پس د دې قرب معنی د وجې نه ئې دا دلته راوړې دې او په دې وجه هم چه وړاندې مصنف هم په دې مسئله باندې کلام کول غواړی.

والحديث اخرجه ايضا احمد والدارمی والدارقطنی والبيهقی والطبرانی، واخرجه الترمذی من طريق اخر. (المنهل)

(۱) هو طعام متخذ من تمر واقط وسمن اهـ من البذل ۳/۳۹۱

(۲) تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۰٤)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصوم ۳٤ (۷۳۲)، مسند احمد (۳٤۲/٦) (صحيح)

## بَابُ مَنْ رَأَى عَلَيْهِ الْقَضَاءَ

### باب دې په بیان د قول دهغه چا څوک چه د نفلی روژی د قضا د وجوب قائل دی

[۲۴۵۷](۱)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ زُمَيْلٍ مَوْلَى عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: أُهْدِيَ لِي وَلِحَفْصَةَ طَعَامٌ وَكُنَّا صَائِمَتَيْنِ فَأَفْطَرْنَا، ثُمَّ دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْنَا لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا أُهْدِيَتْ لَنَا هَدِيَّةٌ فَاشْتَهَيْنَاهَا فَأَفْطَرْنَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا عَلَيْكُمَا صُومَا مَكَانَهُ يَوْمًا آخَرَ".

**ترجمه**: دام المومنین عائشي رضی الله عنها نه روایت دي فرمائی چه ما اوحفصي ته دخوراك څه شي هدیه کړي شو او مونږ دواړو روژه نیولي وه نو په دې وخت کښي مونږ روژه ماته کړه ګوروچه نبی علیه السلام راغي مونږ ورته وویل مونږ ته دخوراك څه شي هدیه کړي شوي دې زمونږ ورته زړه شوي وو او روژه مو ماته کړه، نبی علیه السلام اوفرمائیل څه حرج نشته ددې په عوض کښي یوه بله روژه بله ورځ ونیسئ

**تشریح**: په تیر باب کښي د حدیث نه په ظاهره دا معلومیږی چه صوم تطوع که پوره نه کړې شی نو د دې قضاء نشته، هم په دې وجه ئې اوس د دې خلاف باب قائم کړې دې.

### توضیح الحدیث

سیده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه یو ځل په هدیه کښي ما او حفصه ته د یوځائي نه خوراک راغلو، مونږ دواړو هغه وخت روژه نیولي وه، مونږ هغه روژه ماته کړه (ضرورة د لوږې د وجې نه) بیا چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم کور ته تشریف راوړلو نو مونږ هغه ته خپله قصه بیان کړه، رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې اوریدلو سره اوفرمائیل ﴿لا علیکما﴾ یعنی لا باس علیکما. هیڅ باک نشته په تاسو دواړو باندې، او وې فرمائیل ﴿صوما﴾دا د امر صیغه دپاره د تثنیه ده، یعنی تاسو دواړه روژه اونیسئ په بل ورځ باندې د اولي روژې په بدله کښي کومه چه تاسو ماته کړې ده.

### مسئلة الباب کښي مذاهب ائمه :

دا مسئله اختلافی دې، شافعیه، حنابله د قضاء قائل نه دی او احناف مطلقا د قضاء قائل دی، او امام مالک رحمه الله فرمائی : نفل روژه ساتلو نه پس که افطار ئی قصداء بغیر د عذر نه کړې دې، بیا خو د دې قضاء واجب ده ګیني نه، امام ترمذی په دې مسئله باندې دوه بابونه تړلي دی : ما جاء فی افطار الصائم المتطوع. چه په هغې کښي ابوداود والا روایت نه علاوه یو بل حدیث هم ذکر کړې دې : قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : الصائم المتطوع امین نفسه... او په یو روایت کښي دی : امیر نفسه... ان شاء صام وان شاء افطر، دا خو د شافعیه او حنابله دلیل شو، پس امام ترمذی رحمه الله فرمائی : وهو قول سفیان الثوری واحمد واسحاق والشافعی. بل باب ئې قائم کړې دې "ما جاء فی ایجاب القضاء علیه، او په هغې کښي ئې هم هغه حدیث ذکر

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۳۷)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصوم ۳۶ (۷۳۵)، موطا امام مالک/الصیام ۱۸ (۵۰) (ضعیف)

کړې دې کوم چه په ابوداود کښې دی او بیا د هغې نه روستو فرمائي : وقد ذهب قوم من اهل العلم من اصحاب النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وغيرهم الى هذا الحديث فراوا عليه القضاء اذا افطر وهو قول مالک بن انس. اهـ، وحديث الباب اخرجه ايضا مالک فی الموطاء، والنسائی وابن حبان والطبرانی وابن ابی شيبة... واخرجه البيهقی والترمذی. (المنهل)

## بَابُ الْمَرْأَةِ تَصُومُ بِغَيْرِ إِذْنِ زَوْجِهَا

### باب دې د ښځې دپاره د خاوند د اجازت نه بغير د نفلي روژو نيولو په بيان کښې

[۲۴۵۸]([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَصُومُ الْمَرْأَةُ وَبَعْلُهَا شَاهِدٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ غَيْرَ رَمَضَانَ، وَلَا تَأْذَنْ فِي بَيْتِهِ وَهُوَ شَاهِدٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ".

**ترجمه:** د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلي دی مناسب نه دی د ښځې دپاره چه خاوند ئې په کور کښې موجود وي او دا روژې نيسي مګر که په اجازت د هغه سره وي علاوه د روژو د رمضان نه، او کورته د راتللو اجازت به چاته نه ورکوي کله چه د دې خاوند په کور کښې موجود وي مګر د دې په اجازت سره.

### توضيح الحديث

د دې حديث نه معلومه شوه چه د کومې زنانه خاوند په کور کښې موجود وی (سفر کښې نه وی) نو هغه لره نفل روژه بغير د خاوند د اجازت نه جائز نه دی، علامه عينی فرمائي : د علماء کرامو د دې په حرمت باندې اتفاق دې، او امام نووی رحمه الله په شرح مهذب کښې ليکی چه د بعض شوافعو په نزد دا مکروه دی، او صحيح دا ده چه حرام دې. اهـ من هامش البذل والمنهل.

او دويم جزء د دې حديث دا دې چه د کومې ښځې خاوند حاضر وی نو هغه دې د هغه په کور کښې چاته هم د داخليدو اجازت نه ورکوی بغير د خاوند د اجازت نه، په دې جزء کښې ﴿ وهو شاهد ﴾ قيد احترازی نه دې بلکه اتفاق دی، ځکه چه که خاوند غائب وی نو په دې صورت کښې د داخليدو اجازت ورکول بطريق اولی ناجائز دی، پس د ترمذی په روايت کښې دی د جابر رضی الله عنه نه مرفوعا ﴿ لا تلجوا على المغيبات فان الشيطان يجرى من احدكم مجرى الدم ﴾ مغيبات جمع د مغيبة ده بضم الميم وكسر الغين وسكون الياء، هغه زنانه چه د هغې خاوند غائب وی، په سفر کښې وی.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم، واخرجه البيهقی والدارمی الجزء الاول من الحديث. (المنهل بتصرف)

[1]): صحيح البخاري/ البيوع ۱۲ (۲۰۶۶)، النكاح ۸۴ (۵۱۹۲)، النفقات ۵ (۵۳۶۰)، صحيح مسلم/الزكاة ۲۶ (۱۰۲۶)، سنن الترمذي/الصوم ۶۵ (۷۸۲)، سنن ابن ماجه/الصيام ۵۳ (۱۷۶۱)، (تحفة الأشراف: ۱۴۶۹۵، ۱۴۷۹۳)، وقد أخرجه: مسند أحمد (۲/۳۶۱)، سنن الدارمي/الصوم ۲۰ (۱۷۶۱) (صحيح) دون ذكر رمضان

[۲۴۵۹]([1])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ عِنْدَهُ. فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ زَوْجِي صَفْوَانَ بْنَ الْمُعَطَّلِ يَضْرِبُنِي إِذَا صَلَّيْتُ، وَيُفَطِّرُنِي إِذَا صُمْتُ، وَلَا يُصَلِّي صَلَاةَ الْفَجْرِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ. قَالَ وَصَفْوَانُ عِنْدَهُ: قَالَ: فَسَأَلَهُ عَمَّا قَالَتْ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَمَّا قَوْلُهَا يَضْرِبُنِي إِذَا صَلَّيْتُ، فَإِنَّهَا تَقْرَأُ بِسُورَتَيْنِ وَقَدْ نَهَيْتُهَا، قَالَ: فَقَالَ: لَوْ كَانَتْ سُورَةً وَاحِدَةً لَكَفَتِ النَّاسَ. وَأَمَّا قَوْلُهَا يُفَطِّرُنِي، فَإِنَّهَا تَنْطَلِقُ فَتَصُومُ وَأَنَا رَجُلٌ شَابٌّ فَلَا أَصْبِرُ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ: "لَا تَصُومُ امْرَأَةٌ إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا". وَأَمَّا قَوْلُهَا إِنِّي لَا أُصَلِّي حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، فَإِنَّا أَهْلُ بَيْتٍ قَدْ عُرِفَ لَنَا ذَاكَ، لَا نَكَادُ نَسْتَيْقِظُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ. قَالَ: "فَإِذَا اسْتَيْقَظْتَ فَصَلِّ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ حُمَيْدٍ أَوْ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ.

**ترجمه:** دابي سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه يوه زنانه دنبي عليه السلام په خدمت كښې حاضره شوه، او مونږ ورسره ناست وو، هغې ووئيل اې دالله رسوله يقينا زما خاوند صفوان بن معطل ما وهي كله چه زه مونځ كوم او روژه راباندې ماتوي كله چه زما روژه وي اودسحر مونځ نه كوي ترڅوچه نمر نه وي ختلي، راوي وائي چه ددې خاوند صفوان دنبي عليه السلام سره موجود وو وائي چه نبي عليه السلام ترې دهغه دښځې دوينا متعلق تپوس اوكړو، نوهغه ووئيل اې دالله رسوله هرچه ددې داخبره ده چه كله مونځ كوم نو وهي مې داپه مونځ كښې دوه دوه سورتونه وائي او ماددې نه منع كړې ده وائي چه نبي عليه السلام ووئيل كه چرې ديوسورت قرأت وي نوهغه هم دخلقونه كافي كيږي او هرچه ددې داخبره ده چه كله مې روژه وي نو راباندې ئې ماتوي ددې داحالت دې چه ډيرې روژې نيسي اوزه ځوان سړې يم صبر نشم كولي، نبي عليه السلام اوفرمائيل دنن نه پس به يوه ښځه نفلي روژې نه نيسي كله چه ددې خاوند په كوركښې موجود وي مګرپه اجازت دهغه سره، هرچه ددې داخبره ده چه زه مونځ نه كوم دسحر ترڅوچه نمر نه وي ختلي، نو حقيقت دادې چه زه د داسې كورنۍ سره تعلق لرم چه دهغې باره كښې هرچاته پته ده (يعنى زه محنت كار سړې يم دشپې كاروبارى مصروفيت ته اشاره ده) سحروختى نه شم ويخيدلي ترڅوچه نمرنه وي ختلي، نبي عليه السلام اوفرمائيل كله چه ويخ شې مونځ كوه. ابوداود وائي چه حماد يعنى ابن سلمه دحميد نه يا د ثابت نه او هغوى د ابوالمتوكل نه هم داسې روايت نقل كړې دې.

## شرح حديث :

د حديث مضمون دا دې، ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمائي چه يوه زنانه (چه د هغې نوم خو معلوم نه دې خو دا معلومه ده چه د صفوان بن معطل رضي الله عنه زوجه وه لكه چه وړاندې په روايت كښې دی) د رسول الله صلى الله عليه وسلم خدمت كښې حاضره شوه او هغه ته ئې د خپل خاوند درې شكايتونه اوكړل چه) زما خاوند صفوان بن معطل رضي الله عنه چه كله زه مونځ كوم نو ما وهي، او چه كله روژه نيسم نو هغه راباندې ماتوي، او د سحر مونځ نه كوي مګر دا چه نمر راوخيژي (ګويا قضاء ئې كوي) راوي وائي : د دې شكاياتو په وخت صفوان هم هلته موجود وو، پس

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٠١٢)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصيام ٥٣ (١٧٦٢)، مسند احمد (٣/٨٠، ٨٤)، سنن الدارمي/الصوم ٢٠ (١٧٦٠) (صحيح)

رسول الله ﷺ د دې شکایتونو متعلق د هغه نه تپوس اوکړو چه د دې څه اصلیت دې؟ هغه د هر شکایت ترتیب وار جواب ورکړو ، عرض ئې اوکړو یا رسول الله! بهرحال دا خبره چه زه دا په مونځ کولو باندې وهم نو د دې وجه دا ده چه دا په هر رکعت کښې دوه سورتونو لولي حال دا چه ما دا منع کړې ده د داسې کولو نه، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل : که د ټولې دنیا قراءت په مونځ کښې یو سورت وی نو د دې ټولو دپاره به کافي شي، یعنی د ټولې دنیا دپاره خو یو مونځ کښې یو سورة لوستل کافي کیږي ستا دپاره نه کافي کیږي؟ ګویا رسول الله ﷺ د زنانه شکایت غلط اومنلو، او خاوند ئې معذور اوګڼړلو په وهلو کښ، دا مطلب په هغه صورت کښې دې چه کله دلته په روایت کښې ﴿ فانها تقراء بسورتين ﴾ وی لکه چه په بعض نسخو کښې دی او هم دا ظاهره هم ده. او په بعض نسخو کښې داسې دی ﴿ فانها تقرأ بسورتی ﴾ [1] باضافة سورة الی یاء المتکلم په دې صورت کښې کښې به مطلب دا وی چه دا په مونځ کښې زما سورة لولي یعنی کوم سورة چه زه لولم، [2] په دې صورت کښې به د رسول الله ﷺ د خبرې مطلب دا وی چه بیا په دې کښې څه نقصان دې که ستا سورة لولي (د الله بنده! که په ټول قران کښې یو سورت وې نو هم هغه به د ټولو دپاره کافي وو، یعنی ظاهره ده چه بیا به هم هغه ټولو لوستلو) د دې مطلب دا شو چه رسول الله ﷺ د زنانه شکایت صحیح اوګڼړلو او خاوند ته ئې تنبیه ورکړه.

د دې نه روستو صفوان د دویم شکایت جواب ورکړو چه دا زما موجودګی کښې یعنی زما په کور کښې د موجودګئ باوجود مسلسل نفلي روژې نیسی حال دا چه زه ځوان سړې یم زما نه صبر نه کیږی په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل : یوې زنانه لره بغیر د خاوند د اذن نه نفلي روژه نه دی نیول پکار، د هغې نه روستو د دریم شکایت هغوی دا جواب ورکړو یا رسول الله! زما د ښځې دا خبره صحیح ده چه زه ورځ راختلو سره د سحر مونځ کوم اصل خبره دا ده چه زمونږ د پوره کورنئ دا حال دې کوم چه معروف دې چه زمونږ سترګې د نمر ختلو نه مخکښې نه غړیږی، رسول الله ﷺ هغه په دې کښې هم معذور اوګنړلو او وې فرمائیل چه کله بیدار شې نو هغه وخت ئې کوه. رسول الله ﷺ ګویا د زنانه درې وارو شکایتونه غلط اوګنړل. امام خطابی د دې حدیث په اخری جزء باندې فرمائی چه د رسول الله ﷺ د صفوان د مونځ په باره کښې په دې کوتاهی باندې د زجر او تنبیه ترک کول دا عجیبه مهربانی ده د الله پاک په خپلو بندګانو باندې او د هغه د رسول نرمی ده د خپل امت سره، او بیا وراندې لیکی : ظاهره دا ده چه هغه په دې خپل حالت کښې مغلوب او معجوز عنه شوې وو لکه چه یو مغمی علیه وی په دې وجه رسول الله ﷺ هغه ته تنبیه

---

[1] او حضرت ګنګوهی رحمه الله د ابوداود په غیر مطبوعه تقریر کښې دی چه د ﴿سورتي﴾ یا د متکلم نه ده بلکه دا په اصل کښې ﴿سورتين﴾ وو نون خلاف قیاس تخفیفا ساقط شو لهذا دا به ﴿سورتي﴾ د تاء په فتحې سره لوستلې شي.

[2] د حضرت شیخ په حاشیه بذل کښې دی چه د دې تائید د هغې نه کیږی کوم چه د ابن الجوزی په تلقیح کښې دی قال ان معي سورة ليس معي غيرها تقرؤها، چه ماته یو سورت یاد دې او د هغې نه علاوه راته یو سورة هم یاد نه دې دا هم همیشه هم هغه لولي.

اونکړه، او دا هم ممکنه ده چه دا د مونځ قضاء کیدل هم کله کله وی نه دائم الاوقات چه کله څوک هغه ځائې کښې هغه لره بیدارونکې نه وی. اه او د حضرت گنگوهی په تقریر کښې دی ﴿حتی تطلع الشمس﴾ په طور د مبالغې دې چه د هغې نه مراد اسفار او غایت اسفار دې.

**په حدیث باندې اشکال او د هغې جواب :**

ځان پوهه کړه چه دا صفوان بن معطل رضی الله عنه هم هغه صحابی دې چه د چا ذکر په حدیث الافک کښې راغی چه د چا په باره کښې منافقانو په حضرت عائشه رضی الله عنها باندې تهمت لګولې وو، په هغه حدیث الافک کښې دی چه د هغه په باره کښې منافقینو په حضرت عائشه رضی الله عنها باندې تهمت لګولې وو، په دې حدیث الافک کښې دا دی چه کله هغه صحابی ته دا خبره اورسیده چه خلق په هغوی باندې دا الزام لګوی نو هغه فرمائیلې وو ﴿سبحان الله والله ما کشفت انثی قط﴾ چه ما خو تر اوسه پورې د یوې زنانه ازار نه دې پرانستلې، او دلته په دې حدیث کښې هغه فرمائی. ﴿وانا رجل شاب فلا اصبر﴾ د دې یو جواب خو دا کړې شوې دې چه حدیث الافک د دې په مقابله کښې زیات صحیح دې، هغه د صحیحین حدیث دې او دا د سنن، او دویمه توجیه دا کړې شوې ده چه دواړه خبرې په خپل ځائې باندې صحیح دې، د افک د واقعې پورې هغه واده نه وو کړې، هغه خبره د هغه وخت ده، او دا واقعه د واده نه روستو ده لهذا هیڅ تعارض نشته او دا چه کوم یو جواب ورکړې شوې دې چه ﴿ما کشفت﴾ کښې د مطلق کشف نفی نشته بلکه د کشف حرام نفی ده، حافظ فرمائی چه په یو روایت کښې دی ﴿لا حلا ولا حراما﴾ خو دا روایت ضعیف دې.، والحدیث اخرجه ایضا احمد وابن ماجة والبیهقی بلفظ المصنف واخرجه ایضا بلفظ اخر. (المنهل ملخصا)

## بَابٌ فِي الصَّائِمِ يُدْعَى إِلَى وَلِيمَةٍ

**باب دې په بیان د هغه روژه دار چه د ولیمې دعوت ورته ورکړې شي**

[۲۴۶۰] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ فَلْيُجِبْ، فَإِنْ كَانَ مُفْطِرًا فَلْيَطْعَمْ، وَإِنْ كَانَ صَائِمًا فَلْيُصَلِّ". قَالَ هِشَامٌ: وَالصَّلَاةُ الدُّعَاءُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، أَيْضًا عَنْ هِشَامٍ.

**ترجمه:** د ابو هریره نه روایت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائیلی دی کله چه چاته د خوراك د پاره دعوت ورکړې شی نو پکار ده چه دعوت قبول کړي که چرې دده کوژه وي نو خوراك دي اوکړي اوکه چرې روژه ئې وي نو مونځ دي اوکړي. هشام وائي چه د صلاة نه مراد دعا ده. ابوداود وائي چه همدارنګې دا اضافه په دې روایت کښې حفص بن غیاث هم د هشام نه نقل کړې ده.

**توضيح الحديث**

د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دې چه کله په تاسو کښې چاته د خوراک دعوت ورکړې شی نو هغه ورله قبلول پکار دی یعنی منظورول پکار دی، بیا ئې هلته تلو سره که روژه نه وی نو

(١) تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٤٥٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٤٢)، سنن الدارمي/الصوم ٣١ (١٧٧٨) (صحيح)

خوراک دې اوکړي، او که روژه ئې وي نو دعوت کونکي ته دې په دعا باندې اکتفاء اوکړي، او د دې نه په روستو روايت کښې دي چه کله په تاسو کښې د چا دعوت اوکړې شي او د هغه روژه وي نو هغه له پکار دي چه اووائي چه زما روژه ده.

**د باب په حديثين کښې تعارض او د هغې توجيه:**

په ظاهره دواړه احاديثو کښې اختلاف دې، اصل کښې په دواړو روايتونو کښې اختصار دې او د جمع بين الحديثين شکل دا دې چه کله دعوت اوکړې شي پس که روژه دار وي نو د روژې عذر دې اوکړي، که هغه ئې عذر قبول کړي نو صحيح ده، او که قبول نه کړي نو د هغه کور ته حاضريدو سره دې د هغه دپاره دعا اوکړي. كذافي البذل،او د کوکب نه معلوميږي چه دعوت خو دې په دواړو صورتونو کښې منظور کړي او د هغه کور ته د تلو نه روستو ئې روژه نه وي نو خوراک دې اوکړي، او که روژه وي نو د خوراک نه دې عذر اوکړي او د هغه دپاره دې دعا اوکړي، فليجب کښې امر د جمهورو په نزد د استحباب دپاره دې، او وئيلې شوې دي چه د وجوب دپاره دې، او بهرحال د اجابت حکم د هغه سړي په حق کښې دې چه هغه ته هيڅ قسم عذر نه وي، او کوم سړي چه معذور وي مثلاً خانې لرې وي چرته چه رسيدو کښې مشقت لاحق کيږي نو هلته په عذر کولو کښې هيڅ باک نشته، او دا چه پورته ذکر شو چه که روژه دار وي نو خوراک کولو نه دې عذر اوکړي دا په هغه صورت کښې دي چه کله هغه ته د هغه په انکار سره اذيت نه کيږي، او که هغه په خوراک کولو باندې اصرار اوکړي او نه خوراک کولو سره هغه ته تکليف وي نو بيا ورله روژه افطار کول پکار دي او بيا دې روستو د هغې قضاء اوکړي. كذافي الكوكب.د دې زيات تحقيق دې د کتب فقه نه اوکتلې شي.

﴿قال هشام : والصلاة الدعاء ﴾يعنې د صلاة نه مراد صلاة عرفي نه دې بلکه د دې لغوي معنى دعا مراد ده، او شارحينو ليکلي دي چه د صلاة عرفي معنى هم مراد کيدې شي اى فليصل رکعتين، او د معنيين په جمع کولو کښې هم هيڅ مانع نشته يعنې دوه رکعته دې هم اوکړي او د هغه دپاره دې دعا هم اوکړي لکه چه د رسول الله ﷺ نه ثابت دي، په بيت ام سليم کښې چه هلته رسول الله ﷺ د صوم عذر کولو سره د هغوی په کور کښې مونځ اوکړو او هغوی ته ئې دعا هم اوکړه. كما في البخاري

وحديث الباب اخرجه مسلم والنسائي وكذا الترمذي مختصرا. (المنهل ملخصاً)

## بَابُ مَا يَقُولُ الصَّائِمُ إِذَا دُعِيَ إِلَى الطَّعَامِ

**روژه دار له د خوراک د دعوت په وخت کښې څه وئيل پکار دي؟**

[ ۲٤٦۱ ](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى طَعَامٍ وَهُوَ صَائِمٌ، فَلْيَقُلْ: إِنِّي صَائِمٌ".

---

۱): صحيح مسلم/الصيام ۲۸ (۱۱۵۰)، سنن الترمذي/الصوم ٦٤ (۷۸۱)، سنن ابن ماجه/الصيام ٤۷ (۱۷۵۰)، (تحفة الأشراف: ۱۳٦۷۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲٤۲)، دي/المناسك ۳۱ (۱۷۷۸) (صحيح)

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی کله چه چاته دخوراك دپاره دعوت ورکړې شی اودده روژه وي نو اودې وائی چه زما روژه ده.

# باب الاعتكاف

## باب دې په بيان داحكامو داعتكاف كښې

مصنف رحمه الله د کتاب الصوم د تکميل دپاره په اخر کښې د اعتکاف باب قائم کړې دې ځکه چه څنګه د صوم تعلق د رمضان د مياشت سره دې هم دغه شان اعتکاف هم د دې مياشت په اخرى عشره کښې سنت دې، او امام ترمذی د کتاب الصوم په اخره کښې درې څيزونه بيان کړې دی اعتکاف او د هغې احکام، د ليلة القدر باب او قيام شهر رمضان يعنی تراويح، چونکه د څلور واړه څيزونه د خصائص رمضان نه دی، خو امام ابوداود ليلة القدر او صلاة تراويح لره د کتاب الصلاة په اخر کښې بيان کړې دی، ولکل وجهة هو موليها وللناس فيما يعشقون مذاهب.

### (د اعتكاف لغوي او اصطلاحي معنی)

د اعتکاف لغوی معنی لزوم الشئ وحبس النفس عليه، يو څيز لازمی نيول او خپل نفس په هغې باندې مضبوطول، او شرعی معنی د دې کما فی الهداية هو اللبث فی المسجد مع الصوم ونية الاعتكاف. يعنی په مسجد کښې ايساريدل د اعتکاف په نيت سره د روژې سره، او د هغې په حاشيه کښې دی چه د صوم شرط په ظاهر الرواية کښې د اعتکاف واجب دپاره دې نه د نفل اعتکاف دپاره.

### د اعتكاف اقسام ثلاثه او احكام :

ځان پوهه کړه چه د اعتکاف درې قسمونه دی، واجب، سنت موکده او مستحب. د واجب نه مراد اعتکاف منذور کوم چه د نذر د وجې نه واجب شوې وی او هم دغه شان شروع کولو نه هم، او سنت مؤکده، د رمضان د اخرى عشرې اعتکاف، يعنی سنت علی الكفاية، او دريم قسم يعنی مستحب هغه مطلق اعتکاف دې چه په هغې کښې د يوې زمانې قيد نشته، چه کله ئې اوغواړی کوی دې. (كذافى الدر المختار ۱۷۷/۲) دلته يوه مسئله دا هم اختلافی ده چه که يو سړې اعتکاف شروع کړی او هغه قطع کړی نو بيا په هغه باندې قضاء واجب ده يا نه؟ دا مسئله وړاندې په حديث الباب کښې راروانه ده. وړاندې په کتاب کښې ﴿المعتكف يعود المريض﴾ کښې د عائشې رضي الله عنها حديث موقوف راروان دې، ﴿ولا اعتكاف الا بصوم ولا اعتكاف الا فی مسجد جامع﴾ او د هغې نه روستو په يو بل حديث مرفوع کښې دی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د عمر رضي الله عنه په دې سوال باندې چه ما د زمانه جاهليت په يوه شپه کښې د اعتکاف نذر منلې وو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل: ﴿اعتكف وصم﴾ دا دواړه مسئلې يعنی اشتراط صوم او اشتراط جامع اختلافی دی.

### المسئلة الاولى :

د صوم په باره کښې پورته د احنافو دوه روايتونه تير شوې دی او دا چه ظاهر الرواية دا دې

چه د صوم شرط په اعتکاف منذور کښې دې نه په نفلي کښ، په حاشیه د بذل کښې په حواله د العرف الشذی کښې دی چه د شیخ ابن الهمام میلان د بل روایت طرف ته دې یعنی مطلقا وجوب صوم، اوس پاتې شوه دا مسئله د اعتکاف مسنون نو د دې نه متون احناف خو ساکت دی د فقهاء کرامو په دې کښې اختلاف دې، ابن عابدین اشتراط لره ترجیح ورکړې ده، او ابن نجیم صاحب البحر عدم اشتراط ته، او د باقي ائمه کرامو مسلک دا دې چه امام مالک په دې کښې مطلقا د اشتراط صوم قائل دې نفل او واجب په دې کښې د هغه په نزد تول برابر دی ترديٍ چه که يو سړې د يو عذر د وجې نه روژه او نه نيولې شي نو د هغه اعتکاف صحيح نه دې او د دې په خلاف د شوافعو او حنابله په نزد د راجح او مشهور قول مطابق مطلقا شرط نه دې. اهـ من الابواب والتراجم. د امام بخاري ميلان هم د دې طرف ته معلوميږي.

## المسئلة الثانية :

ځان پوهه کړه چه د اعتکاف الرجال دپاره د ائمه اربعه په نزد مسجد کيدل شرط دی او په دې کښې د بعض نورو علماء کرامو اختلاف دې پس محمد بن لبابه مالکي په نزد د صحة اعتکاف دپاره مسجد کيدل ضروري نه دی بل يجوز في کل موضع. او يو قول په دې کښې دا دې لا يجوز الا في المساجد الثلاثة. مسجد حرام، مسجد نبوی، بيت المقدس دا د حضرت حذيفه بن اليمان رضي الله عنه نه منقول دی. وروی عن عطاء انه لا يجوز الا بمسجد مکة والمدينة، وابن المسيب بمسجد المدينة.

بيا د ائمه اربعه په دې خبره کښې اختلاف دې چه کوم يو مسجد ضروري دې، د امام ابوحنيفه او امام احمد په نزد مسجد جماعت يعنی چه د هغه دپاره امام او مؤذن متعين وی، که پنځه وخته مونځ پکښې ادا کيږی يا نه ادا کيږی په دې کښې دواړه اقوال دی، او د امام ابويوسف رحمه الله په نزد مسجد جماعت د اعتکاف واجب دپاره ضروري دې، د اعتکاف نفل دپاره مطلق مسجد کافي دې او د امام شافعي او مالک په نزد مطلق مسجد، خو د دې دواړو امامانو په نزد که د اعتکاف دوران د جمعې ورځ راشي نو بيا د مسجد جامع کيدل ضروري دی ځکه چه خروج لصلاة الجمعة د دې دواړو امامانو په نزد قاطع اعتکاف دې په خلاف د احنافو او حنابله چه د هغوی په نزد قاطع اعتکاف نه دې، د شوافعو او مالکيانو په کتابونو کښې ئې ليکلي دی چه که يو سړې غير جامع کښې چه په هغې کښې د جمعې مونځ نه کيږی اعتکاف اوکړی او هم په دې کښې د جمعې ورځ راشي نو دا سړې که د جمعې دپاره د مسجد نه بهر لاړ نه شی بلکه په مسجد کښې وی نو في نفسه به د هغه اعتکاف صحيح شي خو د ترک جمعه ګناه به پرې وی.

دا اختلاف خو دې د اعتکاف الرجال متعلق، او د اعتکاف النساء په باره کښې د احنافو او جمهور علماء کرامو اختلاف دې، د امام احمد، امام مالک او امام شافعي في الجديد په نزد د زنانه د اعتکاف دپاره مسجد شرط دې، او د امام شافعي قول قديم او د احنافو مذهب دا دې چه د زنانه اعتکاف په مسجد بيت کښې صحيح دې، د مسجد بيت نه مراد د کور هغه حصه ده کومه چه هغه د خپل مونځ دپاره متعين کړی، خو يو فرق دا دې چه

د امام احمد په نزد د اعتکاف الرجل دپاره مسجد جماعت ضروری دې خو د زنانه دپاره د مسجد جماعت قید نشته مطلق مسجد کافی دې، د احنافو په نزد په دې کښې خو هيڅ اختلاف نشته چه د زنانه دپاره په مسجد بیت کښې اعتکاف اولی دې یا په مسجد جماعت کښ، خو په دې کښې اختلاف دې چه په مسجد جماعت کښې د هغې اعتکاف صحیح هم دې یا نه؟ په دې کښې زمونږ په نزد دواړه قسم اقوال دی د جواز هم او د عدم جواز هم. اهـ ملخصاً من الاوجز... ۱۲۷/۳،په اوجز کښې ئې دا ټول مذاهب او اختلافات د کتب فروع په حوالې سره لیکلې دی.

## توضیح الحدیث

د دې حدیث نه کوم چه متفق علیه دې د رسول الله ﷺ د رمضان په اخری عشره کښې د اعتکاف اهتمام او په هغې باندې مواظبت ثابتيږی، ځکه چه په حدیث کښې تصریح ده ﴿حتی قبضه الله ﴾چه د وفات د کال پورې رسول الله ﷺ دا عمل کړې دې، ابن الهمام رحمه الله فرمائی: د رسول الله ﷺ دا مواظبت فرمائیل بغیر د نکیر نه په هغه صحابه کرامو باندې چا چه دا ترک کړې دې دا دلیل دې د دې اعتکاف د سنیت، او که مواظبت سره انکار علی الترک هم موندلې شی نو بیا به دا دلیل وې د وجوب.

**د اعتکاف په باره کښې یو روایت د امام مالک :**

په دې سلسله کښې د امام مالک نه د هغه بعض شاګردانو دا نقل کړې دی چه کله زه د اعتکاف په باره کښې دا وینم چه د اکثر صحابه کرامو نه د دې ترک ثابت دې سره د دې هغوی شدید حرص وو په سنت باندې د عمل کولو نو زما په ذهن کښې راځی چه د دې حال د صوم وصال په شان دې انتهی کلامه. او د هغه د دې کلام نه د هغه بعض اصحابو دا اخذ کړې ده چه اعتکاف صرف جائز دې خو په دې باندې نور علماء مالکیه ابن العربی او ابن بطال وغیره رد کړ دې او دا د رسول الله ﷺ د مواظبت دلیل دې د دې د سنت مؤکده کیدو، امام ابوداود د امام احمد رحمه الله نه نقل کړې دی چه په علماء کرامو کښې د چا اختلاف د دې په مسنون کیدو کښې زما په علم کښې نشته.

**د رسول الله ﷺ د اعتکاف په باره کښې روایات مختلفه او په هغې کښې تطبیق :**

ځان پوهه کړه چه دلته په باب الاعتکاف کښې چه کوم روایات مصنف ذکر کړې دی په هغې ټولو کښې صرف د اعتکاف عشره اخیره ذکر شوې دې او امام بخاری رحمه الله د دې نه علاوه یو بل حدیث ذکر فرمائیلې دې په روایت د ابو سعید خدری رضی الله عنه چه ﴿ان النبی صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ کان یعتکف فی عشر الاواخر من رمضان ﴾ الحدیث. دا روایت مونږ سره په ابوداود کښې په کتاب الصلاة کښې په لیلة القدر کښې تیر شوې دې چه د هغې مضمون دا دې چه رسول الله ﷺ به د رمضان په عشره وسطی کښې اعتکاف فرمائیلو یو ځل ئې د عشره وسطی په اخیر کښې اوفرمائیل چه کومو خلقو ما سره اعتکاف کړې دې نو هغه دې د عشره اخیره اعتکاف هم اوکړی ځکه چه تر اوسه پورې لیلة القدر نه دې راغلې، ځکه چه ماته د دې علامت دا بیان کړې شوې دې چه کله په دې کال باندې شب قدر وی نو په هغه

شپه باندې به باران وی چه د هغې د وجې د مسجد نبوی چهت راوسسیږی او د هغې د سحر مونځ به زه په ختو او اوبو کښې کوم، پس ټول خلق د عشره اخیره د اعتکاف په نیت سره ایسار شو، راوی فرمائی چه بیا په اوله شپه یعنی یویشتمه باندې دا علامت ظاهر شو کوم چه رسول اللهﷺ فرمائیلې وو، د باران وغیره کیدل. د بخاری او ابوداود په روایت کښې خو هم دغه شان دی او د صحیح مسلم په روایت کښې داسې دی. ان رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعتکف العشر الاول من رمضان ثم اعتکف العشر الاوسط الحدیث. په دې روایت کښې د عشره اول د اعتکاف زیادت دې، دغه شان د مسلم په دې روایت کښې د اعتکف لفظ دې، ﴿کان یعتکف﴾نه دې، هم دغه شان امام مسلم دا قسم ټول روایات په ابواب لیلة القدر کښې ذکر کړې دی، او په باب الاعتکاف کښې ئې نه دې ذکر کړې، د دې مجموعه روایاتو نه معلومیږی چه رسول اللهﷺ چه اول اول کوم اعتکاف فرمائیلې وو (د لیلة القدر په لټون کښې) هغه ئې د عشره اولی فرمائیلې وو بیا چه ئې په هغې کښې لیلة القدر بیا نه موندلو نو په عشره وسطی کښې ئې اعتکاف اوکړو، په عشره وسطی کښې دا هغه ته خبر ملاؤ شو چه لیلة القدر د کوم په لټون کښې چه تاسو یئ دا به په اخری عشره کښې ملاویږی پس بیا هم داسې اوشوه لکه چه په حدیث کښې دی، او بیا د هغې نه روستو هغه همیشه په عشره اخیره کښې اعتکاف فرمائیلو، غالبا هم په دې وجه باندې امام مسلم او امام ابوداود وغیره حضرت په باب الاعتکاف کښې هم هغه روایات ذکر کړې دی چه په هغې کښې صرف د عشره اخیره اعتکاف مذکور دې او هم په دې وجه باندې فقهاء کرامو هم د عشره اخیره اعتکاف ته سنت وئیلې دې.

**د پوره رمضان د میاشتې د اعتکاف حیثیت:**

خو ځان پوهه کړئ چه د عبادات او طاعات د مشروعیت په اعتبار سره مختلف درجات دی، فرض، واجب، سنت، مستحب، چه د هغې تعریفات په اصول فقه او فقه کښې مذکور دی، سنت خو د رسول اللهﷺ معمول دائمی یا کم از کم اکثری ته وئیلې شی او کوم کار چه ئې د طاعت په حیثیت کښې کله کله کړې وی هغې ته مستحب وئیلې شی، علی هذا علی الظاهر د پوره میاشتې اعتکاف هم دې کوم چه هغه په شروع کښې یو ځل کړې دې [1] د هغې نه روستو ئې بالالتزام خو د عشره اخیره فرمائیلې دې خو کله کله د یو عارض او مصلحت د وجې نه لکه چه په روایاتو کښې راځی د دوه عشرو ئې هم کړې دې لهذا د رمضان د پوره میاشت اعتکاف ته خلاف سنت یا بدعت وئیل غلط دی، اوګورئ د دې احادیثو نه ثابتیږی چه د اعتکاف یو لوئې غرض د لیلة القدر حصول دې او د لیلة القدر د تعیین په باره کښې مختلف اقوال دی په عشره اخیره کښې د دې انحصار نه دې، د حضرت امام ابوحنیفهرحمه الله مشهور قول دې چه دا په ټول کال کښې وی، دویم قول ئې دا دې چه په پوره رمضان کښې وی، د دې نه علاوه اصل اعتکاف عبادت دې، اوس پورته تیر شو چه فقهاء کرامو د دې درې قسمونه بیان کړې وو، یو اعتکاف مسنون کوم چه د عشر اخیر سره

[1] کما تقدم تقریره قریبا)

خاص دي، يو اعتكاف منذور كوم چه د نذر تابع دي برابره خبره ده كه د يو ورځې نذر وي يا د يوې هفتې وي يا د يوې مياشتې وي، د دې مودې پوره كول واجب دي، ضروري دي، دريم قسم د هغه نفل اعتكاف دي چه د هغې په باره كښې د فقهاء كرامو تصريح ده چه هغه په زمانې پورې مقدر نه وي اګر چه يو ساعت وي يا يو مياشت يا يو كال، په پوره مياشت اعتكاف باندې د بدعت يا خلاف سنت كيدو اطلاق چه خلاف تحقيق نه شي نو نور څه دي.
والله الموفق وهو الملهم للصدق والصواب.

والحديث اخرجه ايضا البخارى ومسلم والترمذى والنسائى والدارقطنى، وكذا البيهقى من غير هذا الطريق. (المنهل ملخصاً)

[٢٤٦٣](١)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ فَلَمْ يَعْتَكِفْ عَامًا، فَلَمَّا كَانَ فِي الْعَامِ الْمُقْبِلِ اعْتَكَفَ عِشْرِينَ لَيْلَةً".

**ترجمه:** د ابی بن كعب رضی الله عنه نه روايت دې نبی عليه السلام به درمضان په آخرى لسو شپو كښې اعتكاف كوو نو يو كال ئې اعتكاف ونكړونو چه بل كال راغې نو شل ورځې اعتكاف ئې اوكړو.

## توضيح الحديث

يعنى د رسول الله صلی الله علیه وسلم معمول د رمضان په اخرى عشره كښې د اعتكاف وو، يو كال ئې د څه وجې نه اعتكاف اونكړې شو نو چه كله راروان كال راغلو نو دوه عشرې اعتكاف ئې اوكړو. رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه كال اعتكاف ولې اونكړې شو د هغې په باره كښې د ابن ماجه په روايت كښې دی ﴿فسافر عاما﴾ چه يو كال رسول الله صلی الله علیه وسلم په رمضان كښې په سفر كښې وو، علماء كرامو ليكلي دی چه دا سفر د فتح مكه سفر وو.

والحديث اخرجه ايضا النسائى وابن ماجة والبيهقى واخرجه الترمذى عن انس رضى الله عنه، وصححه ابن حبان والحاكم. (المنهل ملخصاً)

[٢٤٦٤](٢)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، وَيَعْلَى بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا أَرَادَ أَنْ يَعْتَكِفَ صَلَّى الْفَجْرَ ثُمَّ دَخَلَ مُعْتَكَفَهُ. قَالَتْ: وَإِنَّهُ أَرَادَ مَرَّةً أَنْ يَعْتَكِفَ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ، قَالَتْ: فَأَمَرَ بِبِنَائِهِ فَضُرِبَ. فَلَمَّا رَأَيْتُ ذَلِكَ أَمَرْتُ بِبِنَائِي فَضُرِبَ، قَالَتْ: وَأَمَرَ غَيْرِي مِنْ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبِنَائِهِ فَضُرِبَ. فَلَمَّا صَلَّى الْفَجْرَ نَظَرَ إِلَى الْأَبْنِيَةِ، فَقَالَ: مَا هَذِهِ آلْبِرَّ تُرِدْنَ؟ قَالَتْ: فَأَمَرَ بِبِنَائِهِ فَقُوِّضَ، وَأَمَرَ أَزْوَاجُهُ بِأَبْنِيَتِهِنَّ فَقُوِّضَتْ، ثُمَّ أَخَّرَ الِاعْتِكَافَ إِلَى الْعَشْرِ الْأُوَلِ يَعْنِي مِنْ شَوَّالٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ إِسْحَاقَ، وَالْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، نَحْوَهُ. وَرَوَاهُ مَالِكٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، قَالَ: اعْتَكَفَ عِشْرِينَ مِنْ شَوَّالٍ.

**ترجمه:** دام المومنين عائشې رضی الله عنها نه روايت دې نبی عليه السلام به چه كله اوغوښتل چه اعتكاف

---

(١): سنن ابن ماجه/الصيام ٥٨ (١٧٧٠)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤١/٥) (صحيح)
(٢): صحيح البخاري/الاعتكاف ٦ (٢٠٣٣)، ٧ (٢٠٣٤)، ١٤ (٢٠٤١)، ١٨ (٢٠٤٥)، صحيح مسلم/الاعتكاف ٢ (١١٧٢)، سنن الترمذي/الصوم ٧١ (٧٩١)، سنن النسائي/المساجد ١٨ (٧١٠)، سنن ابن ماجه/الصوم ٥٩ (١٧٧١)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٣٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاعتكاف ٤ (٧)، مسند احمد (٨٤/٦، ٢٢٦) (صحيح)

اوکړی نودسحرمونځ به ئې اوکړو او اعتکاف ځاني ته به داخل شو ، فرمائی چه یوځل نبی ﷺ داعتکاف اراده اوکړه درمضان په آخری لسو شپو کښې نوموږ ته ئې داعتکاف ځاني دجوړولو حکم اوکړو ، نوجوړه کړي شوه ، نوماچه کله دهغه داعتکاف ځائي ولیدو نوما هم ووئیل چه زما دپاره دي هم جوړ کړي شي نوزما دپاره هم اعتکاف خانه جوړه کړي شوه ، فرمائی چه په امهات المومنین کښې زمانه علاوه نوروبیبیانوهم ددې دجوړیدو دخواهش اظهاروکړو نوددوی دپاره هم جوړي کړي شوي ، نبی ﷺ چه کله دسحرمونځ اوکړو نوويي لیدل چه خیمی لګیدلی دي نوتپوس ئې اوکړوچه داڅه دی؟ آیا دائې دنیکئ په نیت جوړي کړي دي؟ نونبی ﷺ دخپلي خیمي د ورانولوحکم اوکړو هغه ورانه کړي شوه او امهات المومنین هم خپلي خیمي راټولي کړي اوبیانبی ﷺ خپل اعتکاف دشوال داولي عشري پورې موخرکړو. ابوداود وائی داروایت ابن اسحاق او اوزاعي دیحي بن سعید نه هم داسې نقل کړي دي ، اوامام مالك دیحي بن سعید نه نقل کړي دي چه نبی ﷺ په شوال کښې شل ورځي اعتکاف اوکړو.

## د اخري عشرې د اعتکاف ابتداء به څه وخت کیږی؟

په دې حدیث کښې سیده عائشه رضی الله عنها د عشره اخیره د اعتکاف د وخت ابتداء بیان فرمائی چه نبی ﷺ به د سحر مونځ ادا کولو سره خپل معتکف کښې داخلیدو ، په معتکف کښې یعنی دمسجد هغه خاص اړخ چه په هغې کښې به هغه د اعتکاف دپاره تشریف فرما کیدو.

د دې حدیث نه په ظاهره دا معلومیږی چه د عشره اخیره د اعتکاف ابتداء د یویشتم تاریخ د سحر نه کیږی بعض علماء لکه امام اوزاعی او لیث بن سعد مذهب هم دا دې ، حال دا چه د جمهور علماء او ائمه اربعه مذهب دا دې چه د کوم انسان د عشره اخیره د اعتکاف اراده وی نو هغه له پکار دی چه د یویشتم شپې نه د اعتکاف ابتداء اوکړی لهذا په شلم تاریخ دې د ماښامې احتیاطا د غروب شمس نه مخکښې مسجد ته داخل شی ، امام ترمذی امام احمد لره د امام اوزاعی سره ذکر کړې دې ، کیدې شی چه دا د هغه یو روایت وی ګیني حافظ وغیره شارحینو په دې کښې د ائمه اربعه اختلاف نه دې لیکلې ، بهرحال دا حدیث په ظاهره د ائمه اربعه خلاف دې.

جمهور علماء کرامو د دې حدیث دا تاویل کړې دې چه مراد دا دې چه رسول الله ﷺ به خپل خاص معتکف او د خلوت ځائې ته هغه وخت (د سحر د مونځ نه پس) رسیدلو ، د اعتکاف د وخت ابتداء لره بیانول مقصود نه دی ، مسجد ته خو به هغه د ماښام نه رسیدو خو شپه چونکه خپله د خلوت زمانه ده په هغې کښې معتکف ته د تلو حاجت نه وو ، او په دې کښې د تاویل یوه خاص وجه دا ده چه په اعتکاف کښې چه کوم اهم مقصود دې یعنی د لیلة القدر ادراک او د هغې د حصول په یویشتمه شپه غالب ګمان دې تردې چه د امام شافعی خو مشهور قول هم دا دې ، ارجی اللیالی لیلة احدی وعشرین... چه د ټولو نه زیاته د شب قدر توقع هم په دې شپه باندې دې.

## د جمهورو د قول يو لطيف دليل :

علامه ابو الطيب سندی رحمه الله د دې يوه بله معقول وجه بيان کړې ده هغه دا چه د رمضان د عشره اخيره په باره کښې دوه احاديث دی دواړه د بخاری دی، يو حديث عائشه ﴿کان النبی صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يعتکف فی العشر الاواخر من رمضان﴾: د دې حديث نه د اعتکاف موده لس شپې معلوميږی، ځکه چه د عشر نه مراد ليالی مراد دی کوم چه د ﴿ليلة﴾جمع ده او مونث دې او د اسماء عدد قاعده دا ده چه د مذکر دپاره مونث او مونث دپاره مذکر استعماليږی (په حديث کښې العشر بغير د تاء تانيث نه ده لهذا د عشر نه ليالی عشره مراد شوه) او بل حديث دې د ابوهريره رضی الله عنه دې کان النبی صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يعتکف فی رمضان عشرة ايام، د دواړو احاديثو د جمع کولو نه ثابتيږی چه د عشره اخيره په اعتکاف کښې ليالی او ايام تعداد برابر کيدل پکار دی د دواړو که لس وی يا نهه، او دا هم په هغه صورت کښې کيدې شی چه کله يويشتمه شپه په اعتکاف کښې داخله کړې شی ګينې په يو صورت کښې به د ورځو تعداد نهه او شپې اته پاتې شی، او په کوم صورت کښې چه د ايام تعداد لس وی په هغه صورت کښې به شپې نهه پاتې شی. اهـ او بعض علماء کرامو د حديث الباب دا توجيه کړې ده چه په ﴿صلی الفجر﴾کښې د فجر نه مراد ﴿فجر عشرين﴾مراد دې يعنی د شلم تاريخ سحر، ګويا يو ورځ مخکښې به هلته اورسيدو، اختار هذا التوجيه القاضی ابو يعلی من الحنابلة کما فی المنهل.

## د رسول الله ﷺ د نقض او د اعتکاف روايت او د هغې تشريح :

د دې حديث په مخکښې حصه کښې خپله د رسول الله ﷺ د اعتکاف د معمول بيان وو اوس د دې ځائې نه حضرت عائشه خپل او بعض نورو ازواج مطهرات د اعتکاف يوه واقعه بيانوی، هغه داسې چه رسول الله ﷺ د خپل اعتکاف دپاره د خيمې د قائمولو حکم کړې وو پس هغه قائمه کړې شوه، او د بخاری په يو بل روايت کښې دی، عائشه رضی الله عنها فرمائی ﴿فکنت اضرب له خباء﴾چه د هغه دپاره به هغه پرده او خيمه ما قائموله، هغه فرمائی : چه کله د رسول الله ﷺ خيمه قائم کړې شوه نو ما هم د خپل اعتکاف دپاره يوه خيمه او پرده قائم کړه او زما نه علاوه نورو ازواجو هم خيمې قائم کړې، حافظ فرمائی چه د دې نه ټولې ازواج او د هغوی خيمې نه دی مراد لکه چه د هغه روايت نه (کوم چه په مسلم او ابوداود کښې دې) وهم راځی بلکه د نورو ازواجو مصداق صرف حفصه او زينب رضی الله عنهما دی لکه چه د بخاری په يو روايت کښې د دې تصريح ، لهذا څلور خيمې شوې يو رسول الله ﷺ دپاره او درې حفصه، عائشه او زينب رضی الله تعالی عنهن دې. اهـ هم دغه شان د بخاری په روايت کښې معلوميږی چه حضرت عائشه رضی الله عنها خپله خيمه د رسول الله ﷺ نه د اعتکاف د اجازت اخستلو نه پس او حفصه په واسطه د عائشې رضی الله عنها د هغه نه د اعتکاف د اجازت خيمه قائم کړې وو ، او حضرت زينب رضی الله عنها د خپل طرف نه بغير د اجازت نه، د هغوی د اجازت اخستلو ذکر په هيڅ روايت کښې نه دې، بلکه په يو روايت کښې د هغه په باره کښې کښې دا دی

﴿وكانت امرأة غيوراء﴾چه د هغې په مزاج كښې غيرت نسبة زيات وو، ګويا د هغوی نه د هغوی دواړه خيمې نه دی ليدلې او د كتلو سره د خپل ځان دپاره هم خيمه قائم كړه، او چونكه د هغه معمول په دې خيمه كښې يعنی معتكف خاص او پرده كښې د داخليدو، د سحر د مونځ نه پس وو، هم په دې وجه وړاندې روايت كښې دې چه كله د سحر مونځ اوكړو يعنی خپله خيمه كښې د داخليدو اراده اوفرمائيله نو د هغه نظر باقی درې واړو خيمو باندې پريوتلو، نو هغه تپوس اوكړو چه دا څه دی، د بخاری په يو روايت كښې دی چه چا هغه ته عرض اوكړو چه دا ستاسو د ازواجو خيمې دی نو په دې باندې هغه اوفرمائيل: البر تردن... چه ايا د هغوی د نيكئ اراده ده، ګويا هغه د دې فعل د فعل بر كيدو باندې تردد فرمائی، ځكه چه ئې ته په دې كښې د مباهات او تنافس ويره شوه، داسې تنافس كوم چه غيرت طبعی نه پيدا كيږی چه په هغې سره د اعتكاف مقصد فوت كيږی، او يا د نكير مقصد دا وو چه زينب بغير د اجازت نه خپل اعتكاف نظم كړو د هغه دپاره پرده قائم كړه نو ويره ئې پيدا شوه د دې سلسلې د زياتيدو صرف دوه پورې خبره اسانه وه چاته چه رسول اللهﷺ اجازت وركړې وو، او بيا په دې صورت كښې يعنی جمله ازواج په اعتكاف كولو او پرده قائم كولو كښې په خلقو باندې د مسجد د تنګسيا قوی امكان وو.

پس د پورته ذكر شوې وجوه په بناء هغه د خپلې خيمې د ماتولو حكم وركړو، پس هغه لرې كړې شوه، او بيا ئې ازواج مطهرات هم خيمې لرې كړې.

### ما يستفاد من الحديث:

شارحين حديث فرمائی چه د دې حديث نه په مسجد كښې د خيمو د قائمولو جواز معلوميږی پس د بخاری مستقل ترجمه ده "باب الاخبية فی المسجد"او دا هم ثابته شوه چه د زنانو دپاره مسجد كښې اعتكاف افضل نه دې، بلكه دا چه كه زنانه په مسجد كښې اعتكاف اوكړی نو د هغې دپاره اولی ده چه د خپل ځان دپاره پرده رازوړنده كړی، او د امام شافعیؒ نه منقول دی چه هغوی د زنانو دپاره مسجد جماعت كښې اعتكاف ته مكروه وئيلې دې، هم د دې حديث نه استدلال كولو سره.

ثم اخر الاعتكاف الى العشر الاول يعنى من شوال.

يعنی په دې كال رسول اللهﷺ په عشره اخيره كښې اعتكاف او نه فرمائيلو بيا ئې د دې په قضاء كښې د شوال د يوې عشرې اعتكاف اوفرمائيلو.

### ايا په اعتكاف قطع كولو سره د هغې قضاء لازميږی؟

په دې حديث كښې دا مسئله موندلې شی اعتكاف د قضاء، پس امام مالك په خپل موطاء كښې په دې حديث باندې، "قضاء الاعتكاف"ترجمه قائم كړې ده، ابن قدامه د امام مالك دا مذهب نقل كړې دې چه "يلزمه بالنية مع الدخول فيه"چه كه د اعتكاف نيت كولو سره هغه شروع كړی نو په شروع كولو سره واجب كيږی لهذا د دې اتمام ضروری دې، او كه قطع ئې كړو نو قضاء لازم ده، او هغوی د امام احمد او امام شافعی مذهب دا ليكلې دې چه د هغوی دواړو په نزد شروع كولو سره نه لازميږی، د شروع كولو نه پس اختيار دې، د

اتمام او ترک اتمام، او د احنافو مسلک ظاهر الروایة کښې دا دې چه اعتکاف نفل خو چونکه مقدر بالزمان نه دې نو د دې قضاء لازم نه ده، او د عشره اخیره اعتکاف چونکه مقدر بالزمان دې نو د دې قضاء واجب ده، د امام ابویوسف په نزد بقیه عشره یعنی څومره ورځې باقی پاتې شوې وی او د طرفین مسلک دا دې چه د کومې ورځې اعتکاف شروع کولو نه قطع کړې دې صرف د هغه ورځې قضاء به واجب وی، د باقی عشرې نه. اه (ملخصاً من الابواب والتراجم) او هغه چه دریم قسم دې د اعتکاف د هغې قضاء خو به بالاتفاق واجب وی، او حافظ ابن حجر رحمه الله کوم چه شافعی المذهب دې په حدیث الباب کښې لیکلې دی چه د رسول الله ﷺ دا قضاء کول استحبابا وو، او په دې حدیث کښې دلیل دې په دې خبره باندې چه د یو سړی نه څه نفل معتاد فوت شی نو هغه لره استحبابا د هغې قضاء کول پکار دی.

قال ابوداود : رواه ابن اسحاق الاوزاعی عن یحی بن سعید ونحوه... الخ.

### د مصنف رائې او په دې د محدثینو نقد :

مصنف د دې حدیث په متن کښې چه کوم د راویانو اختلاف دې هغه بیانوی هغه دا چه د یحیی بن سعید په شاګردانو کښې ابن اسحاق او اوزاعی هم دغه شان بیان کړې دې څنګه چه دلته کتاب والا سند کښې ابو معاویه او یعلی بن عبید روایت کړې دې یعنی په شوال کښې د عشرې قضاء، په خلاف د امام مالک چه کله هغه دا د یحیی بن سعید نه روایت کړو نو په ځائې د ﴿عشر من شوال﴾، ﴿عشرین من شوال﴾روایت کړې دې.

د امام ابوداود په دې قول باندې د ټولو اشکال جوړ شوې دې ځکه چه د امام مالک روایت یحیی بن سعید په بخاری کښې او هم دغه شان په موطاء کښې موجود دې چه په هغې کښې ﴿عشرا من شوال﴾دې نه ﴿عشرین من شوال﴾، او! یو بل اختلاف خو دې چه بعض دا د امام مالک نه مرسلا او بعض مسندا روایت کړې دې چه د هغې طرف ته امام ترمذی هم اشاره کړې ده، خو دا اختلاف کوم چه امام ابوداود بیانوی داسې بل یو ځائې کښې هم نشته. (من البذل والمنهل)

وحدیث الباب اخرجه ایضا البخاری ومسلم وابن ماجة والنسائی، وکذ البیهقی بسنده الی عمرة عن عائشة. (المنهل)

## باب أَيْنَ يَكُونُ الاعْتِكَافُ

### اعتکاف چرته کول پکار دی؟

[۲٤٦٥]([1]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ، أَنَّ نَافِعًا، أَخْبَرَهُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ". قَالَ نَافِعٌ: وَقَدْ أَرَانِي عَبْدُ اللَّهِ الْمَكَانَ الَّذِي كَانَ يَعْتَكِفُ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَسْجِدِ.

---

[1]): صحيح البخاري/الاعتكاف ١ (٢٠٢٥) (دون قوله : قال نافع-)، صحيح مسلم/الاعتكاف ١ (١٧٧١)، سنن ابن ماجه/الصيام ٦١ (١٧٧٣)، (تحفة الأشراف: ٨٥٣٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٣/٢) (صحيح)

ترجمه: د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې نبی ﷺ به د رمضان په آخری لسو شپو کښې اعتکاف کوو. نافع وائی چه عبدالله ماته په مسجد کښې دنبی ﷺ داعتکاف ځائې ښودلې وو.

د رسول الله ﷺ د معتکف د محل تعیین :

نافع فرمائی چه زما استاذ عبدالله بن عمر رضی الله عنه ماته د مسجد هغه ځائې چرته به چه رسول الله ﷺ اعتکاف کولو، د ابن عمر په یو روایت کښې دی (کوم چه په سنن ابن ماجه کښې دې) چه رسول الله ﷺ به چه کله د اعتکاف اراده فرمائیله نو د هغه درئ به خوره کړې شوه یا به ئې کټ واچولې شو، د اسطوانه توبه شاته او د بیهقی په روایت کښې د وراء اسطوانة التوبه په ځائې ﴿ الی اسطوانة التوبة مما یلی القبلة یستند الیها ﴾ یعنی د اسطوانه توبه سره یوځائې کولو باندې د قبلې طرف ته چه هغې ته تکیه اولګولې شی (قبلې طرف ته مخ کولو سره) اهـ من البذل.

په مسجد نبوی شریف کښې بعض اسطوانات د نومونو د تعیین سره د تاریخ په کتابونو او د خلقو ترمینځه مشهور دی، د دې اسطوانات چه کوم اولنې صف دې د محراب نبوی سره متصل هلته چه د محراب ګس طرف ته کومه اسطوانه ده هغه د اسطوانه عائشه رضی الله عنها په نوم باندې ده، د هغې نه پس د روضې طرف ته چه کومه اسطوانه ده هم د هغې نوم اسطوانه توبه ده. (١) په هغې باندې اسطوانه ابی لبابه او اسطوانه توبه لیکلې شوې دی، د رسول الله ﷺ د دې معتکف د تعیین نه معلومه شوه چه دا اسطوانه حجره عائشه رضی الله عنها ته ډیره نزدې وه په ظاهره هم په دې وجه باندې د مسجد دې ګټ رسول الله ﷺ د اعتکاف دپاره منتخب اوفرمائیلو د دې دپاره چه د ضرورت په وخت حجرې ته د تلو راتلو سهولت وی، پس وراندې روایت کښې سیده عائشه رضی الله عنها فرمائی ﴿یدنی الی راسه فارجله﴾ رسول الله ﷺ به په خپل معتکف کښې په ناسته ناسته باندې خپل سر مبارک ماته نزدې کړو، پس ما به د هغه ویښته ګومنځ کړل.

اعتکاف چرته او په کوم مسجد کښې صحیح دې مع اختلاف ائمه

په بذل المجهود کښې حضرت د دې حدیث او د مصنف د ترجمة الباب په مناسبت سره دلته دا مسئله چه اعتکاف چرته او په کوم مسجد کښې صحیح دې او په هغې کښې چه د علماء کرامو کوم اختلاف دې هغه ئې د امام نووی رحمه الله نه نقل کړې دې اګر چه دا مسئله مونږ سره د باب الاعتکاف په شروع کښې بالتفصیل راغلې ده، د امام نووی رحمه الله کلام

(١) دې ته اسطوانه توبه په دې وجه وئیلې شی چه په غزوه بنو قریظه کښې چه یهود کله په قلعه کښې محصور شو او سعد بن معاذ رضی الله عنه د هغوی د قتل فیصله اوفرمائیله چه د هغې قصه د حدیث په کتابونو کښې مشهور ده نو په دې موقع باندې سیدنا ابو لبابه بن المنذر رضی الله عنه د یهودو طرف ته په خپل سټ باندې لاس راښکلو سره د فیصلې اشاره اوکړه یعنی د قتل فیصله شوې ده بیا فورا د هغه خیال راغلو چه دا خو یو قسم خیانت شو چه د رسول الله ﷺ په موجودګۍ کښې زه مخکښې شوم، او خلاف مصلحت یو کار اوشو نو هغه د هغه ځان نه واپس راغلو او خپل ځان ئې په مسجد نبوی کښې په یوې ستنې پورې اوتړلو، څوارلس ورځې پس چه کله د هغه توبه نازله شوه نو بیا رسول الله ﷺ پرانستلو، دا ده د هغې وجه تسمیه. حبیب الله)

چونکه مختصر او جامع دي په دې وجه د هغې خلاصه نقل کولې شي.

**اعتکاف چرته او په کوم مسجد کښې صحيح دې :**

امام نووي رحمه الله فرمائي : د دې احاديثو نه معلوميږي چه اعتکاف که د هر چا وی برابره خبره ده که سړې وی يا ښځه په غير د مسجد نه صحيح نه دې، رسول الله ﷺ او د هغه ازواج او اصحاب چه کله هم اعتکاف کړې دې نو په مسجد کښې ئې کړې دې، پس که اعتکاف په کور کښې جائز وې نو هغه به ئې کم از کم يو ځل کړې وې، خصوصا د زنانو مسئله، پس د جمهور علماء او ائمه ثلاثه مسلک هم دا دې، او د امام ابوحنيفه په نزد د زنانه اعتکاف مسجد بيت کښې صحيح دې، هغه فرمائی چه د امام ابوحنيفه د مذهب په شان د امام شافعی قول قديم هم دې کوم چه د اصحاب شافعی په نزد ضعيف دې، او په دې کښې يو دويم مذهب دې کوم چه بعض اصحاب مالک او بعض اصحاب شافعی اختيار کړې دې چه سړې وی يا زنانه د دواړو اعتکاف دکور په مسجد کښې صحيح دې، بيا جمهور علماء کوم چه د مسجد عام (يعني مسجد شرعي) د اشتراط قائل دی په هغې کښې د امام شافعی او امام مالک په نزد اعتکاف په هر يو مسجد کښې صحيح دې، او د امام احمد او ابوحنيفه په نزد صرف په مسجد جماعت کښ، او د امام زهری او بعض نورو علماء کرامو په نزد اعتکاف صحيح دې په مسجد جامع کښې يعنی چرته چه د جمعې مونځ کيږی، او د سيدنا حذيفه بن يمان رضي الله عنه مشهور صحابی نه منقول دې د اعتکاف اختصاص د مساجد ثلاثه سره، المسجد الحرام ومسجد المدينة والمسجد الاقصى.اه

والحديث اخرجه ايضا مسلم وابن ماجة والبيهقى بزيادة نافع، واخرجه البخارى بدونها. (المنهل)

[٢٤٦٦](١) حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِي حُصَيْنٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَعْتَكِفُ كُلَّ رَمَضَانَ عَشَرَةَ أَيَّامٍ، فَلَمَّا كَانَ الْعَامُ الَّذِي قُبِضَ فِيهِ اعْتَكَفَ عِشْرِينَ يَوْمًا".

**ترجمه:** دابوهريره نه روايت دې نبی ﷺ به په تمام رمضان کښې لس ورځې اعتکاف کوو اودوفات په کال ئې شل ورځې اعتکاف اوکړو.

**رسول الله ﷺ په خپل اخری رمضان کښې دوه عشره اعتکاف اوکړو :**

**قوله:** قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَعْتَكِفُ كُلَّ رَمَضَانَ عَشَرَةَ أَيَّامٍ..الخ:

يعنی رسول الله ﷺ به هر رمضان کښې د هغې په اخری عشره کښې اعتکاف کولو او چه کله هغه کال راغلو کوم چه د هغه د وفات کال وو د هغې په رمضان کښې هغه دوه عشره اعتکاف اوفرمائيلو.

علماء کرام او شارحين حديث د دې مختلف مصلحتونه ليکلې دی يو دا چه رسول الله ﷺ ته د وفات د قرب علم شوې وو په دې وجه ئې اوغوښتل چه په اعمال خير کښې اضافه کيدل پکار دی او په دې کښې د امت تعليم هم مقصود دې چه کله انسان عمر طبعی ته اورسيږی نو هغه لره په عمل کښې مزيد مجاهده کول پکار دی د دې دپاره چه غوره نه

---

(١): صحيح البخاري/الاعتكاف ١٧ (٢٠٤٤)، فضائل القرآن ٧ (٤٩٩٨)، سنن ابن ماجه/الصيام ٥٨ (١٧٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٢٨٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٨١، ٣٣٦، ٣٥٥، ٤١٠)، سنن الدارمي/الصوم ٥٥ (١٨٢٠) (حسن صحيح)

غوره حالت کښې د الله پاک سره ملاقات اوکړې شي، يوه بله وجه هم د دې مشهوره ده چه د سيدنا جبرائيل عليه السلام معمول رسول الله ﷺ سره په هر رمضان کښې يو ځل د قران کريم د دور کولو وو، بيا چه کله د عمر اخرې کال راغلو نو هغه کال په رمضان کښې سيدنا جبرائيل عليه السلام د هغه سره د قران کريم دوه کرته دور اوکړو نو هم په دې مناسبت سره رسول الله ﷺ د اعتکاف موده هم دوچند کړه، حافظ نورې هم يو دوه وجې ليکلو نه پس ليکلي دي چه د دې ټولو وجوه نه زيات قوي دا وجه معلوميږي چه په کوم کال باندې ئې دوه عشرې اعتکاف کړې وو دا هغه کال دې چه د هغې نه مخکښې کال په رمضان کښې رسول الله ﷺ مسافر وو چه د هغې د وجې نه اعتکاف نه وو کړې شوې، د دې دليل کښې حافظ د ابوداود هغه روايت پيش کړې دې کوم چه مونږ سره د باب الاعتکاف دويم حديث دې کوم چه د ابي بن کعب رضي الله عنه نه نقل دې چه د هغې حاصل دا شو چه په دې دوه عشرې والا اعتکاف کښې يوه عشره قضاء اعتکاف وو کوم چه د سفر د وجې نه قضاء راغلي وه. اهـ خو د حافظ په دې توجيه کښې دا اشکال دې چه په کوم کال باندې د رسول الله ﷺ اعتکاف د سفر د عذر د وجې نه پاتې شوې وو هغه د هجرت د اتم کال والا رمضان وو او دا دوه عشرو والا اعتکاف د هغې نه روستو نه دې بلکه د هجرت د لسم کال والا قصه ده. کيدې شي چه د دې نه غوره د ابن العربي رحمه الله دا توجيه ده چه هر کله يو ځل رسول الله ﷺ د ازواج مطهرات د طرف نه د ناراضګئ د واقعې راتلو نه پس اعتکاف ترک کړو او د هغې قضاء په عشره شوال کښې وو نو د هغې کما حقه کمې نه پوره کيدو د وجې نه په وجه د غير رمضان کښې د کيدو اوس دوباره د هغې قضاء په اصل وخت کښې رسول الله ﷺ اوکړه، په دې صورت کښې به دا تسليم کولې شي چه دا د ناراضتيا والا کال د هجرت نهم کال وو د دې دپاره چه حديث الباب پرې منطبق شي.

والحديث اخرجه ايضا البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة والدارمي والبيهقي. (المنهل)

## بَابُ الْمُعْتَكِفِ يَدْخُلُ الْبَيْتَ لِحَاجَتِهِ

### اعتکاف کوونکي د ضرورت دپاره کورته تلې شي

[۲۴۶۷](¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا اعْتَكَفَ يُدْنِي إِلَيَّ رَأْسَهُ فَأُرَجِّلُهُ، وَكَانَ لَا يَدْخُلُ الْبَيْتَ إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ".

**ترجمه:** دام المومنين عائشې رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام به په اعتکاف کښې وو اوخپل سر به ئې ماته رانزدې کړو او ما به ګومنزولو، اوکورته به نه راتلو مګر دانساني ضرورتونو دپاره.

### توضيح الحديث

**قوله:** قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا اعْتَكَفَ..الخ:

¹: صحيح مسلم بالحيض ۳(۲۹۷)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۰۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك بالطهارة ۲۸ (۱۰۲)، الاعتكاف ۱ (۱)، ۷(۷)، مسند احمد (۱۰۴/۶، ۲۰۴، ۲۳۱، ۲۴۷، ۲۶۲، ۲۷۲، ۲۸۱)، سنن الدارمي بالطهارة ۱۰۷ (۱۰۸۵) (صحيح)

سیده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ چه به کله په اعتکاف کښې وو نو په خپل معتکف کښې به وو ماته به ئې خپل سر مبارک رانژدې کړو، او زه به د خپلې حجرې په دروازه باندې اوم (او دا مخکښې ذکر شو چه د رسول الله ﷺ معتکف د عائشې رضی الله عنها د حجرې سره یوځائې وو) نو ما به ورله د سر مبارک وینځته ګومنځ کړل (ځکه چه رسول الله ﷺ ذو وفره وو) بیا وړاندې فرمائی : او هغه به د انسانی حاجت نه علاوه د بل یو کار دپاره هم د مسجد نه حجرې ته نه داخلیدو.

د حاجت انسانیه تفسیر په بعض روایاتو کښې په بول وبراز سره راغلې دې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د دې دواړو په استثناء باندې خو ټول علماء کرام متفق دی، او د دې دواړو نه علاوه نور ضروریات لکه خوراک او څکاک نو دې باره کښې اختلاف دې او وړاندې لیکی او د بول وبراز سره قئ او فصد چاته چه د دې ضرورت راشی ملحق دی الی اخر ما ذکر فی البذل.

## د کومو کومو حاجتونو دپاره معتکف د مسجد نه وتلې شی:

په کتب حنفیه کښې په نور الایضاح او د هغه شرح مراقی الفلاح کښې دی : ولا یخرج منه الا لحاجة شرعیة کالجمعة والعیدین، او حاجة طبعیة کالبول والغائط وازالة نجاسة واغتسال من جنابة باحتلام، او حاجة ضروریة کانهدام المسجد واداء شهادة تعینت علیه، او بیا وړاندې هم په دې کښې دی : او د معتکف خوراک څکاک او د خپل ضرورت د څیز اخستل او خرڅول د دې ټولو څیزونو په مسجد کښې کیدل ضروری دی، د دې څیزونو دپاره خروج عن المسجد مفسد اعتکاف دې او وئیلې شوې دی چه د خوراک څکاک دپاره د غروب نه روستو وتلې شی، یعنی کله چه څوک خوراک رسولو والا نه وی ځکه چه په دې صورت کښې به دا وتل د حوائج ضروریه نه وی. اهـ بزیادة من الطحاوی ۵۸۰،او هدایه ۲۲۵ کښې دی : ولو خرج من المسجد ساعة بغیر عذر فسد اعتکافه عند ابی حنیفة وهو القیاس وقالا لا یفسد حتی یکون اکثر من نصف یوم وهو الاستحسان، لان فی القلیل ضرورة. اهـ او په کتب شافعیه کښې دی چه که یو سړې په اعتکاف منذور کښې د خوراک څکاک د کولو د ضرورت د وجې نه، یا هم دغه شان د بول وبراز یا حیض او مرض د وجې نه د مسجد نه بهر راشی نو اعتکاف به باطل نه وی. التبینة للشیرازی) او په کتب مالکیه کښې طلب غذا په مستثنیات کښې شمار کړې شوې ده خو خوری به ئې مسجد ته داخلیدو سره هم دغه شان په الروض المربع (فی فقه الحنابلة) کښې طعام او شراب لره مسجد ته راوړلو دپاره د ضرورت په وخت وتل جائز لیکلې شوې دی، ففیه : ولا یخرج المعتکف الا لما لا بد منه کاتیانه بماکل ومشرب لعدم من یاتیه بهما. اهـ

په راروان باب کښې د عائشې رضی الله عنها حدیث موقوف راروان دې ﴿السنة علی المعتکف ان لا یعود مریضا ولا یشهد جنازة﴾ حافظ لیکی چه د نخعی او حسن بصری نه نقل دی چه که معتکف عیادة المریض یا د صلاة جنازه دپاره د مسجد نه اوځی نو د هغه اعتکاف به باطل شی او هم د دې قائل دی کوفیان او امام شافعی او اسحاق او ثوری فرمائی چه د دې

ځیزونو دپاره د وتلو شرط د اعتکاف په شروع کښې اولګوی نو بیا به په خروج سره اعتکاف باطل نه وی او هم دا خبره په یو روایت کښې د امام احمد نه نقل ده، حضرت شیخ په الابواب والتراجم کښې لیکی چه امام احمد ابتداء په اعتکاف کښې د جواز اشتراط قائل دې خو امام مالک د دې انکار کړې دې چه د هغې تصریح په موطاء کښې ده، خو دا مسئله ما په فروع حنفیه کښې نه ده موندلې بلکه په بعض عبارتونو کښې اشاره ملاویږی د دې د عدم جواز طرف ته، او! که د نذر په وخت شرط اولګوی د عیادت مریض یا د صلاة جنازه دپاره د خروج نو بیا جائز ده، کما فی الدر المختار وغیره. اه معلومه شوه چه امام شافعی او امام احمد د جواز اشتراط قائل دی لهذا د شرط لګولو په صورت کښې به وتل جائز وی، او احناف او مالکیان د دې قائل نه دی، او! احناف د نذر د منلو په وخت د جواز اشتراط قائل دی لهذا په دې صورت کښې به وتل جائز وی، او دا مسئله ابتداء اعتکاف د باب الاعتکاف په شروع کښې تیره شوې ده چه داحناف او حنابله په نزد خروج للجمعة قاطع اعتکاف نه دې په خلاف د شافعیه او مالکیه، مونږ دا څو ضروری مسائل هم په دې ځائې کښې رایوځائې کړل اګر چه په دې کښې د بعض متعلق ترجمه مصنف وړاندې تلو سره خپله قائم کړې ده.

والحدیث اخرجه ایضا مالک فی الموطاء ومسلم بعنعنته عروة عن عمرة (فی کتاب الحیض) ورواه الترمذی (المنهل)

[۲٤٦٨][1] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ يُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَلَمْ يُتَابِعْ أَحَدٌ مَالِكًا عَلَى عُرْوَةَ، عَنْ عَمْرَةَ. وَرَوَاهُ مَعْمَرٌ وَزِيَادُ بْنُ سَعْدٍ وَغَيْرُهُمَا، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ.

**ترجمه:** دام المومنین عائشې رضی الله عنها نه روایت دې دنبی ﷺ نه دتیر روایت په شان روایت بیان کړي دي، ابوداود وائی چه همدارنګې یونس دزهري نه په واسطه دعروه، عمره، نه په نقل کولو کښې دمالك څوك متابع نشته، اومعمر اوزیاد بن سعدهم دزهري نه هغه دعروه نه هغه دعائشې نه نقل کړي دي.

[۲٤٦٩][2] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَكُونُ مُعْتَكِفًا فِي الْمَسْجِدِ، فَيُنَاوِلُنِي رَأْسَهُ مِنْ خَلَلِ الْحُجْرَةِ فَأَغْسِلُ رَأْسَهُ". وَقَالَ مُسَدَّدٌ: فَأُرَجِّلُهُ وَأَنَا حَائِضٌ.

**ترجمه:** دام المومنین عائشې رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ به په جومات کښې په اعتکاف کښې ناست وو اوخپل سربه ئې ماته رانزدې کړو دخیمې په سورې کښې اومابه وینځلو اومسدد وائی چه مابه ګومنزولو اوزه به حائضه وم.

[1]: صحیح البخاري/ الاعتکاف ۳ (۲۰۲۹)، صحیح مسلم/الحیض ۳ (۲۹۷)، سنن الترمذي/الصیام ۸۰ (۸۰۵)، سنن النسائي/ الکبری/ الاعتکاف (۳۳۷۵)، سنن ابن ماجه/الصوم ٦۳ (۱۷۷٦)، (تحفة الأشراف: ۱٦٥۷۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۱۸) (صحیح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٦۸۷۰) (صحیح)

[۲۴۷۰]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ شَبُّوَيْهِ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ صَفِيَّةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُعْتَكِفًا، فَأَتَيْتُهُ أَزُورُهُ لَيْلًا فَحَدَّثْتُهُ ثُمَّ قُمْتُ، فَانْقَلَبْتُ فَقَامَ مَعِي لِيَقْلِبَنِي "، وَكَانَ مَسْكَنُهَا فِي دَارِ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ. فَمَرَّ رَجُلَانِ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَلَمَّا رَأَيَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْرَعَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَلَى رِسْلِكُمَا، إِنَّهَا صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ. قَالَا: سُبْحَانَ اللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ: إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنَ الْإِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ، فَخَشِيتُ أَنْ يَقْذِفَ فِي قُلُوبِكُمَا شَيْئًا، أَوْقَالَ: شَرًّا.

**ترجمه**: دام المومنین صفیة رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی عليه السلام په اعتکاف کښې وو اوزه دشپې دهغه دملاقات دپاره ورغلم چه خبرې اترې مې ورسره اوکړې بیا پاځیدم روانه شوم نونبی عليه السلام هم ماسره زما د رسولو دپاره پاڅیدو، اود صفیه رهائش ګاه داسامه بن زیدپه کورکښې وه نو یودوه انصاریان په لاره تیریدل هرکله چه نبی عليه السلام ولیدل. نوهغوی په منډه شول نبی عليه السلام اوفرمائیل په خپل رفتار لاړشئ داصفیة بنت حیي ده هغوی ووئیل سبحان الله اې دالله رسوله نبی عليه السلام اوفرمائیل شیطان دانسان په رګونوکښې چلن کوي دوینې په شان زه ویریدم چه ستاسو په زړونوکښې څه بدګمانې پیدا نه شی. دراوي شك دې یا داسې ئی ووئیل چه ستاسو په زړونوکښې شر پیدا نه شی.

## شرح حدیث :

سیده صفیه رضي الله عنها فرمائی چه زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم خواته چه کله هغه په مسجد کښې معتکف وو د هغه د لیدو دپاره لاړم، لږ ساعت ورسره ما خبرې اوکړې او بیا چه راروانه شوم نو هغه زما د رخصت کولو دپاره ما سره اودریدو او ما سره لږ شان لاړو نو هم په دې دوران کښې دوه انصاری کسان د مسجد مخې ته تیر شو چه کله هغوی زمونږ طرف ته اوکتل نو په تیزئ سره وړاندې لاړل چه کوم طرف ته روان وو یعنی د رسول الله صلى الله عليه وسلم د خاطره او په دې خیال سره چه دې وخت کښې مونږ له دې طرف ته کتل نه دی پکار. رسول الله صلى الله عليه وسلم هم په دې خبره پوهه شو په دې وجه ئې هغوی د تیز تلو نه منع کړو او وې فرمائیل ﴿علی رسلکما﴾ یعنی په خپل رفتار باندې ځائې د تیز تلو ضرورت نشته، ځکه چه دا زنانه په چا پسې چه زه روان اوم زما زوجه صفیه ده. ﴿قالا سبحان الله یا رسول الله﴾ یعنی هغوی په دې باندې عرض اوکړو چه سبحان الله توبه توبه یا رسول الله یعنی الله دې نه کړی زمونږ څه بدګمانی نه ده پیدا شوې، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل : ان الشیطان یجری من ابن ادم مجرم ادم. شیطان چونکه د انسان سره هر وخت لګیدلې وی په دې وجه زما شك پیدا شو چه هغه ستاسو په زړه کښې څه وسوسه پیدا نه کړی، په روایت کښې دی ﴿وکان مسکنها دار اسامة بن زید﴾ چه د سیده صفیه رضي الله عنها استوګنه د اسامه بن زید رضي الله عنه په کور کښې وه، د دې نه مراد دا دې کما قال الشراح چه په هغه کور کښې وه کوم چه روستو اسامه ته ملاؤ شوې وو ځکه چه د کوم

[1]: صحیح البخاري/الاعتکاف ۱۱ (۲۰۳۸)، ۱۲ (۲۰۳۹)، بدء الخلق ۱۱ (۳۲۸۱)، الأحکام ۲۱ (۷۱۷۱)، صحیح مسلم/السلام ۹ (۲۱۷۵)، سنن ابن ماجه/الصیام ۶۵ (۱۷۷۹)، (تحفة الأشراف: ۱۵۹۰۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۵۶/۳، ۲۸۵، ۳۰۹، ۳۳۷/۶)، سنن الدارمي/الصوم ۵۵ (۱۸۲۱)، ویأتي هذا الحدیث في الأدب (۴۹۹۴) (صحیح)

وخت دا واقعه ده هغه وخت د اسامه ځه مستقل کور نه وو، په ظاهره کښې مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ د هغه ځائې پورې د رخصت کولو دپاره راغلو) او د دې نه په روستو روایت کښې دا دی، حتی اذا کان عند باب المسجد الذی عند باب ام سلمة مر بهما رجلان... یعنی چه کله رسول الله ﷺ د مسجد هغه دروازې ته نزدې راورسیدو کوم چه د ام سلمه باب ته نزدې ده نو هغه وخت هغه دوه کسان د رسول الله ﷺ خوا کښې تیر شو، یعنی رسول الله ﷺ او صفیه خو ئې پیژندلې وو د دار اسامه پورې چرته چه هغه اوسیدلو خو لا هلته نه وو رسیدلې بلکه باب ام سلمه پورې تلې وو نو هغه وخت دا دوه کسان د رسول الله ﷺ په لیدو باندې هغه ځائې کښې تیر شو. امام بخاری رحمه الله په دې حدیث باندې ترجمه قائم کړې ده. ﴿هل یخرج لحوائجه الی باب المساجد﴾ د دې ترجمة الباب تقاضه دا ده چه رسول الله ﷺ د سیده صفیه د رسولو دپاره د مسجد نبوی د هغه دروازې پورې تشریف یوړلو کومه چه د باب صفیه په محاذاة کښې وه او د مسجد نه بهر وتل مراد نه دی ځکه چه د امهات المومنین بیوت د مسجد نبوی د دروازو په حوالی کښې وو. هکذا افاد الحافظ فی الفتح. او زمونږ حضرت هم په بذل کښې هم دا خبره مختصرا لیکلې ده، خو بعض شارحین چه په هغې کښې خطابی هم دې او د صاحب منهل په کلام کښې هم دی چه په دې موقع باندې رسول الله ﷺ د مسجد نه بهر هغې له د رسولو دپاره راوتلې وو، او دا چه دا واقعه دلیل دې په دې خبره باندې چه که یو سړې په اعتکاف کښې د یو ضروری امر واجب دپاره بهر راوځی نو په دې سره اعتکاف نه فاسد کیږی، حضرت شیخ هم په حاشیه د بذل کښې دا لیکلې دی چه صاحب رسائل الارکان د دې حدیث نه استدلال کولو سره د صاحبینو مسلک ثابت کړې دې لکه چه اوس نزدې د صاحبین او امام صاحب اختلاف د جواز خروج په باره کښې د هدایه نه تیر شوې دې.

والحدیث اخرجه احمد والبخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه والبیهقی. (المنهل)

[۲۴۷۱] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا، قَالَتْ: حَتَّى إِذَا كَانَ عِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ الَّذِي عِنْدَ بَابِ أُمِّ سَلَمَةَ، مَرَّ بِهِمَا رَجُلَانِ، وَسَاقَ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** شعیب د زهري نه دهغه په سند سره روایت بیان کړې دې مګردږي اضافي ستره چه هغې ووئیل چه کله مونږ دام سلمه ددروازې سره دجومات دروازې ته ورسیدو کومه چه د ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها د دروازې سره ده نوهغوی ته نزدې دوه سړی تیرشو، اوباقی حدیث ئې دتیر شوی حدیث په شان بیان کړو.

## بَابُ الْمُعْتَكِفِ يَعُودُ الْمَرِيضَ

### د معتکف دبیمار د پوښتنې په بیان کښې

[۲۴۷۲] ([2]) حَدَّثَنَا عبد الله بن محمد النفيلي، وَمُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ بْنُ أَبِي سُلَيْمٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَ النُّفَيْلِيُّ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۵۹۰۱) (صحیح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۵۱۵) (ضعیف)

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَمُرُّ بِالْمَرِيضِ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ، فَيَمُرُّ كَمَا هُوَ وَلَا يُعَرِّجُ يَسْأَلُ عَنْهُ"، وَقَالَ ابْنُ عِيسَى: قَالَتْ: إِنْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُ الْمَرِيضَ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ.

**ترجمه**: دام المومنين عائشي رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام به په مريض تيريدواوهغه به په اعتكاف كښې وو او پوښتنه به ئي اوكړه او متوجه كيدوبه ورته نه. ابن عيسي وئيلي دي چه نبي عليه السلام به په اعتكاف كښې دمريض بيمار پرسي كوله.

## توضيح الحديث

يعني رسول الله صلى الله عليه وسلم چه به د ضرورت انسانيه دپاره بهر تشريف اوړلو نو د مريض تپوس او د هغه د حال تپوس به ئي په تلو تلو كښې كولو او هغه سره به ايساريدلو نه. او په بل روايت كښې دى چه ﴿يعود المريض وهو معتكف﴾، هلته به هم دا وئيلي شى كوم چه پورته ليكلي شوې دې، او كه هغه مستقل د عيادت مريض دپاره خروج باندې محمول كړې شى نو دا هم صحيح ده خو په دې صورت كښې به دا په نفلى اعتكاف باندې محمول وى. اهـ من البذل ملخصاً، په دې مسئله كښې د نورو ائمه كرامو مذاهب او اختلاف علماء په مخكښې باب كښې تير شو. والحديث اخرجه ايضا البيهقي وهو ضعيف. (المنهل)

[۲۴۷۳]([1]) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "السُّنَّةُ عَلَى الْمُعْتَكِفِ أَنْ لَا يَعُودَ مَرِيضًا وَلَا يَشْهَدَ جَنَازَةً وَلَا يَمَسَّ امْرَأَةً وَلَا يُبَاشِرَهَا وَلَا يَخْرُجَ لِحَاجَةٍ إِلَّا لِمَا لَا بُدَّ مِنْهُ، وَلَا اعْتِكَافَ إِلَّا بِصَوْمٍ، وَلَا اعْتِكَافَ إِلَّا فِي مَسْجِدٍ جَامِعٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: غَيْرُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، لَا يَقُولُ فِيهِ: قَالَتْ: السُّنَّةُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: جَعَلَهُ قَوْلَ عَائِشَةَ.

**ترجمه**: دام المومنين عائشي رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه دمعتكف دپاره سنت طريقه داده چه دچا بيمار پرسي دې نه كوي اوجنازوته به نه ځي، اونه به ښځي مسحه كوي اونه به ورسره مباشرت كوي اودځپل ځائي نه به نه اوځي مگردهغه حاجت دپاره دكوم نه چه خلاصي نه وى اواعتكاف بغيردروژې نه نشته اواعتكاف دجامع مسجدنه بغير صحيح نه دي. ابوداود وائى دعبدالرحمان بن اسحاق نه علاوه چاداجمله (قالت السنة) نه ده وئيلي، ابوداود وائى راوى دي لره دعائشي قول گرځولي دي.

## توضيح الحديث

په اوجز المسالک كښې د ﴿ولا تباشروهن وانتم عاكفون فى المساجد﴾ د لاندې ليكلي شوې دى چه د مباشرت نه مراد جماع ده. علامه عيني رحمه الله فرمائي چه ابن المنذر په دې باندې د علماء كرامو اجماع نقل كړې ده او د بعض علماء كرامو نه نقل دى چه د دې نه مراد مس بالشهوة دې او په شرح احياء كښې ليكلى دى چه د اعتكاف په حالت كښې كه مس مراءة بغير د شهوت نه وى نو دا د اعتكاف منافى نه ده بغير د خلاف نه، خو كه په شهوت سره وى نو هغه حرام دې خو په دې كښې اختلاف دې چه په دې سره اعتكاف فاسد كيږى يا نه، د امام مالک په نزد فاسد كيږى اگر چه انزال نه وى شوى، او د باقى ائمه ثلاث په

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۳۵٤) (حسن صحيح)

نزد د انزال په صورت کښې فاسد کیږی ګیني نه، او د جماع په باره کښې د ائمه ثلاث مذهب دا دې چه هغه مطلقا مفسد اعتکاف دې، که عمدا وی یا نسیانا، او د امام شافعی په نزد جماع ناسیا مفسد اعتکاف نه ده. اهـ

﴿ ولا اعتكاف الا في بصوم ولا عتكاف الا في مسجد جامع ﴾ په دې باندې کلام په مخکښې ابواب کښې تير شوې دې. والحديث اخرجه ايضا البيهقى والدارقطنى (المنهل)

[۲۴۷۴]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ بُدَيْلٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جَعَلَ عَلَيْهِ أَنْ يَعْتَكِفَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ لَيْلَةً أَوْ يَوْمًا عِنْدَ الْكَعْبَةِ، فَسَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "اعْتَكِفْ وَصُمْ".

**ترجمه**: دابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دی چه عمر رضی الله عنه په جاهلیت کښې نذرمنلي وو چه اعتکاف به کوم يوه شپه یایوه ورځ دکعبې سره، نو دنبی علیه السلام نه ئې تپوس اوکړو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل اعتکاف اوکړه او روژه ونیسه.

**مضمون حدیث**:

ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه زما والد سیدنا عمر رضی الله عنه په زمانه جاهلیت کښې نذر منلي وو د دې خبرې چه هغه به يوه ورځ اعتکاف کوی په مسجد حرام کښې، پس د دې نذر په باره کښې ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو چه پوره کول پکار دی یا نه؟ دا سوال عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په مقام جعرانه کښې کړې وو د غزوه حنین نه روستو، چرته چه غنائم حنین راجمع کړې شوې وو او هلته د هغه په خدمت کښې وفد هوازن حاضر شوې وو د قیدیانو د ازادولو د درخواست دپاره، د دې قرینه وړاندې روایت دې کوم چه د دې نه روستو راروان دې، په دې حدیث کښې دوه مسئلې دی يو نذر جاهلیت، ایا د دې پوره کول واجب دی یا نه؟ دویمه مسئله صوم معتکف، دا دویمه مسئله د دې نه مخکښې تیره شوه.

**د جاهلیت د نذر پوره کول واجب دی یا نه؟**

پاتې شوه دا مسئله پس په دې باندې امام بخاری مستقل باب قائم کړې دې، باب اذا نذر فى الجاهلية ان يعتكف لم اسلم... د هغې د لاندې هغه هم دا حدیث ذکر فرمائیلې دې. الابواب والتراجم کښې ليکلى دی چه د حنابله په نزد نذر جاهلیت صحیح دې (د هغه په نزد صحت د نذر دپاره اسلام د ناذر شرط نه دې) او د ائمه ثلاث په نزد دا نذر معتبر نه دې، لهذا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرف نه د نذر پوره کولو حکم د جمهورو په نزد په استحباب باندې محمول دې وعند احمد للوجوب. اهـ د صوم په باره کښې د علماء کرامو مذاهب تیر شوې دی چه د مالکیانو په نزد مطلقا شرط دې او شافعیه او حنابله په نزد مطلقا شرط نه دی، او د احنافو په نزد اعتکاف منذور او غیر منذور کښې فرق دې د منذور دپاره صوم شرط دې د

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۳۵٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الاعتكاف ۱٦ (۲۰٤۳)، صحيح مسلم/الأيمان والنذور ۷ (۱٦۵٦)، سنن الترمذي/الأيمان والنذور ۱۱ (۱۵۳۹)، سنن النسائي/الكبري/ الاعتكاف (۳۳۵۵)، كلهم رووا هذا الحديث بلفظ: «أوف بنذرك». (صحيح) دون قوله: «أو يومًا» وقوله: «وصم»

غیر منذور دپاره نه، امام بخاری رحمه الله باب ترلي دي، باب الاعتکاف لیلا... او په هغي کښي ئي هم دا د عمر رضی الله عنه حدیث ذکر فرمائیلي دي چه د هغي الفاظ په بخاری کښي دا دی ﴿ان اعتکف لیلة ﴾د دي نه شوافع او حنابله استدلال کړي دي په صحت اعتکاف بلا صوم باندي، ځکه چه لیل محل د صوم نه دي، زمونږ د طرف نه د دي جواب ورکړي شوي دي چه په دي قصه د عمر کښي روایات مختلف دی پس په بخاری کښي "لیلة" دي او صحیح مسلم کښي ﴿یوما ﴾دي، په ځائي د ﴿لیلة ﴾او دلته په ابوداود کښي ﴿لیلة ﴾او ﴿یوما ﴾شک سره لهذا دشافعیه وغیره استدلال د دي نه صحیح نه دي، او بله وجه دا هم ده چه ډیر کرته عرب د لیل اطلاق په نهار باندي کوی، علامه عینی رحمه الله فرمائی : د بخاری په روایت کښي صرف ﴿لیلة ﴾دي او د مسلم په روایت کښي ﴿یوما ﴾او د نسائی په روایت کښي دی ﴿فامره رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان یعتکف ویصوم ﴾لهذا د روایاتو د مجموعي نه معلومیږی چه د هغه نذر یوم او لیل د دواړو سره متعلق وو. اهـ من هامش اللامع مختصرا،زه وائم د نسائی په شان دلته د ابوداود په روایت کښي هم امر بالصوم مذکور دي. والحدیث اخرجه ایضا الدارقطني واخرجه البیهقي ورواه الحاکم ومسلم بدون ذکر الصیام (المنهل ملخصاً)

[٢٤٧٥](1)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ الْقُرَشِيُّ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ يَعْنِي الْعَنْقَزِيَّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُدَيْلٍ، بِإِسْنَادِهِ نَحْوَهُ، قَالَ: فَبَيْنَمَا هُوَ مُعْتَكِفٌ إِذْ كَبَّرَ النَّاسُ، فَقَالَ: مَا هَذَا يَا عَبْدَ اللهِ؟ قَالَ: سَبْيُ هَوَازِنَ، أَعْتَقَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: وَتِلْكَ الْجَارِيَةُ فَأَرْسَلَهَا مَعَهُمْ.

**ترجمه:** عبدالله بن بدیل هم داروایت په خپل سند سره دتیر روایت په شان نقل کړي دي مګرددي اضافي سره چه عمر رضی الله عنه په اعتکاف کښي ووکله چه خلقو تکبیر ووئیلو نوهغه تپوس اوکړواي عبدالله داڅه دی؟ هغه جواب ورکړوچه دهوازن قیدیان نبی علیه السلام آزاد کړي دي نوعمر رضی الله عنه ووئیل هغه وینځه هم دهغوی سره پریږده.

## توضیح الحدیث

سیدنا ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه کوم وخت زما والد محترم عمر رضی الله عنه معتکف وو یعنی په مسجد حرام کښي (دا هم هغه اعتکاف دي چه د هغي ذکر پورته روایت کښي راغلي دی یعنی نذر جاهلیت والا) هغه فرمائی : ناڅاپه د خلقو اوازنه اوچت شو او د تکبیر وئیلو اواز راغلو، نو زما والد محترم زما نه تپوس اوکړو چه دا څنګه اواز دي؟ ما عرض اوکړو چه د قبیله هوازن قیدیان دی کوم چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ازاد کړي دی (د صحابه کرامو سره مشوره کولو نه پس) چه د هغي بیان راروان باب فداء الاسیر بالمال کتاب الجهاد کښي راشی) عمر اووي: او چه کومه وینزه دلته ده هغه هم زر پریږده هم د دي سره، دا وینزه هم هغوی سره د هوازن د وینزو نه وه او چونکه رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغوی د ازادئ فیصله کړي وه نو عمر رضی الله عنه د دي فیصلي په اوریدو باندي چه کومه په هغه قیدیانو کښي یوه وینزه وه هغه ئي هم ازاده کړه.

(1): تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٧٣٥٤) (صحيح)

## بَابٌ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ تَعْتَكِفُ

### استحاضې ته د اعتکاف کولو د اجازت بیان

[۲۴۷۶](1)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "اعْتَكَفَتْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةٌ مِنْ أَزْوَاجِهِ، فَكَانَتْ تَرَى الصُّفْرَةَ وَالْحُمْرَةَ، فَرُبَّمَا وَضَعْنَا الطَّسْتَ تَحْتَهَا وَهِيَ تُصَلِّي".

**ترجمه**: دام المومنين عائشې رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه دنبي عليه السلام سره دهغه په بيبيانو کښې يوې بی بی اعتکاف کړې وو دهغې نه زيړوالي ته مائله ياسره وينه تله نومونږ به ورته لاندې کله کله خانك هم ايخودو اوهغې به مونځ کوو.

### شرح حديث:

دا خو مخکښې ذکر شو چه زنانه په مسجد کښې اعتکاف کولې شی بلکه د جمهور علماء او ائمه ثلاث مذهب دا دې چه سړی او زنانه دواړه د اعتکاف دپاره د مسجد کيدل شرط دی، او د هغه په زمانه کښې زنانه مسجد کښې اعتکاف کولو، خو که اعتکاف هغه د کور په مسجد کښې اوکړی لکه چه د احنافو مذهب دې په دې کښې خو هيڅ د اشکال خبره نشته، البته که په مسجد کښې کوی لکه چه د جمهورو مسلک دې نو چونکه په دې کښې د تلويث مسجد احتمال دې چه د هغې د وجې نه دا شبهه کيدې شی چه کيدې شی اعتکاف د مستحاضه مسجد کښې جائز نه وی د دې ايهام د لرې کولو دپاره مصنف او امام بخاری هم اعتکاف مستحاضه باب تړلې دې.

مضمون حديث دا دې: سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه دهغه د ازواج نه يوې زوجې محترمې په مسجد کښې هغه سره اعتکاف اوکړو (يعنی کومه چه مستحاضه وه کما فی رواية البخاری او په دې روايت کښې هم وراندې راروان دی) پس هغې به د مختلف رنګونو وينه ليده په حالت اعتکاف کښې، زيړ هم او سور هم، يعنی کله دا او کله دا. او فرمائي چه بعض وخت به مونږ د هغې د لاندې خانک کيخودلو په داسې حال کښې چه هغه به په مونځ کښې وه د دې دپاره چه که بالفرض وينه راشی نو په هغې کښې به پريوځی، حافظ د سنن سعيد بن منصور په حوالې سره ليکلې دی چه دا زوجه سيده ام سلمه رضي الله عنها وه.

### د معذور صاحب حدث اعتکاف صحيح دې:

صاحب منهل ليکی : دا حديث دلالت کوی په دې خبره باندې چه د مستحاضه اعتکاف او د هغې مونځ او په هغه مسجد کښې ايساريدل جائز دی په دې شرط چه مسجد ملوث نه شی او هم دغه شان هغه سړی کوم چه دائم الحدث وی يعنی د چا چه اودس باقی نه پاتې کيږی، او هم دغه شان هغه صاحب قروح چه د هغې نه پيپ وغيره بهيږی. اه لهذا دا خيال دې اونکړې شی چه عين د سيلان دم په وخت باندې به مونځ څنګه صحيح وی.

(1): صحيح البخاري/الحيض ١٠ (٣٠٩)، سنن ابن ماجه/الصيام ٦٦ (١٧٨٠)، (تحفة الأشراف: ١٧٣٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/١٣١)، سنن الدارمي/الطهارة ٩٣(٩٠٦) (صحيح)

زمونږ په نزد د الدر المنضود په ابواب الاستحاضه کښې دا خبره تیره شوې ده چه په ازواج مطهرات کښې د چا مستحاضه کیدل ثابت دی یا نه دی، د اکثر علماء کرامو په نزد ثابت دی، په روایات حدیثیه کښې راغلې دی خو ابن الجوزی د دې انکار کړې دی دا پوره حدیث هلته تیر شوې دې، او د حدیث الباب نه هم د جمهورو تائید کیږی، د بخاری په یو روایت کښې راغلې دی. ﴿اعتکف معه بعض نسائه﴾ نو د دې تشریح ابن الجوزی دا کړې ده چه د عائشې ﷺ مراد د ﴿من نسائه﴾ نه د رسول الله ﷺ ازواج نه دی بلکه د رسول الله ﷺ د کورنۍ زنانه دی، خو خپله په بخاری کښې بل ځائې [1] او دلته په ابوداود کښې ﴿امراءة من ازواجه﴾ تصریح ده، په دې وجه د ابن الجوزی تاویل صحیح نه دې، هغه د هغه خپله رائې ده. والحدیث اخرجه ایضا البخاری والنسائی وابن ماجة والبیهقی. (المنهل)

﴿اخر کتاب الصیام والاعتکاف﴾ والحمد لله علی ما وفقنا لاتمامه والصلاة والسلام علی سیدنا ومولانا محمد واله وصحبه اجمعین. (کذا فی البذل، والحمد لله اولا واخرا)

الی ههنا بلغ التسوید لیلة...۱۰ ذی قعدة ۱۴۲۱ ھ فی المدینة المنورة والبلدة الطاهرة علی صاحبها الف صلاة وتحیة.

# کتاب الجهاد

## جهاد سره د متعلق احکامو بیان

د کتاب النکاح په شروع کښې مونږ بیان کړې دې چه د اسلام ارکان اربعه مشهوره نه پس دوه څیزونه دعباداتو دقبیل نه بیانوی، یعنی جهاد او نکاح وغیره، هم دغه شان د محدثین او مصنفین طرز عمل د دې د ترتیب په باره کښې دا دې چه بعض مصنفینو په نکاح باندې جهاد مقدم کړې دې لکه چه امام مالک په موطاء کښې، او امام نسائی په سنن صغری او بعضو چه په هغوی کښې امام ابوداؤد هم دې هغه نکاح مقدم کړې ده په جهاد باندې.

## د جهاد متعلق درې مباحث

دلته د کتاب الجهاد په شروع کښې مونږ درې بحثونه مختصرا بیانول غواړو، اول د جهاد لغوی او شرعی معنی او د هغې قسمونه، دویم د جهاد حکم، دریم د جهاد فضیلت، د جهاد مشروعیت لکه چه په تفصیل سره په راروان باب کښې به راشی د صفر په میاشت ۲ هجری کښې شوې دې.

## بحث اول : د جهاد لغوی اوشرعی معنی

امام بخاری رحمه الله په صحیح بخاری کښې دا سرخی قائم کړې ده ﴿کتاب الجهاد والسیر﴾ او بیا ئې د ټولو نه اول د جهاد د فضیلت په باره کښې آیاتونه او روایات ذکرکړی دی اوپه دې باره کښې څو ابواب قائم کړې دی د جهاد متعلق، بیا ئې بل عنوان قائم کړې دې، ابواب فضائل الجهاد چه د هغې د لاندې ئې ډیر ابواب د فضیلت جهاد په باره کښې قائم کړې دی،

[1] د بخاری په ابواب الحیض کښې د «بعض نسائه» لفظ دې او په ابواب الاعتکاف کښې «امرأة مستحاضة من ازواجه» لفظ دې.

دريم عنوان ئې قائم کړې دې : ابواب الجهاد عن رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او بيا ئې د هغې د لاندې ډير ابواب بعض احکام د جهاد متعلق، او د هغې مناسبات، هم دغه شان د رسول اللهﷺ د غزوات د تعداد باب هم ذکر کړې دې.

حافظ رحمه الله فرمائی د جهاد لغوی معنی د مشقت ده، او په قاموس کښې د (ج، هـ، د) په ماده کښې ليکلې دی چه د ﴿ جهد ﴾ بالفتح معنی د طاقت ده او کله په دې باندې ضمه هم راځی يعنی ﴿ جهد ﴾ او بله معنی ئې د جهد بالفتح مشقت ليکلې ده، هم دغه شان د جهد بالفتح معنی د مبالغې او رعايت هم ليکلې ده، او بيا ئې وړاندې ليکلې دی چه جهد، يجهد، جهدا، د باب فتح نه د دې معنی ده اجتهاد او کوشش، او بيا د دې نه وړاندې ليکی، والجهاد بالکسر القتال مع العدو کالمجاهده، قال الله تعالى ﴿ وجاهدوا فى الله ﴾ يقال جاهد العدو ومجاهدة وجهادا قاتله.

## د جهاد قسمونه، جهاد اصغر او جهاد اکبر

او بيا امام راغب رحمه الله نقل کړې دی چه د جهاد حقيقت خپل طاقت او کوشش لره خرچ کول د دشمن نه په دفاع کولو کښې، او دا چه د دې درې قسمونه دی، د ښکاره دشمن سره مجاهده کول او د شيطان سره، او د نفس سره، او دا چه د الله پاک قول ﴿وجاهدوا فى الله حق جهاده ﴾ کښې درې واړه قسمونه داخل دی. (تاج العروس) حضرت شيخ په اوجز ځلورم جلد کښې د امام راغب د کلام نه پس ليکی، پس حديث مرفوع : ﴿ المجاهد من جاهد نفسه ﴾ کما فى المشکاة بروايت شعب البيهقى، ابن العربى په شرح ترمذی کښې فرمائی : ﴿ هذا هو مذهب الصوفية ان الجهاد الاکبر هو جهاد العدو الداخل، يعنې نفس اماره کما فى قوله تعالى : ﴿ والذين جاهدوا فينا لنهدينهم سبلنا ﴾ ولذا قال النبى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وقد رجع من غزاة، رجعنا من الجهاد الاصغر الى الجهاد الاکبر... مختصرا... دا حديث د صوفياء په نزد معروف دې، امام غزالی رحمه الله په احياء العلوم کښې په ډيرو مواضع کښې ذکر کړې دې، علامه زبيدی رحمه الله د حافظ عراقی رحمه الله نه نقل کوی، رواه البيهقى من حديث جابر وقال هذا اسناد فيه ضعف! بزيادة من حاشية اللامع. (ج ۲ ص ۴۷۲) بله دا چه په حاشيه د لامع کښې په دې حديث باندې نور هم کلام کړې شوې دې فارجع اليه لو شئت [1] او حافظ فرمائی : وشرعا بذل الجهد فى قتال الکفار، ويطلق ايضا على مجاهدة النفس والشيطان والفساق. او د مجاهده نفس په تشريح کښې ليکلې دی چه اول د امور دين واقفيت حاصلول او زده کول، د دې نه پس په هغې باندې د عمل مشقت برداشت کول، د هغې نه روستو د هغوی په تعليم باندې مشقت برداشت کول، الى اخر ما ذکر، او ملا على قاری رحمه الله ليکلې دی : ﴿ الجهاد لغة المشقة وشرعا، بذل المجهود

[1] ) وفيه، قال الغزالي في موضع اخر، وقال نبينا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لقوم قدموا من الجهاد، مرحبا بكم قدمتم من الجهاد الاصغر الي الجهاد الاكبر، قيل يا رسول الله وما الاكبر؟ قال جهاد النفس، قال العراقي، رواه البيهقي في الزهد، وقال صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ المجاهد من جاهد نفسه في طاعة الله تعالي قال العراقي، رواه الترمذي في اثناء حديث وصححه وابن ماجة من حديث فضالة بن عبيد، قال صاحب الاتحاف، وكذلك اخرجه ابن حبان في الصحيح)

فی قتال الکفار مباشرة او معاونة بالمال او بالرای او بتکثیر السواد او غیر ذلک ﴾ یعنی د کفارو سره په قتل او قتال کښې کوشش کول او خپل طاقت خرچ کول که هغه بدنی وی یا مالی وی یا په رایې او مشورې سره وی یا صرف په تکثیر سواد سره، او شیخ ابن الهمام د دې تعریف داسې کړې دې : ﴿ هو دعوتهم الی الدین الحق وقتالهم ان لم یقبلوا، او حاصله بذل اعز المحبوبات وادخال اعظم المشقات علیه وهو نفس الانسان، ابتغاء مرضات الله تعالی وتقربا بذلک الیه تعالی ﴾ اهـ یعنی کفارو ته د دین حق دعوت ورکول او د هغې د نه قبلولو په صورت کښې هغوی سره قتال کول چه د هغې حاصل دا دې چه د انسان خپل د ټولو نه زیات محبوب ترین څیز قربانول او په دې باندې زبردست مشقت اچول صرف د الله پاک د رضا او تقرب حاصلولو دپاره.

## د مامور به قسمونه حسن لعینه او لغیره

ځان پوهه کړئ چه اصولینو د امر په بحث کښې بیان کړې دې چه د مامور به دوه قسمونه دی، حسن لعینه او حسن لغیره، او بیا د حسن لغیره دوه قسمونه دی یو دا چه هغه غیر چه د هغه د وجې نه په دې کښې حسن پیدا شوې دې یا خو به هغه د نفس مامور به په ادا کولو سره ادا کیږی یا نه بلکه هغه به مستقل کولې شی، د دویم مثال اودس دې چه هغه مامور به حسن لغیره دې چه په هغې کښې د غیر د وجې نه حسن پیدا شوې دې او د غیر نه مراد مونځ دې، پس په اودس کښې بذات خود د عبادت هیڅ معنی نشته، بلکه هغه خو فی ذاته تبرید او تنظیف اعضاء دې بلکه دا هم وئیلې کیدې شی چه په دې کښې د مال ضائع کول دی، په دې کښې چه کوم حسن راغلې دې هغه د غیر یعنی مونځ د وجې نه راغلې دې چه په هغې کښې سراسر د الله پاک تعظیم او د خپلې بندګۍ اظهار او اعتراف دې، خو اودس داسې حسن لغیره دې چه هغه غیر په نفس وضوء سره نه حاصلیږی بلکه هغه قصدا جدا کول وی، پس د اودس نه روستو مونځ کولې شی، او د اول مثال جهاد دې چه دا هم حسن لغیره دې پخپله په دې کښې هیڅ خوبی او خیر نشته، بلکه د تعذیب عباد او د تخریب بلاد د قبیل نه دې، په دې کښې چه کوم حسن پیدا شوې دې هغه د غیر یعنی اعلاء کلمة الله تعالی، او د دین حق حمایت او حفاظت، خو دلته دا غیر په نفس مامور به سره حاصلیږی یعنی دا جدا نه شی کولې. (نورالانوار) په ابوداود کښې وړاندې په یو اوږد حدیث کښې راروان دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ﴿ من قاتل حتی تکون کلمة الله هی اعلی فهو فی سبیل الله عزوجل ﴾ په دې حدیث کښې تصریح ده د دې خبرې چه د جهاد او قتال نه مقصود اعلاء کلمة الله ده. (چه د الله پاک دین اوچت شی).

## بحث ثاني : د جهاد حکم

په حاشیه د ابن عابدین کښې دی چه د جهاد حکم تدریجا نازل شوې دې، د هجرت د ابتداء نه مخکښې به رسول الله ﷺ صرف تبلیغ دین او انذار او په صبر علی اذی الکفار باندې مامور وو، پس د اویا نه زیاتو آیتونو کښې هغه د قتال او مقابلې نه منع کړې شوې وو بیا

د هجرت نه روستو هغه ته د جهاد اجازت ورکړې شو په طور د دفاع او جوابي کار روائي، يعنی کله چه د دې ابتداء د کفارو د طرف نه وی لکه ﴿ اذن للذين يقاتلون بانهم ظلموا ﴾ الاية.... په ذريعه، او دا د ټولو نه اولنۍ آيت کريمه دې کوم چه د قتال د اجازت په باره کښې نازل شوې دې، د دې نه پس بيا ابتداء هم د قتال اجازت ورکړې شو، خو په غير د اشهر حرم نه، ﴿ فاذا انسلخ الاشهر الحرم فاقتلوا المشركين ﴾، بيا د دې نه روستو په ۲ هجری کښې د جهاد حکم علی الاطلاق ورکړې شوې دې. (من حاشية ابن عابدين والبجيرمی)

## د عهد نبوی نه روستو زمانو کښې د جهاد حکم

په درمختار کښې دی، جهاد فرض کفايه دې، پس واجب دی په امام باندې چه دار الحرب ته هر کال يو ځل يا دوه کرته د مجاهدينو دسته ليږی، او په رعيت باندې واجب دی دې باره کښې د امام مدد کول، پس که هغه ئې او نه ليږی نو د دې وبال به هم په هغه باندې وی، او دا هله ده چه کله د امام غالب گمان وی چه هغه د کفارو مقابله کولې شی گينې (د تردد په صورت کښې) هغوی سره قتال کول مباح نه دی په خلاف د امر بالمعروف، يعنی هغه په هرحال کښې واجب دې د هغې دپاره د څه خاص قيد ضرورت نشته اهـ بزيادة من الشامی، او په بدائع کښې دی چه هر کله جهاد فرض کفايه دې نو د امام دپاره د دې خبرې گنجائش نشته چه په اسلامی سرحدونو کښې يو سرحد لره د مجاهدينو د جماعت نه خالی پريږدی، دومره لوئې جماعت کوم چه د دشمن د قتال دپاره کافی شی. پس چه کله دا ټول سرحدونه د مجاهدينو نه ډک شی نو بيا به د باقی خلقو نه جهاد ساقط شی، او په عنايه شرح هدايه کښې دی چه جهاد فرض علی الکفاية دې، د اکثر اهل علم په نزد سوا د ابن المسيب نه چه هغه فرمائی چه فرض عين دې د آيتونو او رواياتو د عموم د وجې نه، او د دې په خلاف ابن شبرمه او ثوری نه نقل دی چه دا غير واجب دې، هم دغه شان د ابن عمر نه هم نقل دی، ابن قدامه د ابن المسيب د مسلک دليل کښې کوم چه ورته فرض عين وائی د الله پاک قول ﴿ انفروا خفافا وثقالا وجاهدوا باموالکم وانفسکم ﴾ ذکر کړې دې او هم دغه شان ﴿ ان لم تنفروا يعذبکم عذابا اليما ﴾ او هم دغه شان ﴿ کتب عليکم القتال ﴾ او د ابوهريره رضی الله عنه مرفوع حديث: ﴿ من مات ولم يغزو ولم يحدث نفسه بالغزو مات علی شعبة من النفاق ﴾ او بيا ئې وړاندې د جمهورو د قول په دليل کښې دا آيتونه پيش کړې دی ﴿ لا يستوی القاعدون من المومنين غير اولی الضرر والمجاهدون فی سبيل الله ﴾ هم دغه شان د الله پاک قول ﴿ ما کان المومنون لينفروا کافة ﴾ او د کوم آيت کريمه نه چه ابن المسيب استدلال کړې دی د هغې په باره کښې فرمائی: ﴿ قال ابن عباس نسخها قوله تعالی: ما کان المومنون لينفروا کافة ﴾ او بل جواب دا دې چه ممکن ده دا آيت د غزوه تبوک متعلق وی چه د هغې په باره کښې د رسول الله ﷺ د طرف نه نفير عام شوې وو، او د نفير عام په وخت جهاد بالاتفاق فرض عين وی.

پورته د ابن عابدين نه نقل کړې شو د جهاد په باره کښې چه په امام باندې واجب دې چه په کال کښې يو يا دوه کرته لښکر روان کړی د دار الحرب د طرف نه، تقريبا هم دا د

نورو کتابونو په مذاهبو کښې دی د شوافعو او حنابله ؤ. پس په اعانة الطالبين (فقه شافعي) کښې دی چه جهاد فرض کفايه دې په هر کال کښې اګر چه په کال کښې يو ځل وی او کفار په خپلو ښهرونو کښې وی، او که زمونږ ښهر ته داخل شی نو بيا په هر يو سړی باندې جهاد متعين دې، وړاندې ليکی، په کال کښې يو ځل جهاد د دې اقل درجه ده لقوله تعالی: ﴿ اولا يرون انهم يفتنون فی کل عام مرة او مرتين ﴾ امام مجاهد رحمه الله فرمائی چه دا آيت کريمه د جهاد په باره کښې نازل شو او دويمه وجه دا چه جزيه د جهاد په بدله کښې واجب کيږی او هغه په هر کال کښې يو ځل واجب کيږی پس هم دغه شان د دې بدل هم. او هم دا خبره ابن قدامه په مغنی کښې ليکلې ده، هغه ليکی: ﴿ فيجب فی کل عام مرة الا من عذر مثل ان يکون بالمسلمين ضعف فی عدد او عدة الخ ﴾ يعنی په هر کال کښې يو ځل واجب دې مګر دا چه څه عذر او مجبوری وی مثلا دا چه د مسلمانانو په تعداد کښې کمی وی، يا اسلحه او انتظام وغيره کمې يا دا چه د مدد انتظار وی (د بهر نه د فوج راتلو) يا په لاره کښې څه څيز مانع وی.

## په عهد نبوی کښې د جهاد حکم

ځان پوهه کړه چه دا پورته ذکر شوې حکم او تفصيل د روستو زمانې په اعتبار سره دې د عهد نبوی په اعتبار سره نه دې، ځکه چه د دواړو زمانو په حکم کښې فرق دې، پس حافظ په فتح الباری کښې ليکی: کما فی البذل، وللناس فی الجهاد حالان احدهما فی زمن النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والاخری بعده، د اول په باره کښې فرمائی چه په شروع کښې جهاد فرض عين وو يا کفايه؟ د علماء کرامو دواړه اقوال مشهور دی او په مذهب شافعی کښې هم دواړه دی، ماوردی فرمائی: د رسول الله ﷺ په زمانه کښې صرف د مجاهدينو په حق کښې فرض عين وو، او د دې تائيد د دې نه کيږی چه د فتح مکه نه مخکښې د هر اسلام راوړونکی په حق کښې واجب وو د هجرة الی المدينه او نصرت اسلام دپاره، او د دې بالمقابل سهيلی داسې فرمائی چه صرف د انصارو په حق کښې فرض عين وو، چه د هغې تائيد د ليلة العقبة د بيعت نه کيږی، چه په هغې کښې انصارو د رسول الله ﷺ سره بيعت علی الايواء والنصرة وو، په دې باندې حافظ رحمه الله فرمائی که دا دواړه اقوال يوځائې کړې شی نو د هغې حاصل به دا وی چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې جهاد د مهاجرين او انصارو په حق کښې فرض عين وو او د هغوی دواړو نه علاوه د باقی خلقو په حق کښې فرض کفايه. مختصراً، زه وائم چه د دې حاصل دا شو چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د جهاد په باره کښې پنځه اقوال شو:

۱: قيل فرض عين مطلقا، ۲: وقيل فرض کفاية مطلقا،

۳: وقيل عين فی حق المهاجرين کفاية فی غيرهم.

۴: وقيل عين فی حق الانصار کفاية فی غيرهم.

۵: او پنځم قول د دريم او څلورم مجموعه ده يعنی: فرض عين علی المهاجرين والانصار وفی حق غيرهما کفاية،

د رسول الله ﷺ په زمانه کښې مطلقا د فرض عين کيدو قول علامه باجي د سحنون مالکی نه نقل کړې دې هغه فرمائی چه جهاد په ابتداء د اسلام کښې په ټولو مسلمانانو باندې فرض عين وو، والآن هو مرغب فيه، كذا في الاوجز، بيا د پنځم قول نه روستو حافظ ليکی، خو د دې باوجود دا نه شی وئيلې کيدې چه د طائفين (مهاجرين او انصار) په حق کښې فرض عين على العموم وو بلکه د انصارو په حق کښې صرف هغه وخت وو چه کله يو دشمن په مدينه منوره باندې حمله اوکړی، او د مهاجرينو په حق کښې به هغه وخت وو چه کله د کفارو سره د قتال اراده بهر تلو سره وی لکه چه د دې تائيد د هغه واقعې نه کيږی کوم چه د بدر په قصه کښې راپيښه شوه([1]) (حافظ وړاندې يو قول بل ليکلو سره بيا خپل تحقيق ليکلې دې) او وئيلې شوې دی چه جهاد فرض عين وو چه په کومه غزوه کښې خپله رسول الله ﷺ اوتلو، د دې نه علاوه کښې نه، او تحقيق دا دې چه د هغه په زمانه کښې جهاد فرض عين وو د هغه سړی په حق کښې کوم چه هغه معين کړی اګر چه په هغې کښې رسول الله ﷺ او نه اوځي. اهـ من البذل.

## دريم بحث : د جهاد فضيلت

امام بخاري رحمه الله د کتاب الجهاد په شروع کښې د ټولو نه اول د فضيلت جهاد باب قائم کړې دې بلکه ډير بابونه ئې تړلې دی، د اولنی باب د لاندې ئې د سورة توبه د شروع آيت ذکر فرمائيلې دې : ﴿ إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنْفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ وَالْقُرْآنِ وَمَنْ أَوْفَى بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ الَّذِي بَايَعْتُمْ بِهِ وَذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴾ يقينا دا آيت کريمه د جهاد د فضيلت دپاره کافی او وافی دې، او نص قطعی دې چه مجاهد د الله پاک سره تد خپل نفس معامله کړې ده جنت په بدله کښې، ګويا الله پاک د دې خبرې تصريح فرمائی چه مجاهد خپل ځان او

---

[1] د حافظ صاحب اشاره دې طرف ته ده کومه چه په سيرة کښې راځی چه کله رسول الله ﷺ ته دا خبره اورسيده چه قريش د خپلې قافلې د حفاظت دپاره د مکې مکرمې نه روان شو، په دې باندې رسول الله ﷺ د صحابه کرامو سره مشوره اوکړه چه اوس مونږ له څه کول پکار دی يعنی مدينې ته واپس شو يا د راتلونکی دشمن مقابله اوکړې شی، نو په دې باندې په مهاجرينو کښې د ټولو نه اول صديق اکبر رضي الله عنه اودريدو او بيا عمر فاروق او بيا نور حضرات مهاجرين او ټولو په يوه ژبه باندې رسول الله ﷺ ته هم دا عرض اوکړو چه په دې کښې چه څه ستاسو رائې وی او څه چه تاسو کوئ مونږ تاسو سره يو، رسول الله ﷺ په دې باندې د خوشحالئ اظهار اوفرمائيلو او هغوی ته ئې د خير دعا اوکړه خو د هغې باوجود رسول الله ﷺ بيا هم هغه خبره اوکړه چه اې خلقو ماته مشوره راکړئ چه اوس څه کول پکار دی، اصل کښې رسول الله ﷺ دا غوښتل چه په دې موقع باندې انصار اودريږی او هغوی قتال ته د تيارئ اظهار اوکړی ځکه چه په ليلة العقبة کښې انصارو د هغه سره لوظ کړې وو چه کوم دشمن په تا باندې حمله کوی د هغې دفاع به مونږ ستا نه کوو يعنی د مدينې نه بهر تلو سره د نصرت کولو د هغوی د طرف نه هيڅ وعده نه وه، الغرض چه کله په دويم دريم ځل هغه دا خبره اوفرمائيله نو په دې باندې سعد بن معاذ انصاری رضي الله عنه پوهه شو چه د رسول الله ﷺ د خبرې اشاره زمونږ طرف ته ده، هغه اودريدو او عرض ئې اوکړو : ﴿ والله لكانك تريد انا يا رسول الله قال اجل ﴾ په دې باندې هغه د خپلې پوره پوره جانثارئ اظهار اوکړو.... مونږ هر طرف ته تا سره يو، که سمندر ته هم د دې مقصد دپاره دا ننګل وی نو مونږ به اودانګو، رضي الله عنهم وارضاهم اجمعين)

مال تول ماته حواله کړې دی، او بیا د دې نه روستو الله پاک انتهائی په تاکید سره د هغه دپاره د جنت وعده او د هغې د حصول زیرې ورکړې د، د دې نه روستو امام بخاری رحمه الله دا حدیث ذکر فرمائیلې دې په روایت د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ﴿ يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ قَالَ الصَّلَاةُ عَلَى مِيقَاتِهَا قُلْتُ : ثُمَّ أَيٌّ؟ قَالَ ثُمَّ بِرُّ الْوَالِدَيْنِ قُلْتُ : ثُمَّ أَيٌّ؟ قَالَ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ﴾ او د هغې نه روستو دویم باب دا دې : ﴿ أَفْضَلُ النَّاسِ مُؤْمِنٌ يُجَاهِدُ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ ﴾ او د دې په دلیل کښې دا آیت کریمه ذکر اوفرمائیلو : ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنْجِيكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴾ په دې آیت کریمه کښې د ایمان بالله والرسول نه پس د جهاد فضیلت او په هغې باندې د مرتب کیدونکی اجر عظیم بیان کړې شوې دې، او بیا د دې نه روستو امام بخاری د سیدنا ابوسعید خدری رضی الله عنه حدیث مرفوع ﴿ أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُؤْمِنٌ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللهِ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ ﴾، ذکر فرمائیلې د هغې نه پس پیژندل پکار دی چه :

## د افضل الاعمال په باره کښې روایات مختلفه

په دې مقام کښې شراح حدیث په افضل الاعمال کښې چه کوم روایات مختلفه وارد شوې دې د هغې ترمینځه تطبیق بیانوی، حضرت اقدس گنگوهی په افادات بخاری المعروف بلامع الدراری کښې دی چه په دې حدیث کښې چه د مجاهد کوم فضیلت ذکر شوې دې هغه فضیلت جزئیه دې (یو خاص لحاظ سره) او هغه د مجاهد مشغولیدل دی شپه او ورځ د بیدارئ په حالت کښې هم او د اوده کیدو په حالت کښې هم، په غفلت کښې هم او د حضور قلب په حالت کښې هم، په دې کار کښې چه د کوم دپاره هغه وتلې دې هم په دې وجه د هغه دپاره اجر لیکلې شوې دې په هر هغه کار کښې کوم چه هغه د سفر جهاد دوران کښې کوی، خپله ئې هغه کوی او که د هغه مزدور او خادم ئې کوی یا ئې د هغه سورلی او څاروې کوی، لکه چه په حدیث کښې د دې تصریح ده او واقعی دا فضیلت د جهاد نه علاوه په بل طاعت کښې نشته، ځکه چه مثلا روژه نیولو والا او هم دغه شان روژه نیولو والا هغه ته اجر ملاویږی، ترڅو پورې چه دې په مونځ کښې دی او د روژې په حالت کښې دی د هغې نه روستو نه، خو د مونځ فضیلت او بعض نور طاعات فی نفسه د جهاد د فضیلت نه زائد دی، لهذا په دې روایت کښې او هغه روایت کوم چه مخکښې تیر شوې دی چه په اعمالو کښې د ټولو نه افضل ﴿ الصلاة لوقتها ﴾ دې، هیڅ منافات نشته. اهـ د لامع په حاشیه کښې ابن عابدین نه نقل کړې دې چه په دې خبره کښې هیڅ تردد نشته چه فرض مونځونو لره د هغې په وختونو کښې ادا کولو باندې همیشوالې دا د جهاد نه افضل دې ځکه چه مونځ فرض عین دې، بل دا چه جهاد د ایمان او د اقامت صلاة د تحصیل دپاره وی بذات خود مقصود نه دې، پس هغه حسن لغیره شو او مونځ حسن لعینها شو، او مقصود بالجهاد هم هغه دې الی ما اخر ذکر، علامه عینی رحمه الله فرمائی د افضل الاعمال په باره کښې

د احادیثو اختلاف د سائلین او د هغوی د احوالو د وجې نه دي، او یا د وخت او زماني د اختلاف په اعتبار سره او یا داسې اوایه چه د بعض خیزونو په اعتبار سره، یعنی فضیلت جزئی، خرقی د امام احمد نه نقل کړې دی ﴿ لاعلم شيئا من العمل بعدالفرض افضل من الجهاد ﴾ او صاحب د فیض الباری مولانا محمد انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه د امام ابوحنیفه او امام مالک په نزد اشتغال علمی افضل دې د اشتغال بالنوافل نه په خلاف د امام شافعی چه د هغه په نزد د دې برعکس دې، او د امام احمد رحمه الله نه دوه روایتونه دی په یو کښې هغه علم افضل ګرځلې دې او په بل کښې ئې جهاد کما ذکره ابن تیمیة فی منهاج السنة، او دا اختلاف په جهاد نفلی کښې دې نه په هغه جهاد کښې کوم چه فرض الوقت وی، یعنی په کوم حالت کښې چه جهاد فرض کیږی هغه وخت هم هغه د ټولو نه افضل دې، حضرت شیخ فرمائی، خو د امام شافعی مسلک ملا علی قاری په مرقاة کښې د شرح السنة نه، خپله د امام شافعی رحمه الله نه دا نقل کړې دې چه ﴿ طلب العلم افضل من صلاة النافلة ﴾، ملا علی قاری رحمه الله فرمائی ځکه چه..... علم بعض داسې دی کوم چه فرض عین دی او بعض هغه دی کوم چه فرض کفایه دی، او دا دواړه افضل دی د نفلو نه، دا بحث زمونږ په نزد په کتاب الصلاة کښې په باب فی المحافظة علی الصلوات کښې تیر شوې دې، الحمد لله ابتدائی درې بحثونه پوره شو،

**(څلورم بحث:)**

دلته یو بل بحث دې ګویا څلورم بحث چه د جهاد حکم په ظاهره باندې د آیت کریمه ﴿ لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَدْ تَبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ﴾ خلاف دې، د دې جواب به مونږ ان شاء الله چه کله په کتاب کښې دا باب راشی ﴿ باب الاسیر یکره علی الاسلام ﴾ هلته ورکوو.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْهِجْرَةِ وَسُكْنَى الْبَدْوِ[1]

### د هجرت بیان او په باندو (کلو) کښې د اوسیدو بیان

هجرت چونکه مبدا الجهاد دې او د هجرت نه روستو جهاد مشروع شو په دې مناسبت مصنف دا باب د کتاب الجهاد په شروع کښې ذکر فرمائیلې دې، پس په سنن ترمذی کښې سعید بن جبیر د ابن عباس نه روایت کوی "لما اخرج النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من مکة قال ابوبکر اخرجوا نبیهم لیهلکن فانزل الله تعالی ﴿ أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ﴾ یعنی کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم کفار مکه په هجرت او وطن پریخودلو باندې مجبوره کړو نو په دې موقع باندې سیدنا صدیق اکبر رضی الله عنه فرمائیلې وو او دا خپل تاثر ئې ظاهر کړې وو چه دې بدبختو خپل نبی په وتلو باندې مجبور کړو اوس به دوی تباه کیږی پس نزدې دا آیت کریمه نازل شو کوم چه پورته ذکر شو، د دې په نزول باندې صدیق اکبر اوفرمائیل ﴿ لقد علمت انه سیکون قتال ﴾، چه مونږ خو د مخکښې نه پوهه شوې وو چه اوس د جهاد حکم کیدو والا دې.

[1] وفي بعض النسخ بعده وسكني البدو

## اول اية نزلت في القتال

علماء کرامو ليکلي دي چه دا اولنۍ آيت کريمه دې کوم چه د قتال په باره کښې نازل شوې دې چه د هغې نزول د صفر په دولسم تاريخ ٢ هجرى کښې اوشو او د دې نه وړاندې دوه اويا ايتونه داسې نازل شوې وو چه په هغې کښې د صبر او برداشت حکم او د قتال نه منع وه، د دې آيت کريمه په نزول سره هغه دوه اويا آيتونه منسوخ شو خو چونکه هغه آيتونه خو ابتدائى دى او صرف اباحة د قتال په باره کښې دى د هغې نه روستو ډير داسې آيتونه نازل شو چه په هغې کښې دا وو چه ابتداء قتال کول ستاسو دپاره جائز نه دى، که شروع د کفارو د طرف نه شوې وى نو بيا د قتال اجازت شته او په بعض کښې د اشهر حرم استثناء کړې شوې ده دا د روستو او مخکښې ټولو آيتونو مجموعه يو سل شل ايتونه علماء کرامو ليکلي دى، دا ټول د آيت السيف د نزول يعنى د سورة براءة دې آيت ﴿ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ﴾ الاية،منسوخ کړل. (بذل القوة فى حوادث سنى النبوة للسندى)

[٢٤٧٧]([1]) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ يَعْنِي ابْنَ مُسْلِمٍ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ: أَنَّ أَعْرَابِيًّا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْهِجْرَةِ، فَقَالَ: وَيْحَكَ إِنَّ شَأْنَ الْهِجْرَةِ شَدِيدٌ فَهَلْ لَكَ مِنْ إِبِلٍ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: "فَهَلْ تُؤَدِّي صَدَقَتَهَا؟" قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: "فَاعْمَلْ مِنْ وَرَاءِ الْبِحَارِ فَإِنَّ اللَّهَ لَنْ يَتِرَكَ مِنْ عَمَلِكَ شَيْئًا".

**ترجمه:** دابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دې چه يوباندچى دنبى عليه السلام نه دهجرت په باره کښې تپوس اوکړو، ورته ئې اوفرمائيل په تا أفسوس دې هجرت خو سخت عمل دې، آيا ستا اوښان شته؟ هغه ووئيل آو شته، نبى عليه السلام اوفرمائيل، آيا ته ئې زکوة ورکوې؟ هغه اووئيل آو، نبى عليه السلام اوفرمائيل: د دريابونونه پورې غاړه کار کوه الله به ستا په عمل کښې هيڅ کمى نه راولى.

### شرح حديث

**قوله:** فَإِنَّ اللَّهَ لَنْ يَتِرَكَ ([2]) مِنْ عَمَلِكَ شَيْئًا":

يو باندچى يعنى د باندې اوسيدونکى چا چه لا تر اوسه پورې مدينې منورې ته هجرت نه وو کړې، هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د هجرت په باره کښې تپوس اوکړو نو هغه ورته اوفرمائيل هلاک شې د هجرت مسئله ډيره سخته ده د هر چا د وس نه ده، بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه نه تپوس اوکړو چه تا سره اوښان شته، هغه عرض اوکړو چه او! رسول الله صلى الله عليه وسلم تپوس

[1]): صحيح البخاري/الزكاة ٣٦ (١٤٥٢)، والهبة ٣٥ (٢٦٣٣)، ومناقب الأنصار ٤٥ (٣٩٢٣)، والأدب ٩٥ (٦١٦٥)، صحيح مسلم/الإمارة ٢٠ (١٨٦٥)، سنن النسائي/البيعة ١١ (٤١٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٥٣، ١٥٥٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤/٣، ٦٤) (صحيح)

[2]) دا د وَتَر يَتِرُ وَتْرًا نه دې ددې معنى نقص ده، كما قال الله تعالي: والله معكم ولن يتركم اعمالكم، "يتر" په اصل کښې يُوتِرُ وو، داعلال نه پس يتر شو، يوځاې په حديث کښې د اعلال نه بغير هم راغلى دې لکه په ابوداود کښې په صلاة الليل کښې تير شوى دى چه: ولم يكن يُوتِر.

اوکړو چه د هغې زکاة صدقه ادا کوی هغه اووې او جی (او چه کله زکاة ادا کوې کوم چه په نفس باندې ډیر گران دې نو مونځ او روژه خو به ئې ظاهره خبره ده چه کول) په دې باندې رسول اللهﷺ هغه ته اوفرمائیل چه ته په خپلو اعمالو کښې مصروف اوسیږه او چرته چه غوارې اوسیږه، یعنی تاته د وطن د پریخودلو ضرورت نشته، اعمال خیر او فرائض ادا کوه اگر چه ته د مقام هجرت نه ډیر لرې اوسیږې، بحار د بحر جمع ده په معنی د بلده، زیات لرې والی چه کله زمونږ په اردو محاوره کښې بیانولې شی نو وئیلې شی چه "سات سمندر پار" دلته هم دا ترجمه اوکړئ، خو په دې کښې دې دا شبه پیدا نه شی چه په دې جمله کښې د بحار نه سمندر مراد[1]، بیا رسول اللهﷺ اوفرمائیل الله پاک به ستا د یو عمل ثواب هم نه کموی یعنی د ترک هجرت د وجې نه، دلته دا اشکال راځی چه د اسلام په شروع کښې خو هجرت فرض وو بیا ئې دې سړی ته د ترک هجرت اجازت څنګه ورکړو نو جواب دا دې چه دا جواز هم د دې اعرابی سره خاص دې د رسول اللهﷺ د دې خصوصی اجازت په بناء باندې کوم چه مبنی وو د دې اعرابی په حال باندې حکاه (ص ٥ ج ٩) العینی عن القرطبی او یا به دا وئیلې شی چه دا اعرابی د غیر اهل مکه نه وو چه د هغوی په حق کښې هجرت صرف مستحب وو واجب نه وو، كما حكى العينى عن بعضهم، حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه ممکنه ده چه رسول اللهﷺ د هغه اعرابی په باره کښې دا اندازه لګولې وی چه د هغه سړی نه به د شدائد هجرت او د هغې سختو تحمل اونشی، والله تعالى اعلم وله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان يخص من شاء بما شاء. او حافظ په فتح البارى کښې د دې جواب دا کړې دې چه دا واقعه د فتح مکه نه روستو ده ځکه چه د فتح مکه نه مخکښې خو هجرت فرض وو بیا روستو دا حکم منسوخ شو، د رسول اللهﷺ په ارشاد ﴿ لا هجرة بعد الفتح ﴾ سره. اهـ

خو د حافظ په رائې باندې به دا اشکال راځی چه دا اعرابی خو د اهل مکه نه نه وو كما جزم به بعض الشراح او د فتح مکه نه پس د نسخ هجرة تعلق خپل اهل مکه سره دې ﴿ لا من غيرهم فتامل ﴾ او د دې په خلاف د علامه عینیؒ رائې د دې قصې په باره کښې د فتح مکه نه مخکښې ده او هغه د مهلب نه هم دا نقل کړې دی او دا چه که دا د فتح مکه نه پس واقعه وی نو بیا خو به رسول اللهﷺ هغه اعرابی ته هم دا جواب فرمائیلې وې ﴿ لا هجرة بعد الفتح كما قاله لغيره الى اخر ما فى العينى، والحديث اخرجه البخارى فى عدة مواضع الزكاة، الهبة، مناقب الانصار، ومسلم والنسائى، قاله المنذرى)

[٢٤٧٨](٢)حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ، وَعُثْمَانُ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عنها عَنِ الْبَدَاوَةِ، فَقَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْدُو إِلَى هَذِهِ التِّلَاعِ وَإِنَّهُ أَرَادَ الْبَدَاوَةَ مَرَّةً فَأَرْسَلَ إِلَيَّ نَاقَةً مُحَرَّمَةً مِنْ إِبِلِ الصَّدَقَةِ فَقَالَ لِي: "يَا عَائِشَةُ ارْفُقِي فَإِنَّ الرِّفْقَ لَمْ يَكُنْ فِي شَيْءٍ

[1] اګر چه یو قول په دې کښې دا هم دې کم چه علامه عینی ذکر کړې دې بلکه هغه اول هم دا معنی اخستلې ده ثم قال وقيل المراد من البحار البلاد)

[2]: تفرد به أبو داود، ويأتي هذا الحديث في الأدب (٤٨٠٨)، (تحفة الأشراف: ١٦١٥٠)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/البر والصلة ٢٣ (٢٥٩٤)، مسند احمد (٦/٥٨، ٢٢٢) (صحيح)

قَطُّ إِلَّا زَانَهُ وَلَا نُزِعَ مِنْ شَيْءٍ قَطُّ إِلَّا شَانَهُ".

**ترجمه:** مقدام بن شريح دخپل پلار نه روايت کوي فرمائي چه دام المومنين عائشي رضي الله عنها نه مي په کلو اوباندو کښې درهائش متعلق تپوس اوکړو، او يوځل هغه دبهرتلو اراده کړي وه اوماته ئي دصدقي داوښانونه يوه اوښه راوليګله چه په هغې باندې سورېدل نه وو شوی، او ماته ئی اوفرمائيل اې عائشي رضي الله عنها ددې سره نرمي کوه ځکه چه نرمي په يوشي کښې نه ده راغلي مګرهغه ئي ښائسته کړې اوديو څيز نه نه ده ويستلي شوې مګرهغه ئي عيب ژن کړي دې.

## د حديث تفصيلي تشريح

شريح بن هانی رحمه الله فرمائي چه ما د ام المومنين عائشي رضي الله عنها نه تپوس اوکړو د بداوت په باره کښې (بداوة کښې د باء فتحه او کسره دواړه دي يعني خروج الى البادية چه هغې ته صحرا کښې ګرځيدل او سياحت هم وئيلې شي) نو عائشي رضي الله عنها دبعضی غونډو طرف ته اشاره کولو سره اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ به د دې طرف ته تلو او بيا هغې يوه واقعه واوروله چه يو ځل رسول الله ﷺ د بداوة اراده اوفرمائيله.... نو ما ته يوه اوښه چه هغه غير تربيت يافته يعني په سورلئ کښې د تلو سره عادت نه وه رااوليږله، غالبا کته وغيره به ئي په هغې باندې د اچولو دپاره راليږلې وه، په ظاهره کښې هغه اوښې شوخي اوکړه، چه د هغې په وجه باندې عائشي رضي الله عنها په هغې باندې سختی اوکړه، په دې وجه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه اې عائشي د نرمئ معامله کوه، ځکه چه په کوم څيز کښې نرمي موندلې شي نو هغه نرمی هغې لره ډولی کوی او ښائسته کوی، او د کوم يو څيز نه چه نرمی واخستلې شی يعنی د نرمئ په ځائې د سختئ معامله کولې شی نو دا سختی هغه څيز لره عيب ژن کړی، د ﴿ شان يشين شينا ﴾ معنی د عيب دار کولو ده، شين په معنی د عيب، د مجمع البحار نه معلوميږی چه کومه اوښه تربيت يافته او منقاد وی هغې ته ناقه منوقه وئيلې شی، د محرمه مقابل په دې حديث کښې دی چه دا اوښه د صدقې د اوښانو نه وه، په دې باندې دا اشکال پيدا کيږی چه د نبی عليه السلام دپاره خو د صدقې استعمال جائز نه وو او نه به ئې د د صدقې څيز استعمالولو..... حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې ليکلې دی چه د دې اشکال جواب د حضرت ګنګوهی د تقرير نه مستفاد کيږی چه دا د صدقې اوښه رسول الله ﷺ عائشي رضي الله عنها ته ورکړې وه، بيا چه کله د هغې په ملک کښې داخل شوه د دې نه پس رسول الله ﷺ هغه استعمال اوفرمائيله، هم دغه شان د حضرت په تقرير کښې دا هم دی چه په دې حديث کښې دلالت دې په دې خبره باندې چه د ازواج مطهرات دپاره مال صدقه او د دې نه انتفاع جائز وه لهذا هغوی ته زکاة ورکول هم جائز شو. اهـ د ازواج مطهرات دپاره د صدقې د جواز بحث زمونږ په نزد په کتاب الزکاة کښې په باب الصدقة على بنی هاشم کښې تير شوې دې.

ځان پوهه کړه چه مصنف دا حديث په ﴿ باب ما جاء فی الهجرة وسکنی البدو ﴾.... کښې ذکر فرمائيلې دې، د سائل سوال د عائشي رضي الله عنها نه د بداوت په باره کښې وو، يعنی سکنی البادية او هلته مستقل اقامت اختيارول، په دې باندې هغې اوفرمائيل چه نبی عليه السلام کله کله سورلئ

باندې سوریدو سره بعض صحرائی غونډو طرف ته تشریف اوړلو، په ظاهره کښې د جواب حاصل دا شو چه نبی علیه السلام به مستقل قیام صحراء او غیر ابادی کښې ثابت نه دې سوا د هغې نه کوم چه حضرت عائشې رضی الله عنها هغه سرې ته بیان کړو، په دې باندې حضرت په بذل کښې لیکی : ولعله یفعل ذلک احیانا لیخلو بنفسه ویبعد عن الناس... یعنی کیدې شی چه رسول الله ﷺ داسې خلوت اختیارول غوښتل او د خلقو نه ئې د یواځې والی حاصلولو دپاره کله کله داسې کول، هم دا مصلحت صاحب د مجمع د یو بل حدیث د لاندې لیکلې دې : ﴿ کان اذا اهتم لشئ بدا ﴾ خو صاحب مجمع په ص ۳۷۲، ج ۵ په تکمله کښې د حدیث الباب د لاندې لیکلې دی، وفیه انه لا باس بالخروج الی البادیة حینا للتنزه اهـ... یعنی کله کله د ځنګل طرف ته د سیل او تفریح دپاره تلو کښې هیڅ باک نشته. کوم مصلحت چه صاحب مجمع د حدیث الباب د لاندې لیکلې دې یعنی خروج للتنزه احیانا هغه هم مناسب دې بلکه زیات مناسب او زمونږ د مشائخ او اکابر نه ثابت هم دې، او کوم مصلحت چه حضرت سهارنپوری رحمه الله لیکی هغه څیز په خپل ځائې صحیح دې، او د رسول الله ﷺ نه ثابت دې چه د هغې ذکر د صحیح بخاری په حدیث وحی کښې دې ﴿ ثم حبب الیه الخلاء وکان یخلو بغار حرا ﴾ والله اعلم

دا حدیث په صحاح کښې صرف په مسلم کښې ملاؤ شوې دې. هغه هم مختصرا، چه په هغې کښې د بداوة ذکر نشته خو په هغې کښې یو لفظ زیات دې چه هغې سره د حدیث په شرح کښې مدد ملاویږی، ولفظه : رَكِبَتْ عَائِشَةُ بَعِيرًا فَكَانَتْ فِيهِ صُعُوبَةٌ فَجَعَلَتْ تُرَدِّدُهُ فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ –صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ– « عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ » یعنی یو ځل سیده عائشه رضی الله عنها په یو اوښ باندې سوره شوه چه په هغې کښې سختی او شوخی وه او عائشه رضی الله عنها هغه شاته مخې ته کولو (د هغې د اصلاح دپاره) په دې رسول الله ﷺ هغې ته اوفرمائیل عائشې! نرمی اختیار کړه، دا حدیث امام مسلم په کتاب البر والصلة کښې ذکر کړې دې.

په حدیث الباب کښې چه په هغې کښې د بداوة ذکر دې د دې هم معنی یو مستقل باب په کتاب کښې راروان دې "باب النهی عن السیاحة" ځان پوهه کړئ چه هره اوښه راحله نه وی یعنی د سورلئ لائقه نه وی، د سورلئ لائقه مخصوص اوښې وی او د سورلئ نه مخکښې هغې ته هم تربیت او مشق ورکولې شی، ډیر اسونه هم داسې وی چه ډیر د محنت او کوشش نه پس هغه سورلئ په شا باندې پریږدی، النَّاسُ كَإِبِلٍ مِائَةٍ لاَ تَجِدُ فِيهَا رَاحِلَةً... هسې د بار اوړلو دپاره خو ټولې قابلې وی.

## بَابٌ فِي الْهِجْرَةِ هَلِ انْقَطَعَتْ

### آیا د هجرت حکم ختم شوې دې؟

[۲٤۷۹] (¹) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، عَنْ حَرِيزِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَوْفٍ، عَنْ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لاَ تَنْقَطِعُ الْهِجْرَةُ حَتَّى تَنْقَطِعَ التَّوْبَةُ، وَلاَ تَنْقَطِعُ التَّوْبَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا".

¹: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱٤٥۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۹۹/٤)، دي /السير ۷۰ (۲٥٥٥) (صحيح)

**ترجمه:** دمعاوية رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دنبي ﷺ نه مې اوريدلي دي چه فرمائيل ئې دهجرت حکم ترهغې نه شي ختميدلي ترڅوچه دتوبې دقبليدوحکم نه وي ختم شوي اودتوبې حکم ترهغې نه شي ختميدلي ترڅوچه نمر دمغرب نه نۀ وي ختلي.

**تشريح:** يعنى د هر دارالکفر نه دار اسلام طرف ته د هجرت کولو سلسله هميشه جاري وی چه ترڅو پورې د توبې دروازه نه وی بند شوې، اود توبې دروازه به بالکل قيامت ته نزدې بنديږی، کله چه نمر د مغرب د طرفه راوخيژی، ليکن دا هجرت د کوم چه په دې حديث کښې ذکردې مندوب هجرت دې واجب نه دې په خلاف د هجرة من مكة الى المدينة. چه دا په طريقه د وجوب وو کوم چه د مکې د فتح نه پس مطلقًا منسوخ شو. لا وجوبًا ولا استحبابًا،والحديث أخرجه النسائي (المنذري).

[۲۴۸۰] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَوْمَ الْفَتْحِ فَتْحِ مَكَّةَ لَا هِجْرَةَ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا".

**ترجمه:** دابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي دفتح مکې په ورځ دنن نه پس هجرت کول نشته ليکن دجهاد حکم باقي پاتې دي کله چه درنه دجهاد دپاره دتلو غوښتنه اوشي نولاړ شئ.

## شرح حديث

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَوْمَ الْفَتْحِ فَتْحِ مَكَّةَ « لاَ هِجْرَةَ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ ﴾ يعنى د فتح مکه په ورځ باندې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه اوس د مکې مکرمې نه هجرت ختم شو، يعنى مطلقا لا وجوبا ولا استحبابا ځکه چه اوس هغه دار الاسلام جوړ شو، بيا وړاندې رسول الله ﷺ فرمائي: ﴿ ولكن جهاد ونية ﴾ يعنى هجرت کوم چه يو عظيم الشان عمل وو او د اجر عظيم سبب وو اوس هغه اګر چه باقي پاتې نه شو خو د طالب اخرت او د طالب ثواب دپاره نور لوئې لوئې اعمال موجود دی لکه جهاد او په هر يو کار کښې خالص نيت، ګويا جهاد هم يو قسم هجرت دې يعنى هجرت په سبب د جهاد او هجرت په سبب د خالص نيت، ظاهره خو هم دا ده چه په دې حديث کښې چه په کوم کښې د هجرت نفی ده هغه هجرت دې د مکې نه ځکه چه د فتح مکه په ورځ باندې فرمائي، لهذا په دې حديث کښې او په حديث سابق کښې هيڅ منافات نشته، په اول حديث کښې د هجرت نه مطلق هجرت من دار الكفر الى دار الاسلام مراد وو چه د هغې اثبات دې او د کوم چه نفي کولې شی هغه هجرت خاصه دې، هكذا فى الشروح او دا هم ممکنه ده چه داسې اوئيلې شی چه که په دې حديث کښې هم مطلق هجرت مراد کړې شی نو بيا په دې صورت کښې به د نفی تعلق د وجوب سره وی نه د استحباب سره(۲)، والله تعالى اعلم،

---

(۱): انظر حديث رقم: (۲۰۱۸)، (تحفة الأشراف: ۵۷۴۸) (صحيح)

(۲) امام نووی رحمه الله د دفع تعارض دپاره د دې حديث دوه تاويلونه کړې دی اول هم دا دی........۶

وړاندې په حدیث کښې دی ﴿ واذا استنفرتم فانفروا ﴾ او چه کله ستاسو نه د وتلو مطالبه اوکړې شی یعنی د امام د طرف نه نو تاسو اوځئ. نفیر په معنی د خروج الی الجهاد وکذا قال الحافظ وغیره، او د قاموس نه معلومیږی چه نفر او نفیر دواړه یو دی، یعنی سفر کول او جدا کیدل، خو په حج کښې لفظ د نفر استعمالیږی او په جهاد کښې لفظ د نفیر، د دې حدیث نه معلومیږی چه کوم خلق د خروج الی الجهاد دپاره امام متعین کړی د هغوی په حق کښې خروج واجب لعینه وی، وهو التحقیق کما قال فیما سبق، والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی (قاله المنذری)

[۲۴۸۱]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَامِرٌ، قَالَ: أَتَى رَجُلٌ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو وَعِنْدَهُ الْقَوْمُ حَتَّى جَلَسَ عِنْدَهُ، فَقَالَ أَخْبِرْنِي بِشَيْءٍ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللَّهُ عَنْهُ".

**ترجمه:** دعامر شعبی نه روایت دې فرمائی چه عبدالله بن عمرو رضي الله عنه ته یو کس راغې اودهغه سره خلق ناست وو اودې هم کیناستو، اوعرض ئې اوکړوچه که چرې دنبی ﷺ نه دې څه اوریدلي وي نوراته ئې واوروه نوده ورته ووئیل چه دنبی ﷺ نه مې اوریدلي دي فرمائیل ئې: کامل مسلمان هغه کس دې څوك چه بچ کوي مسلمانانولره دضرردخپلې ژبې نه اودضرردخپل لاس نه، او مهاجرهغه کس دې څوك چه پرېږدي هغه څیزونه کوم چه الله پاك منعه کړي دي.

## بَابٌ فِي سُكْنَى الشَّامِ

### په شام کښې داوسیدلو بیان

یعنی په شام کښې د اوسیدلو د فضیلت په بیان کښې.

### د باب د کتاب الجهاد سره مناسبت

که څوك دا اوائی چه د دې باب د کتاب الجهاد سره څه مناسبت دې؟ جواب دا دې چه د دې نه مخکښې دوه بابونه د هجرت متعلق تیر شوې دی، او دا مخکښې تیر شوې دی چه د هجرت ذکر په کتاب الجهاد کښې په دې حیثیت سره دې چه هجرت د جهاد ابتداء ده، د دې دریم باب مناسبت په دې اعتبار سره دې چه دا بیانول مقصود دی لکه چه په احادیثو کښې راغلې دی چه په اخره زمانه کښې بهترین مقام د هجرت هغه به ملك شام وی.

---

↩..... چه په دې حدیث کښې د هجرت خاصه نفی ده، یعنی د مکې نه مدینې طرف ته، او دویم تاویل کوم ته چه هغوی اصح وئیلې دی هغه دا دې چه په دې حدیث کښې د هجرت ممدوحه فاضله نفی ده یعنی اصل هجرت خو هغه دې کوم چه د فتح مکې نه مخکښې وو کوم چه د اسلام او مسلمین د ضعف زمانه وه او د فتح مکه نه پس خو چونکه اسلام ته عزت او غلبه حاصله شوې وه په دې وجه د هغه وخت د هجرت هغه درجه نه ده)

[1]: صحیح البخاري/الإیمان ٤ (١٠)، (تحفة الأشراف: ٨٨٣٤)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/الإیمان ٩ (٤٠)، مسند احمد (٢/١٦٠، ١٦٣، ١٩٢، ١٩٣، ٢٠٥، ٢١٢، ٢٢٤)، سنن الدارمي/الرقاق ٨ (٢٧٨٥) (صحیح)

## شرح حدیث

د دې حدیث په شرح کښې دوه اقوال دی:

۱: هغه فرمائی، د دې هجرت نه روستو یعنی کوم چه د هغه په زمانه کښې من مكة الى المدينة اوشو اویو به بل هجرت وی، یعنی اخیره زمانه کومه چه د فتنو زمانه به وی او دا هجرت به د مختلف ملکونو نه د نورو ملکونو طرف ته وی، مسلمانان به د خپل دین د حفاظت دپاره خپل وطن پریخودلو سره بل طرف ته ځی د دې په باره کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه هغه وخت کښې دا په ټوله دنیا کښې اوسیدونکو نه غوره خلق دی کوم چه د هجرت دپاره د سیدنا ابراهیم علیه السلام د هجرت ځائې اختیاروی، یعنی ملک شام، سیدنا ابراهیم علیه السلام عراق پریخودلو او د شام طرف ته ئې هجرت اوکړو.

۲: او دویم مطلب ئې دا لیکلې دې چه د هجرت نه روستو به هجرت وی، یعنی د هجرت سلسله به همیشه روانه وی او کله به هم نه منقطع کیږی، او بیا وړاندې هغه هم دا اوفرمائیل چه د هجرت کونکو دپاره غوره دا ده چه هغه د هجرت دپاره د ابراهیم علیه السلام د هجرت ځائې اختیار کړی.

د دې حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت ظاهر دې چه هر کله په حدیث کښې د هجرت الى الشام ترغیب ورکولې شی نو د دې نه د شام د استوګنې فضیلت معلوم شو.

[٢٤٨٢](١) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "سَتَكُونُ هِجْرَةٌ بَعْدَ هِجْرَةٍ فَخِيَارُ أَهْلِ الأَرْضِ أَلْزَمُهُمْ مُهَاجَرَ إِبْرَاهِيمَ وَيَبْقَى فِي الأَرْضِ شِرَارُ أَهْلِهَا تَلْفِظُهُمْ أَرَضُوهُمْ تَقْذَرُهُمْ نَفْسُ اللَّهِ وَتَحْشُرُهُمُ النَّارُ مَعَ الْقِرَدَةِ وَالْخَنَازِيرِ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عمرو نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلي دي چه فرمائیل ئې نژدې ده چه ددې هجرت نه پس بل هجرت راشي خوپه دغه وخت کښې به دزمکې په مخ بهترین خلق هغه وي څوك چه دابراهیم علیه السلام هجرت اختیارکړي، اوددوی نه به بدخلق پاتې شي، ددوی مرې به ددوی زمکې را اوغورځوي اودالله پاك به هم خوښ نه وي او اوربه دوی لره دشادوګانو اوخنزیرانوسره جمع کړي.

**تشریح:** ﴿ وَيَبْقَى فِي الأَرْضِ شِرَارُ أَهْلِهَا تَلْفِظُهُمْ أَرَضُوهُمْ تَقْذَرُهُمْ نَفْسُ اللَّهِ وَتَحْشُرُهُمُ النَّارُ مَعَ الْقِرَدَةِ وَالْخَنَازِيرِ ﴾ : یعنی کوم خلق چه دیندار وی او هغوی سره د خپل دین فکر وی نو هغوی به خپل وطنونه پریخودلو سره ملک شام ته لاړ شی او د هغوی نه علاوه چه کوم بې دینه وی، فاسقان او فاجران او د دنیا حرص کونکی هغوی به د خپل وطن په خلقو کښې باقی پاتې شی د مهاجرینو سره به هجرت نه کوی او په خپلو وطنونو کښې به یوه خوا بل خوا حیران او سرګردان ګرزی یا خو د دنیا د ګټلو دپاره یا دفتنې د اور نه تختیدو دپاره او هغه به داسې سپک او ذلیل وی چه الله پاک هم ګویا د هغوی نه نفرت او کرکه کوی، الغرض د فتنې د اور نه تیخته به هغوی ګرځوی د کفارو سره، د بیزوګانو او خنزیرانو سره،

---

١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٨٨٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٠٩، ١٩٨) (حسن)

د اول نه مراد صغار کفار او د ثاني نه کبار کفار، صاحب مشکاة دي حديث ته د مشکاة بالکل په اخر کښې باب ذکر اليمن والشام کښې ذکر کړې دې، والحديث عزاه صاحب المشکاة الى ابى داؤد فقط.

[٢٤٨٣]([1]) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْحَضْرَمِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنِي بَحِيرٌ، عَنْ خَالِدٍ يَعْنِي ابْنَ مَعْدَانَ، عَنْ أَبِي قُتَيْلَةَ، عَنِ ابْنِ حَوَالَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَيَصِيرُ الْأَمْرُ إِلَى أَنْ تَكُونُوا جُنُودًا مُجَنَّدَةً جُنْدٌ بِالشَّامِ وَجُنْدٌ بِالْيَمَنِ وَجُنْدٌ بِالْعِرَاقِ"، قَالَ ابْنُ حَوَالَةَ: خِرْ لِي يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ أَدْرَكْتُ ذَلِكَ فَقَالَ: "عَلَيْكَ بِالشَّامِ فَإِنَّهَا خِيرَةُ اللَّهِ مِنْ أَرْضِهِ يَجْتَبِي إِلَيْهَا خِيرَتَهُ مِنْ عِبَادِهِ فَأَمَّا إِنْ أَبَيْتُمْ فَعَلَيْكُمْ بِيَمَنِكُمْ وَاسْقُوا مِنْ غُدُرِكُمْ فَإِنَّ اللَّهَ تَوَكَّلَ لِي بِالشَّامِ وَأَهْلِهِ".

**ترجمه:** دحضرت عبدالله بن حواله نه روايت دې فرمائي چه نبی ﷺ فرمائيلی دی: نزدې ده چه داسې وخت به راشي چه تاسو به ډلې ډلې شئ يولښکربه په شام کښې وي بل به په يمن اوبل به په عراق کښې وي ابن حواله وائي ما عرض اوکړوچه اې دالله رسوله دا راته اووايه چه زه که چرې داحالات بيامومم نوزما دپاره څه کول پکاردي؟ نبی ﷺ اوفرمائيل شام اختيارکړه يقينا په زمکه کښې داعلاقه الله پاك ته محبوب ده او الله پاك به ځان ته نزدې خلق دلته راجمع کوي اوکه چرې دا درته ميسره نه وي نويمن اختيارکړه اودخپلو تالاوونو نه په خلقو اوبه څکئ، يقينا الله ماته دشام اودشاميانو دحفاظت ضمانت راکړې دې.

## شرح حديث

قوله: جُنْدٌ بِالشَّامِ وَجُنْدٌ بِالْيَمَنِ وَجُنْدٌ بِالْعِرَاقِ": ([2])

دلته په سند کښې ابن ابی قتيله، د ابوداؤد په ټولو نسخو کښې دغسې دې. حضرت په بذل کښې دکتب رجال نه ددې تحقيق کړې دې اوهغه داچه صحيح دلته عن ابی قتيله دې دده نوم مرثد بن وداعة دې.

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٨٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١١٠) (صحيح)

[2])والحديث سكت عن تخريجه المنذري قلت اخرجه الامام ابن المبارك في كتاب الجهاد-ص ١٥١،رقم ١٩٠ مختصرا،والامام احمد في المسند(طبعة عالم الكتب) ج٥ ص ٧٩٩ رقم ١٧١٣٠ مختصرا، ج١ ص ٨١٠ مختصرا رقم ٢٠٦٢٥ مختصرا ج٧، ص ٤٨١ رقم ٢٢٨٥٤ وفي فضائل الصحابة-له ايضا ج٢ ص ٨٩٧ رقم ١٧٠٧ موصولا وص ٩٠٤ رقم ١٧٢٥ مرسلا، والامام الطحاوي في شرح مشكل الآثار ج٣ ص ١٤٧، ١٤٨، رقم ١١١٤ مطولا (طبعة الرسالة، وفي الطبعة الهندية ج٢ ص ٣٥ و٣٦، وفي تحفة الأخيار ج٨ ص ٥٧٧، رقم تمبر ٦٢٥٥، والامام ابن حبان في الصحيح، الاحسان ج١٢ ص ٢٩٥ رقم ٧٣٠٦ والامام يعقوب بن سفيان الفسوي في المعرفة والتاريخ، ج٢ ص ٢٨٨ و٢٨٩ من طريقين مختصرا ومطولا والامام ابن ابي عاصم في الآحاد والمثاني ج٢ ص ٢٧٣ رقم ٢٢٩٥ مطولا، والامام البزار في المسند ينظر كشف الاستار ج٢ ص ٣٢٣ رقم ٢٨٥١ و٢٨٥٢ والامام الطبراني في "المعجم الكبير" ج١٨ ص ٢٥١ رقم ٢٢٨ وج٢ ص ١٣٠ وفي مسند الشاميين "له ايضا ج١ ص ١٤٣ رقم ٢٢٨ و١٧٢ وص ١٩٢ رقم ٣٣٧ وص ٣٢٣ وص ٣٢٤، رقم ٥٧٠، وج٢ ص ١٣٣ رقم ١٠٥٤ وص ١٩٣ رقم ١١٧٢ وج٢ ص ٣٤٥ و٣٤٦ رقم ٣٥١٥ والامام ابونعيم في الحلية ج٢ ص ٣ والامام البيهقي في الدلائل ج٦ ص ٣٢٧، ٣٢٦، من طرق مختصرا ومطولا والامام ابن عساكر في تاريخ دمشق - المجلدة الاولى في مواضع من طرق كثيرة وفي ترجمة عبدالله بن حواله رضي الله تعالى عنه والامام السمعاني في "فضائل الشام-ص ٣٢، ٣٣ والامام الربعي في فضائل الشام، وانظر المختصر، والامام حارث بن اسامة في المسند ينظر بغية الباحث ج٢ ص ١٤٤ رقم ١٠٤١ والامام الحاكم في المستدرك ج٤ ص ٥٥٥ رقم ٨٥٥٦. حبيب الله.

عبدالله بن حواله ﷺ د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کوی چه زما د امت انجام به وړاندې تلو سره دا وی (چه هغه به په مختلف ډلو کښې منقسم کیږی په اعتبار د هجرت) چه تاسو به مختلف ډلې او مختلف لښکرې، یو جماعت او لښکر به شام ته لاړ شی او یو لښکر یمن، او ډیر په عراق کښې، ابن حواله رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه یا رسول الله! که چرې زه دغه زمانه او حال لره نو بیا موم زما دپاره په دې خایونو کښې یو ځائې خوښ کړئ یعنی د هجرت دپاره هغه اوفرمائیل ﴿ علیک بالشام ﴾ چه لازم اونیسه ملک شام لره، یعنی هلته لاړ شه ځکه چه هغه د الله پاک منتخب او خوښه زمکه ده، الله پاک د هغه دپاره په خپلو بندګانو کښې هم دوی خوشوی کوم چه به بهترین خلائق وی ﴿ واما اذاابیتم ﴾ "پس که ته د دې نه انکار اوکړې یعنی که دا او نه شی چه هلته هجرت کولو سره لاړ شې ﴿ فعلیکم بیمنکم ﴾ نو لازم اونیسه خپل یمن لره بیا دوئمه درجه د هجرت الی الیمن دې او د هغه ځائې د تالابونو نه اوبه څکئ او نورو ته ئې ورکوئ، ظاهره ده چه کله هجرت کولو سره هلته لاړ شی نو د هغه ځائې د تالابونو اوبه به استعمالوی، دا په ماقبل باندې تفریع دې په طور د تاکید ،اوتا په ځائې د ﴿ من غدر الیمن ﴾...﴿ من غدرکم ﴾ اوفرمائی ځکه چه د دې نه مخکښې ئې د یمن په باره کښې فرمائیلې وو ﴿ یمنکم ﴾ نو هر کله چه یمن زمونږ شو نو د هغه ځائې د اوبو تالابونه هم زمونږ شو، دا هم د تعبیر یو طرز دې بیا وړاندې رسول الله ﷺ د شام وجه د ترجیح بیان فرمائیلې ده ﴿ فان الله توکل لی بالشام واهله ﴾ ځکه چه الله پاک زما دپاره یعنی زما د خاطره او زما په رعایت کښې د شام او اهل شام د حفاظت ذمه داری اخستلې ده.

د دې حدیث نه د ملک شام ډیر فضیلت معلومیږی پس ډیر احادیث د دې په فضیلت کښې راغلې دی د بعض محدثین په فضائل شام کښې [1] مستقل تصنیفات هم شته د دې نه علاوه د سمعانی یو تصنیف "فضائل الشام" په نوم دې، چه په دې کښې هغوی متعدد احادیث او روایات په اسانید معتبره سره روایت کړې دی، خپله په قران کریم کښې ارشاد دې ﴿ وَنَجَّيْنَاهُ وَلُوطًا إِلَى الْأَرْضِ الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا لِلْعَالَمِينَ ﴾ د دې ارض مبارکه نه مراد د ملک شام زمکه ده، په معارف القران کښې لیکلې دی چه د ملک شام زمکه د خپل ظاهری او باطنی حیثیتونو په وجه باندې د ډیرو برکتونو مجموعه ده، باطنی برکت خو پکښې دا دې چه دا زمکه د انبیاء کرامو مخزن دې، ډیر انبیاء کرام هم په دې زمکه باندې پیدا شوې دی او ظاهری برکات ئې د اب وهوا اعتدال، د نهرونو او چینو ډیر والې، د میوو، ګلونو او هر قسم نباتاتو غیر معمولی راټوکیدل دی. اهـ

...............

[1] ) بلاد شام د یوې ډیر وسیع منطقه (ملک او علاقې) نوم دې چه د هغې د روستو زمانې د تغیراتو د وجې نه مختلف حصې شوې کوم چه د هغه زمانې دلحاظه مستقل ملک جوړ شو لکه اردن، سوریه، لبنان، فلسطین، مستعمره، اسرائیل او د سعودی عرب یوه لویه علاقه د وادی القری نه وړاندې په قدیم زمانه کښې به په ټولو باندې د شام اطلاق کیدلو. حبیب الله)

## بَابٌ فِي دَوَامِ الْجِهَادِ

### جهاد به همیشه جاري وي

[٢٤٨٤]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ عَلَى مَنْ نَاوَأَهُمْ حَتَّى يُقَاتِلَ آخِرُهُمُ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ".

**ترجمه:** دعمران بن حصین نه روایت دي فرمائي چه نبی ﷺ فرمائیلي دي. زما په امت کښې به یوه ډله داسې همیشه وي چه په حق به جنګیږي اودچاسره به ئې مقابله راځي نودوي به پرې غالب کیږي، اوددوی اخیري ډله به دجال وژني.

### تشریح

د حدیث مضمون واضح دې رسول اللهﷺ فرمائي چه همیشه به زما په امت کښې یو جماعت داسې موندلې شي چا چه به د جهاد دپاره ملا تړلې وی او همیشه به د دین حق دپاره جنګ کوی، او الحمد لله هغه به په خپل دشمن باندې غالب وی، او دا د قتال او جهاد سلسله به د دجال پورې باقي وی. بیا به د جهاد سلسله منقطع شي په دې حدیث کښې د اخرهم نه مراد امام مهدی او سیدنا عیسیٰ علیه السلام دی، د امام مهدی په زمانه کښې به د دجال خروج کیږی او خلق به د هغه د مقابلې دپاره تیاروی، هلته به د مانځه وخت شی، چه په هغې کښې دوه روایتونه دی په بعض کښې د مازیګر د مونځ ذکر دې او په بعض کښې د سحر، د حضرت ګنګوهی په تقریر مسلم کښې دی چه د مازیګر د مونځ دپاره به اقامت شوې وی او امام مهدی به مونځ شروع کونکې وی چه ناځاپه به د سیدنا عیسیٰ علیه السلام نزول اوشی، امام مهدی به شاته کیږی او عیسیٰ علیه السلام ته به عرض اوکړی چه تاسو مونځ ورکړئ، سیدنا عیسیٰ علیه السلام به اوفرمائی ﴿لا ان بعضکم علی بعض امراء﴾ (مسلم ج ص ٨٧) پس دا اولنې مونځ خو به امام مهدی ورکړی او سیدنا عیسیٰ علیه السلام به د هغه اقتداء اوکړی، د هغې نه روستو به د مونځونو امامت سیدنا عیسیٰ علیه السلام کوی، د دې نه روستو به بیا سیدنا عیسیٰ علیه السلام د امام مهدی او مسلمانانو سره یوځائې کیدو باندې د هغه سره قتال کوی، او باب لد ته رسیدلو سره به هغه ختم کړی د دې نه روستو حضرت په بذل المجهود کښې لیکلي دی چه د قتل دجال نه روستو به جهاد باقي پاتې نه شی، خکه چه د دې واقعې نه روستو به بیا د یاجوج او ماجوج فتنه راشی او د هغوی خروج به اوشی، هغوی سره خو به قتال نه شی کولې په هغوی باندې د قدرت او طاقت د نه کیدو په وجه باندې بلکه خپله به ئې الله پاک هلاک کړی، د هغوی د هلاکت نه پس به په زمکه باندې یو کافر هم پاتې نه شی، ترڅو پورې چه سیدنا عیسیٰ علیه السلام ژوندې وی...... بیا چه کله د هغه د مرګ نه روستو کفر خور شی او د چا په مقدر کښې چه کفر وی هغه به کافر شی نو هغه وخت به یوه ډیره پاکه او مزیداره هوا اولګی کومه چه به د هر یو مومن روح قبض کړی او چه کوم کافر وی

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٠٨٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٢٩، ٤٣٣، ٤٣٧) (صحيح)

هغه به باقی پاتې شی او چه کله په زمکه باندې يو فرد الله الله وئيلو والا باقی پاتې نه شی سوا د کفارو نه، په هغوی باندې به قيامت قائم شی، حضرت فرمائی، لهذا چه په کوم روايت کښې دی ﴿ لا تزال طائفة من امتی ظاهرين علی الحق حتی تقوم الساعة ﴾ په دې حديث کښې د قيام ساعت نه مراد قرب قيامت دې. اه پس په حديث الباب کښې دی چه ﴿ حتی يقاتل اخرهم مع المسيح الدجال ﴾ دا حديث په خپل ظاهر باندې دې په دې کښې د تاويل حاجت نشته.

## بَابٌ فِي ثَوَابِ الْجِهَادِ

### د جهاد د ثواب او فضيلت بيان

[٢٤٨٥] (¹) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ سُئِلَ أَيُّ الْمُؤْمِنِينَ أَكْمَلُ إِيمَانًا، قَالَ: "رَجُلٌ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ، وَرَجُلٌ يَعْبُدُ اللَّهَ فِي شِعْبٍ مِنَ الشِّعَابِ قَدْ كُفِيَ النَّاسُ شَرَّهُ".

**ترجمه:** دابوسعيد خدردی رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی عليه السلام نه تپوس اوکړې شوچه کامل ايمان والا په مومنانوکښې څوک دې؟نبی عليه السلام اوفرمائيل هغه کس څوک چه دالله په لاره کښې په خپل نفس اومال سره جهاد کوي او بل هغه کس دي چه ديو غرپه دره کښې دالله په عبادت کښې مشغول وي او مخلوق دده دشرنه محفوظ وي.

### تشريح

د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه تپوس اوکړې شو د کامل مومن په باره کښې چه هغه څوک دې؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل هغه مجاهد سړې کوم چه د الله پاک په لاره کښې خپل نفس او مال خرچ کړی، او بل هغه سړې کوم چه د يو غر په دره کښې د الله پاک په بندګئ کښې مشغول شی، څوک چه د خلقو دپاره کافی شوې وی د خپل شر نه، يعنی هغې ئې د خپل شر نه بچ کړې وی، ګويا په دې کښې اشاره ده چه کوم سړې د الله پاک د بندګئ دپاره ابادی پريخودلو سره په ځنګل کښې اوسيدو هغه لره دا نيت کول پکار دی چه خلق زما د شر نه محفوظ شی، ﴿ شعب ﴾ شعب وئيلې شی د دوه غرونو ترمينځه چه کومه فراخی وی، يا په يو غر کښې چه کومه لاره وی، او مقصود په حديث کښې د دې نه اعتزال او يواځې والې اختيارول دی چه په هر ځائې کښې وی.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه (قاله المنذری)

### عزلت اولی دې يا اختلاط؟

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا په هغه سړی باندې محمول دې کوم چه په جهاد باندې قدرت نه لری نو د داسې سړی په باره کښې عزلت غوره دې چه هغه د نورو نه په سلامتئ

¹): صحيح البخاري/الجهاد ٢ (٢٧٨٦)، والرقاق ٣٤ (٦٤٩٤)، صحيح مسلم/الإمارة ٣٤ (١٨٨٨)، سنن الترمذي/فضائل الجهاد ٢٤ (١٦٦٠)، سنن النسائي/الجهاد ٧ (٣١٠٧)، سنن ابن ماجه/الفتن ١٣ (٣٩٧٨)، (تحفة الأشراف: ٤١٥١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦/٣، ٣٧، ٥٦، ٨٨) (صحيح)

کښې وی او نور خلق د هغه نه په سلامتئ کښې پاتې شي، او ظاهره دا ده چه دا محمول دې د عهد نبوی نه پس باندې. اه من البذل، امام بخاری په کتاب الرقاق کښې په دې باندې باب تړلې دې، باب : العزلة راحة من خلاط السوء... بیا امام بخاری د ابو سعید خدری رضی الله عنه یعنی حدیث الباب ذکر فرمائیلې دې او هم د دې روایت په یو بل طریق کښې دی "يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ تَكُونُ الْغَنَمُ فِيهِ خَيْرَ مَالِ الْمُسْلِمِ يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ، أَوْ سَعَفَ الْجِبَالِ - وَمَوَاقِعَ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ" او د کتاب الفتن په "باب التعرف فی الفتنة" کښې د سیدنا ابوسعید خدری رضی الله عنه په حدیث کښې په لفظ د ﴿ یوشک ان یکون خیر مال المسلم غنم ﴾ الخ... وارد دې، علامه قسطلانی فرمائی، په دې حدیث کښې د عزلت ترغیب دې دا په اخره زمانه باندې محمول دې په زمان فتن باندې، حافظ فرمائی دا الفاظ صریح دی په دې خبره کښې چه د عزلت خیریت او فضیلت په اخر زمانه کښې دې، او د رسول الله ﷺ په زمانه کښې جهاد مطلوب وو او بیا وړاندې لیکی، په مسئله د عزلت کښې د سلفو اختلاف پاتې شوې دې، د جمهورو رائې دا ده چه اختلاط اولی دې د اعتزال نه، ځکه چه په دې کښې د فوائد دینیه اکتساب دې او د شعائر اسلامیه قیام او د سواد المسلمین تکثیر او د هغوی اعانت او عیادت وغیره، او د یو جماعت رائې دا ده چه عزلت اولی دې، ځکه چه په دې کښې سلامتی ده، په دې شرط چه د کومو څیزونو نه واقفیت ضروری دې هغه حاصل وی، هم دغه شان امام نووی رحمه الله فرمائی چه قول مختار د مخالطت د فضیلت دې د هغه سړی دپاره د چا چه په معصیت کښې د واقع کیدو غالب گمان نه وی، او د چا چه تردد وی د هغه په حق کښې عزلت اولی دې، او حافظ فرمائی چه د امام نووی رحمه الله نه علاوه د نورو حضراتو رائې دا ده چه په دې کښې د اختلاف اشخاص او احوال فرق دې، د بعض په نزد عزلت متعین دې او د بعض په حق کښې اختلاط، او د بعض په حق کښې به ترجیح ته کتلې شی الی اخر ما ذکر.

په دې مسئله باندې اگر چه امام بخاری مستقل باب تړلې دې لکه چه پورته تیر شو او علامه قسطلانی او حافظ ابن حجر او هم دغه شان امام نووی دې حضراتو په دې مسئله باندې بحث کولو سره د جمهورو مسلک د افضلیت اختلاط لیکلې دې.

## په دې مسئله کښې د جمهورو دلیل

خو په دې حضراتو کښې چا هغه حدیث چه په هغې کښې افضلیت اختلاط ذکر دې او د جمهورو هغه دلیل دې، هغه ئې نه دې ذکر کړې، هغه زمونږ علامه عینی رحمه الله ذکر کړې دې، چه د هغې الفاظ دا دی ﴿ الْمُؤْمِنُ الَّذِي يُخَالِطُ النَّاسَ، وَيَصْبِرُ عَلَى أَذَاهُمْ، أَعْظَمُ أَجْرًا مِنَ الْمُؤْمِنِ الَّذِي لَا يُخَالِطُ النَّاسَ، وَلَا يَصْبِرُ عَلَى أَذَاهُمْ ﴾ رواه الترمذی فی ابواب الزهد وابن ماجة. اه امام ترمذی دا حدیث په باب بلا ترجمه کښې ذکر کړې دې او ابن ماجه په ابواب الفتن کښې "باب الصبر علی البلاء" کښې دا څیز هم قابل غور دې چه حضرت امام بخاری د جمهورو د مسلک برعکس د عزلت په فضیلت باندې باب تړلې دې. فتامل

## بَاب فِي النَّهْيِ عَنِ السِّيَاحَةِ

### باب دې د سياحت نه د ممانعت په بيان کښې

[٢٤٨٦](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ التَّنُوخِيُّ أَبُو الْجَمَاهِرِ، حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنِي الْعَلَاءُ بْنُ الْحَارِثِ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ائْذَنْ لِي فِي السِّيَاحَةِ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ سِيَاحَةَ أُمَّتِي الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ تَعَالَى".

**ترجمه:** دابوامامه رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه يوکس دنبی عليه السلام په خدمت کښې عرض اوکړوماته دسياحت اجازت راکړه، نبی عليه السلام اوفرمائيل زما دامت سياحت جهادفی سبيل الله دې.

### شرح حديث

د سياحت معنی په قاموس کښې ليکلې ده چه ﴿ الذهاب فی الارض للعبادة، ومنه المسيح بن مريم ﴾ يعنی د عبادت په غرض سره د ښهرونو استوګنه ترک کول او د الله پاک ملک کتل د عبادت په نيت سره، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته د دې اجازت نه دې ورکړې، ځکه چه په دې کښې د جمعې او جماعت ترک لازميږی او د خير د مجلسونو د شرکت نه محرومی او هم دغه شان ترک جهاد وغيره امور، صاحب د مجمع البحار په دريم جلد کښې د دې د لاندې يو حديث ليکلې دې چه: ﴿ لا سياحة فی الاسلام ﴾ او هم دغه شان دا روايت چه ﴿ سياحة هذه الامة الصيام ﴾ او صائم ته هم سائح وئيلې شی، ځکه چه کوم سړې په زمکه کښې سيل کوی د عبادت په نيت سره هغه سره هم د خوراک او څکاک نظم نه وی، توښه ورسره نه وی چه چرته ورته ملاؤ شوه هلته ئې اوخوړله ګينې لوږه ئې تيره کړه لکه چه د روژه دار پوره ورځ بغير د خوراک او څکاک نه تيريږی ګويا تشبيها صائم ته سائح وئيلې شی. اهـ هم دغه شان رسول الله صلی الله علیه وسلم جهاد ته سياحت وئيلې دې هم دغه شان په جهاد کښې هم سير فی الارض او د ابادئ نه لرې والې موندلې شی.

## بَاب فِي فَضْلِ الْقَفْلِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ تَعَالَى

### د جهاد فضيلت او دې نه د واپس راتلو بيان

[٢٤٨٧](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ، عَنِ ابْنِ شُفَيٍّ، عَنْ شُفَيِّ بْنِ مَاتِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ هُوَ ابْنُ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "قَفْلَةٌ كَغَزْوَةٍ".

**ترجمه:** عبدالله بن عمرو دنبی عليه السلام نه روايت کوی چه فرمائيلې ئې دي دجهاد نه دواپسئ اجر داسې دې لکه چه جهادته دتلو دې.

### شرح حديث

قفله: او قفول په معنی د رجوع، د دې حديث ئې دوه معنی ليکلې دی:

١: د جهاد نه واپس کيدل په منزله د جهاد دی يعنی مجاهد چه کله د جهاد نه فارغه شی نو د هغه په واپس کيدو کښې هم اجر او ثواب دې څنګه چه ئې په تلو کښې وو، ځکه چه واپس

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٩٠١) (حسن)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٨٨٢٦)، وقد أخرجه مسند احمد (٢/١٧٤) (صحيح)

راتلو سره به په نورو فرائضو کښې مشغول کيږي، او په دې کښې خپل نفس ته ارام رسوي او قوت حاصلول او دوباره د جهاد تيارې، هم دغه شان د خپل اهل وعيال د حقوقو ادا کول.
۲: د دې نه مراد تعقيب دې کوم چه بعض وخت مجاهد اختياروي او هغه دا دې چه څنګه مجاهد واپس کيږي يعنې د دشمن د طرف نه بيا د لارې نه دوباره د هغه طرف ته واپس کيدل کوم ته چه مجاهدين په دوه مصلحتونو سره کوي يو دا چه کله دشمن دا ګوري چه د مسلمانانو لښکر واپس لاړو نو اوس هغه مطمئن کيدو سره تول بهر راشي نو په داسې صورت کښې هغه مجاهد ته په هغوی باندې د حملې کولو ښه موقع ملاويږي او کله په دې قفول کښې دا مصلحت او هوښيارتيا وي چه اسلامي لښکر چه کله د دار الحرب نه د دار الاسلام طرف ته واپس کيږي نو بعض وخت داسې وي چه دشمن دوباره د حملې کولو سوچ کوي او ناځاپه د شاته نه راورسيږي نو د دشمن د دې چالاکۍ نه د بچ کيدو دپاره بعض وخت مجاهدين د لارې په مينځ کښې د دشمن طرف ته واپس کيږي چه چرته دشمن په مونږ پسې شاته خو نه دې راروان، نو رسول الله ﷺ فرمائي چه غازي ته په لاره باندې واپس کيدو سره هم دومره ثواب ملاويږي څومره چه ابتداء په تلو کښې وو، برابره خبره ده که دشمن سره مخامخ شي يا نه شي. اهـ من البذل نقلا عن النهاية

## بَابُ فَضْلِ قِتَالِ الرُّومِ عَلَى غَيْرِهِمْ مِنَ الْأُمَمِ

**د نورو قومونو په نسبت د روميانو سره د جنګ کولو فضيلت**

**د حديث ترجمة الباب سره مطابقت:**

په هغه زمانه کښې د روم اوسيدونکي نصارى وو خو په حديث کښې دهغه صحابي ذکر دې کوم چه د يهودو مقتول وو يعنې د خيبر يهودو هغه قتل کړې وو، او هم دهغه فضيلت په حديث کښې ذکر دې، لهذا دا به وئيلې شي چه په ترجمة الباب کښې د روم نه مطلق اهل کتاب مراد دي چه يهود هم په دې کښې داخل شي او حديث د ترجمة الباب سره مطابق شي.

[۲٤٨٨](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَلَّامٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ فَرَجِ بْنِ فَضَالَةَ، عَنْ عَبْدِ الْخَبِيرِ بْنِ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لَهَا أُمُّ خَلَّادٍ وَهِيَ مُنْتَقِبَةٌ تَسْأَلُ عَنِ ابْنِهَا وَهُوَ مَقْتُولٌ، فَقَالَ لَهَا بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: جِئْتِ تَسْأَلِينَ عَنِ ابْنِكِ وَأَنْتِ مُنْتَقِبَةٌ، فَقَالَتْ: إِنْ أُرْزَأَ ابْنِي فَلَنْ أُرْزَأَ حَيَائِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ابْنُكِ لَهُ أَجْرُ شَهِيدَيْنِ" قَالَتْ: وَلِمَ ذَاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "لِأَنَّهُ قَتَلَهُ أَهْلُ الْكِتَابِ".

**ترجمه:** قيس بن شماس دخپل پلار نه روايت کوي فرمائي چه يوه زنانه دنبي ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه کومه چه په ام خلاد مشهوره وه اونقاب ئې اچولې وو اودخپل ځوی په باره کښې ئې پوښتنه کوله کوم چه شهيد شوې وو، په صحابه کرامو کښې ورته يو کس ووئيل دخپل ځوی تپوس هم کوې اونقاب دې هم اغوستې دې (يعنې په غمونو کښې اکثر خلک دومره پرده نه کوي) هغې ووئيل ځوی مې ورک شوې دې حيا خو مې نه ده ورکه کړې، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل ستا د ځوی دپاره ددوه شهيدانو اجر دې، هغې ووئيل دا ولې اې

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٠٦٨) (ضعيف)

دالله رسوله ﷺ ! نبی ﷺ ورته اوفرمائیل ځکه چه اهل کتابو وژلې دې.

**شرح حدیث**

یوه زنانه چه د هغې نوم ام خلاد دې، په داسې حال کښې چه هغه باقاعده په پرده کښې وه، د خپل ځوئې په باره کښې ئې تپوس کولو کوم چه قتل شوې وو نو ﴿ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : ابْنُكِ لَهُ أَجْرُ شَهِيدَيْنِ ﴾ نو رسول الله ﷺ هغه زنانه ته زیرې ورکړو چه ستا د ځوئې دپاره د دوه شهیدانو ثواب دې، هغه عرض اوکړو یا رسول الله! ځنګه او ولې؟ نو هغه اوفرمائیل چه هغه قتل کړې دې اهل کتابو، د هغه زنانه د مقتول ځوئې نوم خلاد وو، د یهود بنو قریظه یوه زنانه د هغه د شهادت سبب جوړ شو هغه کمبختې په هغې د لوړې نو یو کانړې راګزار کړې وو چه په هغه سره ختم شوې وو، د هغه یهودیه نوم بعض علماء کرامو "بنانة" لیکلې دی دا حدیث د ترجمة الباب عین مطابق دې، د کوم نه چه د مقتول اهل کتاب فضیلت ثابتیږی د مشرکینو د مقتول په مقابل کښې، د حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې دی چه ابن قدامه د دې حدیث نه استدلال کړې دې په دې باندې چه د اهل کتاب سره جهاد او قتال افضل دې په نسبت د غیر اهل کتاب سره قتال کولو، په دې حدیث کښې دا هم مذکور دی چه کله ام خلاد د هغه په خدمت کښې ډیر په صبر او سکون سره چه د هغې اندازه حاضرینو ته د هغې د هیئت نه اوشوه باقاعده پرده کښې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه باوجود د دومره لوئې مصیبت رسیدلو نو د یو صحابی نه صبر اونشو، او وې وئیل چه ته په دې حالت کښې هم پرده کښې راغلې ئې (ګینې عام طور خو د داسې مصیبت او پریشانئ په موقع باندې زنانو سره د پردې وغیره خیال نه وی) نو هغه وخت چه دې زنانه د هغه صحابی د سوال جواب ورکړو هغه د هغې د موجوده غوره هیئت نه هم زیات قیمتی دې، هغې اوفرمائیل ﴿ إِنْ أُرْزَإِ ابْنِي فَلَنْ أُرْزَأَ حَيَائِي ﴾ که ما خپل ځوئې ورک کړې دې نو څه اوشو! د خپلې حیاء د ورکیدو په مصیبت خو نه یم اخته شوې؟ یعنی که زه د پردو سړو مخې ته بغیر د پردې نه راغلې اوم نو زما په حق کښې به دا مصیبت زیات لوئې معلومیدو د موجوده مصیبت نه، په صبر او استقلال باندې لیکلو والا مصنفین ددې صحابیه دا جمله په طور دمثال پیش کوی. رضی الله تعالی عنها ورضی عن ابنها.

## بَابٌ فِي رُكُوبِ الْبَحْرِ فِي الْغَزْوِ

**په سمندر کښې د جهاد په نیت سره د سفر کولو د فضیلت بیان**

[۲۴۸۹](۱)حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ بِشْرٍ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَرْكَبُ الْبَحْرَ إِلَّا حَاجٌّ أَوْ مُعْتَمِرٌ أَوْ غَازٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَإِنَّ تَحْتَ الْبَحْرِ نَارًا وَتَحْتَ النَّارِ بَحْرًا".

**ترجمه**: دعبدالله بن عمرو نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دحج اوعمرې اوجهادنه دې علاوه د بل غرض دپاره په سمندر کښې سفراونه کړې شي ځکه چه د سمندر دلاندې اور دې او هغه اور دلاندې سمندر دې.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۶۰۹) (ضعیف)

## تشريح

د حديث مضمون دا دي چه د سمندر سفر د درې کسانو نه علاوه بل چا لره نه دی کول پکار، حج کونکې، عمره کونکې، او جهاد کولو والا، يعنی د درياب سفر د انسان په حق کښې د خشکئ د سفر په مقابله کښې خطرناک دې، هم په دې وجه باندې بغير د څه اهم ضرورت او دينی کار نه نه دی کول پکار، پس مشهور ده چه !

بدريا منافع بيشمار است　　اگر خواهی سلامت برکنار است

وړاندې په حديث کښې د دريابی سفر خطرناک کيدل فهم کړې شوې دی چه د سمندر د لاندې اور دې او بيا د هغه اور د لاندې اوبه دی، د دې حديث شرح او بعض نور فوائد مونږ سره په کتاب الطهارة کښې د باب الوضوء بماء البحر د لاندې تير شوې دی هلته دې رجوع اوکړې شی. اخرج البخاری فی التاريخ الکبير فی ترجمة بشير بن مسلم.

# بَابُ فَضْلِ الْغَزْوِ فِي الْبَحْرِ[1]

## په سمندر کښې د جهاد کولو دفضيلت بيان

[۲۴۹۰] ([2]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ زَيْدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي أُمُّ حَرَامٍ بِنْتُ مِلْحَانَ أُخْتُ أُمِّ سُلَيْمٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عِنْدَهُمْ فَاسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ، قَالَتْ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا أَضْحَكَكَ؟ قَالَ: "رَأَيْتُ قَوْمًا مِمَّنْ يَرْكَبُ ظَهْرَ هَذَا الْبَحْرِ كَالْمُلُوكِ عَلَى الْأَسِرَّةِ قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ قَالَ: "فَإِنَّكِ مِنْهُمْ"، قَالَتْ: ثُمَّ نَامَ فَاسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ، قَالَتْ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا أَضْحَكَكَ فَقَالَ مِثْلَ مَقَالَتِهِ، قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ، قَالَ: "أَنْتِ مِنَ الْأَوَّلِينَ" قَالَ: فَتَزَوَّجَهَا عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ فَغَزَا فِي الْبَحْرِ فَحَمَلَهَا مَعَهُ فَلَمَّا رَجَعَ قُرِّبَتْ لَهَا بَغْلَةٌ لِتَرْكَبَهَا فَصَرَعَتْهَا فَانْدَقَّتْ عُنُقُهَا فَمَاتَتْ.

**ترجمه**: انس بن مالك دام حرام بنت ملحان (څوك چه دانس دمور ام سليم خورده يعنی دانس دمورطرفه ترور) نه روايت کوی چه يوځل نبی ﷺ زمونږ په ځائې کښې قيلوله (دغرمې خوب کولو چه رابيدارشو نوخندل ئې ام حرام وائی چه ما ترې پوښتنه اوکړه چه اې دالله رسوله ولې خاندې؟نبی ﷺ اوفرمائيل ماپه خوب کښې وليدل چه زما دامت يوه ډله په سمندرکښې سفرکوي لکه بادشاهان چه په تختونوباندې وي ام حرام عرض اوکړوچه اې دالله رسوله زما دپاره دالله تعالی نه اوغواړه چه ماهم دهغوی نه اوګرځوی؟ نبی ﷺ اوفرمائيل ته په هغوی کښې شوې، ددې نه پس بيا اوده شوکله چه رابيداشونوخندل ئې ام حرام وائی چه ما ترې بيا پوښتنه اوکړه چه اې دالله رسوله ولې خاندې؟ نبی ﷺ هم هغه

---

[1] په الدر المنضود کښې او بعض درسی نسخو کښې دلته د باب دا عنوان موجود نه دې بلکه دا احاديث په باب سابق کښې ذکر کړې شوې دي. ابو عمار عبدالمالك)

[2]: صحيح البخاري/الجهاد ۳ (۲۷۸۸)، ۸ (۲۷۹۹)، ٦۳ (۲۸۷۷)، ۷۵ (۲۸۹٤)، ۹۳ (۲۹۲٤)، الاستئذان ٤۱ (٦۲۸۲)، والتعبير ۱۲ (۷۰۰۱)، صحيح مسلم/الجهاد ٤۹ (۱۹۱۲)، سنن الترمذي/فضائل الجهاد ۱۵ (۱٦٤۵)، سنن النسائي/الجهاد ٤۰ (۳۱۷٤)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۱۰ (۲۷۷٦)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۰۷)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجهاد ۱۸(۳۹)، مسند احمد (۲٦٤/۳، ۳٦۱/٦، ٤۲۳، ٤۳۵)، دي/الجهاد ۲۹ (۲٤٦۵) (صحيح)

خبره بیا اوفرمائیله ام حرام عرض اوکړوچه اې دالله رسوله زما دپاره دالله تعالی نه اوغواړه چه ماهم دهغوی نه اوګرځوی؟ نبی ﷺ اوفرمائیل ته په هغه مخکنو کسانو کښې ئې، انس رضی الله عنه وائی چه بیا وروسته ورسره عباده بن صامت رضی الله عنه نکاح اوکړه، اودجهاد دپاره دسمندر په سفر روان شو او ام حرام ئې هم دځان سره بوتله کله چه واپس راتلل نود یوې قچرې نه اوغورځیدله څټ ئې مات شو او وفات شوه. [۲۴۸۹]

## د حدیث دوه مطلبونه

سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه زما د مور ام سلیم رضی الله عنها خور یعنی ام حرام رضی الله عنها ماته بیان اوکړو چه یو ځل رسول الله ﷺ د هغې په خوا کښې قیلوله اوفرمائیله، لږ ساعت پس مسکې کیدونکې بیدار شو هغه فرمائی چه ما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ تاسو څه څیز اوخندولې؟ وړاندې رسول الله ﷺ د دې په جواب کښې جمله ارشاد اوفرمائیله د هغې دوه مطلبونه علماء کرامو بیان کړې دی : ۱: چه زما نه روستو چه کوم خلق د جهاد دپاره د دریاب سفر کوی هغوی ما دې وخت کښې په خوب کښې داسې شان وشوکت سره په کشتئ کښې ناست اولیدل (د جهاد د سفر دپاره) لکه چه بادشاهان په خپلو تختونو باندې کیناستلو سره بادشاهت کوی. ۲: ما هغه خلق کوم چه به زما نه روستو جهاد دپاره په دریاب کښې سفر کوی ما هغوی په جنت کښې داسې په تختونو باندې ناست اولیدل، چه په کوم شان وشوکت سره بادشاهان کینی، په اول مطلب کښې په دنیا کښې کیناستل مراد وی، او په دویم مطلب کښې په اخرت او جنت کښې.

د دې حدیث نه دا هم واضحه شوه چه رسول الله ﷺ یا د هغه ملګرو د رسول الله ﷺ په ژوند باندې د دریاب سفر نه دې کړې لکه چه فی الواقع هم داسې ده.

قالت﴿ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ ﴾ ام حرام رضی الله عنها د رسول الله ﷺ خبره اوریدلو سره د هغه نه درخواست اوکړو چه زما دپاره دعا اوکړئ چه الله پاک ما هم په هغه جماعت کښې داخل کړی، رسول الله ﷺ چه دا واوریدل نو وې فرمائیل : ته هم په هغوی کښې ئې، یعنی هغه دعا اوفرمائیله لکه چه په یو روایت کښې دی... او هغه ته به د دې دعا د قبولیت علم شوې وی، ام حرام فرمائی چه د دې نه روستو هغه بیا اوده شو، او لږ ساعت پس په خندا باندې بیا بیدار شو، هغه فرمائی چه ما بیا د رسول الله ﷺ نه هم دا تپوس اوکړو چه چه تاسو ولې اوخندل؟ دې ځل هم رسول الله ﷺ ماته هم هغه شان جواب راکړو، فرمائی چه ما دې ځل هم عرض اوکړو چه زما دپاره دعا اوکړئ، چه الله پاک ما هم د هغوی نه کړی، هغه اوفرمائیل : ستا خو د اول خلقو نه کیدل متعین شوې دی، وړاندې راوی فرمائی (چه د رسول الله ﷺ د پیشنګوئی ظهور داسې اوشو) چه د دې واقعې نه روستو ام حرام د عبادة بن الصامت رضی الله عنه سره واده اوکړو، او د واده نه پس ئې هغه ځان سره غزوه ته بوتله یعنی اوله بحری غزوه، بیا چه کله عباده د هغه ځائې نه راواپس شو نو په واپسئ کښې ام حرام د هغه سره وه، د هغې د سورلئ دپاره خچر هغې ته نزدې کړې شو خو هغه سورلئ هغه راوغورځوله چه هغې سره ئې سټ مات شو او وفات شوه.

## په حدیث کښې دوه سمندری غزواتو ذکر

په دې حدیث کښې د دوه سمندری غزواتو ذکر دې چه د هغې نه اوله غزوه په ۲۸ هجری کښې پیښه شوې وه د سیدنا عثمان رضی الله عنه د خلافت په زمانه کښې د سیدنا امیر معاویه رضی الله عنه په امارت کښې، هغه وخت امیر معاویه رضی الله عنه د شام امیر وو، دا غزوه په قبرص کښې پیښه شوې وه، په دې وجه دې ته غزوه قبرص وئیلې شی، قبرص یوه جزیره ده په بحر روم کښې هم په دې غزوه کښې د ام حرام رضی الله عنها شهادت شوې دې او د هغې قبر او مزار هم هلته جوړ شو، او دویمه غزوه کومه چه په دې حدیث کښې ذکر شوې ده هغه هم د امیر معاویه رضی الله عنه په زمانه کښې شوې ده چه په هغې کښې د لښکر امیر یزید بن معاویه وو، د بخاری شریف په یو روایت کښې د دې دواړو غزواتو تذکره داسې شوې ده ﴿ قَالَ عُمَيْرٌ فَحَدَّثَتْنَا أُمُّ حَرَامٍ أَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَوَّلُ جَيْشٍ مِنْ أُمَّتِي يَغْزُونَ الْبَحْرَ قَدْ أَوْجَبُوا قَالَتْ أُمُّ حَرَامٍ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَنَا فِيهِمْ قَالَ : أَنْتِ فِيهِمْ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلُ جَيْشٍ مِنْ أُمَّتِي يَغْزُونَ مَدِينَةَ قَيْصَرَ مَغْفُورٌ لَهُمْ فَقُلْتُ أَنَا فِيهِمْ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ : لاَ ﴾ د بخاری په دې حدیث کښې د غزوه ثانیه هم تعیین دې، د مدینه ثانیه نه مراد قسطنطنیه ده، کوم چه د بلاد روم دار السلطنت وو، هم په دې وجه امام بخاری رحمه الله دا حدیث په کتاب الجهاد کښې په "باب ما قیل فی قتال الروم" کښې ذکر فرمائیلې دې، دا غزوه ثانیه په ۵۲ هجری کښې پیښه شوې وه، هم په دې غزوه کښې سیدنا ابو ایوب انصاری رضی الله عنه وفات شوې دې، قال الحافظ وفی تلک الغزاة مات ابو ایوب الانصاری فاوصی ان یدفن عند باب القسطنطنیه وان یعفی قبره ففعل به ذلک فیقال ان الروم صاروا بعد ذلک یستسقون به، د بخاری په دې حدیث کښې د هر دوه غزواتو په باره کښې ﴿ اول جیش من امتی یغزون البحر ﴾ فرمائیلې شوې دې، د اول اولیت په اعتبار د صحابه کرامو دې او د ثانی اولیت په اعتبار د تابعین یعنی په اعتبار د اکثریت، ګینې په دواړو کښې د صحابه او تابعینو شرکت مونډلې شوې دې، امام بخاری رحمه الله دا حدیث په خپل صحیح کښې په ډیرو ځایونو کښې راوړې دې.
کتاب الجهاد، کتاب الاستئذان وغیرهما، فتح الباری شپږم جلد صفحه ۱۲۰ کښې دی چه مهلب شارح بخاری فرمائی چه په دې حدیث کښې د سیدنا معاویه رضی الله عنه منقبت دې ځکه چه هغه اول من غزا البحر دې یعنی د جهاد دپاره د ټولو نه اول دریابی سفر کولو والا (د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې هیڅ دریابی سفر نه دې شوې) او هم دغه شان منقبت دې د هغه د ځوئی یزید ځکه چه هغه د ټولو نه اولنې سړې وو چا چه د قیصر د ښهر غزوه اوکړه. اهـ

## ایا د یزید په باره کښې د مغفرت زیرې ثابت دې؟

پورته د بخاری په روایت کښې د غزوه ثانیه کونکو دپاره د ﴿ مغفور لهم ﴾ زیرې راغلې دې خو په دې غزوه کښې شرکت کولو والا یزید بن معاویه هم دې بلکه امیر الجیش هم هغه دې په دې باندې د اهل سیر وتاریخ اتفاق دې، اوس یو طرف ته خو د هغه دپاره د مغفرت زیرې او بل طرف ته د هغه فسق او فجور او غلطې کارنامې، نو په دې کښې تطبیق ګرانیږی چه په هغې کښې د حدیث د شارحینو رائې مختلفې دی لکه چه شروح حدیث کتلو نه

معلومیږي، مهلب وئیلي وو چه په دي حدیث کښي د یزید منقبت او فضیلت دي، په دي باندي ئې ابن التین او ابن المنیر تعاقب کړې دي چه د یزید په دې عموم مغفرت کښي د داخلیدو نه دا نه لازمیږي چه هغه دې د څه خاص دلیل د وجې نه د دې حکم نه خارج نه شي، ځکه چه هر یو حکم مشروط وي د وجود شرائط او انتفاء موانع سره لهذا چه د کومو خلقو په باره کښي رسول اللهﷺ ﴿ مغفور لهم ﴾ فرمائیلي دی هغه حکم مقید دې د دې قید سره "په دې شرط چه هغوی د مغفرت اهل وی" ابن التین دا احتمال هم بیان کړي دي چه ممکنه ده چه یزید د دې لښکر سره حاضر شوې نه وی، حافظ فرمائی دا خبره غلطه ده مګر دا چه د هغه مراد د عدم حضور نه عدم مباشرت قتال وی نو دا ممکن ده، باقی د هغه په دې لښکر کښي شرکت کول بلکه امیر جیش کیدل متفق علیه خبره ده، د حضرت شیخ په حاشیه بذل کښي دی چه د حضرت شاه ولی الله میلان د تراجم بخاری په شرح کښي دا دې چه د دې حدیث نه د یزید مغفور له کیدل ثابتیږي د تیرو احوالو په اعتبار سره ځکه چه جهاد د کفاراتو نه دې او د مکفرات تعلق د ذنوب سابقه سره وی نه د هغه ګناهونو سره کوم چه د هغې نه روستو پیښ شوي دی، او! که دې حدیث کښي د ﴿ مغفور له ﴾ سره سره د ﴿ الی یوم القیامة ﴾ لفظ هم وې نو بیشکه دا به د یزید په نجات باندي دال وې. واذ لیس فلیس بل امره مفوض الی الله تعالی فیما ارتکبه من القبائح بعد هذه الغزوة من قتال الحسین وتخریب المدینة والاصرار علی شرب الخمر ان شاء عفا عنه وان شاء عذبه الی اخره. اه من هامش اللامع

## هل یجوز لعن یزید؟

بیا د دې نه روستو په حاشیه لامع کښي د لعن یزید د جواز او عدم جواز بحث کوم چه د علماء کرامو ترمینځه اختلافی دې ډیر په تفصیل سره بیان کړې شوې دې او په اخر کښي د حضرت ګنګوهی‌رحمه الله رائې هم د فتاوی رشیدیه نه نقل کړې شوې ده چه د هغې په اخر کښي دی چه ﴿ لکن الاحتیاط فی السکوت ﴾ ځکه چه که لعن یزید مباح وې نو د هغې په ترک کښي خو هیڅ حرج نشته ځکه چه لعنت واجب او مستحب د چا په نزد هم نه دې، او که غیر مباح وی نو په دې صورت کښي د لعنت د لاعن طرف ته د واپس راتلو خطره ده. اه

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[٢٤٩١]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُولُ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا ذَهَبَ إِلَى قُبَاءٍ يَدْخُلُ عَلَى أُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ وَكَانَتْ تَحْتَ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، فَدَخَلَ عَلَيْهَا يَوْمًا فَأَطْعَمَتْهُ وَجَلَسَتْ تَفْلِي رَأْسَهُ وَسَاقَ هَذَا الْحَدِيثَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَمَاتَتْ بِنْتُ مِلْحَانَ بِقُبْرُصَ.

**ترجمه:** ابو طلحه وائی چه ما دانس بن مالک رضی الله عنه نه اوریدلي دي چه کله به نبی علیه السلام مسجد قباء ته تلو نودام حرام کره به ورتلوا وداد عباده بن صامت بی بی وه، یوه ورځ نبی علیه السلام

[1]: صحیح البخاري/الجهاد ٣ (٢٧٨٨)، الاستئذان ٤١ (٦٢٨٢)، التعبیر ١٢ (٧٠٠١)، صحیح مسلم/الجهاد ٤٩ (١٩١٢)، سنن الترمذي/الجهاد ١٥ (١٦٤٥)، سنن النسائي/الجهاد ٤٠ (٣١٧٣)، سنن ابن ماجه/الجهاد ١٨ (٣٩)، (تحفة الأشراف: ١٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٤٠) (صحیح)

ورغي اوهغي ورباندې خوراك اوکړو، اوپه سرکښې ئې ورله سپکې لټول شروع کړل، اوباقي حديث ئې دتير شوی حديث په شان بيان کړو. ابوداود وائي چه ام حرام په قبرص کښې وفات شوه.

## شرح حديث

دا د اولنی حديث دويم طريق دې، په اولنی روايت کښې صرف دا وو ﴿ قال عندهم ﴾ چه رسول الله ﷺ د ام حرام په کور کښې قيلوله اوکړه، په دې روايت کښې د رسول الله ﷺ د هغې په کور کښې خوراک کولو او په سر مبارک کښې د سپږې موندلې کيدو اضافه ده. ﴿وساق هذا الحديث ﴾ يعنی وړاندې بيا هم هغه حديث دې کوم چه پورته ذکر دې يعنی د غزوة البحر ذکر.

## د حديث متعلق څو سوالونه او د هغې جوابات

په دې حديث کښې څو سوالونه دی:

**رومبی اشکال اودهغې جواب**: ۱ :په اولنی حديث کښې وو چه ﴿ فتزوجها عبادة بن الصامت﴾ چه د ام حرام نکاح د سيدنا عبادة رضی الله عنه سره د خوب د قصې نه روستو شوې وه، او په دې روايت کښې دی چه ﴿ وکانت تحت عبادة ﴾ چه د دې نه معلوميږی چه هغه د هغه په نکاح کښې د مخکښې نه وه، د دې تاويل دا کړې شوې دې چه په دې کښې اصل خو اولنې روايت دې، او په دې دويم روايت کښې د مال اعتبار کولو سره ﴿ کانت تحت عبادة ﴾ وئيلې شوې دې يعنی چه روستو د هغه په نکاح کښې راغلې وه. ۲ : دويم اشکال په دې حديث باندې د حجاب متعلق دې، د رسول الله ﷺ ام حرام کره تلل او هلته قيلوله کول وغيره کوم چه په حديث کښې ذکر دی، د دې په توجيه کښې اقوال مختلف دی، امام نووی رحمه الله فرمائی چه په دې باندې د علماء کرامو اتفاق دې چه ام حرام د رسول الله ﷺ محرم وه خو د دې په کيفيت کښې اختلاف دې، وئيلې شوې دی چه هغه ئې رضاعی ترور وه يا رضاعی مور، او د دې په مقابل کښې دمياطی دې چا چه علی وجه المبالغه رد کړې دې په هغه خلقو باندې کوم چه د محرميت دعوی کوی، او ابن العربی د بعض علماء کرامو نه نقل کړې دی چه ﴿کان النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معصوما ﴾ چه رسول الله ﷺ معصوم وو لهذا په نامحرم باندې داخليدل د هغه د خصوصياتو نه دی، يو جواب دا هم کړې شوې دې چه کيدې شی دا د نزول حجاب نه مخکښې واقعه وی، نورو حضراتو د دې جواب ترديد کړې دې چه دا واقعه د حجاب نه د روستو ده، او قاضی عياض د خصوصيت وجه رد کړې ده ځکه چه د خصوصيت ثبوت بغير د دليل نه نه کيږی، خو حافظ فرمائی چه زما په نزد احسن الاجوبه صرف خصوصيت دې، پاتې شوه دا خبره چه خصوصيت بغير د دليل نه نه ثابتيږی نو زه وايم چه دليل په دې باندې واضح دې. اهـ مختصرا من المنهل وبزيادة ۳ : دريم سوال د "تفلی راسه" سره متعلق دې چه ايا د رسول الله ﷺ په سر مبارک کښې به سپږې کيدې؟ په بذل کښې ليکلې دی چه د تفتيش قمل نه دا نه لازميږی چه د هغه په سر مبارک کښې دې سپږې هم وی ځکه چه داسې بعض وخت د سر د راحت دپاره هم کولې شی چه دا يو قسم سر مالش

کول دي، او په کوکب جلد ۱ صفحه ۴۲۷ کښې ليکلي دي، چه سپږې د رسول الله ﷺ په سر مبارک کښې نه وې ځکه چه هغه خو د عدم نظافت او خيرو نه پيدا کيږي، او د خيرو وجود هلته نه وو بلکه کيدې شي چه صرف د راحت دپاره داسې کړې شوې وي، يا ممکنه ده چه د سپږې موندل په دې وجه وی چه چرته د بل چا سپږه د هغوی سره مبارک ته نه وی رسيدلې، په حاشيه د بذل کښې دی، د علامه مناوی او بجيرمی رائې په شرح د شمائل کښې هم دا ده چه ﴿ لم يکن في راسه قمل ﴾، او ملا علی قاری په شرح د شمائل کښې ليکلي دی چه ازاله قمل د هغې د وجود د کراهت د وجې نه وه نه دا چه رسول الله ﷺ ته د هغې نه تکليف وو، ﴿ ولم يکن القمل يوذيه تکريما له ﴾ اهـ د دې مطلب دا شو چه عدم قمل خو د رسول الله ﷺ خصوصيت نه وو البته عدم ايذاء قمل د هغه خصوصيت وو. والحديث اخرجه الترمذی والنسائی، وقال الترمذی : حسن صحيح، قال المنذری)

[٢٤٩٢]([1]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أُخْتِ أُمِّ سُلَيْمٍ الرُّمَيْصَاءِ، قَالَتْ: نَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَيْقَظَ وَكَانَتْ تَغْسِلُ رَأْسَهَا فَاسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَتَضْحَكُ مِنْ رَأْسِي؟ قَالَ: لَا، وَسَاقَ هَذَا الْخَبَرَ يَزِيدُ وَيَنْقُصُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: الرُّمَيْصَاءُ أُخْتُ أُمِّ سُلَيْمٍ مِنَ الرَّضَاعَةِ.

**ترجمه**: ام سليم دخور رميصاء رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبی ﷺ دخوب نه رابيدارشو اوما سر وينځلو اوهغه خندل هغې عرض اوکړوچه اې دالله رسوله زما په سر پورې خاندئ نبی ﷺ اوفرمائيل نه، اوبيا ئې روايت دکمې اوزياتې سره تراخيره بيان کړو، ابوداؤد وائی: رميصاء د ام سليم رضاعی خور وه.

[٢٤٩٣]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكَّارٍ الْعَيْشِيُّ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ. ح وحَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ الْجَوْبَرِيُّ الدِّمَشْقِيُّ الْمَعْنَى، قَالَ: حَدَّثَنَا مَرْوَانُ، أَخْبَرَنَا هِلَالُ بْنُ مَيْمُونٍ الرَّمْلِيُّ، عَنْ يَعْلَى بْنِ شَدَّادٍ، عَنْ أُمِّ حَرَامٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "الْمَائِدُ فِي الْبَحْرِ الَّذِي يُصِيبُهُ الْقَيْءُ لَهُ أَجْرُ شَهِيدٍ وَالْغَرِقُ لَهُ أَجْرُ شَهِيدَيْنِ".

**ترجمه**: دام حرام رضي الله عنها نه مروي دي چه نبی ﷺ اوفرمائيل: په درياب کښې دسفر کونکی دپاره په چاچه دسر چکر کيدو په وجه قې ولکی ديو شهيد برابر اجر دې، اوهغه کس څوک چه په درياب کښې ډوب شي مستحق د اجر ددوه شهيدانوبرابردي.

## شرح حديث

﴿ الْمَائِدُ فِي الْبَحْرِ الَّذِي يُصِيبُهُ الْقَيْءُ لَهُ أَجْرُ شَهِيدٍ وَالْغَرِقُ لَهُ أَجْرُ شَهِيدَيْنِ ﴾ د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه کوم سړی ته د دريابی سفر د وجې نه د سر چورليدل او قئ راشی (يعنی د چا دريابی سفر چه د عبادت دپاره وی، حج، عمره او جهاد وغيره) د هغه دپاره د يو شهيد اجر دې، او که غرق شی په دې کښې د هغه دپاره اجر شهيدين دې.

په حاشيه د بذل کښې د علامه عينی نه نقل کړې دې چه دا حديث دليل دې د هغه خلقو چه وائی چه شهيد البحر افضل دې د شهيد البر نه.

[1]: انظر حديث رقم: (٢٤٩٠)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٠٧) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٣٠٩) (حسن)

[٢٤٩٤] ()حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ عَتِيقٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُسْهِرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ سَمَاعَةَ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "ثَلَاثَةٌ كُلُّهُمْ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ رَجُلٌ خَرَجَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ حَتَّى يَتَوَفَّاهُ، فَيُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ أَوْ يَرُدَّهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ وَغَنِيمَةٍ، وَرَجُلٌ رَاحَ إِلَى الْمَسْجِدِ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ حَتَّى يَتَوَفَّاهُ، فَيُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ أَوْ يَرُدَّهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ وَغَنِيمَةٍ، وَرَجُلٌ دَخَلَ بَيْتَهُ بِسَلَامٍ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ".

**ترجمه:** ابو امامة باهلی د نبی ﷺ نه روایت کوی چه فرمائی ددې ددرې کسانوذمه وار الله تعالی دی یوهغه کس دی چه دجهاد په اراده دالله تعالی په لاره کښې اوځي، یاخوبه ئې دمرګ نه پس جنت ته بوځي اویابه ئې ژوندې سلامت داجرا وثواب اوغنیمت سره خپل اهل ته واپس راولي، او بل هغه کس دې چه دجومات طرف ته روان شی، یاخوبه ئې جنت ته بوځي اویابه ئې د اجر اوثواب اوغنیمت سره خپل اهل ته واپس راولي، او بل هغه کس دی چه خپل کورته په سلام وئیلوسره داخليږي نودده ضامن هم الله تعالی دی.

## شرح حدیث

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ ثَلَاثَةٌ كُلُّهُمْ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ ﴾ د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه درې سړی داسې دی کوم چه د الله پاک په ضمان یعنی ضامن په معنی د مضمون دی.

١: په جهاد کښې تلونکي سړې د الله پاک په ضمان کښې دې، تردې چه که هغه وفات شی نو هغه الله پاک جنت کښې داخلوی، یا دا چه هغه واپس کوی د جهاد نه اجر او غنیمت سره، (یعنی په دې دواړو خبرو کښې یوه ذمه داری ده).

٢: چه کوم سړې د مونځ یا عبادت دپاره د مسجد طرف ته روان شی هغه هم د الله پاک په ضمان کښې دې تردې چه الله پاک ئې وفات کړی نو هغه به جنت ته ځی یا به هغه راواپس کړی. (د وفات نه کیدو په صورت کښې) اجر او غنیمت سره.

٣: کوم سړې چه خپل کور ته داخل شی د سلام سره، یعنی د داخلیدو چه کومه مسنون طریقه ده، نو دا سړې هم د الله پاک په ضمان کښې دې، په قران کریم کښې دی ﴿ فَإِذَا دَخَلْتُمْ بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِنْ عِنْدِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً ﴾ او په ترمذی کښې د سیدنا انس ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل ﴿ یا بنی اذا دخلت علی اهلک فسلم تکن برکة علیک وعلی اهل بیتک ﴾ او په ابوداؤد کښې روایت دې کوم چه به په کتاب الادب کښې راشی چه په هغې کښې د دخول بیت دا دعا ذکر شوې ده: ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ الْمَوْلِجِ وَخَيْرَ الْمَخْرَجِ بِسْمِ اللَّهِ وَلَجْنَا وَبِسْمِ اللَّهِ خَرَجْنَا وَعَلَى اللَّهِ رَبِّنَا تَوَكَّلْنَا ثُمَّ لْيُسَلِّمْ عَلَى أَهْلِهِ ﴾ یعنی دروازې ته د داخلیدو په وخت به دا دعا اولولي او د کور خلقو ته کتلو سره سلام اوکړی بلکه علماء کرامو خو دا لیکلې دی چه که په کور کښې یو کس نه وی نو نو بیا هم سلام کول پکاردی، د پورته ذکر شوی آیتونو د عموم د وجې نه کما قال النووی فی الاذکار د دې

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٨٧٥) (صحيح)

نه معلومه شوه چه د دخول بیت په وخت سلام کول په دې کښې ډیر فضیلت او برکت دې، په قران او حدیث دواړو کښې د دې امر راغلې دې، لهذا د دې هر سړی لره اهتمام کول پکار دی او دا معمولی کار نه دی ګنړل پکار، عادت که نه وی نو د دې عادت اچول پکار دی، والله الموفق، ما اوریدلې دی چه دلته (١) په عربو کښې دا سنت الحمد لله ژوندې دې. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي فَضْلِ مَنْ قَتَلَ كَافِرًا

### باب دې په بیان د فضیلت دهغه چا کښې چه کافر مړ کړي

[٢٤٩٥](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ، عَنِ الْعَلَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَجْتَمِعُ فِي النَّارِ كَافِرٌ وَقَاتِلُهُ أَبَدًا".

**ترجمه**: دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی: هیڅ کله به نه جمع کیږي کافر اودهغه قاتل په اوردوزخ کښې

### شرح حدیث

په دې حدیث کښې د هغه مسلمان دپاره ډیر زیرې دې چه د هغه په لاس سره یو کافر قتل شی، هغه دا چه د همیشه دپاره د جهنم نه محفوظ شو، دا ډیر فضیلت دې، خو شارحین حدیث دا په خپل عموم باندې نه دې پریخودلې، په نورو ایتونو او احادیثو باندې نظر ساتلو سره، په دې کښې څو قوله دی. ١: د دې نه باقاعده جهاد ته تلو سره قتل کول مراد دی. ٢: مطلب دا دې چه د اور د عذاب نه به محفوظ شی که د ګناهونو د وجې نه په عذاب شو هم نو بغیر د اور نه به وی، مثلا په اعراف کښې پاتې کیدل په جنت کښې د دخول اولی نه. ٣: که د څه وجې نه د اور عذاب اوشی نو بیا هم هغه طبقه نار کښې به نه داخلیږی کومه چه د کفارو دپاره ده. من البذل، یا خاص د دې کافر مقتول طبقه مراد ده چه دواړه به په یو طبقه کښې جمع نه شی. والحدیث اخرجه مسلم قاله المنذری.

## بَابٌ فِي حُرْمَةِ نِسَاءِ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ

### په کورونو کښې په ناستو خلقو باندې د مجاهدینو د ښځو د عزت ساتلو بیان

[٢٤٩٦](٣) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ قَعْنَبٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حُرْمَةُ نِسَاءِ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ كَحُرْمَةِ أُمَّهَاتِهِمْ وَمَا مِنْ رَجُلٍ مِنَ الْقَاعِدِينَ يَخْلُفُ رَجُلًا مِنَ الْمُجَاهِدِينَ فِي أَهْلِهِ إِلَّا نُصِبَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ"، فَقِيلَ لَهُ: هَذَا قَدْ خَلَفَكَ فِي أَهْلِكَ، فَخُذْ مِنْ حَسَنَاتِهِ مَا شِئْتَ، فَالْتَفَتَ إِلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: مَا ظَنُّكُمْ؟، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَانَ قَعْنَبٌ رَجُلًا صَالِحًا وَكَانَ ابْنُ أَبِي لَيْلَى أَرَادَ قَعْنَبًا عَلَى الْقَضَاءِ فَأَبَى عَلَيْهِ، وَقَالَ: أَنَا أُرِيدُ الْحَاجَةَ بِدِرْهَمٍ فَأَسْتَعِينُ عَلَيْهَا بِرَجُلٍ قَالَ: وَأَيُّنَا لَا يَسْتَعِينُ فِي حَاجَتِهِ قَالَ: أَخْرِجُونِي حَتَّى أَنْظُرَ فَأُخْرِجَ، فَتَوَارَى قَالَ سُفْيَانُ: بَيْنَمَا

(١) د لفظ "دلته" نه مراد مدینه منوره ده، ځکه چه د دې جزء تسوید په مدینه منوره کښې دی.

(٢): صحیح مسلم/الإمارة ٣٦ (١٨٩١)، (تحفة الأشراف: ١٤٠٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦٣/٢، ٣٦٨، ٣٧٨) (صحيح)

(٣): صحیح مسلم/الإمارة ٣٩ (١٨٩٧)، سنن النسائي/الجهاد ٤٧ (٣١٩١)، (تحفة الأشراف: ١٩٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٢/٥، ٣٥٥) (صحيح)

هُوَ مُتَوَارٍ إِذْ وَقَعَ عَلَيْهِ الْبَيْتُ فَمَاتَ.

ترجمه: ابن بریده ﷜ د خپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی دمجاهدینو دښځو عزت په کورونو کښې په ناستو خلقو، په شان دعزت د میندو ددوئ دې اونشته یوکس په پاتې شوو خلقوکښې چه دمجاهدینود ښځوسره پاتې شي (که چرې خیانت اوکړی ددوی سره) نوداکس به دقیامت په ورځ باندې اودرولې شي او مجاهد ته به اووئیلې شي چه ده تاسره ستادښځې په باره کښې خیانت کړې دې اوس چه څومره غوارې دده دنیکونه واخله ددې نه پس نبی ﷺ مونږ ته متوجه شو اووئې فرمائیل چه اوس ستاسو څه خیال دې؟ ابوداؤد وائی: قعنب یو نیک سړې وو. ابن ابی لیلی د قعنب د قاضی جوړلو اراده اوکړه نوهغوی ددې نه انکار اوکړو، اووې وئیل چه زه په یو درهم کښې خپل ضرورت پوره کول غوارم چه زه په دې کښې د یوسړی مدد حاصل کړم. بیا ئې اووئیل: څوک دې چه هغه دخپل ضرورت دپاره دچا نه مدد نه اخلی، بیا ئې عرض اوکړو: تاسو ما اوباسئ تردې چه زه اوګورم (چه څنګه زما ضرورت پوره کیږی) نو هغوی اوویستلی شو، بیا هغه په یو کور کښې پټ شو. سفیان وائی: په دغه دوران کښې چه هغه پټ شوې وو هغه کور راپرېوتلو اومړشو.

## شرح حدیث

﴿ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- « حُرْمَةُ نِسَاءِ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ كَحُرْمَةِ أُمَّهَاتِهِمْ الخ ﴾ د رسول الله ﷺ ارشاد دې، په جهاد کښې د تلونکو سړو د کور د ښځو احترام په قاعدین باندې د خپلو میاندو د احترام په شان دې، وړاندې فرمائی چه په قاعدینو کښې چه کوم سړې د یو مجاهد د کور زنانو سره خیانت اوکړی نو هغه به د قیامت په ورځ باندې د هغه مجاهد په وړاندې اودرولې شی، او هغه مجاهد ته به وئیلې شی چه دې سړی ستا د ښځې سره د خیانت معامله کړې وه پس ته د هغه د نیکو نه چه څومره غوارې واخله، د حدیث راوی فرمائی، رسول الله ﷺ دومره فرمائیلو سره زمونږ طرف ته اوکتل او وې فرمائیل ﴿ ما ظنکم؟ ﴾ ستاسو څه خیال دې، یعنی دا چه هغه سړې د هغه په حسنات کښې څه حسنه پرېږدی یا نه، ظاهره ده چه هلته به هر سړی ته د حسنات بیحد ضرورت وی، بیا به ئې چرته پرېږدی. والحدیث اخرجه مسلم والنسائی قال المنذری.

## بَابٌ فِي السَّرِيَّةِ تُخْفِقُ

### باب دې په بیان د هغه مجاهدینو کښې چه د مال غنیمت نه بغیر واپس راشي

تشریح: ﴿ تخفق ﴾ د مضارع صیغه ده د اخفاق نه چه د هغې معنی د عدم حصول غنیمت ده، دا خو ظاهره ده چه په هر جهاد کښې مال غنیمت نه حاصلیږی

[٢٤٩٧] (١) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ، وَابْنُ لَهِيعَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو هَانِئٍ الْخَوْلَانِيُّ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيَّ، يَقُولُ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ

(١): صحیح مسلم/الإمارة ٤٤ (١٩٠٦)، سنن النسائي/الجهاد ١٥ (٣١٢٧)، سنن ابن ماجه/الجهاد ١٣ (٢٧٨٥)، (تحفة الأشراف: ٨٨٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٩/٢) (صحيح)

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ غَازِيَةٍ تَغْزُو فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُصِيبُونَ غَنِيمَةً إِلَّا تَعَجَّلُوا ثُلُثَيْ أَجْرِهِمْ مِنَ الْآخِرَةِ وَيَبْقَى لَهُمُ الثُّلُثُ فَإِنْ لَمْ يُصِيبُوا غَنِيمَةً تَمَّ لَهُمْ أَجْرُهُمْ".

**ترجمه:** دعبدالله ابن عمر ﷠ نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي دمجاهدينو هره يوه ډله چه دالله په لاره کښي دکافرانوسره جنګ اوکړي او دکافرانو مال حاصل کړي نودي خلقو دخپلي مزدورئ دوه حصي حاصلي کړي او يوه حصه ئي آخرت ته پاتي شوه اوکه چرې دوی غنيمت نه وي حاصل کړي نوددوئ پوره بدله به په آخرت کښي ملاويږي.

**تشريح:** ﴿ غازية ﴾ صفت دي،د ﴿ جماعة ﴾ يعني غزوه کونکي چه کوم جماعت په جهاد کښي مال غنيمت حاصلوی نو په دي باندي ځان پوهه کړئ چه د دي جماعت خلقو د خپل ثواب اخرت کښي دوه ثلثه په دنيا کښي حاصل کړل، او د اخرت دپاره صرف يو ثلث باقي پاتي شو ، او کوم خلق چه غنيمت نه حاصلوی د هغوی پوره اجر د اخرت دپاره باقي پاتي کيږي، معلومه شوه چه که په يو جهاد کښي مجاهدين لره مال غنيمت حاصل نه وی نو دا د هغوی په حق کښي د ناکامئ ، افسوس خبره نه ده بلکه مزيد د خوشحالئ خبره ده چه ټول ثواب به په اخرت کښي ملاويږي، وثواب الاخرة خير وابقى. والحديث اخرجه مسلم والنسائي قاله المنذري.

## بَابٌ فِي تَضْعِيفِ الذِّكْرِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ تَعَالَى

### په جهاد کښي د ذکر کولو د دوچند اجر او ثواب بيان

**د ترجمة الباب شرح :**

د عبارت تقدير داسي دي: ﴿ في تضعيف ثواب الذكر على النفقة في سبيل الله ﴾ يعني د انفاق في سبيل الله په مقابله کښي د ذکر الله د ثواب د زيادت په بيان کښ.

[٢٤٩٨](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَيُّوبَ، وَسَعِيدِ بْنِ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ زَبَّانَ بْنِ فَائِدٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الصَّلَاةَ وَالصِّيَامَ وَالذِّكْرَ تُضَاعَفُ عَلَى النَّفَقَةِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِسَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ".

**ترجمه:** سهل بن معاذ ﷠ د خپل پلارنه روايت کوی فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي دجهاد په دوران کښي د مونځ او روژې اوذکر ثواب دالله په لاره کښي د مال خرچ کولو دثواب نه اووه سوه چنده زيات دي.

**تشريح:** حديث د ترجمة الباب مطابق دي، په دي کښي صلاة او صيام او د ذکر ثواب اووه سوه چنده زيادت مذکور دي په انفاق في سبيل الله باندي.

د دي حديث نه مطلق د ذکر فضيلت په انفاق باندي ثابتيږی که هغه ذکر هر چرته وی، په حضر کښي يا سفر کښي وی او د مسند احمد په روايت کښي دا لفظ دي چه : ﴿ إِنَّ الذِّكْرَ فِي سَبِيلِ اللهِ تَعَالَى يُضَعَّفُ فَوْقَ النَّفَقَةِ بِسَبْعِ مِئَةِ ضِعْفٍ ﴾ په دي روايت کښي مقيد کړي شوي دي د هغه ذکر سره کوم چه د الله پاک په لاره يعني جهاد کښي وی، د ذکر فضيلت په انفاق في سبيل الله باندي په نورو هم ډيرو رواياتو کښي راغلي دي، حافظ ابن قيم د دي حديث د

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٢٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٨/٣، ٤٤٠) (ضعيف)

لاندې یو ډیره ښه خبره لیکلې ده هغه فرمائي، تحقیق دې باره کښې دا دې چه دلته مراتب درې دی. ۱: ذکر مع الجهاد، ۲: ذکر بغیر د جهاد نه، ۳: جهاد بغیر د ذکر نه، د ټولو نه اعلی مرتبه اولنۍ ده، او دویمه د اولنی نه کمه ده، او دریمه درجه د اولنو دواړو نه کمه ده، او د مرتبه ثالثه په مقابله کښې ذاکر افضل دې.

## بَابٌ فِيمَنْ مَاتَ غَازِيًا

### باب دې په بیان دهغه مجاهد کښې چه په میدان جنګ کښې په خپل مرګ مرشي

[۲۴۹۹](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنِ ابْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ أَبِيهِ يَرُدُّ إِلَى مَكْحُولٍ إِلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غَنْمٍ الْأَشْعَرِيِّ، أَنَّ أَبَا مَالِكٍ الْأَشْعَرِيَّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ فَصَلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَمَاتَ أَوْ قُتِلَ فَهُوَ شَهِيدٌ أَوْ وَقَصَهُ فَرَسُهُ أَوْ بَعِيرُهُ أَوْ لَدَغَتْهُ هَامَّةٌ أَوْ مَاتَ عَلَى فِرَاشِهِ أَوْ بِأَيِّ حَتْفٍ شَاءَ اللَّهُ فَإِنَّهُ شَهِيدٌ وَإِنَّ لَهُ الْجَنَّةَ".

**ترجمه:** د ابو مالك اشعری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلي دي چه فرمائیل ئې څوك چه دالله په لاره کښې اوځي په خپل مرګ مړ شي یا أووژلې شي نوداشهید دې یا ئې خپل اس او اوښ د خپو لاندې کړی، او یا ئې مار لړم وغیره اوچیچی، اویا مړ شی په خپله بستره باندې، یا په کومه بله طریقه باندې څنګه چه دالله تعالی خوښه وي مړ شی نویقینا دې شهید دې اوده ده پاره جنت دې.

### شرح حدیث

د حدیث حاصل دا دې چه کوم سړې د جهاد نیت کولو سره د خپل کور نه اووتلو نو اوس هغه له مرګ پکار دې چه هر څنګه وی که صرف زخمی کیدو سره وفات شی یا په لاره کښې سورلی هغه لره راوغورځوی او هغه وفات شی یا ئې یو زهریله حیوان اوخوری یا په خپله بستره باندې هغه ته مرګ راشي یا هغه قتل شی بهر حال هغه شهید دې او د هغه دپاره جنت دې، په دې حدیث کښې ﴿ مات ﴾ نه مونږ ﴿ مات بجراحته ﴾ مراد اخستلې ده د دې دپاره چه ﴿او مات علی فراشه ﴾ کوم چه وړاندې راروان دې په هغې کښې او په دې کښې تکرار رانشي.

## بَابٌ فِي فَضْلِ الرِّبَاطِ

### د سرحداتو دحفاظت کولود فضیلت بیان

﴿ رباط ﴾ په کسرې د راء سره په معنی د مرابطه، د باب مفاعله مصدر، په قاموس کښې دی "ربط" په معنی دشد، تړل، او رباط المواظبة علی الامر... یو کار لره په اهتمام سره همیشه کول، وملازمة ثغر العدو... یعنی د دشمن په سرحد باندې پړاؤ اچول، او لیکلي دی چه هم دا معنی د مرابطه ده او بله معنی ئې د مرابطه دا لیکلې ده چه فریقین کښې هر یو په خپلو اسونو باندې خپل خپل سرحد ته بوتلو سره اوتړی او هر یو په دوی کښې د خپل مقابل دپاره تیار وی، او هم د دې نوم رباط هم دې، او هم دې نه دې د الله پاک قول ﴿ وصابروا ورابطوا ﴾ هم دغه شان د دې معنی انتظار الصلاة بعد الصلاة ده، لکه چه په حدیث کښې دی: فذلکم الرباط. اهـ

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۱٦۵) (ضعیف)

[۲۵۰۰]()حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي أَبُو هَانِئٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَالِكٍ، عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "كُلُّ الْمَيِّتِ يُخْتَمُ عَلَى عَمَلِهِ إِلَّا الْمُرَابِطَ فَإِنَّهُ يَنْمُو لَهُ عَمَلُهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَيُؤَمَّنُ مِنْ فَتَّانِ الْقَبْرِ".

**ترجمه**: د فضاله بن عبيده رضی الله عنه نه روايت دي فرمائي : نبی علیه السلام فرمائيلی دی چه د هر يو مړکيدونکي عمل دمرګ نه روستو ختمؤلی شی ليکن د دسرحد د حفاظت کونکی اجر تر قيامته پورې زياتيږی اوهغه به دقبر دعذاب نه محفوظ وی.

## شرح حديث

رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل چه د هر مړ کيدونکی د عمل سلسله د هغه په مرګ باندې ختميږی سوا د مرابط نه (يعنی د اسلامی سرحد حفاظت کولو والا مجاهد سړې) پس بيشکه د هغه عمل زياتيږی تر قيامته پورې، يعنی د هغه د دې عمل سلسله نه ختميږی (لهذا د ثواب سلسله هم نه ختميږی).

﴿ ويومن من فتان القبر ﴾ ﴿ فتان ﴾ که بفتح الفاء (وتشديد التاء) دې نو دا د مبالغې صيغه ده، او که بضم الفاء دې نو جمع ده د فاتن کوم چه ماخوذ دې د فتنې نه، د دې نه مراد منکر نکير دې، ګويا د عذاب قبر نه محفوظ شی.

## په دوه متعارض حديثونو کښې دفع د تعارض

په يو بل حديث کښې کوم چه د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه نه په صحيح مسلم کښې مرفوعا نقل دې او خپله د سنن ابی داود په کتاب الوصايا کښې ﴿ ما جاء فی الصدقة عن الميت ﴾ کښې راروان دې، ﴿ إِذَا مَاتَ الإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَنْهُ عَمَلُهُ إِلاَّ مِنْ ثَلاَثَةِ أَشْيَاءَ مِنْ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ ﴾ په دې حديث کښې د درې کسانو استثناء ده، او په حديث الباب کښې صرف د يو په باره کښې راغلې دی، خو په دې حديث کښې، ﴿ امن من عذاب القبر ﴾ اضافه ده لهذا دې ته وجه د تخصيص وئيلې کيدې شی د دې يو دپاره، لهذا اوس په دواړو احاديثو کښې هيڅ تعارض پاتې نه شو، هم دغه شان د دې دواړو احاديثو د مجموعې نه دا قسم خلق تول څلور شو چه د هغوی د اعمالو انقطاع په مرګ سره نه کيږی بلکه برابر ورته ثواب رسيږی، حضرت په بذل المجهود کښې اولا دفع د تعارض بين الحديثين هم دغه شان فرمائيلې دې او د هغې نه روستو فرمائی ﴿ والاحسن عندی فی الجواب ان يقال الخ ﴾ چه د هغې حاصل دا دې چه د اجر او ثواب زيادت کوم چه په احاديثو کښې ذکر شوې دې د دې زيادت دوه صورتونه دی يو دا چه د مړی د عمل په اجر کښې اضافه اوشی، د بل يو انسان د عمل په واسطه او دويم صورت دا دې چه د هغه د عمل په اجر کښې اضافه اوشی براه راست بغير د واسطې نه او بغير د عمل نه، په مرابط کښې اضافه د نوع ثانی په لحاظ سره ده ، او په باقی کښې د نوع اول په اعتبار سره. اهـ والحديث اخرجه مسلم والنسائی وابوداؤد ايضا کلهم فی الوصايا، والترمذی فی الاحکام، واخرج ابن ماجة معناه عن ابی قتادة وابی هريرة فی السنة، والبخاری فی الادب المفرد (المرعـاة بتصرف)

[1]: سنن الترمذي/فضائل الجهاد ٢ (١٦٢١)، (تحفة الأشراف: ١١٠٣٢)، وقد أخرجه: (حم ٦/٢٠، ٢٢) (صحيح)

# بَاب فِي فَضْلِ الْحَرْسِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ تَعَالَى

## باب: د الله تعالى په لاره كښې د څوكۍ وركولو د فضيلت بيان

"حرس" د راء په سكون سره مصدر دې په معنى د حراست او چوكيدارى. او كوم ﴿ حرس ﴾ چه بفتح الراء دې هغه دحارس جمع ده په معنى دچوكيدار. اوحرسى هم په معنى دحارس راغې.

[٢٥٠١]()حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ يَعْنِي ابْنَ سَلَّامٍ، عَنْ زَيْدٍ يَعْنِي ابْنَ سَلَّامٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَلَّامٍ قَالَ: حَدَّثَنِي السَّلُولِيُّ أَبُو كَبْشَةَ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ سَهْلُ ابْنُ الْحَنْظَلِيَّةِ أَنَّهُمْ سَارُوا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ، فَأَطْنَبُوا السَّيْرَ حَتَّى كَانَتْ عَشِيَّةً، فَحَضَرْتُ الصَّلَاةَ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَاءَ رَجُلٌ فَارِسٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي انْطَلَقْتُ بَيْنَ أَيْدِيكُمْ حَتَّى طَلَعْتُ جَبَلَ كَذَا وَكَذَا فَإِذَا أَنَا بِهَوَازِنَ عَلَى بَكْرَةِ آبَائِهِمْ بِظُعُنِهِمْ وَنَعَمِهِمْ وَشَائِهِمْ اجْتَمَعُوا إِلَى حُنَيْنٍ فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: "تِلْكَ غَنِيمَةُ الْمُسْلِمِينَ غَدًا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ، ثُمَّ قَالَ: مَنْ يَحْرُسُنَا اللَّيْلَةَ، قَالَ: أَنَسُ بْنُ أَبِي مَرْثَدٍ الْغَنَوِيُّ: أَنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟، قَالَ: فَارْكَبْ، فَرَكِبَ فَرَسًا لَهُ فَجَاءَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اسْتَقْبِلْ هَذَا الشِّعْبَ حَتَّى تَكُونَ فِي أَعْلَاهُ وَلَا نُغَرَّنَّ مِنْ قِبَلِكَ اللَّيْلَةَ، فَلَمَّا أَصْبَحْنَا خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى مُصَلَّاهُ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ قَالَ: هَلْ أَحْسَسْتُمْ فَارِسَكُمْ؟، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا أَحْسَسْنَاهُ فَثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ فَجَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي وَهُوَ يَلْتَفِتُ إِلَى الشِّعْبِ حَتَّى إِذَا قَضَى صَلَاتَهُ وَسَلَّمَ، قَالَ: أَبْشِرُوا فَقَدْ جَاءَكُمْ فَارِسُكُمْ، فَجَعَلْنَا نَنْظُرُ إِلَى خِلَالِ الشَّجَرِ فِي الشِّعْبِ فَإِذَا هُوَ قَدْ جَاءَ حَتَّى وَقَفَ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنِّي انْطَلَقْتُ حَتَّى كُنْتُ فِي أَعْلَى هَذَا الشِّعْبِ حَيْثُ أَمَرَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا أَصْبَحْتُ اطَّلَعْتُ الشِّعْبَيْنِ كِلَيْهِمَا فَنَظَرْتُ فَلَمْ أَرَ أَحَدًا، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ نَزَلْتَ اللَّيْلَةَ؟، قَالَ: لَا، إِلَّا مُصَلِّيًا أَوْ قَاضِيًا حَاجَةً، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَدْ أَوْجَبْتَ فَلَا عَلَيْكَ أَنْ لَا تَعْمَلَ بَعْدَهَا".

**ترجمه**: دكبشه رضي الله عنه نه روايت دې چه سهل بن حنظليه واته وئيلي دي چه مونږ دنبى عليه السلام سره په غزوه حنين كښې شريك شو او اوږد مزل مو اوكړو تردې چه مازيګر شو اودمونځ وخت راغې اوزه دنبى عليه السلام سره په مونځ كښې شريك شوم نو په دې وخت كښې يو اس سوار راغې اوعرض ئې اوكړو اې دالله رسوله زه چه ستاسو نه مخكښې چه لاړم يوغرته وختلم نودقبيله بنو هوازن خلق مې اوليدل چه ټولو خپلې ښځې بچي اواوښان او چيلئ جمع كړي دي نبى عليه السلام چه داخبره واوريده نومسكې شو او وى فرمائيل چه صبا به انشاء الله دغه ټول خلق دمسلمانانو مال غنيمت جوړشي، اوبيائې اوفرمائيل چه نن شپه به په مونږ باندې څوك پهره اوكړي؟ انس بن ابى مرثد غنوى رضي الله عنه عرض اوكړو چه اې دالله رسوله زه به پهره اوكړم نبى عليه السلام اوفرمائيل ته په اس سورشه نودې په خپل اس باندې سورشو اودنبى عليه السلام په خدمت كښې حاضر شو نبى عليه السلام ورته او فرمائيل چه دغه مخامخ غونډئ ته لاړشه تردې چه سر ته ئې اوخيژې خو هسې نه چه نن شپه مونږ ستا د موجودګئ په وجه باندې دهوكه اوخورو، (اودشمن راباندې راشى) هركله چه صباشو نونبى عليه السلام مونځ ته روان شو اودوه ركعته مونځ ئې اوكړو بيائې اوفرمائيل چه آيا تاسو خپل شهسوار هم ليدلې دې؟ هغوى او وئيل اې دالله رسوله مونږ نه دې ليدلې ددې نه پس تكبير اوشو نونبى عليه السلام شروع شو چه

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٥٠)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبرى/ السير (٨٨٧٠) (صحيح)

مونځ ئې کولو لیکن دسترګو په ګوټونو کښې به ئې غونډۍ طرف ته کتل هرکله چه مونځ ئې پوره کړو او سلام ئې اوګرځوو نووئې فرمائیل تاسو خوشحاله شئ چه ستاسو شهسوار راغې مونږ د غونډۍ اونوته کتل چه په دې وخت کښې انس بن ابو مرثد غنوی راښکاره شو اودنبی ﷺ مخامخ اودریدو دسلام نه پس ئې عرض اوکړو اې دالله رسوله زه لاړم تردې چه دغونډۍ سر ته اورسیدم دکوم په باره کښې چه تا راته حکم کړې وو کله چه سحر شو زه دواړه غونډو ته اوختم اومې کتل لیکن څوک په نظر رانغلل نبی ﷺ اوفرمائیل چه آیا ته د شپې د آس نه کوز شوې وې هغه اووئیل نه صرف دمونځ او اودس ماتی دپاره کوزشوې وم، نبی ﷺ اوفرمائیل تا دخپل ځان دپاره جنت واجب کړو اوس که ته بل کوم عمل اونکړې نوتاته څه نقصان نه شی رسیدلې۔

## د حدیث مضمون

د حدیث مضمون دا دې، سیدنا سهل بن الحنظلیه رضی الله عنه فرمائی چه هغه صحابه کرام چه په هغوی کښې هغه خپله هم شامل دې، کوم چه د رسول الله ﷺ سره غزوه حنین ته روان وو چه په هغې کښې ډیر زیات مزل وو تردې چه د ماښام وخت شو، پس ما د ماسپخین د مونځ په وخت (ما فی نسخة تصریح الظهر) د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم، یو سړې په اس باندې سور د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلو، هغه عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ ستاسو نه وړاندې طرف ته لاړم تردې چه په فلانی فلانی غر باندې اوختلم او ناڅاپه ما د قبیله هوازن خلق اولیدل چه هغوی خپلې زنانه، څاروی اوښان، بچی او د څاروو پورې د خپل ځان سره د جنګ په موقع باندې راوستلې دی چه د هغې مطلب دا شو چه ښه تیارۍ سره راغلې دی او وو هم دا خلق ماهر غشی ویشتونکی، نو د دې خبر ورکونکی په خبر باندې په ځائې د دې چه هغه سره څه فکر او پریشانی لګیدلې وې نو رسول الله ﷺ مسکې شو او دا ئې اوفرمائیل ﴿ تلک غنیمة المسلمین غدا ان شاء الله ﴾ چه دا ټول څیزونه به ان شاء الله د صبا له د مسلمانانو دپاره مال غنیمت وی هغه وخت خو چونکه ماښام شوې وو او دا مقابله په بله ورځ کیدونکې وو رسول الله ﷺ ترې د معمول مطابق تپوس اوکړو چه د شپې به بیدار اوسیدو سره زمونږ چوکیداری څوک کوی، سیدنا انس بن ابی مرثد غنوی رضی الله عنه عرض اوکړو چه دا خدمت به زه پوره کوم، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ښه سور شه! هغه لاړو او فورا په خپل اس باندې سوریدو سره په خدمت کښې حاضر شو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: دا چه مخامخ کوم غر دې د دې طرف ته منډه کړه، تردې چه هغې ته پ،رته اورسی، یعنی ټوله شپه په هغه غر باندې اوسیدو سره چوکیداری اوکړه، او وې فرمائیل: ﴿ ولا نغرن من قبلک اللیلة ﴾ دا د غرور نه دې غره او غرور معنی ده دهوکه، او ګوره هسې نه چه تاسو دطرف ته دشمن زمونږ د غفلت په حالت کښې حمله اوکړی، یعنی هسې نه چه ته اوده شې او چوکیداری اونکړې شې او دشمن په مونږ باندې ناڅاپه حمله اوکړی، ځکه چه صحابه کرام به هغه وخت اوده وی، هغه صحابی د حدیث راوی فرمائی.

.......

## د رسول اللهﷺ په مانځه کښې التفات فرمائيل

چه کله مونږ صبا کړو نو رسول اللهﷺ مصلی يعنی د مونځ ځائې ته تشريف يوړلو او دوه رکعته سنت کولو نه پس ئې تپوس اوکړو چه تاسو خپل شهسوار ليدلې دی؟ يعنی په راتلو درته په نظر راځی، صحابه کرامو عرض اوکړو چه نه جی، په نظر نه راځی، په دې کښې د مانځه دپاره اقامت اوشو، راوی فرمائی چه رسول اللهﷺ د مونځ د نيت تړلو نه پس به مخامخ غر ته هم کتل، تردې چه کله مونځ پوره شو او هغه سلام واړولو نو وې فرمائيل چه خوشحاله شه ستاسو شهسوار په خيريت سره راغلو (رسول اللهﷺ هغه په راتلو باندې د لرې نه ليدلې وو) هم په دې وجه وړاندې راوی فرمائی چه د رسول اللهﷺ د فرمائيلو نه پس مونږ هم د هغه د کتلو دپاره په هغه غر کښې چه کومې اونې وې کتل پس مونږ هم اوليدو چه هغه راروان دې، تردې چه راغلو او د رسول اللهﷺ مخې ته اودريدلو او د سلام کولو نه پس هغه صحابی اوئيل يعنی خپله قصه ئې واوروله چه د دې ځائې نه تلو سره د دې غر سر ته اوختلم کوم ځائې ته د تلو چه تاسو ماته حکم کړې وو، پس چه کله شپه شوه او صبا شو نو په دواړو غرونو باندې ختلو سره مې اوکتل (چه چرته دشمن خو راروان نه دې) نو ما څوک او نه ليدل. رسول اللهﷺ د هغه صحابی ټوله خبره اوريدلو تپوس اوکړو چه د شپې د سورلئ نه کوز شوې وې؟ نو هغه عرض اوکړو چه نه! مګر د مونځ او قضاء حاجت دپاره. رسول اللهﷺ هغه ته اوفرمائيل چه تا د خپل ځان دپاره جنت واجب کړو. پس اوس په تا باندې بل يو عمل کول ضروری نه دی، اوس هيڅ باک نشته په تا باندې په تا باندې په هغې کښې چه ته يو عمل نه کوی، مراد اعمال تطوع دی، مستحب او نفلی کارونه کوم چه سرې ثواب د اخرت دپاره کوی د دې حديث نه ند رسول اللهﷺ د جهاد په سلسله کښې کامل تياری او مستعدی د هغه انتظام او د خپلو اصحابو پوره پوره خبر تردې چه مونځ په شان اهم عبادت کښې د دې خيال او فکر، كما هو ظاهر د دې نه دا مستفاد کيږی هم په دې وجه امام ابوداؤد دا حديث مختصرا په کتاب الصلاة کښې ابواب الالتفات فی الصلاة د لاندې ذکر فرمائيلې دې، صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وشرف وكرم، په دې حديث کښې يو لفظ راغلې دې ﴿ فاذا انا بهوازن على بكرة ابالهم ﴾... ﴿ بكرة ﴾ ځوانې اوښې ته هم وئيلې شی او د اوبو راښکلو ګرګری ته هم وئيلې شی چه په هغې کښې د بوقې راښکلو دپاره رسئ اچوی، اهل لغت او شارحين حديث ليکلې دی چه د دې نه کثرت او استيعاب بيانول مقصود دی، وئيلې شی : ﴿ جاؤوا على بكرة ابيهم، اى جاؤوا باجمعهم ﴾ يعنی هغوی ټول راغلل هيڅ څوک باقی پاتې نه شو، علامه طيبیؒ ليکلې دی چه په دې جمله کښې ﴿ على ﴾ په معنی د ﴿ مع ﴾ دې، "اى مع بكرة ابيهم" د دې اصل دا دې چه د يوځائې خلقو باندې يو خل ويره راغله نو هغه خلق د هغه ځائې نه خپل ټول سامان اخستلو سره منتقل شو تردې چه د پلار نيکه د زمانې پخوانئ ګرګرې هم د ځان سره يوړه (بذل بزيادة) زه وايم چه راوی دلته هم دا وائی چه قبيله هوازن ټول په ټول د سره د زنانو او ماشومانو او ټولو څاروو په ميدان کښې راجمع شو. والحديث اخرجه النسائی قاله المنذری.

## بَاب كَرَاهِيَةِ تَرْكِ الْغَزْوِ

### د جهاد پرېښودو د مذمت بيان

[٢٥٠٢] (١) حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْمَرْوَزِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا وُهَيْبٌ، قَالَ عَبْدَةُ يَعْنِي ابْنَ الْوَرْدِ، أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ، وَلَمْ يُحَدِّثْ نَفْسَهُ بِالْغَزْوِ مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ".

**ترجمه:** ابوهريره رضی الله عنه د نبی عليه السلام نه روايت کوی فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی هرڅوك چه په داسې حال کښې مړشي چه په جهاد کښې شريك نه شی اونه ئې په زړه کښې دجهاد اراده وي نودې په يوقسم نفاق کښې مړشو.

### شرح حديث

رسول الله صلی الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيل چه په کوم سړی باندې مرګ راشی په دې حال کښې چه نه کله هغه جهاد کړې وی او نه ئې د جهاد اراده او خيال په زړه کښې راغلې وی نو د هغه مرګ دا منافقانه مرګ دې.

د دې حديث نه په ظاهره د جهاد فرض عين کيدل معلوميږی، هم په دې وجه بعض دا وائی چه دا د رسول الله صلی الله عليه وسلم د زمانې سره خاص دې چه هم هغه وخت کښې جهاد فرض عين وو، على قول، او وئيلې شوی دی چه دا عام دې د هر زمانې د لحاظ سره، او اګر چه جهاد په هر چا باندې واجب بعينه نه دې خو کم از کم د جهاد نيت خو په هر مسلمان باندې ضروری دې يعنی ضرورت پيښن راتلو باندې، والحديث اخرجه مسلم والنسائی قاله المنذری

[٢٥٠٣] (٢) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، وَقَرَأْتُهُ عَلَى يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ الْجُرْجُسِيِّ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ الْقَاسِمِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ لَمْ يَغْزُ أَوْ يُجَهِّزْ غَازِيًا أَوْ يَخْلُفْ غَازِيًا فِي أَهْلِهِ بِخَيْرٍ أَصَابَهُ اللَّهُ بِقَارِعَةٍ"، قَالَ يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ رَبِّهِ فِي حَدِيثِهِ قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ.

**ترجمه:** ابو امامة د نبی عليه السلام نه روايت کوی چه فرمائيلي ئې وو څوك چه په جهاد کښې شريك نه شی اونه ئې دکوم مجاهد په تيارولوکښې مددکړې وي او نه ئې دکوم مجاهد دکورخبراخستې وي نوده ته به الله تعالى دقيامت نه مخکښې سخت تکليف ورسوي، يزيدبن عبدربه په خپل روايت کښې د قبل موته اضافه کړې ده.

### شرح حديث

په دې حديث کښې درې څيزونه ذکر شوې دی، خپله جهاد ته تلل، يعنی غزوه بنفسه، او تجهيز غازی يعنی جهاد کښې د تلونکو دپاره اسباب برابرول، او دريم څيز جهاد کښې د تلونکو د کور والو خير خبر ساتل، او دا چه کوم سړی په دې درې کارونو کښې يو کار هم اونکړو نو الله پاک به هغه لره د هغه د مرګ نه مخکښې په څه لوئې مصيبت کښې اخته کوی. والحديث اخرجه ابن ماجة قاله المنذری.

(١): صحيح مسلم/الإمارة ٤٧ (١٩١٠)، سنن النسائي/الجهاد ٢ (٣٠٩٩)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧٤/٢) (صحيح)

(٢): سنن ابن ماجه/الجهاد ٥ (٢٧٦٢)، (تحفة الأشراف: ٤٨٩٧)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الجهاد ٢٦ (٢٤٦٢) (حسن)

[٢٥٠٤]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "جَاهِدُوا الْمُشْرِكِينَ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ وَأَلْسِنَتِكُمْ".

ترجمه: د انس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی جهاد کوئ د مشرکينو سره په مالونو خپلو او په نفسونو خپلو او په ژبو خپلو سره.

## بَابٌ فِي نَسْخِ نَفِيرِ الْعَامَّةِ بِالْخَاصَّةِ

### جهاد ته د ټولو خلقو د تلو د حکم منسوخ کيدو بيان

نفير عام دا دې چه ټول خلق په جهاد کښې شرکت اوکړی، او نفير خاصه دا دې چه بعض خلق شرکت اوکړی او بعض په کور باندې پاتې شی نو مصنف په دې ترجمة الباب کښې دا فرمائی چه اول حکم د نفير عام وو، ګويا جهاد فرض عين وو د ټولو په حق کښې، روستو هغه منسوخ کيدو سره د نفير خاص حکم باقی پاتې شو، د جهاد حکم او په هغې کښې اختلاف، د کتاب الجهاد په شروع کښې بالتفصيل تير شوې دې.

[٢٥٠٥]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: إِلَّا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا سورة التوبة آية ٣٩، وَمَا كَانَ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ إِلَى قَوْلِهِ يَعْمَلُونَ سورة التوبة آية ١٢٠-١٢١ نَسَخَتْهَا الْآيَةُ الَّتِي تَلِيهَا وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافَّةً سورة التوبة آية ١٢٢.

ترجمه: د عکرمه رضي الله عنه نه روايت دې چه ابن عباس فرمائيلي دي چه د الله تعالی دا قول چه ﴿إِلَّا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ که چرې جهاد ته نه ځي نو تاسو ته به دردونکې عذاب درکړې شي او د مدينې والؤ دپاره نه دي پکار چه پيغمبر يواځې پريږدي او پخپله شاته پاتې شي يعنی د هغه سره دې ټول خلق جهاد له لاړ شي دا حکم په دې آيت کريمه سره منسوخ شوې دې چه ﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافَّةً﴾ ټول مسلمانان دې په يوځائې جهاد له نه ځی.

### شرح حديث

په اولنو دوارو آيتونو کښې د نفير عام حکم دې، سيدنا ابن عباس رضي الله عنه فرمائی دې حکم لره آيت کريمه منسوخ کړو، د ابن عباس دا رائې د هغه نه روايت کونکی زمونږ په دې سند کښې عکرمه دې، د حسن روايت هم د هغه نه هم دا دې، او بعض نورو حضراتو د ابن عباس نه د دې خلاف نقل کړې دې، چه د هغې حاصل دا دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم بعض خلقو ته جهاد کښې د تلو دپاره متعين فرمائيلي وو، د روايت الفاظ دا دی "حيا من احياء العرب" نو هغه خلق د جهاد دپاره او نه وتل، پس د هغه په باره کښې دا اولنې آيت کريمه نازل شو "إِلَّا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا" او دا متفق عليه مسئله ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم خو رسول الله صلى الله عليه وسلم دې که د مسلمانانو امير يو جماعت متعين کړی نو په هغوی باندې خروج واجب کيږی، لهذا دا آيت کريمه منسوخ نه دې، او کوم چه دريم آيت کريمه دې ﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا

[1]: سنن النسائي/الجهاد ١ (٣٠٩٦)، (تحفة الأشراف: ٦١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٤/٣، ١٥٣، ٢٥١)، سنن الدارمي/الجهاد ٣٨ (٢٤٧٥) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٥٨) (حسن)

كَافَّةً ﴾ په دې کښې د يو عام قاعدې او ضابطې خبره بيان کړې شوې ده چه دا مناسب نه ده چه د يو ښهر ټول خلق د جهاد دپاره اوځی او د هغوی د تلو نه پس په هغه ښهر کښې يو مومن سړې باقی پاتې نه شی بلکه پکار ده چه بعض جهاد ته لاړ شی کوم چه امام مقرر کړی او بعض نور هلته ایسار شی. اهـ بذل عن الطبری.

د دې نه روستو حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه امام ابوداؤد رحمه الله هم دلته د ابن عباس رضی الله عنه نه دوه مختلف روايتونه ذکر کړې دی، اول هغه کوم لره چه د هغه نه روايت کونکې عکرمه دې، او دويم هغه چه د هغې راوی نجدة بن نفيع دې کوم چه د دې اولنی روايت نه روستو راروان دې، په هغې کښې د نسخ هيڅ ذکر نشته بلکه د هغې د ظاهر نه عدم نسخ معلوميږی. اهـ

[۲۵۰۶](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، عَنْ عَبْدِ الْمُؤْمِنِ بْنِ خَالِدٍ الْحَنَفِيِّ، حَدَّثَنِي نَجْدَةُ بْنُ نُفَيْعٍ، قَالَ: سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ هَذِهِ الْآيَةِ إِلا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا سورة التوبة آية ۳۹، قَالَ: فَأُمْسِكَ عَنْهُمُ الْمَطَرُ وَكَانَ عَذَابَهُمْ.

**ترجمه:** دنجدة بن نفيع نه روايت دې فرمائی چه دابن عباس رضی الله عنه نه مې ددې ايت («إلا تنفروا يعذبكم عذابا أليما») په باره کښې تپوس اوکړو نووئې وئيل چه باران په دوی باندې بند شوې وو او دا ددوی دپاره عذاب وو (دا دوی دپاره قحط وو چه د ولږې د وجې نه به خلق مړه کيدل).

## بَابٌ فِي الرُّخْصَةِ فِي الْقُعُودِ مِنَ الْعُذْرِ

### د عذر په وجه په جهاد کښې د نه شريکيدلو داجازت بيان

[۲۵۰۷](2) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: كُنْتُ إِلَى جَنْبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَغَشِيَتْهُ السَّكِينَةُ، فَوَقَعَتْ فَخِذُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى فَخِذِي فَمَا وَجَدْتُ ثِقْلَ شَيْءٍ أَثْقَلَ مِنْ فَخِذِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ فَقَالَ: "اكْتُبْ، فَكَتَبْتُ فِي كَتِفٍ لا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ سورة النساء آية ۹۵، وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ سورة النساء آية ۹۵ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ، فَقَامَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ وَكَانَ رَجُلًا أَعْمَى لَمَّا سَمِعَ فَضِيلَةَ الْمُجَاهِدِينَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ فَكَيْفَ بِمَنْ لَا يَسْتَطِيعُ الْجِهَادَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ؟، فَلَمَّا قَضَى كَلَامَهُ غَشِيَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّكِينَةُ، فَوَقَعَتْ فَخِذُهُ عَلَى فَخِذِي وَوَجَدْتُ مِنْ ثِقَلِهَا فِي الْمَرَّةِ الثَّانِيَةِ كَمَا وَجَدْتُ فِي الْمَرَّةِ الْأُولَى، ثُمَّ سُرِّيَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: اقْرَأْ يَا زَيْدُ، فَقَرَأْتُ لا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ سورة النساء آية ۹۵ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ سورة النساء آية ۹۵ الْآيَةَ كُلَّهَا، قَالَ زَيْدٌ: فَأَنْزَلَهَا اللَّهُ وَحْدَهَا فَأَلْحَقْتُهَا، وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى مُلْحَقِهَا عِنْدَ صَدْعٍ فِي كَتِفٍ".

**ترجمه:** دزيد بن ثابت رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه زه دنبی علیه السلام په خنګ کښې ناست وم چه ناګهانه په هغه باندې وحي نازليدل شروع شول اودنبی علیه السلام پتون زما په پتون باندې وو

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۶۵۲۳) (ضعيف)

(2): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۷۰۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۴/۵، ۱۹۰، ۱۹۱) (حسن صحيح)

مادنبی علیه السلام دپټون نه درونډ بل شې نه دې لیدلې بیانبی علیه السلام نه داکیفیت ختم شو اووئې فرمائیل اولیکه نوماد چیلی په وولی باندې دا آیت «لا یستوي القاعدون من المؤمنین والمجاهدون في سبیل الله» تراخره پورې اولیکلوعبدالله بن ام مکتوم یو ړوند صحابي چه کله دمجاهدینو فضائل واوریدل نووئې وئیل اې دالله رسوله دهغه مومنانو به څه حال وي څوک چه جهاد نه شی کولې نوچه هرکله هغوی خپله خبره پوره کړه نوبیابه رسول الله ﷺ وحي نازلیدل شروع شول اودهغه ورون زماپه ورون باندې راغې مادومره وزن محسوس کړو څومره چه مخکښې محسوس کړې وو، بیا ددې نه پس وحي نازلیدل اودریدل نونبی علیه السلام اوفرمائیل اې زید اووایه ما آیت کریمه اولوستلو نبی علیه السلام اوفرمائیل «غیر أولي الضرر» آیت تراخره پورې، زید اووئیل بیادا «غیر أولي الضرر» جمله یواځې نازله شوه لیکن مادهغې سره یو ځائې اولګوله په الله مې دې قسم وي ګویا کښې اوس هم زه ددې هډوکی سورې وینم په کوم ځائې کښې چه مادا لګولې وو.

## مضمون حدیث

﴿ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ : كُنْتُ إِلَى جَنْبِ رَسُولِ اللَّهِ –صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ– فَغَشِيَتْهُ السَّكِينَةُ الخ ﴾
د حدیث مضمون واضح دې هغه دا چه سیدنا زید بن ثابت رضی الله عنه فرمائی چه په رسول الله ﷺ باندې ناڅاپه د سکینه او سکون کیفیت راغلو لکه چه د وحی په وخت باندې به وو، هغه وخت رسول الله ﷺ خپل پټون زما په پټون باندې کیخودلې وو، چه کله په هغه باندې د وحی نزول شروع شو نو د هغه د هغه خپې ډیر وزن په ما باندې محسوس شو، بیا چه کله هغه کیفیت د هغه نه لرې شو (د وحی د نازلیدو نه پس) نو رسول الله ﷺ ماته د لیکلو دپاره اوفرمائیل نو ما د یو ځاروی په هډوکی باندې اولیکل : ﴿ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ الی اخر الایة، په دې آیت کریمه کښې د مجاهدینو فضیلت ذکر شوې دې، او ابن ام مکتوم کوم چه په جهاد کښې د خپل عذر د وجې نه نه وو شریک شوې، هغه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه کوم سړې د جهاد طاقت نه لری د هغه څه حکم دې؟ د هغه د سوال نه روستو په رسول الله ﷺ باندې دوباره د وحی کیفیت راغلو او بیا د هغه کیفیت د ختمیدو نه روستو رسول الله ﷺ اولنې آیت په سیدنا زید رضی الله عنه باندې اولوستلو نو رسول الله ﷺ په دې آیت کریمه کښې ﴿ غیر اولی الضرر ﴾ اضافه اوکړه یعنی الله پاک دوباره د مستقل وحی په ذریعه د دې لفظ اضافه اوفرمائیله

## شرح حدیث

﴿ ملحق ﴾ په معنی د الحاق د ځائې او ﴿ صدع ﴾ په معنې د چاودی، سیدنا زید رضی الله عنه فرمائی چه والله کوم ځائې کښې چه ما په هډوکی باندې هغه آیت کریمه لیکلې وو ماته ښه یاد دی، هلته هډوکی کښې لږ شان چاودې وو، او هغه منظر ګویا زما د سترګو په وړاندې دې، د دې حدیث نه معلومه شوه چه عمی یعنی ړوندوالې دا په جهاد کښې د شرکت نه عذر دې، قال تعالی : ﴿ لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَى حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ ﴾ (الاية) اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی من حدیث ابی اسحاق السبیعي عن البراء بن عازب بنحوه، قال المنذری)

[۲۵۰۸]( )حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَقَدْ تَرَكْتُمْ بِالْمَدِينَةِ أَقْوَامًا مَا سِرْتُمْ مَسِيرًا وَلَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ نَفَقَةٍ، وَلَا قَطَعْتُمْ مِنْ وَادٍ، إِلَّا وَهُمْ مَعَكُمْ فِيهِ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَكَيْفَ يَكُونُونَ مَعَنَا وَهُمْ بِالْمَدِينَةِ؟ فَقَالَ: حَبَسَهُمُ الْعُذْرُ".

**ترجمه:** دانس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی ﷺ فرمائیلی دی:یقیناً تاسو پریښودلی دی په مدینه کښې داسې کسان څوك چه ستاسو سره په سفرکښې او به یوه مسافه قطع کولوکښې یا مال خرچ کولو کښې تاسو سره دی، صحابه کراموعرض اوکړو اې دالله رسوله داڅنګه کیدې شي چه هغوی دې زمونږسره په ثوابونوکښې شامل ری اوحال دا چه هغوی دې په مدینه کښې وی؟ نبی ﷺ اوفرمائیل هغوی عذر ایسار کړی دی.

## شرح حدیث

یو ځل رسول الله ﷺ په یو جهاد کښې خپلو اصحابو ته خطاب کولو سره اوفرمائیل چه بیشکه تاسو به په مدینه کښې څه داسې خلق پریخودلي دی چه تاسو چه څه کوئ، په زمکه کښې تلل او یوه وادی قطع کول یا خرچ کول وی هغه خلق په دې ټولو ځیزونو کښې تاسو سره شریک دی یعنی د اجر او ثواب په اعتبار سره صحابه کرامو د دې وجه اوتپوسله نو هغه اوفرمائیل ﴿حسبسهم العذر﴾ چه چونکه د هغوی دا راتلل مجبوری او عذر د وجې نه دی، یعنی که هغوی باندې دا مجبوری نه وې نو هغوی به تاسو سره ضرور راتلې د ښه نیت د وجې نه.

معلومه شوه چه که په جهاد کښې عملاً شرکت نه شی کولې نو کم از کم نیت خو کول پکار دی، وهذا كما سبق من قوله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولكن جهاد ونية. والحديث اخرجه البخاري تعليقا، واخرجه مسلم وابن ماجة عن جابر رضى الله عنه بنحوه قاله المنذرى. (مخلصا)

## بَابُ مَا يُجْزِءُ مِنَ الْغَزْوِ

### باب د جهاد په بدله کښې کوم څیز کافی دې؟

د ترجمې حاصل دا دې چه کوم یو عمل د جهاد بدل او د هغې قائم مقام کیدې شی، د حدیث الباب نه معلومه شوه چه تجهیز غازی او هم دغه شان د غازی د کور والو نګرانی او خیر خبر قائم مقام د جهاد دې، دا مضمون اوس نزدې هم تیر شو.

[۲۵۰۹]( )حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ أَبِي الْحَجَّاجِ أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ، حَدَّثَنِي يَحْيَى، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ، حَدَّثَنِي بُسْرُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ الْجُهَنِيُّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَقَدْ غَزَا وَمَنْ خَلَفَهُ فِي أَهْلِهِ بِخَيْرٍ فَقَدْ غَزَا".

**ترجمه:** د زیدبن خالد جهني رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله فرمائیلي دي چاچه دمجاهد په تیارولوکښې تعاون اوکړو نویقینا ده جهاد اوکړو اوچاچه دمجاهد د اهل او عیال حفاظت

[1]: صحيح البخاري/الجهاد ٣٥ (٢٨٣٩ تعليقًا)، (تحفة الأشراف: ١٦١٠)، وقد أخرجه: حم(١٦٠/٣، ٢١٤) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الجهاد ٣٨ (٢٨٤٣)، صحيح مسلم/الإمارة ٣٨ (١٨٩٥)، سنن الترمذي/فضائل الجهاد ٦ (١٦٢٨)، سنن النسائي/الجهاد ٤٤ (٣١٨٢)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٣ (٢٧٥٩)، (تحفة الأشراف: ٣٧٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٥/٤، ١١٦، ١١٧، ١٩٢/٥، ١٩٣)، سنن الدارمي/ الجهاد ٢٧ (٢٤٦٣) (صحيح)

اوکړو نویقینا ده جهاد اوکړو.

[۲۵۱۰]()حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ مَوْلَى الْمَهْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ إِلَى بَنِي لَحْيَانَ وَقَالَ: لِيَخْرُجْ مِنْ كُلِّ رَجُلَيْنِ رَجُلٌ، ثُمَّ قَالَ: لِلْقَاعِدِ أَيُّكُمْ خَلَفَ الْخَارِجَ فِي أَهْلِهِ وَمَالِهِ بِخَيْرٍ، كَانَ لَهُ مِثْلُ نِصْفِ أَجْرِ الْخَارِجِ".

**ترجمه**: ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ بنی لحیان ته یو لښکر اولیږلو او ورته ئې فرمائیل: چه په هرو دوو کسانوکښې دې یوکس خامخا لاړشي، او بیا ئې دجهادنه پاتې شوو خلقوته اوفرمائیل که چرې تاسو د مجاهدینو دکورونو سرپرستی اوکړئ نو ستاسو دپاره به د مجاهد د نیم اجر برابر اجروی.

## شرح حدیث

﴿ لِيَخْرُجْ مِنْ كُلِّ رَجُلَيْنِ رَجُلٌ ». ثُمَّ قَالَ لِلْقَاعِدِينَ ﴾ رسول الله ﷺ فرمائی چه په هر دوه سړو کښې دې یو د جهاد دپاره اوځی، ګویا د هر کوراو هرې محلې نه دې نیم سړی د جهاد دپاره لاړ شی او نیم دې هلته ایسار شی، د اولنی حدیث نه معلومه شوه چه د خارج او خالف بخیر دواړو اجر برابر دې، او د دې حدیث نه معلومیږی چه د خارج دپاره پوره اجر او د خالف دپاره نیم اجر دې، د دې جواب دا دې د نصف نه د مجموعه اجر نصف مراد دې او دا مطلب نه دې چه د هغه دپاره د اجر خارج نصف دې، او کله چه یو څیز په دوه حصو کښې تقسیم کړې شی نو هلته تنصیف کولې شی،

كذا فى البذل عن الحافظ، والحديث اخرجه مسلم قاله المنذرى.(۲)

## بَابٌ فِي الْجُرْأَةِ وَالْجُبْنِ

### دبهادرئ اوبزدلئ بیان

د جهاد ابواب شروع دی چه د هغې دپاره جرأت او همت پکار دې هم په دې مناسبت سره مصنف دا باب قائم کړې دې.

[۲۵۱۱](۳)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْجَرَّاحِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ مُوسَى بْنِ عَلِيِّ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ مَرْوَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "شَرُّ مَا فِي رَجُلٍ شُحٌّ هَالِعٌ وَجُبْنٌ خَالِعٌ".

**ترجمه**: دعبدالعزیز بن مروان نه روایت دې فرمائی چه دابوهریره رضی الله عنه نه مې اوریدلې دي فرمائیل ئې چه دنبی ﷺ نه مې اوریدلې دي چه فرمائیل ئې: چه دانسان په بدو عادتونو کښې دوه ډیربد اولوئی بدعادتونه دي یوبخل کول او بل بزدلي کول.

(۱): صحيح مسلم /الإمارة ۳۸(۱۸۹٦)، (تحفة الأشراف: ٤٤١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۵/۳، ٤۹، ۵۵) (صحيح)

(۲) قلت ونص الحديث يابي هذا التوجيه اذ فيه تصريح بنصف اجر الخارج، نعم يجري هذا التوجيه في الحديث الذي مضى في كتاب الزكاة، باب تصدق المراة من بيت زوجها فقد مر هذا التوجيه هناك فارجع اليه)

(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٤۱۰۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۰۲/۲، ۳۲۰) (صحيح)

### شرح حدیث

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه حدیث مرفوع دې چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو، د انسان په بدترین عادتونو کښې یو سخت بخل دې کوم چه ویرونکې وی، او دویم بدترین صفت بزدلی ده چه د هغې د وجې نه ئې زړه بهر راوځی، اعاذنا الله تعالی من شح هالع وجبن خالع، بل من الجبن مطلقا، وفی الحدیث : اللهم انی اعوذبک من الجبن والبخل.

## بَاب فِي قَوْلِهِ تَعَالَى {وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ}

**د الله تعالی ددې قول د مفهوم بیان چه: («ولا تلقوا بأیدیکم الی التهلکة»)**

د مصنف غرض په دې باب سره د دې آیت کریمه تفسیر بیانول دی چه په هغې کښې د جهاد ترغیب ورکړې شوې دې او په ترک جهاد باندې وعید راغلې دې، د ترک جهاد په باره کښې د دې نه مخکښې "باب کراهیة ترک الغزو" کښې تیر شوې دې او هم دغه شان وړاندې کتاب البیوع کښې : ﴿ باب فی النهی عن العینة ﴾ کښې راروان دي، ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ « إِذَا تَبَايَعْتُمْ بِالْعِينَةِ وَأَخَذْتُمْ أَذْنَابَ الْبَقَرِ وَرَضِيتُمْ بِالزَّرْعِ وَتَرَكْتُمُ الْجِهَادَ سَلَّطَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ ذُلاًّ لاَ يَنْزِعُهُ حَتَّى تَرْجِعُوا إِلَى دِينِكُمْ » ﴾

[٢٥١٢]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ، وَابْنِ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَسْلَمَ أَبِي عِمْرَانَ، قَالَ: غَزَوْنَا مِنَ الْمَدِينَةِ نُرِيدُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةَ، وَعَلَى الْجَمَاعَةِ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ، وَالرُّومُ مُلْصِقُو ظُهُورِهِمْ بِحَائِطِ الْمَدِينَةِ، فَحَمَلَ رَجُلٌ عَلَى الْعَدُوِّ، فَقَالَ النَّاسُ: مَهْ مَهْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ يُلْقِي بِيَدَيْهِ إِلَى التَّهْلُكَةِ، فَقَالَ أَبُو أَيُّوبَ: إِنَّمَا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِينَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ لَمَّا نَصَرَ اللَّهُ نَبِيَّهُ وَأَظْهَرَ الْإِسْلَامَ قُلْنَا: هَلُمَّ نُقِيمُ فِي أَمْوَالِنَا وَنُصْلِحُهَا فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: وَأَنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ سورة البقرة آية ١٩٥، فَالْإِلْقَاءُ بِالْأَيْدِي إِلَى التَّهْلُكَةِ أَنْ نُقِيمَ فِي أَمْوَالِنَا وَنُصْلِحَهَا وَنَدَعَ الْجِهَادَ، قَالَ أَبُو عِمْرَانَ: فَلَمْ يَزَلْ أَبُو أَيُّوبَ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ حَتَّى دُفِنَ بِالْقُسْطَنْطِينِيَّةِ.

**ترجمه:** دحضرت اسلم ابوعمران رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږ دجهاد په اراده دمدینې نه قسطنطنیه ته روان شو اورومیان مدینې ته نزدې رارسیدلي وو، نوچه په خلقو کښې به یو کس په دشمن حمله اوکړه نو خلقو به ورته اووئیل مه کوه مه کوه لا إله إلا الله، ته خو خپل ځان په خپلو لاسونوپه هلاکت کښې اچوې، ابوایوب اووئیل یقینادا آیت زمونږ دانصارو په باره کښې نازل شوې دې، هرکله چه الله تعالی دخپل نبی ﷺ مدد اوکړو او اسلام ئې غالب کړو نومونږ په خپلو زړونو کښې اووئیل (اوس دجهاد څه ضرورت دې) اوس خوبه مونږ د خپلو مالونوسره پاتې کیږو او حفاظت به ئې کوو بیا الله تعالی دا آیت نازل کړو (وَأَنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ) د الله په لاره کښې خرچ کوئ اوخپل ځان په هلاکت کښې مه اچوئ (سورة البقره: ١٩٥) خپل ځان په هلاکت کښې اچول دادی چه مونږ په خپلو مالونو کښې مشغول شو، دهغې فکر کوو اوجهاد پریږدو، ابوعمران اووئیل ابوایوب به همیشه دالله په لاره کښې جهاد کولو تردې چه په قسطنطنیه

[1]: سنن الترمذي/التفسير ١٩ (٢٩٧٢)، (تحفة الأشراف: ٣٤٥٢) (صحيح)

کښې دفن کړې شو.

## شرح حدیث

ابو عمران فرمائی چه مونږ د قسطنطنیه د فتح کولو دپاره د مدینې منورې نه روان شو او زمونږ په جماعت باندې امیر د سیدنا خالد بن ولید رضي الله عنه ځوئې عبدالرحمن وو، او د جنګ په وخت دشمن یعنی اهل روم حائط المدینه یعنی قسطنطنیه ښهر کښې پناه اخستلو سره خپلې ملا ګانې یوځائې کړې وې، لا جنګ شروع شوې نه وو چه په مسلمانانو کښې یو سړی مجاهد اول حمله اوکړه (یعنی په حمله کولو کښې ئې سبقت اوکړو، نورو خلقو لا سوچ کولو) نو د هغه په حمله کولو باندې مسلمانانو اووې ﴿ مه مه لا اله الا الله ﴾ چه اودریږه ځه کوې، خپل ځان په هلاکت کښې اچوې، سیدنا ابوایوب انصاری رضي الله عنه هلته موجود وو هغه فورا خبرې اوکړې او په منع کونکو ئې رد اوکړو او د کوم آیت نه چه منع کونکو ګویا استدلال کړې وو هغه د دې صحیح تفسیر او شان نزول بیان اوفرمائیلو، چه د هغې حاصل دا دې چه په اصل کښې دا آیت کریمه زمونږ یعنی انصارو په باره کښې نازل شوې دې، هغه دا چه کله اسلام خور شو او الله پاک هغه ته غلبه ورکړه نو مونږ خلقو سوچ اوکړو چه اوس مونږ له د خپلې زمینداریٔ خبر اخستل پکار دی نو په دې باندې دا ایت کریمه نازل شو، پس خپلو لاسونو لره په هلاکت کښې د اچولو مطلب خو دا دې چه مونږ په خپلو پټو کښې مشغول کیدو سره جهاد پریږدو نه دا چه دا تاسو کوم خیال کوئ او حمله کونکې منع کوئ، وړاندې راوی فرمائی چه د دې نه پس ابو ایوب انصاری رضي الله عنه په دې غزوه کښې جنګ کولو تردې چه وفات کیدو سره هم هلته د قسطنطنیه په حدود کښې دفن کړې شو رضی الله عنه، په دې حدیث کښې چه د کومې غزوې ذکر دې دا هم هغه غزوه ثانیه ده د غزوة البحر نه چه د هغې ذکر اوس نزدې تیر شوې دې، چه د هغې په باره کښې دا تیر شوې دی چه د هغې امیر یزید بن معاویه وو، او دلته په روایت کښې د عبدالرحمن بن خالد بن یزید رحمه الله په باره کښې دی چه هغه امیر وو او حضرت په بذل کښې د تاریخ طبری نه په دې باندې مزید نقل کړې دې چه ﴿ وعلی اهل مصر عقبة بن عامر، وعلی اهل الشام فضالة بن عبید ﴾ او په یو کښې دا دی ﴿ وعلی الجماعة عبدالرحمن بن خالد ﴾، اصل کښې د مختلف ملکونو په اعتبار سره دا امارت دې، د اهل مدینه د جماعت امیر عبد الرحمن بن خالد بن الولید دې، او د پوره لښکر امارت عامه د یزید بن معاویه دپاره وو.

**فائده**: د فتح قسطنطنیه ذکر په کتاب الفتن من اشراط الساعة د لاندې هم په حدیث کښې راغلې دې، پس د ترمذی په روایت کښې دی:

قوله: ﴿ الْمَلْحَمَةُ الْعُظْمَى وَفَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ وَخُرُوجُ الدَّجَّالِ فِي سَبْعَةِ أَشْهُرٍ ﴾ امام ترمذی رحمه الله فرمائی: ﴿ وَالْقُسْطَنْطِينِيَّةُ هِيَ مَدِينَةُ الرُّومِ تُفْتَحُ عِنْدَ خُرُوجِ الدَّجَّالِ وَالْقُسْطَنْطِينِيَّةُ قَدْ فُتِحَتْ فِي زَمَانِ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اهـ ﴾ د امام ترمذی رحمه الله اشاره هم د دې فتح طرف ته ده کومه چه په حدیث الباب کښې ذکر شوې ده چه د هغې په باره کښې فرمائی چه د بعض صحابه کرامو په زمانه کښې فتح شوې ده، خو د حضرات صحابه کرام رضي الله عنهم په زمانه

کښې اګر چه هغه فتح شوې ده خو هلته اسلامي حکومت قائم نه شو بلکه د هغوی سره په اداء جزیه باندې مصالحت اوشو، په حاشیه د کوکب ص ۹۵ ج ۲ کښې حضرت شیخ لیکي چه د دې اولې فتح نه روستو دوباره رومیان په هغې باندې قابض شو، بیا د یوې ډیرې اوږدې مودې نه پس په ۸۵۷ھ کښې مسلمانانو دا دوباره فتح کړه، تقریبا پنځوس ورځو پورې مسلمانانو د هغې محاصره کړې وه، بیا مسلمانانو ته انتهائی شاندار او ښکاره فتح حاصله شوه، چه په هغې کښې ورته بیشماره مال غنیمت حاصل شو. اهـ دا نوم په دوه طریقو سره ضبط کړې شوې دې قسطنطنیه د طاء نه روستو یاء تحتانیه بیا نون، قال النووی وهو المشهور، دویم دا چه د نون نه پس بیا یاء مشدده قسطنطنیه. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی (قال المنذری) ملخصا.

## بَابٌ فِي الرَّمْيِ
### د نښې ویشتلو دفضیلت بیان

[۲۵۱۳](۱) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَّامٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يُدْخِلُ بِالسَّهْمِ الْوَاحِدِ ثَلَاثَةَ نَفَرٍ الْجَنَّةَ صَانِعَهُ يَحْتَسِبُ فِي صَنْعَتِهِ الْخَيْرَ وَالرَّامِيَ بِهِ، وَمُنْبِلَهُ وَارْمُوا وَارْكَبُوا، وَأَنْ تَرْمُوا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ تَرْكَبُوا، لَيْسَ مِنَ اللَّهْوِ إِلَّا ثَلَاثٌ: تَأْدِيبُ الرَّجُلِ فَرَسَهُ، وَمُلَاعَبَتُهُ أَهْلَهُ، وَرَمْيُهُ بِقَوْسِهِ وَنَبْلِهِ، وَمَنْ تَرَكَ الرَّمْيَ بَعْدَ مَا عَلِمَهُ رَغْبَةً عَنْهُ فَإِنَّهَا نِعْمَةٌ تَرَكَهَا أَوْ قَالَ كَفَرَهَا".

**ترجمه:** دعقبة بن عامر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلي دي چه فرمائیل ئې یقینا الله تعالی دیوغشي په وجه باندې درې کسان جنت ته داخلوي یو ددې جوړونکی چه دثواب په اراده ئې جوړوي اوبل ددې ویشتونکي دې او بل هغه کس دې څوک چه نښې ویشتونکي ته په لاس کښې غشې ورکړي پس تاسو دغشو ویشتلو زدکړه اوکړئ اوپه آسونوباندې سورلي کوئ لیکن ماته په اسونوباندې دسورلئ کولوپه نسبت غشي ویشتل ډیر محبوب دي اودین چاته دلوبوکولو اجازت نه ورکوي مګر (ددرې څیزونو) یو خپل اس ته تربیت ورکول دویم دخپل اهل سره توقي کول او په خپله لینده باندې غشي ویشتل اوڅوک چه غشی ویشتل هیرکړي پس دهغه نه چه زده ئې کړي په وجه دبې زاره کیدو نویقینا ده یونعمت پریخودو اویا راوی داسې اوونیل چه ډیونعمت ناشکري ئې اوکړه.

### شرح حدیث

یعنی الله پاک د یو غشی د وجې نه درې کسان جنت ته داخلوی، د غشی جوړولو والا کاریګر کوم چه د دې په جوړولو کښې د خیر او ثواب نیت کوی، دویم غشی جوړونکی لره، دریم منبل یعنی غشی ورکونکی ته، نبل غشی ته وائی، که هغه ورکونکې ئې د خپل ملکیت نه ورکړی، یا ئې د تیکی نه راویستلو سره ورکړی، او د منبل نه مراد هغه هم کیدې شی چه کوم ځائې په نخښه باندې غشی لګیدلې دې یو سړې هغه د هغه ځائې نه

(۱): سنن النسائي/الجهاد ۲٦ (۳۱٤۸)، والخیل ۸ (۳٦۰۸)، (تحفة الأشراف: ۹۹۲۲) (ضعیف)

اوچت کړي او غشي ويشتونکي ته ئې ورکړي.

﴿ وارموا واركبوا ﴾ يعنې د جهاد د تيارئ دپاره د غشو ويشتلو فن هم زده کړئ او شه سوارۍ هم او دا چه تاسو په غشو ويشتلو کښې مهارت حاصل کړئ، زما په نزد زياته غوره دا ده په نسبت د ركوب کښې مهارت حاصلولو دپاره (ځکه چه د رمي نفع زياته عامه ده په نسبت د رکوب) بيا وړاندې فرمائي چه د لهو ولغب يو قسم هم مباح نه دې سوا د درې قسمونو نه، يو اس ته تاديب ورکول يعنې هغه ته تربننګ ورکول او د هغه اصلاح (چه هغه د سورلئ قابل شي)، او د خپلې ښځې سره ملاعبت کول، او دريم غشي ويشتل، د دې غشي ويشتلو نه مراد هغه غشي ويشتل دی کوم چه د نخښې د ويشتلو د مشق په طور کولې شي، يعنې نخښه ويشتل زده کول. والحديث اخرجه النسائي، واخرجه مسلم مختصرا (المنذري ملخصا)

[٢٥١٤]([1]) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ أَبِي عَلِيٍّ ثُمَامَةَ بْنِ شُفَيٍّ الْهَمْدَانِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ الْجُهَنِيَّ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُولُ: "وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ سورة الأنفال آية ٦٠، أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ، أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ، أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ".

**ترجمه:** دعقبة بن عامر نه روايت دې فرمائي چه دنبي ﷺ نه مې اوريدلي دي چه په منبرئې فرمائيل يقينا دالله تعالى ددې قول مراد: «وأعدوا لهم ما استطعتم من قوة» دادې چه نبي ﷺ اوفرمائيل خبردار ددشمن دمقابلې دپاره قوت حاصلول غشي ويشتل دي أوخبردار غشي ويشتل قوت دې اوخبردار غشي ويشتل قوت دې اوخبردار غشي ويشتل قوت دې.

## تشريح

﴿ وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ أَلاَ إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ أَلاَ إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ أَلاَ إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ ﴾ په دې باندې رسول الله ﷺ درې کرته اوفرمائيل چه ﴿ لا ان القوة الرمى ﴾ يعنې الله پاک چه دا فرمائي چه د كفارو سره د مقابلې تيارى اوكړئ ترڅو چه كيدې شي، د دې تيارئ نه مراد غشي ويشتل دی يعنې په دې کښې انسان لره ښه مهارت حاصلول پکار دی، يعنې د طاقت يو خاص او اهم ركن دا دې، مراد انحصار نه دې، كما فى قوله ﴿ الحج عرفة والندم توبة﴾ هسې ددې په تفسير کښې په بذل کښې دتفسيركبيرنه درې څلوراقوال ذکر کړې شوې دی، په بذل کښې ليکلې دی چه آيت كريمه دال دې په دې خبره باندې چه د جهاد دپاره استعداد او تيارى، غشي ويشتل اود وسلې استعمال د فروسيت (مهارت) په ذريعه فرض دې خو فرض كفايه دې، والحديث اخرجه مسلم وابن ماجة قاله المنذرى.

......

[1]: صحيح مسلم/الإمارة ٥٢ (١٩١٧)، سنن ابن ماجه/الجهاد ١٩ (٢٨١٣)، (تحفة الأشراف: ٩٩١١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/تفسير القرآن ٩ (٣٠٨٣)، مسند احمد (١٥٧/٤)، سنن الدارمي/الجهاد ١٤ (٢٤٤٨) (صحيح)

# بَابٌ فِي مَنْ يَغْزُو وَيَلْتَمِسُ الدُّنْيَا

## بيان دهغه کس چه جهاد د مال حاصلولو دپاره کوي

[٢٥١٥] (١) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْحَضْرَمِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنِي بَحِيرٌ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ أَبِي بَحْرِيَّةَ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "الْغَزْوُ غَزْوَانِ فَأَمَّا مَنِ ابْتَغَى وَجْهَ اللَّهِ، وَأَطَاعَ الْإِمَامَ، وَأَنْفَقَ الْكَرِيمَةَ وَيَاسَرَ الشَّرِيكَ، وَاجْتَنَبَ الْفَسَادَ، فَإِنَّ نَوْمَهُ وَنُبْهَهُ أَجْرٌ كُلُّهُ، وَأَمَّا مَنْ غَزَا فَخْرًا وَرِيَاءً وَسُمْعَةً وَعَصَى الْإِمَامَ وَأَفْسَدَ فِي الْأَرْضِ فَإِنَّهُ لَمْ يَرْجِعْ بِالْكَفَافِ".

**ترجمه**: معاذ بن جبل رضي الله عنه دنبی عليه السلام نه روايت کوی چه فرمائيلي يسې دي جهاد په دوه قسمه دي يوخو هغه جهاد دې چه دالله درضاد پاره کيږي، او په دې کښې دغسوره نه غوره مال خرچ کړې شي اود خپل مسلمان ورور سره همدردی اوکړې شي او د شر او فساد نه پرهيز اوکړې شي نو په داسې جهاد کښې اوده کيدل ويښيدل ټول عبادت دې، اوځوک چه جهاد د خپلې لويئ ښکاره کولو د پاره او د خپلې مرتبې ظاهرولو دپاره او د شهرت حاصلولو د پاره کوی او دخپل اميرنافرمانی کوي او په زمکه کښې شر أوفساد خوروي نوداسې کس به دقيامت په ورځ دځان سره هيڅ نيکي رانه وړی.

### شرح حديث

يعني د غزوه دوه قسمونه دی د غازی په لحاظ سره، پس د کوم سړی غرض چه په غزوه سره د الله پاک د رضا حصول وی، او د امام هم هغه تابعداری کوی او خپل محبوب څيز يعنی نفس او مال لره خرچ کړی او د خپل ملګری سره نرمه معامله ساتی (ياسر د ماضی صيغه ده په وزن د قاتل، چه د هغې مصدر المياسرة دې يعنی مساهله نرم سلوک) او د جهګړې او فساد نه پرهيز کوی نو د داسې غازی اوده کيدل پاسيدل ټول د اجر باعث دی، وړاندې په حديث کښې د دې مقابل ذکر شوې دې چه د هغې په باره کښې دی ﴿ فانه لم يرجع بالكفاف ﴾ چه داسې غازی برابر هم نه واپس کيږی، يعنی چه څنګه تلې وو هغه شان هم واپس نه شو بلکه د نقصان سره واپس شو، والحديث اخرجه النسائی قاله المنذری.

[٢٥١٦] (٢) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنِ ابْنِ مِكْرَزٍ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ رَجُلٌ يُرِيدُ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَهُوَ يَبْتَغِي عَرَضًا مِنْ عَرَضِ الدُّنْيَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا أَجْرَ لَهُ، فَأَعْظَمَ ذَلِكَ النَّاسُ وَقَالُوا لِلرَّجُلِ: عُدْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَعَلَّكَ لَمْ تُفَهِّمْهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ رَجُلٌ يُرِيدُ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَهُوَ يَبْتَغِي عَرَضًا مِنْ عَرَضِ الدُّنْيَا، فَقَالَ: لَا أَجْرَ لَهُ، فَقَالُوا لِلرَّجُلِ: عُدْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ: الثَّالِثَةَ، فَقَالَ لَهُ: لَا أَجْرَ لَهُ.

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې يوسړي اووئيل اې دالله رسوله څوک چه دالله په لار

---

[1]: سنن النسائي/الجهاد ٤٦ (٣١٠)، والبيعة ٢٩ (٤٢٠٠)، (تحفة الأشراف: ١١٣٢٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجهاد ١٨ (٤٣) موقوفاً، مسند احمد (٢٣٤/٥)، سنن الدارمي/الجهاد ٢٥ (٢٤٦١) (حسن)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٤٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٠/٢، ٣٦٦) (حسن)

کښې دمال حاصلولودپاره جهاد کوي نودده څه حکم دي نبي ﷺ اوفرمائیل دده دپاره به هیڅ اجرنه وي خلقو داخبره ډیره لویه اوګڼړله اوهغه کس ته ئې اووئیل چه درسول الله نه دوباره تپوس اوکړه کیدې شي چه ته نه ئې پوهه شوې نوهغه کس بیا ووئیل اې دالله رسوله څوك چه دالله په لار کښې دمال حاصلولو دپاره جهاد کوي نودده څه حکم دي نبی ﷺ اوفرمائیل دده دپاره به هیڅ اجرنه وي نودوئ بیا هغه کس ته اووئیل چه درسول الله نه بیا تپوس اوکړئ نوده تري په دریم ځل تپوس اوکړو نوورته ئې اوفرمائیل چه دده دپاره به هیڅ اجرنه وي.

## شرح حدیث

د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه کوم سړې جهاد ته لاړ شي او حال دا وی چه هغه د دنیوی مال او متاع هم طالب وی؟ نو هغه اوفرمائیل ﴿لا اجر له﴾ پس خلقو د رسول الله ﷺ دا جواب ډیر عظیم او دروند اوګڼړلو یعنی دا خبره ډیره سخته ده، د هغوی یقین رانغلو چه د رسول الله ﷺ هم دا مراد دي بلکه خیال ئې دا راغلو چه سائل تپوس صحیح نه دي کړې او رسول الله ﷺ ئې په خپله خبره باندې پوهه کړې نه دې، په دې وجه رسول الله ﷺ داسې جواب ورکړو، لهذا خلقو هغه تپوس کونکی ته اووې چه ته د رسول الله ﷺ نه دوباره تپوس اوکړه، پس هغه دوباره تپوس اوکړو، رسول الله ﷺ دې ځل هم هم هغه جواب اوفرمائیلو، خلقو په هغه باندې اصرار اوکړو چه یو ځل بیا تپوس اوکړه، هغه په دریم ځل تپوس اوکړو نو رسول الله ﷺ دې ځل هم هغه جواب ورکړو، حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه د سائل په سوال کښې دوه احتمالات دی، یو دا چه یو سړې په صورة جهاد کښې روان دې او د جهاد په نوم باندې د کور نه وتلې دې خو مقصود اصلی د هغه دنیا ګټل دی، بل احتمال دا دې چه مقصود خو جهاد دې خو ورسره ئې د مال د حصول نیت دې، په اول صورت کښې به د رسول الله ﷺ په کلام کښې نفی د مطلق ثواب وی، او په دویم صورت کښې به نفی د کمال اجر وی. اهـ

## بَابٌ مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ الْعُلْيَا

### باب دې په بیان د فضیلت د هغه کس کښې چه د دین دغالب کیدو دپاره جنګیږی

[٢٥١٧](1) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى، أَنَّ أَعْرَابِيًّا جَاءَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: إِنَّ الرَّجُلَ يُقَاتِلُ لِلذِّكْرِ، وَيُقَاتِلُ لِيُحْمَدَ، وَيُقَاتِلُ لِيَغْنَمَ، وَيُقَاتِلُ لِيُرَى مَكَانُهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَاتَلَ حَتَّى تَكُونَ كَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ أَعْلَى، فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ".

**ترجمه**: دابوموسی رضی الله عنه نه روایت دې یوبانده چې دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه یوسړې ددې دپاره جهاد کوي چه زه دې په خلقو کښې یاد کړې شم

(1): صحیح البخاري/العلم ٤٥ (١٢٣)، الجهاد ١٥ (٢٨١٠)، الخمس ١٠ (٣١٢٦)، التوحید ٢٨ (٧٤٥٨)، صحیح مسلم/الإمارة ٤٢ (١٩٠٤)، سنن الترمذي/فضائل الجهاد ١٦ (١٦٤٦)، سنن النسائي/الجهاد ٢١ (٣١٣٨)، سنن ابن ماجه/الجهاد ١٣ (٢٧٨٣)، (تحفة الأشراف: ٨٩٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٢/٤، ٣٩٧، ٤٠٢، ٤٠٥، ٤١٧) (صحیح)

اوددې دپاره چه زما دې تعريف اوکړې شي اوددې دپاره چه غنيمت حاصل کړم اوددې دپاره چه زمامرتبه په خلقوکښې او پيژندلې شي، نبی ﷺ اوفرمائيل څوك چه ددې دپاره جنګيږي چه دالله دين بلند اوبالا شي نودا جهاد في سبيل الله دې.

## شرح حديث

﴿ يری ﴾ د مضارع معروف صيغه ده د ﴿ اراءة ﴾ نه، په معنی د ښودلو، او د مکان معنی ده منزلت او مرتبه، يعنی قتال کوی د دې دپاره چه د خپل شجاعت او بهادرئ مرتبه خلقو ته اوښائی نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کوم سړې قتال د دې دپاره کوی چه د الله پاک کلمه اوچته شی، دا قتال په اصل کښې د الله پاک دپاره دې، او په صحيح معنی کښې جهاد دې، په بذل کښې حافظ نقل کړې دی چه د کلمة الله نه مراد دعوة الله الی الاسلام دې، او عينی په (ص ١٢٨ ج ١) په شرح د بخاری کښې په دې باندې اضافه ده، وقيل : هی قوله لا اله الا الله.

## د اخلاص فی العمل مراتب

بيا علامه عينی د ﴿ ما يستفاد من الحديث ﴾ د لاندې ليکلې دی چه د دې حديث نه معلومه شوه چه د عبادت د معتبر کيدو دپاره اخلاص شرط دې، پس چه د کوم سړی د عمل باعث چه صرف دنيا وی نو د داسې سړی په عمل باطليدو کښې هيڅ شک نشته، او د کوم سړی د عمل مقصد چه دواړه وی دينی هم او دنيوی هم، پس که باعث دينی اقوی وی نو په دې صورت کښې د جمهورو په نزد هغه عمل معتبر دې، او د حارث محاسبی رائې دا ده چه دا عمل هم باطل دې د حديث الباب نه استدلال کولو سره، او دريمه رائې په دې کښې د محمد بن جرير طبری رحمه الله ده چه که عمل ابتداء او بناء د اخلاص سره وی نو هغه معتبر دې بيا که روستو په دې کښې عجب وغيره دنيوی غرض راشی نو هغه مضر نه دې. اه

دعوة الی الاسلام ئې په دې وجه اووې چه په اصل کښې د اسلام طرف ته دعوت ورکونکی خو الله پاک دې خو براه راست نه بلکه علی لسان الانبياء عليهم السلام، انبياء عليهم السلام الله پاک هم د دې دپاره مبعوث کړې وو، وفی التنزيل العزيز ﴿ والله يدعو الی دار السلام ﴾.

[٢٥١٨](1) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَمْرٍو، قَالَ: سَمِعْتُ مِنْ أَبِي وَائِلٍ حَدِيثًا أَعْجَبَنِي فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** دعمرو نه روايت دې فرمائی چه ما دخپل پلار وائل نه يو حديث واوريدو چه زه ئې په تعجب کښې واچولم اوباقی حديث ئې دتير شوي روايت په شان بيان کړو.

[٢٥١٩](2) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ حَاتِمٍ الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي الْوَضَّاحِ، عَنْ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ حَنَانِ بْنِ خَارِجَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو: يَا

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٨٩٩٩) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٦١٩) (ضعيف)

رَسُولَ اللّٰهِ أَخْبِرْنِي عَنِ الْجِهَادِ وَالْغَزْوِ، فَقَالَ: "يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو إِنْ قَاتَلْتَ صَابِرًا مُحْتَسِبًا بَعَثَكَ اللّٰهُ صَابِرًا مُحْتَسِبًا، وَإِنْ قَاتَلْتَ مُرَائِيًا مُكَاثِرًا بَعَثَكَ اللّٰهُ مُرَائِيًا مُكَاثِرًا، يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو عَلَى أَيِّ حَالٍ قَاتَلْتَ أَوْ قُتِلْتَ بَعَثَكَ اللّٰهُ عَلَى تِلْكَ الْحَالِ.

**ترجمه:** دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه ماعرض اوکړو اې دالله رسوله جهاد اوغزوه څه ته وائی نبی عليه السلام اوفرمائيل اې عبدالله جهاد دادې چه ته په داسې حال کښې جنګيدونکې يې چه صبرکونکې يې دثواب په اراده باندې نوالله تعالى به دې صبرکونکى او دثواب دطلب ګار په حالت کښې راپورته کړي اوکه چرې ته جنګ کوې دځان ښودلو دپاره اودمال ډيرولو دپاره نوالله تعالى به دې راپورته کړي په همدغه حال باندې، اې عبدالله ته چه په کوم حال کښې هم جنګ اوکړې او يا شهيد شې نوالله تعالى به دې په همدغه حال کښې راپورته کړي.

## بَابٌ فِي فَضْلِ الشَّهَادَةِ

### د شهادت د فضيلت بيان

[٢٥٢٠] (١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَمَّا أُصِيبَ إِخْوَانُكُمْ بِأُحُدٍ جَعَلَ اللّٰهُ أَرْوَاحَهُمْ فِي جَوْفِ طَيْرٍ خُضْرٍ، تَرِدُ أَنْهَارَ الْجَنَّةِ تَأْكُلُ مِنْ ثِمَارِهَا وَتَأْوِي إِلَى قَنَادِيلَ مِنْ ذَهَبٍ مُعَلَّقَةٍ فِي ظِلِّ الْعَرْشِ"، فَلَمَّا وَجَدُوا طِيبَ مَأْكَلِهِمْ وَمَشْرَبِهِمْ وَمَقِيلِهِمْ قَالُوا: مَنْ يُبَلِّغُ إِخْوَانَنَا عَنَّا أَنَّا أَحْيَاءٌ فِي الْجَنَّةِ نُرْزَقُ لِئَلَّا يَزْهَدُوا فِي الْجِهَادِ وَلَا يَنْكُلُوا عِنْدَ الْحَرْبِ، فَقَالَ اللّٰهُ سُبْحَانَهُ: أَنَا أُبَلِّغُهُمْ عَنْكُمْ، قَالَ: فَأَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَمْوَاتًا سورة آل عمران آية ١٦٩ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ.

**ترجمه:** دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلي دی هرکله چه ستاسو مسلمانانو ورونړه په احد کښې شهيدان شول نوالله تعالى دهغو روحونه دشنو مرغوپه ججورو کښې واچول چه دجنت نهرونوته ورځی اودجنت ميوې خوری اودعرش دسورې لاندې په قنديلونوکښې اوسی دوی چه کله دخپل خوراك څښاك اوسکون خوشحالي حاصله کړه نووئې وئيل آيا څوك شته داسې چه زمونږه خبر زمونږه پاتې شوو رونړوته ورسوي چه مونږ په جنت کښې ژوندی يو اوخوراك کوو ترڅوچه هغوی هم دجنت په حاصلولوکښې بې پرواهي اونکړي اوجهاد په وخت کښې سستي اونکړي الله تعالى اوفرمائيل چه دغه خلقو ته به خبر زه اورسوم اودا آيت نازل شو «وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَمْوَاتًا» څوک چه دالله تعالى په لاره کښې شهيد کړې شوهغوی مړ مه ګنړئ، ،(سورة آل عمران: ١٦٠)

### د حديث مضمون

په دې حديث کښې رسول الله صلى الله عليه وسلم خپلو اصحابو ته خطاب فرمائيلو سره الله پاک چه کومه معامله د احد د شهيدانو سره کړې وه هغه بيان فرمائيلې ده، او رسول الله صلى الله عليه وسلم د صحابه کرامو سره د دې څيز ذکر خپله د هغه شهداء احد په خواهش او فرمائش باندې کړې دی،

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٦١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦٦٧١) (حسن)

لکه چه وړاندې په د حديث د ترجمه نه معلومه شی بهرحال؛ رسول اللهﷺ فرمائی چه کوم خلق په احد کښې شهيدان شو نو الله پاک د هغوی روحونه د جنت د شنو مارغانو په ججورو کښې کيخودل چه هغوی د جنت په باغونو او نهرونو کښې سيل اوکړی، د هغې د ميوو نه فائده اوچته کړی، هغه داسې مارغان دی چه د هغې د قيام ځائې ډير ښکلی د سرو زرو قنديلونه دی کوم چه د عرش د لاندې رازوړند دی، وړاندې په حديث کښې دی چه کله هغه د احد شهيدانو يعنی د هغوی روحونو هلته په جنت کښې د خوراک څکاک او ارام کولو، هر قسم سهولت او خوشگوار حالت اوکتلو نو د هغوی زړه دا اوغوښتله چه زمونږ د دې خوشحالئ او راحت خبر زمونږ رونړو ته هم څوک اورسوی، يعنی تر اوسه پورې په دنيا کښې دی، د دې دپاره چه هغوی جهاد او قتال فی سبيل الله لره، چه د هغې په وجه باندې مونږ ته دا خوشحالی او نيک انجام نصيب شوې دې په دې کښې سستی او بې رغبتی اونکړی چه کله د هغه شهيدانو په زړه کښې دا خيال راغلو، په جنت کښې کيدو سره، نو الله پاک اوفرمائيل چه ستاسو دا خبره به زه هغوی ته اورسوم، يعنی ستاسو د نبی په ذريعه، پس الله پاک په خپل نبی باندې دا ايتونه نازل کړل : ﴿ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ۞ فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ مِنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾

## د حديث نه د ملحدينو استدلال او د هغې جواب

د دې حديث نه بعض ملحدينو کوم چه د تناسخ او انتقال ارواح قائل دی (کوم ته چه اوا گون او جنم بدلی هم وئيلې شی) چه د هغې حاصل دا دې چه ثواب او عقاب صرف د انتقال ارواح نوم دې که انسان نيک وی نو د هغه روح کښې د يو ښه حيوان په شکل کښې دنيا ته راوليږلې شی او د بدکار روح د يو بد حيوان په شکل کښې دنيا ته راليږلې شی، يعنی هغه عقيده کومه چه د اهل اسلام په نزد قطعا باطل د دې د علماء حقه د طرف نه دا جواب ورکړې شوې دې چه په دې حديث کښې يعنی ﴿ جَعَلَ اللَّهُ أَرْوَاحَهُمْ فِي جَوْفِ طَيْرٍ خُضْرٍ ﴾ کښې شارحينو دوه احتمالات ليکلې دی، يو دا چه په جنتی مارغانو کښې د هغوی په خيټو کښې د هغوی روحونو لره محفوظ کول مراد دی لکه يو څيز په ډبی کښې محفوظ کولې شی، بل احتمال دا دې چه هغه روحونو لره د هغه مرغانو په بدن کښې دننه پوکلې شی چه په هغې سره هغوی جاندار شی، که اول احتمال واخستلې شی نو بيا خو د تناسخ سره د دې هيڅ تعلق نشته او هيڅ د اشکال خبره پکښې نشته، او که احتمال ثانی اختيار کړې شی نو په دې کښې اگر چه انتقال د روح د يو بدن نه بل بدن ته دې خو په دې عالم کښې نه بلکه په عالم اخرت کښ، لهذا استدلال بې محله دې، ځکه چه ملحدين خو د اخرت قائل نه دی. **والحديث اخرجه احمد، والطبری فی التفسير، والحاکم فی المستدرک، وزاد فی الدر المنثور، لهناد وعبد بن حميد، وابن المنذر والبيهقی فی الدلائل، واخرجه مسلم معناه (ملخصا من المنذری واحمد شاکر)**

.........

[۲۵۲۱](1)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا عَوْفٌ حَدَّثَتْنَا حَسْنَاءُ بِنْتُ مُعَاوِيَةَ الصَّرِيمِيَّةُ، قَالَتْ: حَدَّثَنَا عَمِّي، قَالَ: قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ فِي الْجَنَّةِ؟ قَالَ: النَّبِيُّ فِي الْجَنَّةِ وَالشَّهِيدُ فِي الْجَنَّةِ وَالْمَوْلُودُ فِي الْجَنَّةِ وَالْوَئِيدُ فِي الْجَنَّةِ".

**ترجمه**: حسناء بنت معاويه دخپل تره نه روايت کوی فرمائی چه مادنبی علیه السلام په خدمت کښې عرض اوکړو چه اې دالله رسوله جنت ته به څوک داخليږي؟ نبی علیه السلام اوفرمائيل په جنت کښې به پيغمبران وي اوجنت ته به شهيدان داخليږي اوجنت ته به هغه ماشومان داخليږي څوك چه دپيدائش (ماشوموالی) په وخت کښې مړه شي اوجنت ته به هغه کسان داخليږي څوك چه ژوندي ښخ کړې شوي وي.

## تشريح

د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه جنت ته به څوک څوک ځی؟ هغه اوفرمائيل "نبی" مراد جنس دې يعنی انبياء او شهيدان، د دې نه مراد مومن دې کما قال تعالی ﴿ وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ أُولَٰئِكَ هُمُ الصِّدِّيقُونَ وَالشُّهَدَاءُ عِنْدَ رَبِّهِمْ ﴾ هغه به جنت کښې دي او مولود په جنت کښې، د دې نه مراد هر هغه ماشوم دې کوم چه د بلوغ او حنث نه مخکښې وفات شي او وې فرمائيل چه وئيد به هم په جنت کښې وی يعنی کوم چه ژوندي ښخ کړې شوې وی.

علامه قرطبی فرمائی چه ظاهره ده چه د دې نه هر هغه ماشوم مراد دې کوم چه قريب العهد من الولادة وی، که اولاد المسلمين نه يا کفارو نه وی. اهـ من البذل، زه وايم، د اولادکفار مسئله مشهوره اختلافی ده، د سنن ابی داؤد په اخير کښې دکتاب شرح السنة د لاندې "باب فی ذراری المشرکين" په عنوان سره راروان دې، په دې حديث کښې "وئيد" ته جنتی وئيلې شوې دې په دې کښې دا اشکال دې چه دا د حديث خلاف دې کوم چه وړاندې خپله هم په دې کتاب کښې راروان دی، الوائدة والموؤدة فی النار... د دې يو جواب دا ورکړې شوې دې چه د ﴿ الموؤدة ﴾ صله محذوف ده د دې نه مراد ﴿ الموؤدة لها ﴾ ده چه د هغې نه مراد د ﴿ مؤودة ﴾ مور ده، لهذا وائده يعنی قابله (دائی) چه څنګه به هغه د کفر د وجې نه جهنم ته ځی، يعنی ژوندۍ دفن کونکې، هم دغه شان ﴿ مؤودة لها ﴾ يعنی د چا دپاره او د چا په حکم سره چه هغه ښخه کړې شوې ده يعنی د هغه ماشومې مور کافره هغه به هم جهنم ته ځی.

# بَابٌ فِي الشَّهِيدِ يُشَفَّعُ

## د شهيد د شفاعت قبليدو بيان

[۲۵۲۲](2)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ رَبَاحٍ الذِّمَارِيُّ، حَدَّثَنِي عَمِّي نِمْرَانُ بْنُ عُتْبَةَ الذِّمَارِيُّ، قَالَ: دَخَلْنَا عَلَى أُمِّ الدَّرْدَاءِ، وَنَحْنُ أَيْتَامٌ فَقَالَتْ: أَبْشِرُوا فَإِنِّي سَمِعْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُشَفَّعُ الشَّهِيدُ فِي سَبْعِينَ مِنْ أَهْلِ بَيْتِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: صَوَابُهُ رَبَاحُ بْنُ الْوَلِيدِ.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٥٨، ٤٠٩) (صحيح)
(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٩٩٩) (صحيح)

**ترجمه:** دنمران بن عتبه ذماري نه روايت دې فرمائي. چه مونږ دام الدرداء کره لاړو او مونږه يتيمان وو هغې اووئيل خوشحاله شئ يقناً ماداابوالدرداء نه اوريدلي دی چه وئيل ئې نبی ﷺ فرمائيلي دي دشهيد شفاعت به داويا کسانودباره قبلولی شي دده د کورنۍ نه. ابوداود وائی صحيح لفظ رباح بن وليد دې.

## تشريح

﴿ يُشَفَّعُ الشَّهِيدُ فِي سَبْعِينَ مِنْ أَهْلِ بَيْتِهِ ﴾ يعنی د شهيد په سفارش باندې د هغه کورنۍ د اويا کسانو مغفرت کولې شي.

# بَابٌ فِي النُّورِ يُرَى عِنْدَ قَبْرِ الشَّهِيدِ

## دشهيدانو په قبرونو د نُور ليدو بيان

[۲۵۲۳] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ الْفَضْلِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ رُومَانَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: لَمَّا مَاتَ النَّجَاشِيُّ كُنَّا نَتَحَدَّثُ أَنَّهُ لَا يَزَالُ يُرَى عَلَى قَبْرِهِ نُورٌ.

**ترجمه:** دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه کله نجاشي دحبشي بادشاه وفات شو نوخلقو به مونږ ته وئيل چه دهغه په قبرباندې هميشه نور ليدلې شي.

## تشريح

په حديث الباب کښې دی، سيده عائشه رضي الله عنها فرمائی چه کله شاه حبشه سيدنا نجاشی رضي الله عنه وفات شو، ښخ کړې شو نو په مونږ خلقو کښې تر ډيرو ورځو پورې دا خبره مشهوره وه چه د هغوی په قبر باندې يو نور او رڼړا ښکاره کيږی.

د دې حديث په ظاهره کښې د ترجمه سره مطابقت نشته ځکه چه نجاشی شهيد شوې خو نه دې، پس کيدې شی هغه شهيد حکمی وی، د دې نجاشی ذکر او څه حال زمونږ په نزد دلته "کتاب الطهارة" د "مسح علی الخفين" په باب کښې تير شوې دې.

[۲۵۲۴] ([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، قَالَ: سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ مَيْمُونٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رُبَيِّعَةَ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ خَالِدٍ السُّلَمِيِّ، قَالَ: آخَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ فَقُتِلَ أَحَدُهُمَا، وَمَاتَ الْآخَرُ بَعْدَهُ بِجُمُعَةٍ أَوْ نَحْوِهَا فَصَلَّيْنَا عَلَيْهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا قُلْتُمْ فَقُلْنَا: دَعَوْنَا لَهُ، وَقُلْنَا: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَأَلْحِقْهُ بِصَاحِبِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَأَيْنَ صَلَاتُهُ بَعْدَ صَلَاتِهِ وَصَوْمُهُ بَعْدَ صَوْمِهِ؟" شَكَّ شُعْبَةُ فِي صَوْمِهِ وَعَمَلُهُ بَعْدَ عَمَلِهِ إِنَّ بَيْنَهُمَا كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ.

**ترجمه:** دعبيد بن خالد السلمي رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ ددوه کسانو په مينځ کښې اخوت قائم کړونو په دوی دواړوکښې يو کس ووژلې شو اويوه هفته پس بل هم مړشو مونږ درباندې جنازه اوکړله نونبی ﷺ اوفرمائيل تاسوڅه ووئيل؟ مونږ ورته ووئيل چه مونږ دې مړي ته دعا اوکړه اوداموووئيل چه اې الله ده ته مغفرت اوکړې اودخپل ملګري سره ئې يو ځائې کړي نونبی ﷺ اوفرمائيل تاسوداووئيل چه ددې کس مونځونه څه شول

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۳۵۶) (ضعيف)

[2]: سنن النسائي /الجنائز ۷۷ (۱۹۸۷)، (تحفة الأشراف: ۹۷۴۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵۰۰/۳، ۲۱۹/۴) (صحيح)

کوم چه د خپل ملګري د شهادت نه پس ادا کړي دي؟ او د ده روژې څه شوې کومې چه ده د خپل ملګري د شهادت نه پس نیولې دي او د ده نور اعمال څه شول کوم چه ده د هغه د مرګ نه پس کړي دي؟ یقینا په دوی دواړو کښې دومره فرق دي څومره چه په زمکه او اسمان کښې فرق دي شعبه ته په (صومه بعد صومه) او په (عمله بعد عمله) کښې شک شوې دې.

**تشریح:** د حدیث مضمون واضح دې چه رسول الله ﷺ د دوه صحابه کرامو ترمینځه عقد مواخاة او رورولي قائم کړې وه چه د هغوی نه یو خو د الله پاک په لاره کښې قتل کړې شو او بل یوه هفته پس په خپله بستره باندې طبعي مرګ باندې مړ شو، چه کله مونږ په هغه بل سړي باندې د جنازې مونځ اوکړو هغه مونږ نه د جنازې نه پس تپوس اوکړو چه تاسو د هغه دپاره څه دعا اوکړه ﴿ قلنا اللهم اغفر له والحقه بصاحبه ﴾ "چه مونږ په مونځ کښې د هغه دپاره دعا مغفرت اوکړه او دا چه الله پاک هغه لره د خپل ملګري درجې ته اورسوی، کوم چه شهید وو او دې د هغه سره ملاو شی، په دې اوریدلو سره هغه دا اشکال اوفرمائیل ﴿ فَأَيْنَ صَلاَتُهُ بَعْدَ صَلاَتِهِ وَصَوْمُهُ بَعْدَ صَوْمِهِ ». شَكَّ شُعْبَةُ فِي صَوْمِهِ : « وَعَمَلُهُ بَعْدَ عَمَلِهِ إِنَّ بَيْنَهُمَا كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ ﴾ چه دا تا څنګه دعا اوکړه! د هغه روستو سړي مونځونه او روژې به چرته ځي، او د هغه هغه اعمال کوم چه هغه په یوه هفته کښې کړي دی، د دې دواړو ترمینځه د زمکې او اسمان فرق دې.

د دې حدیث نه د مونځ او روژې وغیره اعمال فضیلت اندازه لګولې شی، بله دا چه د عمل صالح سره د طول عمر فضیلت ثابتیږی پس د ترمذی په روایت کښې دی ﴿ خیر الناس من طال عمره وحسن عمله ﴾

## د حدیث الباب په شان نور روایات مختلفه

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه دا قسم روایات مختلف طور راغلي دی، د موطاء په روایت کښې د سعد بن ابی وقاص نه روایت دې ﴿ کان رجلان اخوان فهلک احدهما قبل صاحبه باربعین لیلة ﴾ بیا وړاندې روایت کښې دی چه د رسول الله ﷺ په وړاندې د اولنی فضیلت ذکر کړې شو چه د هغه وفات څلویښت ورځې مخکښې شوې وو (د هغه د څه خاص نیکئ او صلاح د وجې نه) نو رسول الله ﷺ د اولنی فضیلت بیانونکو باندې نکیر اوفرمائیلو هغه دا چه تاسو ته څه معلومه ده هغه بل سړي چه څلویښت ورځو پورې کوم مونځونه کړي دی هغې د هغه مرتبه چرته اورسوله، او د مسند احمد په روایت کښې یوه بله واقعه ذکر شوې ده چه حضرت طلحه بن عبیدالله په نزد دوه یمنی سړي میلمانه شو چه په هغې کښې یو د رسول الله ﷺ سره په جهاد کښې شهید شو، په هغوی کښې دویم سړي یو کال پس پورې ژوندې پاتې کیدو سره په خپله بستره باندې مړ شو، سیدنا طلحه ؓ په خوب کښې اولیدل چه دا بل سړي غیر شهید د هغه بل سړي نه جنت ته ډیره زمانه مخکښې داخل شو، هغوی د دې خپل خوب ذکر رسول الله ﷺ ته اوکړو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دې دویم سړي په یو کال کښې اتلس سوه مونځونه اوکړل، او د یو رمضان روژې ئې اونیولې. اهـ من الاوجز (ص ۲۲۲ ج۲) وحدیث الباب اخرجه النسائی قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْجَعَائِلِ فِي الْغَزْوِ

### په اجرت باندې د جهاد کولو بیان

﴿جعائل﴾ جمع د جعیله جعاله، یعني اجرت او مزدوري، یعني اجرت اخستلوسره جهاد کول.

[۲۵۲۵]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا. ح حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا وَأَنَا لِحَدِيثِهِ أَتْقَنُ، مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ الْمَعْنَى، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ سُلَيْمَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ جَابِرٍ الطَّائِيِّ، عَنِ ابْنِ أَخِي أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "سَتُفْتَحُ عَلَيْكُمُ الْأَمْصَارُ، وَسَتَكُونُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ تُقْطَعُ عَلَيْكُمْ فِيهَا بُعُوثٌ فَيَكْرَهُ الرَّجُلُ مِنْكُمُ الْبَعْثَ فِيهَا فَيَتَخَلَّصُ مِنْ قَوْمِهِ ثُمَّ يَتَصَفَّحُ الْقَبَائِلَ يَعْرِضُ نَفْسَهُ عَلَيْهِمْ يَقُولُ مَنْ أَكْفِيهِ بَعْثَ كَذَا مَنْ أَكْفِيهِ بَعْثَ كَذَا أَلَا وَذَلِكَ الْأَجِيرُ إِلَى آخِرِ قَطْرَةٍ مِنْ دَمِهِ".

**ترجمه:** دابوایوب انصاری رضی الله عنه نه روایت دی چه نبی علیه السلام نه ئې اوریدلي دي چه فرمائیل ئې، نزدې ده چه تاسوبه ډېر ښارونه فتح کړئ او لښکرونه به جمع کړې شي او په دې لښکرونوکښې به په تاسو باندې فوجونه مقررکړې شي یعني هر څوك به د خپل قوم نه په لښکر کښې حصه ورکوي، نویوکس به بغیراجرته جهاد ته تلل نه خوښوي نودغه کس به ددې قبلې نه تختیدوته مجبورشي یعني دجهاد نه به او تختي اودنورو قبیلوسره به په داسې حال کښې یو ځائې شي چه دې به وائې اياڅوك شته داسې چه ماته دلښکرد خدمت په بدل کښې اجرت راکوي او ما مزدور اوساتي؟ څوك به ما دځان سره مزدور اوساتي چه زه دهغه په لښکر کښې کار کوم اوهغه به زما خرچ برداشت کوي؟ خبردار دغه کس به د خپلې وينې د آخرى لمحې پورې مزدور وي.

### شرح حدیث

رسول الله صلی الله علیه وسلم د پیش ګوئي په طور فرمائي چه په تاسو باندې به ډېر ښهرونه او مقامات فتح کولې شي، یعني مسلمانان به په مزه مزه جهاد کولو سره ښهرونو لره فتح کوی د هغوی تعداد به زیاتیږي لکه چه وړاندې فرمائي، او موندلې به شي لوئې لوئې لښکرې او لوئې لوئې جماعتونه او قبائل د مسلمانانو چه په هغې کښې به د جهاد تلو دستې مقرر کولې شي، مثلاً فلانې ښهر چه په هغې کښې دومره خلق اوسیږي په هغې کښې به جهاد ته تلو دپاره دومره خلق نومونه لیکی، او په فلانی ښهر کښې دومره مسلمان اباد دی په دې کښې دومره سړی جهاد ته د تلو دپاره نومونه لیکی، وړاندې فرمائي چه بعض خلق به داسې هم وی بعض قبائل کښې هغه بغیر د اجرت نه جهاد کښې تلل نه غواړي (اوس که هغه سړې خپل ښهر ته اوسیدل غواړي او هلته اوسیدو سره د هغه نوم راغلو نو ظاهره خبره ده چه هغه به بغیر د اجرت نه ځی) په دې وجه هغه سړې دا کوی چه د خپلې قبیلې او ابادئ نه وتلو سره بلې ابادئ کښې خپل ځان پیش کوی او وائي چه ﴿من اکفه بعث کذا﴾ چه د هغې مطلب دا دې چه که په تاسو کښې د چا جهاد ته د تلو دپاره نوم راغلو او هغه جهاد کښې تلل نه غواړي نو زه دهغه د طرف نه کافی کیدې شم، یعني د هغه نه اجرت اخستلو سره د هغه په ځائې جهاد کښ، زه

---

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٤٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٣/٥) (ضعيف)

تلې شم د داسې سړي په باره کښې رسول الله ﷺ فرمائي: ﴿الا وذلک الاجير الى اخر قطرة من دمه﴾ داسې سړې به د خپلې وينې د اخرى څاڅکي پورې (يعنى که وفات شي) د اجير بللو مستحق وی نه شهيد، په دې حديث کښې اجرت اخستلو سره په جهاد کښې تلونکی سړی نه د فضيلت او ثواب نفی ده او په دې باندې هيڅ وعيد نشته.

## اخذ الاجرة على الجهاد کښې مذاهب ائمه

او مسئله د اجرت على الجهاد مختلف فيه ده، عند الحنفية والمالكية يجوز الاخذ مع الكراهة، ويجوز مطلقا عند احمد، ولا يجوز مطلقا عند الشافعى، يوه مسئله خو دا شوه: يعنى اخذ الاجرة على الجهاد، بله مسئله دلته د غنيمت د حصې ده چه د داسې سړی دپاره کوم چه معاوضه اخستلو سره په جهاد کښې شرکت کوی د هغه دپاره به په مال غنيمت کښې حصه وی يا نه؟ د امام احمد په نزد به نه وی د هغه په نزد اجرت اخستل جائز دی او هغه ورته ملاؤ شو، د امام شافعی رحمه الله په نزد به د دې سړی دپاره حصه مطلقا وی، او چونکه د هغوی په نزد اجرت اخستل جائز نه دی، لهذا په هغه باندې به اجرت لره واپس کول واجب وی او د احنافو او مالکيانو مسلک دا دې چه د اجير دوه قسمونه دی، ﴿اجير للخدمة، اجير للقتال﴾ د اجير للخدمة مطلب دا دې چه يو سړې جهاد ته تلونکې يو بل سړی لره د خپل ځان سره د جهاد دپاره بوځی د خپل خدمت دپاره، هم د دې نه د اجير للقتال مطلب فهم شو چه د خپل خدمت دپاره نه بلکه کفارو سره د جهاد دپاره.... ئې د خپل ځان سره بوځی يا اجرت ورکولو سره ئې په خپل ځائې باندې ليږی، پس که اجير للخدمة دې د هغه دپاره به د احنافو او مالکيانوپه نزد په غنيمت کښې حصه وی او که اجير للقتال وی نو د هغه دپاره حصه نشته.

## بَابُ الرُّخْصَةِ فِي أَخْذِ الْجَعَائِلِ

### په جهاد باندې د اجرت اخستلو د جواز بيان

[۲۵۲۶][1] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَسَنِ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ. ح وحَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنِ ابْنِ شُفَيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لِلْغَازِي أَجْرُهُ وَلِلْجَاعِلِ أَجْرُهُ وَأَجْرُ الْغَازِي".

**ترجمه:** دعبدالله بن عمرونه روايت دې چه نبی ﷺ فرمائيلی دی دغازي او مجاهد دپاره ده دجهاد اجردې او دجهاد دپاره مال ورکونکي کس او مجاهد دواړه داجر مستحق دی.

## د شرح حديث تحقيق

په دې حديث کښې د "جاعل" شرح بذل کښې معين للغازی سره کړی ده يعنی په جهاد کښې د تلو دپاره مدد کونکې، د سفر ساز وسامان، اسباب جهاد وغيره د نظم په ذريعه لهذا د حديث مطلب دا شو چه د غازی دپاره خو د هغه د غزا ثواب او جاعل يعنی د بندوبست کونکی دپاره د هغه خپل اجر يعنی اجر انفاق او د غازی اجر هم ځکه چه دا جاعل د غازی د غزوه سبب جوړ شوې دې، لهذا د جاعل دپاره دوه اجرونه شو او د غازی

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۸۸۲۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۷٤/۲) (صحيح)

دپاره یو اجر، خو په دې مطلب کښې دا اشکال دې چه دا ابواب خو د اخذ اجرت په سلسله کښې دی، په دې صورت کښې اخذ اجرت چرته بیا موندلې شو بلکه په دې صورت کښې یو غازی دې او بل د غازی اعانت کولو والا چه د هغه دپاره د بیان رخصت حاجت نشته، لهذا دا دې اوئیلې شی چه د جاهل نه مراد دلته په جهاد کښې تلونکی ته اجرت ورکولو والا، او د غازی نه مراد د جاعل مقابل مجتعل یعنی اجرت اخستلو والا، او په اول ځائې کښې د اجر نه مراد اجر دنیوی او په دویم ځائې کښې د اجر نه مراد اجر اخروی دې، لهذا د حدیث مطلب دا شو د اجرت دپاره په جهاد کښې د تلو والا دپاره د دې هغه اجرت دې او د اجرت ورکونکی دپاره دوه اجرونه دی، یو اجر انفاق، بل د غازی د غزوه ثواب ځکه چه هغه سبب جوړ شوې دې د غازی د غزوې په دې صورت کښې دا حدیث به د ترجمة الباب مطابق شی، د حدیث نه د اخذ اجرت جواز ثابتیږی خو د ثواب نفی، والله تعالی اعلم.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَغْزُو بِأَجِيرٍ لِيَخْدُمَ

### باب په جهاد کښې د ځان سره دخدمت دپاره څوک بوتلل

په دې باب کښې د اجیر للخدمة بیان دې او په تیرشوی باب کښې د اجیر للقتال بیان وو، ځرنګه چه د تقابل نه معلومیږی.

[٢٥٢٧] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَاصِمُ بْنُ حَكِيمٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي عَمْرٍو السَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الدَّيْلَمِيِّ، أَنَّ يَعْلَى ابْنَ مُنْيَةَ، قَالَ: آذَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْغَزْوِ وَأَنَا شَيْخٌ كَبِيرٌ لَيْسَ لِي خَادِمٌ، فَالْتَمَسْتُ أَجِيرًا يَكْفِينِي وَأُجْرِي لَهُ سَهْمَهُ، فَوَجَدْتُ رَجُلًا فَلَمَّا دَنَا الرَّحِيلُ أَتَانِي فَقَالَ: مَا أَدْرِي مَا السُّهْمَانِ وَمَا يَبْلُغُ سَهْمِي فَسَمِّ لِي شَيْئًا؟ كَانَ السَّهْمُ أَوْ لَمْ يَكُنْ فَسَمَّيْتُ لَهُ ثَلَاثَةَ دَنَانِيرَ، فَلَمَّا حَضَرَتْ غَنِيمَتُهُ أَرَدْتُ أَنْ أُجْرِيَ لَهُ سَهْمَهُ فَذَكَرْتُ الدَّنَانِيرَ، فَجِئْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ لَهُ أَمْرَهُ فَقَالَ: "مَا أَجِدُ لَهُ فِي غَزْوَتِهِ هَذِهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ إِلَّا دَنَانِيرَهُ الَّتِي سَمَّى".

**ترجمه:** دعبدالله بن دیلمي نه روایت دې چه یعلی بن منیة وئیلي دي چه نبی ﷺ خلقوته دجهاد دتلو دپاره اعلان اوکړو اوزه ډیر بوډا اوم اوزما سره دخدمت دپاره څوک خادم هم نه وو نوزه دیومزدور په تلاش کښې شوم څوک چه به زما ضرورتونه پوره کوي اوزه به دځپل غنیمت دحصې نه هغه ته یوه حصه ورکوم بهرحال ماته یومزدور ملاوشو کله چه دروانیدو وخت راغې نوهغه مزدور ماته راغې اووئې وئیل ماته معلومه نه ده چه دمال غنیمت حصه به څومره وي اوزماپه حصه کښې به څه راځي ته زما دپاره اجرت مقررکړه که غنیمت ملاوشي اوکه ملاو نه شي، نومادهغه دپاره درې دیناره مقررکړل کله چه مال غنیمت حاصل شو نومادې مزدورته دهغه حصه ورکول اوغوښتل خوبیا مادافکراوکړو چه دده مزدوري خودرې دیناره مقررشوي وه زه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او پوره واقعه مې ورته بیان کړه نبی ﷺ اوفرمائیل چه په دنیا اوآخرت کښې ددغه سړي دجهاد بدله صرف همدغه درې دینارونه دي.

(¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٨٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٣/٤) (صحيح)

## د حدیث مضمون

يعلى بن منيه رضي الله عنه کوم چه مشهور صحابی دې چه رسول الله ﷺ د يوې غزوې اعلان اوفرمائيلو يعنى د دې دپاره د وتلو (چه په هغې کښې ما هم د وتلو اراده اوکړه خو) زه بوډا اوم او يو خادم ما سره وو نه؛ نو ما يو داسې اجير لټولو کوم چه زما د کارونو دپاره کافی شی په حيثيت د خادم کيدو په داسې طريقه چه زه خپله حصه هغه ته ورکړم، نو ماته يو سړې ملاؤ شو او چه کله د تلو وخت رانزدې شو نو هغه ماته راغلو او وې وئيل چه دا خبره خو بالکل شوې نه ده چه په غنيمت کښې په زما څه حصه وی. لهذا ته ما سره اجرت متعين کړه، که په غنيمت کښې حصه حاصله شی يا نه شی، نو ما هغه سره درې دنياره متعين کړل، (پس داسې د معاملې د کيدو نه پس هغه جهاد له لاړو او په دې جهاد کښې مال غنيمت هم حاصل شو) پس چه کله مال غنيمت مخې ته راغلو نو ما اراده اوکړه چه د هغه د غنيمت حصه هغه ته ورکړم،.بيا ماته رایاد شو چه روستو معامله په دنانير باندې اوشوه نو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلم او ټوله خبره ورته رایاده شوه، رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د هغې حاصل دا دې چه ته هغه ته هم دا درې دیناره ورکړه، د هغه دپاره په دنيا او اخرت کښې د دې دينارونو نه علاوه نوره هيڅ حصه نشته.

## يو اشکال او د هغې توجيه

په دې واقعه کښې دا اشکال دې چه دا سړې اجير للخدمت وو او د اجير للخدمت دپاره د احنافو او مالکيانو په نزد په غنيمت کښې حصه وی، په حديث کښې په ظاهره کښې د دې نفی ده، حضرت په بذل کښې دې طرف ته هيڅ تعرض نه دې کړې او نه مې د يو بل شارح په کلام کښې دا مضمون ليدلې دې، په غور کولو سره د دې يو توجيه خو دا ذهن ته راځی چه په دې حديث کښې د دې مزدور د غنيمت د حصې سره متعلق هيڅ تعرض نشته بلکه په دی کښې صرف د خدمت د اجرت ذکر دې، دې سړی که خدمت په اخلاص سره کړې وې نو سره د اجرت اخستلو به هغه ته ان شاء الله ثواب ملاؤ شوې وې خو چونکه هغه سړې د هغه بوډا سره دا قسم معامله اوکړه لکه چه تاجرانه وی، او په کوم کښې چه د بې صبرئ او حرص بوئی دې په دې وجه نبی ﷺ د دې شيخ په تپوس کولو باندې اوفرمائيل چه د هغه په حصه کښې به صرف درې دیناره راځی، هغه سړی د خدمت ثواب ضائع کړو، پاتې شوه مسئله د اجير د غنيمت د حصې نو د هغې دلته نفی نشته، بله توجيه دا هم ممکن ده چه که په دې کښې دا نفی عام اوساتلې شی چه دا نفی د خدمت د ثواب او د غنيمت د حصو دواړو متعلق ده نو د دې دا تاويل اوکړې شی چه رسول الله ﷺ دا نفی زجرا او توبيخا فرمائيلې ده د هغه سړی د طرز عمل په بنياد باندې، هذا ما عندى ولعل عند غيرى احسن من هذا.

# باب في الرَّجُلِ يَغْزُو وَأَبَوَاهُ كَارِهَانِ

## د مور او پلار د خفګان باوجود د جهاد کولو بیان

[٢٥٢٨]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: جِئْتُ أُبَايِعُكَ عَلَى الْهِجْرَةِ وَتَرَكْتُ أَبَوَيَّ يَبْكِيَانِ، فَقَالَ: "ارْجِعْ عَلَيْهِمَا فَأَضْحِكْهُمَا كَمَا أَبْكَيْتَهُمَا".

**ترجمه:** دعبدالله بن عمرو رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه یوکس دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو چه اې دالله رسوله زه ستا په خدمت کښې ددې دپاره حاضر شوی یم چه په هجرت کولو درسره بیعت اوکړم او مور او پلار مې په ژړا پریخودلي اوراغلې یم، نبی ﷺ اوفرمائیل ته ددوی دخدمت دپاره واپس لاړ شه اودوي اوخندوه لکه څنګه چه تا دوی ژړولي دي.

### تشریح

یو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو چه زه د هغه په خدمت کښې د بیعت علی الهجرة دپاره راغلې یم، او ما خپل والدین په داسې حال کښې پریخودلي یم چه زما په جدایئ باندې ئې ژړل، هغه ﷺ اوفرمائیل واپس شه، او څنګه چه تا هغه ژړولي دی، هم دغه شان تلو سره هغوی اوخندوه، په ترجمة الباب کښې غزوه مذکور ده او په حدیث کښې هجرت، اوس یا خو به داسې وئیلې شی چه په حدیث کښې د هجرت سره غزوه هم مراد ده، او یا به دا وئیلې شی چه په دې مسئله کښې د هجرت او غزوه حکم د دواړو یو شان دې، چه کله د ﴿ احدهما ﴾ حکم معلوم شو نو د بل حکم هم معلوم شو.

د حدیث نه معلومه شوه چه جهاد بغیر اذن والدین جائز نه دې، خو دا جهاد په تطوع کښې دې، او په فرض جهاد کښې د اذن حاجت نشته، والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[٢٥٢٩]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي الْعَبَّاسِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أُجَاهِدُ؟ قَالَ: "أَلَكَ أَبَوَانِ؟" قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: "فَفِيهِمَا فَجَاهِدْ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: أَبُو الْعَبَّاسِ: هَذَا الشَّاعِرُ اسْمُهُ السَّائِبُ بْنُ فَرُّوخَ.

**ترجمه:** دعبدالله بن عمرو نه روایت دې فرمائي چه یوکس دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو چه اې دالله رسوله ایازه جهاد اوکړم؟ نبی ﷺ اوفرمائیل آیا ستا مور او پلار ژوندې دي؟ ده اونیل او، نبی ﷺ اوفرمائیل ته ددوی خدمت کوه داجهاد دې.
ابوداود وائی دابو العباس شاعر دې ددوی نوم سائب بن فروخ دې.

[1]: سنن النسائي/الجهاد ٥ (٣١٠٥)، سنن ابن ماجه/الجهاد ١٢ (٢٧٨٢)، (تحفة الأشراف: ٨٦٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٠/٢، ١٩٤، ١٩٧، ١٩٨، ٢٠٤) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الجهاد ١٣٨ (٣٠٠٤)، والأدب ٣ (٥٩٧٢)، صحيح مسلم/البر ١ (٢٥٤٩)، سنن الترمذي/الجهاد ٢ (١٦٧١)، سنن النسائي/الجهاد ٥ (٣١٠٥)، (تحفة الأشراف: ٨٦٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٥/٢، ١٧٢، ١٨٨، ١٩٣، ١٩٧، ٢٢١) (صحيح)

[٢٥٣٠](١)حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، أَنَّ دَرَّاجًا أَبَا السَّمْحِ حَدَّثَهُ، عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَجُلًا هَاجَرَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْيَمَنِ فَقَالَ: "هَلْ لَكَ أَحَدٌ بِالْيَمَنِ، قَالَ: أَبَوَايَ، قَالَ: أَذِنَا لَكَ، قَالَ: لَا، قَالَ: ارْجِعْ إِلَيْهِمَا فَاسْتَأْذِنْهُمَا، فَإِنْ أَذِنَا لَكَ فَجَاهِدْ وَإِلَّا فَبِرَّهُمَا".

**ترجمه:** دابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه یوکس دیمن نه نبی علیه السلام ته په هجرت کولوسره راغي نبی علیه السلام ورته اوفرمائيل آيا په يمن کښي دي څوك شته؟ نوده اووئيل مور او پلاري مي شته نبی علیه السلام تپوس اوکړو هغوی درته اجازت کړې دې ده اووئيل نه نبی علیه السلام اوفرمائيل واپس ورته ورشه او اجازت ترې اوغواړه که چرې اجازت ئې اوکړو نوجهاد کوه اوکه اجازت اونکړي نو ددوی په خدمت کولوسره) دهغوی سره نيکي کوه.

## بَابٌ فِي النِّسَاءِ يَغْزُونَ

### د ښځو دپاره په جهاد کښې دشريکيدوبيان

[٢٥٣١](٢)حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ مُطَهَّرٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْزُو بِأُمِّ سُلَيْمٍ وَنِسْوَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ لِيَسْقِينَ الْمَاءَ وَيُدَاوِينَ الْجَرْحَى.

**ترجمه:** دانس رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام به جهاد ته دځان سره ام سليم اونوري انصاري زنانه بوتلي ددي دپاره چه مجاهدينوته اوبه ورکړي او د زخميانو علاج اوکړي

### مضمون حديث

په حديث الباب کښې دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به ام سليم (د انس رضی الله عنه مور) او بعض نوري انصاري زنانه ځان سره غزواتو ته بوتلې، د دې دپاره چه دا زنانه په ترو باندې اوبه اوڅکوی او د مريضانو او زخميانو علاج اوکړی، د زنانو دپاره د قتال په نيت سره جهاد ته تلل جائز نه دی، خو که د امام په اذن باندې د مجروحين او معذورينو د خدمت دپاره ځي نو دا ثابت ده، هم په دې وجه باندې د هغوی دپاره باقاعده په غنيمت کښې حصه هم نه وی، رضخ يعنی ورکړه او عطيه په طور معمولی شان ورکولې شی، لکه چه وړاندې په ابواب الغنيمة کښې به راشی، امام نووی رحمه الله فرمائی چه کومې زنانه جهاد ته د خدمت دپاره ځي د دوائی دارو دپاره، د دې نه مداوات (علاج) مراد دې کوم چه د هغوی د محارم او ازواج دپاره وی، او د غير محرم دپاره چه کوم خدمت وی هغه به داسې وی چه په بې پردګئ سره به نه وی او نه ئې د بدن سره مس لازم شی، الا فی موضع الحاجة، والحديث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی قاله المنذری.

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٠٥١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٧٦) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/الجهاد ٤٧ (١٨١٠)، سنن الترمذي/السير ٢٢ (١٥٧٥)، (تحفة الأشراف: ٢٦١)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ٦٥ (٢٨٨٠)، والمغازي ١٨(٤٠٦٤ مطولاً) (صحيح)

## بَابٌ فِي الْغَزْوِ مَعَ أَئِمَّةِ الْجَوْرِ

### د ظالم امیر سره جهاد ته د تللو بیان

[٢٥٣٢]()حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ بُرْقَانَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي نُشْبَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلَاثٌ مِنْ أَصْلِ الْإِيمَانِ، الْكَفُّ عَمَّنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَلَا تُكَفِّرْهُ بِذَنْبٍ وَلَا تُخْرِجْهُ مِنَ الْإِسْلَامِ بِعَمَلٍ، وَالْجِهَادُ مَاضٍ مُنْذُ بَعَثَنِي اللَّهُ إِلَى أَنْ يُقَاتِلَ آخِرُ أُمَّتِي الدَّجَّالَ، لَا يُبْطِلُهُ جَوْرُ جَائِرٍ وَلَا عَدْلُ عَادِلٍ وَالْإِيمَانُ بِالْأَقْدَارِ".

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی دري څیزونه جرړې دایمان دی، (١) د لا اله الا الله ویونکودوژلو او ازارولونه ځان ساتل، (٢) اوپه یو مسلمان باندې دکومې ګناه په وجه دکفردفتوې نه ځان ساتل، اودجهاد سلسله به دهغه وخت نه جاري وي دکله نه چه زه الله تعالی په وصف درسالت سره راليږلې یم تردې چه زما دامت آخری کس به ددجال سره جهاد کوي اوجهاد لره دیوظالم ظلم یادعادل عدل نه شي ختمولې. (٣) په تقدیر باندې ایمان راوړل

### شرح حدیث

د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دې چه دري څیزونه په اسلام کښې اساسی او بنیادی دی، یو خو دا چه د کلمه توحید ﴿ لا اله الا الله ﴾ قائل او معتقد وی، او د علماء کرامو د تصریح مطابق ټول ضروریات دین په دې کښې داخل دی، مثلا تصدیق بالرسالة، حشر او نشر، ثواب او عقاب، او وړاندې هم په دې باب کښې دی، د داسې سړی تکفیر نه کول د څه ګناه د وجې نه، بل څیز دوام او استمرار جهاد دې چه دا تر اخره پورې کیدل پکار دی او دا به وی که د وخت امام عادل وی یا غیر عادل، یعنی که امام المسلمین غیر عادل سړې دې د هغه رائې د جهاد ده نو د هغه غیر عادل کیدل د جهاد نه مانع نه دی بلکه د هغه اطاعت واجب دې، او دریم څیز ایمان بالقدر دې چه د هغې نه بغیر نه د انسان ایمان معتبر او نه د هغه یو عبادت او عمل مقبول دې.

[٢٥٣٣]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْجِهَادُ وَاجِبٌ عَلَيْكُمْ مَعَ كُلِّ أَمِيرٍ بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا، وَالصَّلَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَيْكُمْ خَلْفَ كُلِّ مُسْلِمٍ بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا، وَإِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ وَالصَّلَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا، وَإِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ".

**ترجمه**: د ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی: په تاسو باندې جهاد فرض دې د یو امیر په ملګرتیا کښې برابره خبره ده چه هغه نیک وي اوکه فاسق یافاجروي، اومونځ کول په هریومسلمان پسې فرض دې برابره خبره ده چه هغه نیک وي اوکه بد اګر که هغه دکبیره ګناه ارتکاب هم اوکړی او مونځ کول په هر مسلمان پسې واجب دي برابره خبره ده که هغه نیک وي اوکه بد وي اګرکه هغه دلوې ګناهونو مرتکب وي.

---

[١]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٠٤) (ضعيف)

[٢]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٦١٩) (ضعيف)

### شرح حدیث

د دې نه د جماعت د مونځ واجب کیدل معلومیږی که مونځ ورکوونکی فاسق وی یا فاجر وی، په دې باندې به دا اشکال راځی چه د فاسق امامت ته خو فقهاء کرامو مکروه وئیلي دې، جواب دا دې چه د فقهاء کرامو د کلام مطلب دا دې چه مقتدیانو لره په خپل اختیار سره فاسق لره امام نه دی جوړول پکار، که د امامت مسئله په خپل اختیار کښې نه وی مثلاً د مونځ ورکوونکی امیر المومنین فاسق دې یا هم دغه شان د هغه نائب، یا د مسجدونو نظم د حکومت د طرف نه دې هغوی په خپل اختیار سره چه څوک غواړی امام جوړوی، دا صورتونه په دې کښې داخل نه دی ﴿ والصلاة واجبة علیکم خلف کل مسلم برا کان او فاجرا ﴾ دلته د مونځ نه صلاة جنازه مراد دې هم په دې وجه دلته د ﴿ علی ﴾ لفظ دې ﴿ علی کل مسلم ﴾، په خلاف د سابق یعنی د امامت په مسئله کښې هلته ﴿ خلف کل مسلم ﴾ دې، بهرحال د جنازې مونځ په هر مسلمان باندې واجب علی الکفایه دې اګر چه هغه فاسق وی، خو د دې مسلم نه مراد پاک مړې دې یعنی طهارة بالغسل، د غسل نه مخکښې د مړی د جنازې مونځ صحیح نه دې، غیر معتبر دې ﴿ وان عمل الکبائر ﴾ معلومه شوه چه د کبائرو په ارتکاب سره انسان نه د اسلام نه خارجیږی لکه چه معتزله وائی او نه کافر کیږی لکه چه خوارج وائی.

## بَابُ الرَّجُلِ يَتَحَمَّلُ بِمَالِ غَيْرِهِ يَغْزُو

### د بل چا په سورلئ باندې د جهاد کولو بیان

### د ترجمة الباب شرح

یعنی یو سړې جهاد دپاره روان دې، په سفر جهاد کښې دې او د هغه سره سورلی هم ده نو هغه په خپله سورلئ باندې د چا یا د خپل ملګری سامان راچولو سره روان وی، بل مطلب د ترجمة الباب دا کیدې شی چه د مال نه مراد حیوان او سورلی ده، او د تحمل نه مراد سوریدل دی، یعنی یو سړه د جهاد د تلو دپاره سورلی نشته، او د هغه د ملګری سره سورلی ده نو د ملګری په سورلئ باندې سوریدو کښې هیڅ باک نشته او دا دویمه معنی دلته ظاهره ده لکه چه په حدیث الباب کښې دی.

[۲۵۳۴](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ نُبَيْحٍ الْعَنَزِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ أَرَادَ أَنْ يَغْزُوَ فَقَالَ: "يَا مَعْشَرَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ إِنَّ مِنْ إِخْوَانِكُمْ قَوْمًا لَيْسَ لَهُمْ مَالٌ وَلَا عَشِيرَةٌ، فَلْيَضُمَّ أَحَدُكُمْ إِلَيْهِ الرَّجُلَيْنِ أَوِ الثَّلَاثَةَ فَمَا لِأَحَدِنَا مِنْ ظَهْرٍ يَحْمِلُهُ إِلَّا عُقْبَةٌ كَعُقْبَةِ يَعْنِي أَحَدِهِمْ، قَالَ: فَضَمَمْتُ إِلَيَّ اثْنَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً، قَالَ: مَا لِي إِلَّا عُقْبَةٌ كَعُقْبَةِ أَحَدِهِمْ مِنْ جَمَلِي".

**ترجمه:** جابر بن عبدالله دنبی ﷺ نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ دجهاد اراده اوکړه اووئې فرمائیل ای دمهاجرینو اوانصارو ډلو ستاسو بعضې وروڼړه داسې دي چه دچا نه خاندان شته اونه ورسره مال شته په تاسو کښې هرکس دځان سره دوه دوه یادرې درې کسان دجهاد په سفر کښې شریک کړئ په دې شان سره چه مونږ کښې دچاسره سورلئ نه وي

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۱۱۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۵۸/۳) (صحیح)

نوهغه به په نمبر نمبر باندې سورېږي جابر اووئيل مادخان سره دوه يادرې کسان ملګري کړل اوزه به صرف په خپل نمبرکښې په اوښ سوريدم لکه څرنګه چه به نور کسان په خپل نمرکښې سوريدل.

## مضمون حديث

د حديث مضمون دا دې چه د يوې غزوې په سفر کښې هغه ﷺ دا اعلان اوفرمائيلو ﴿ يا معشر المهاجرين والانصار ان من اخوانكم قوما ﴾ چه اې د مهاجرين او انصارو جماعته! بيشکه ستاسو په رونړو کښې بعض خلق داسې دی چه هغه سره نه مال دې نه د هغوی د قبيلې او عشيرې دې، لهذا په تاسو کښې چه د چا سره سورلی وی هغه له پکار دی چه د خپل ځان سره په سورلئ کښې دوه يا درې ملګرو لره نور شامل کړی، دا مضمون د رسول الله ﷺ د اعلان دې، بيا په دې باندې چه د صحابه کرامو د طرف نه کوم عمل شوې دې وړاندې راوی هغه بيانوی. ﴿ فما لاحدنا من ظهر يحمله الا عقبة كعقبة يعنى احدهم ﴾ يعنی د هغه ﷺ په دې اعلان باندې خلقو چا دوه او چا درې ملګری په خپله سورلئ کښې يوځائې کړل کوم چه به په نمبر نمبر په هغې باندې سوريدل انصاف او برابرئ سره ﴿ الا عقبة كعقبة احدهم ﴾ مطلب دا دې يعنی د سورلئ مالک ته به ئی ترجيح نه ورکوله، د سورلئ په حاصلولو کښې بلکه مالک او غير مالک ټول برابر.

**فائده** : په کتاب الحج کښې يو باب تير شوې دې، "باب الكرى" د دې باب او موجوده باب مضمون په ظاهره ملاويږی خو په دواړو کښې فرق دې په تير باب کښې په سفر حج کښې حاجيانو لره په خپله سورلئ باندې په کرايه باندې بوتلل مراد وو او دلته په کتاب الجهاد کښې د غزوه په سفر کښې چه کوم صورت دې هغه صرف د اعانت دې په کرايه باندې بوتلل مراد نه دې.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَغْزُو يَلْتَمِسُ الأَجْرَ وَالْغَنِيمَةَ

### د مال غنيمت او ثواب دپاره د جهاد کولو بيان

[۲۵۳۵](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا أَسَدُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنِي ضَمْرَةُ، أَنَّ ابْنَ زُغْبٍ الإِيَادِيَّ حَدَّثَهُ، قَالَ: نَزَلَ عَلَيَّ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حَوَالَةَ الأَزْدِيُّ، فَقَالَ لِي: بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَغْنَمَ عَلَى أَقْدَامِنَا فَرَجَعْنَا، فَلَمْ نَغْنَمْ شَيْئًا وَعَرَفَ الْجَهْدَ فِي وُجُوهِنَا فَقَامَ فِينَا فَقَالَ: "اللَّهُمَّ لَا تَكِلْهُمْ إِلَيَّ فَأَضْعُفَ عَنْهُمْ، وَلَا تَكِلْهُمْ إِلَى أَنْفُسِهِمْ فَيَعْجِزُوا عَنْهَا، وَلَا تَكِلْهُمْ إِلَى النَّاسِ فَيَسْتَأْثِرُوا عَلَيْهِمْ، ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ عَلَى رَأْسِي أَوْ قَالَ: عَلَى هَامَتِي، ثُمَّ قَالَ: يَا ابْنَ حَوَالَةَ إِذَا رَأَيْتَ الْخِلَافَةَ قَدْ نَزَلَتْ أَرْضَ الْمُقَدَّسَةِ، فَقَدْ دَنَتِ الزَّلَازِلُ وَالْبَلَابِلُ وَالأُمُورُ الْعِظَامُ وَالسَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنَ النَّاسِ مِنْ يَدِي هَذِهِ مِنْ رَأْسِكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حَوَالَةَ حِمْصِيٌّ.

**ترجمه**: دابن زُغب ايادی رحمه الله نه روايت دې فرمائی چه عبدالله بن حواله ازدي ماته په ميلمستياراغې اوماته ئې اووئيل چه نبی ﷺ مونږه غنيمت حاصلولو دپاره پياده ليږلی يو مونږ واپس راغلو خو غنيمت مو حاصل نکړو ،نبی ﷺ زمونږ په مخونو باندې د سترې توب اثار اوليدل نواودريدو اووئې فرمائيل اې الله ته دوی ماته په دې شان سره حواله

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٢٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٨/٥) (صحيح)

نکړي چه زه ددوی دپرورش نه عاجزشم اونه دوی خپل ځان ته حواله کړي چه دوی ترې عاجز شي اونه دوی بل چاته حواله کړي چه هغه به په دوی باندې خپل ځانونه مخکښې کوي، بیانبی علیہ السلام زما په سر باندې خپل لاس مبارك کیخودو او ونې فرمائیل اې ابن حواله کله چه ته په شام کښې خلافت اووینې نوپوهه شه چه زلزلې اومصیبتونه او حادثات رانزدې شوی دی او په دغه وخت کښې به قیامت خلقو ته ددې نه هم ډیر نزدې وي څومره چه زما دا لاس ستا سرته نزدې دې۔

## د حدیث مضمون

مضمون حدیث دا دې، عبدالله بن زغب وائی یو ځل ما سره عبدالله بن حواله الازدی راکوز شو، یعنی زما میلمه جوړ شو نو هغه د رسول الله ﷺ د زمانې یوه واقعه د غریبئ او فقر واوروله چه یو ځل رسول الله ﷺ مونږ یوځائې ته د جهاد دپاره اولیږلو، او پیدل ئې اولیږلو د دې دپاره چه مونږ ته مال غنیمت حاصل شی، پس مونږ لاړو خو مال غنیمت وغیره هیڅ هم حاصل نه شو او مونږ د هغې نه بغیر راواپس شو، هغه زمونږ حالت اولیدلو، د مشقت اثار هغه زمونږ د مخونو نه محسوس کړل نو هغه مونږ ته تشریف راوړلو او زمونږ په مینځ کښې اودریدو سره ئې دا دعا اوفرمائیله ﴿اللهم لا تکلهم الی فاضعف عنهم ولا تکلهم الی انفسهم فیعجزوا عنها الخ﴾ چه یا الله دا خلق ماته مه سپاره ګینې زه خو به ئې اوچت نه کړې شم او نه هغوی خپلو نفسونو ته سپاره نو دوی به د خپلو نفسونو سره عاجز شی، یعنی خپل ضرورتونه په خپل محنت سره نه شی پوره کولې (بغیر ستا د فضل نه) او نه هغه نورو خلقو ته حواله کوه ځکه چه هغوی خو به خپل ځان ته ترجیح ورکوی په هغوی باندې، یعنی د هغوی اعانت به نه کوی، لهذا مطلب دا شو چه هم ته د هغوی کارسازی اوکړه، ستا نه علاوه بل کارساز نشته.

﴿ثم وضع یده علی راسی﴾ یعنی د دې دعا نه روستو رسول الله ﷺ زما په سر باندې خپل لاس مبارک کیخودلو او وې فرمائیل چه اې ابن حواله! چه کله ته اوګورې چه د مسلمانانو خلافت ارض مقدسه ته لاړو یعنی په ملک شام کښې نو زلزلې، نور مصیبتونه، فکرونه او غمونه او لوئې لوئې فتنې او فسادونه نزدې شوې دی، او بس هغه وخت دا خیال اوکړه چه قیامت نزدې شوې دې، او زما لاس چه ستا سره ته څومره نزدې دې نو هغه قیامت د دې نه هم زیات نزدې راغلو په دې سره اشاره ده امارت وخلافت د بنو امیه طرف ته، پس ارض مقدسه یعنی ملک شام لره دار الخلافه جوړولو والا سیدنا معاویه رضی الله عنه دې چه د هغه نه د خلافت اموی تسلسل شروع شوې دې، خاص په دې موقع باندې د رسول الله ﷺ د دې فتنو او واقعات طرف ته اشاره کول ګویا دا د صحابه کرامو د تسلی دپاره دې کوم چه دې وخت کښې د تنګسیا وو، ګویا مطلب دا شو چه موجوده زمانه خیر او سکون او د عافیت زمانه ده اګر چه تنګدستی او فقر او لوږه ده، د دې بالمقابل چه کومه زمانه راتلو والا دې چه په هغې کښې فقر او لوږه نشته، د فتوحاتو زمانه به وی خو دغه وخت کښې به د فتنو دور وی، والله تعالی اعلم، بمراد نبیه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## بَاب فِي الرَّجُلِ الَّذِي يَشْرِي نَفْسَهُ

### بیان د فضیلت دهغه کس څوک چه خپل ځان په الله پاک خرڅ کړي

**تشریح:** ﴿ یشری ﴾ په معنی د ﴿ یبیع ﴾ یعنی کوم سړي چه د خپل نفس بیع او د هغې معامله د الله پاک سره اوکړي، کما فی قوله تعالی : ﴿ ان الله اشتری من المومنین انفسهم واموالهم بان لهم الجنة ﴾ وکما فی قوله تعالی : ﴿ ومن الناس من یشری نفسه ابتغاء مرضات الله ﴾

[٢٥٣٦](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَجِبَ رَبُّنَا عَزَّ وَجَلَّ مِنْ رَجُلٍ غَزَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَانْهَزَمَ يَعْنِي أَصْحَابَهُ، فَعَلِمَ مَا عَلَيْهِ فَرَجَعَ حَتَّى أُهَرِيقَ دَمُهُ، فَيَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى لِمَلَائِكَتِهِ: انْظُرُوا إِلَى عَبْدِي رَجَعَ رَغْبَةً فِيمَا عِنْدِي وَشَفَقَةً مِمَّا عِنْدِي حَتَّى أُهَرِيقَ دَمُهُ".

**ترجمه:** د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبی علیه السلام فرمائیلي دي: الله تعالی دهغه سړي نه تعجب کوي چه دالله تعالی په لار کښې جهاد ته لاړ شي اودده ټول ملګري اوتښتي اودي دخپلې ذمه واری دپوره کولو په اراده واپس راشي تردې چه دده وینه اوبهیولې شي نوالله تعالی خپلو فرشتوته اووائی زما دې بنده ته اوګورئ چه زمانه دثواب دامید په وجه اوزمادعذاب نه دیریدو په وجه واپس راغې تردې چه شهید شو.

**تشریح:** رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائی چه الله پاک تعجب فرمائی په داسې سړی باندې یعنی خوښوی هغه جهاد ته لاړو، د مسلمانو لښکر ته شکست اوشو هغوی ټول راواپس شو، په هغه واپس کیدونکې مجاهدینو کښې یو ته د خپلې تیختې احساس اوشو، ﴿ فعلم ما علیه ﴾ مطلب هم دا دې یعنی د الله پاک حقوق په دې حالت کښې کوم چه په هغه باندې دی هغوی ته رسول، کذافی البذل، او ممکنه ده چه مطلب ئې دا وی چه هغه سره د تیختې د وبال فکر وی، بهرحال چه هر څه شوې دی، وړاندې په حدیث کښې دی چه هغه دوباره راواپس کیدو سره میدان جهاد ته لاړو تردې چه د هغه وینه توئې کړې شوه، په دې باندې الله پاک د فخر په طور ملائکو ته فرمائی چه اوګورئ بنده څه ښه کار اوکړو چه دې د اخرت د ثواب په رغبت کښې د اخرت د عذاب د ویرې نه د جهاد طرف ته واپس شو. والحدیث اخرجه الحاکم قاله الشیخ محمد عوامه.

## بَاب فِيمَنْ يُسْلِمُ وَيُقْتَلُ مَكَانَهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ

### فضیلت دهغه کس چه د اسلام قبلولو نه پس سمدست شهید شی

[٢٥٣٧](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ عَمْرَو بْنَ أُقَيْشٍ، كَانَ لَهُ رِبًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَكَرِهَ أَنْ يُسْلِمَ حَتَّى يَأْخُذَهُ فَجَاءَ يَوْمَ أُحُدٍ فَقَالَ: أَيْنَ بَنُو عَمِّي؟ قَالُوا: بِأُحُدٍ، قَالَ: أَيْنَ فُلَانٌ؟ قَالُوا: بِأُحُدٍ، قَالَ: فَأَيْنَ فُلَانٌ؟ قَالُوا: بِأُحُدٍ، فَلَبِسَ لَأْمَتَهُ وَرَكِبَ فَرَسَهُ ثُمَّ تَوَجَّهَ قِبَلَهُمْ فَلَمَّا رَآهُ الْمُسْلِمُونَ قَالُوا: إِلَيْكَ عَنَّا يَا عَمْرُو قَالَ: إِنِّي قَدْ آمَنْتُ، فَقَاتَلَ حَتَّى جُرِحَ، فَحُمِلَ إِلَى أَهْلِهِ جَرِيحًا فَجَاءَهُ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٥٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٦٧١) (حسن)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٠١٧) (حسن)

فَقَالَ لِأُخْتِهِ: سَلِيهِ حَمِيَّةً لِقَوْمِكَ أَوْ غَضَبًا لَهُمْ أَمْ غَضَبًا لِلَّهِ، فَقَالَ: بَلْ غَضَبًا لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ فَمَاتَ، فَدَخَلَ الْجَنَّةَ وَمَا صَلَّى لِلَّهِ صَلَاةً.

**ترجمه:** د ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه عمرو بن اقیش به دخلقونه دجاهلیت دوخت سودونه اصول کول اواسلام ئې بدګڼړلو ترهغه وخته چه ده دخلقونه خپل سودونه نه وو وصول کړي نو داحد په ورځ راغې اووئې وئیل زمادتره ځامن څه شول خلقو ورته اووئیل چه په غزوه احدکښې مصروف دي بیائې اووئیل فلانې څه شو هغوی ورته اووئیل چه په احدکښې د بیائې اووئیل فلانې څه شو هغوی ورته اووئیل چه په احدکښې دې نوده خپله زغره واغوستله او په خپل اس سور شو او بیا دهغوی طرف ته روان شو هرکله چه ده لره مسلمانانو اولیدووئې وئیل چه ته زمونږ نه جدا اوسیږه ده اووئیل ما ایمان راوړې دې، بیائې دکافرانوسره دومره جنګ اوکړو چه زخمي شو اوخلقو راپورته کړو او رائې وړو نودلته سعد بن معاذ راغې اودده خور ته ئې اووئیل دده نه تپوس اوکړه چه آیا په خپل قوم باندې دغیرت په وجه دې جنګ کړې دې اوکه په الله پاك باندې دغیرت کولو دپاره دې جنګ کړې دې؟ هغه اووئیل دالله تعالٰی اودهغه درسول دپاره مې جنګ کړې دې بیا ددې نه پس هغه وفات شو اوجنت ته داخل شو اوحال دادې چه هغه دیو وخت مونځ هم نه وو کړې.

## شرح حدیث

یعنی سیدنا عمرو بن اقیش رضي الله عنه د الله پاك په توفیق سره د اسلام قبلولو اراده اوکړه خو د جاهلیت د زمانې د معاملاتو د وجې نه د سود څه پیسه د خلقو سره ایساره شوې وه چه د هغه اراده د هغې د اخستلو وه چه د اسلام راوړلو نه مخکښې هغه پیسې وصول کړم، د اسلام قبلولو نه روستو خو به د هغې وصول کول جائز نه وی، بل طرف ته جنګ احد شروع شوې وو، هغه د خپل باقی مال د اخستلو دپاره د خپل تره ځامنو ته لاړو چه هغوی سره د مخکښې نه دا معامله وه نو د کوم سړی په باره کښې به چه هم هغوی تپوس کولو نو د هغوی د خوا نه به ورته هم دا معلومیده چه هغه خو د احد جنګ له تلې دې، بس هغه هم خپله زغره واچوله او په خپل اس باندې سوریدو سره د احد طرف ته روان شو چرته چه قتال کیدلو او د مشرکینو د فوج طرفته د تلو په ځائې د مسلمانانو طرف ته روان شو، مسلمانانو هغه پیژندلو چه هغه لا تر اوسه پورې اسلام نه دې قبول کړې، په دې وجه هغوی هغه لره په راتلو باندې لیدو سره اووې ﴿ الیک عنا یا عمرو ﴾ چه اې عمرو! زمونږ د طرف نه واپس شه! د مشرکانو د قتال صف بل طرف ته دې هغه طرف ته لاړ شه، هغه اووې ما اسلام قبول کړې دې په دې وجه دلته راغلې یم او په دې وینا باندې قتال کښې شریک شو تردې چه زخمی شو، هغه خپل کور ته راوړلې شو، نو د هغه د تپوس دپاره سیدنا سعد بن معاذ رضي الله عنه راغلو او هغه د عمرو رضي الله عنه خور ته اووې چه د هغه نه دا تپوس اوکړه چه ﴿ حمیة لقومک او غضبا لهم الخ ﴾ یعنی دا ستا جنګ کول د خپل قوم د حمایت دپاره وو که د هغوی د طرف نه غصه او انتقام وو ﴿ ام غضبا لله ﴾ یا که ستا جنګیدل د الله پاك په غصه باندې بناء وو، یعنی کفار دې د الله پاك د شمنان ګڼړل او هغوی سره دې جنګ کړې وو، هغه اووې چه

نه! بلکه د الله پاک د پاره په انتقام کښې، د ﴿حمية لقومك﴾ معنی دا ده چه د خپلو مسلمانانو همدردی او د هغوی په مدد کښې، د هغه ډير رشته داران د هغوی نه مخکښې مسلمانان شوې وو چه د چا سره کفارو جنګ کولو نو د هغوی نه ئې دا تپوس اوکړو چه دا ستا جنګيدل د خپلو خلقو د حمايت په نيت باندې وه که دا نيت دې نه وو بلکه بل نيت دې وو؟ هغه دا چه زمونږ په مقابل کښې د الله پاک او د هغه د رسول دشمن ئې. ﴿فمات فدخل الجنة وما صلى لله صلاة﴾ يعنی اسلام کښې داخليدو سره ئې د کفارو سره جهاد شروع کړو چه په هغې کښې شهيد کيدو سره جنت ته داخل شو حال دا چه يو مونځ ئې هم نه دې کړې، معلومه شوه چه اسلام راوړل د تيرو ګناهونو د معاف کيدو سبب دې. "الاسلام يهدم ما كان قبله"

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَمُوتُ بِسِلَاحِهِ

### بيان دهغه کس څوک چه په خپله وسله مړ شي

[٢٥٣٨](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ أَحْمَدُ كَذَا قَالَ: هُوَ يَعْنِي ابْنَ وَهْبٍ، وَعَنْبَسَةُ يَعْنِي ابْنَ خَالِدٍ جَمِيعًا، عَنْ يُونُسَ، قَالَ أَحْمَدُ: وَالصَّوَابُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ سَلَمَةَ بْنَ الْأَكْوَعِ، قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ خَيْبَرَ قَاتَلَ أَخِي قِتَالًا شَدِيدًا فَارْتَدَّ عَلَيْهِ سَيْفُهُ فَقَتَلَهُ، فَقَالَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ وَشَكُّوا فِيهِ رَجُلٌ مَاتَ بِسِلَاحِهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَاتَ جَاهِدًا مُجَاهِدًا"، قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: ثُمَّ سَأَلْتُ ابْنًا لِسَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، فَحَدَّثَنِي عَنْ أَبِيهِ بِمِثْلِ ذَلِكَ غَيْرَ أَنَّهُ قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَذَبُوا مَاتَ جَاهِدًا مُجَاهِدًا فَلَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ".

**ترجمه:** دسلمه بن اکوع نه روايت دې فرمائی هرکله چه د خيبر ورځ راغله نوزما ورور دشديد جنګ کولونه پس اتفاقا په خپله توره باندې اونکيده اومړشو نوبعضې صحابه کرامو دده په باره کښې خبرې اوکړې او دده شهادت ئې ونه منلو بلکه دائې ووئيل چه دې يوداسې کس وو چه په خپله وسله باندې مړ شونبی ﷺ چه دا واوريدل نو وئې فرمائيل: داسې نه ده دې ديو کوشش کونکې مجاهد په مرګ باندې مړدې. ابن شهاب وائی چه مادسلمه بن اکوع په ځامنوکښې ديوکس نه معلوم کړل اوهغوی دخپل پلارنه داسې قسم حديث بيان کړو، ليکن دومره ئې ووئيل چه نبی ﷺ اوفرمائيل چه خلقوغلطه وينا کړې ده هغه په جهادکښې مړدې او مجاهد مړدې اودهغه دپاره دوچند اجردې.

### تشريح

يعنی په جنګ کښې که يو انسان د خپلې وسلې نه هلاک شی نو د هغې څه حکم دې؟ په حديث الباب کښې دی چه سلمه بن الاکوع رضی الله عنه فرمائی چه په جنګ خيبر کښې زما رور چه د هغه نوم عامر بن الاکوع دې په ډير قوت او شدت سره ئی قتال کولو، هم په دې کښې د هغه توره واپس کيدو سره ماته شوه چه په هغې سره هغه شهيد شو، بعض صحابه کرامو د هغه په باره کښې شک کول شروع کړلو. ﴿رجل مات بسلاحه﴾ دا خو په خپلې وسلې سره مړ

---

(١): صحيح مسلم/الجهاد ٤٣ (١٨٠٢)، سنن النسائي/الجهاد ٢٩ (٣١٥٢)، (تحفة الأشراف: ٤٥٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٧، ٥٢) (صحيح)

شو، چه کله رسول الله ﷺ ته د دې علم اوشو نو هغه د خلقو شک او شبهه لرې کړه او وې فرمائيل: ﴿ مات جاهدا مجاهدا ﴾ دا لفظ خو ئې يا د تاکيد دپاره مکرر کړې دې يا د دې دپاره چه د دواړه الفاظو په معنى کښې فرق اوکړې شى، د ﴿ جاهد ﴾ معنى ده ﴿ مجتهدا فى طاعة الله ﴾ واخستلې شى، وړاندې روايت کښې هم دا قسم واقعه د يو بل صحابى مذکور ده چه د هغه نوم معلوم نه شو، په دې روايت کښې دا هم دى ﴿ وصلى عليه ودفنه ﴾ يعنى په دې کښې د شهيد د جنازې مونځ ذکر شوې دې چه د هغې اکثر علماء کرام خو قائل نه دى، احناف قائل دى.

[٢٥٣٩]([1])حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ خَالِدٍ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سَلَّامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ أَبِي سَلَّامٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: أَغَرْنَا عَلَى حَيٍّ مِنْ جُهَيْنَةَ فَطَلَبَ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ رَجُلًا مِنْهُمْ فَضَرَبَهُ، فَأَخْطَأَهُ وَأَصَابَ نَفْسَهُ بِالسَّيْفِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَخُوكُمْ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِينَ فَابْتَدَرَهُ النَّاسُ فَوَجَدُوهُ قَدْ مَاتَ، فَلَفَّهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثِيَابِهِ وَدِمَائِهِ وَصَلَّى عَلَيْهِ وَدَفَنَهُ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَشَهِيدٌ هُوَ؟ قَالَ: نَعَمْ وَأَنَا لَهُ شَهِيدٌ".

**ترجمه**: ابوسلام په صحابه کرامو کښې ديوکس نه روايت کوى چه هغه به وئيل: چه مونږ د جهينه قبيلې په يوکلي باندې حمله اوکړه نوپه مسلمانانوکښې يوکس په هغوى کښې د يوکس د وهلو قصد اوکړو، نو د تورې ګذارئې ورباندې اوکړو ليکن ګذار خطا شواودې پخپله، په خپله توره باندې ولګيدو، نبى ﷺ اوفرمائيل اې مسلمانانو دخپل وروړخبر واخلئ نوخلقو په تيزئ سره هغه ته ورمنډه کړل نومړ ئې بيامونډو نونبى ﷺ په خپلو وينو اوجاموکښې راتاوکړو اوجنازه ئې ورباندې اوکړه اودفن ئې کړو، صحابه کراموعرض اوکړو چه اې دالله رسوله آيا دې شهيد دې؟ نبى ﷺ اوفرمائيل او، زه دده دپاره ګواه يم

## بَابُ الدُّعَاءِ عِنْدَ اللِّقَاءِ

### د دښمن سره د مخامخ کيدو په وخت کښې د دعا د قبليدو بيان

[٢٥٤٠]([2])حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ يَعْقُوبَ الزَّمْعِيُّ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثِنْتَانِ لَا تُرَدَّانِ أَوْ قَلَّمَا تُرَدَّانِ الدُّعَاءُ عِنْدَ النِّدَاءِ، وَعِنْدَ الْبَأْسِ حِينَ يُلْحِمُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا، قَالَ مُوسَى، وَحَدَّثَنِي رِزْقُ بْنُ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: وَوَقْتُ الْمَطَرِ".

**ترجمه**: د سهل بن سعد نه روايت دې فرمائى چه نبى ﷺ فرمايلې دې: دوه دعاګانې نه رد کيږى يا ډيرې کمې ردکيږې يوهغه دعاده چه داذان په وخت کښې اوغوښتلې شي اوبله هغه دعاده چه دجنګ په وخت کښې اوغوښتلې شي کله چه فريقين ديوبل سره مخامخ شي. او په بل روايت کښې ورسره دا اضافه هم ده چه د باران په وخت کښې چه دعا اوکړى شي.

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٧٧) (ضعيف)
[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٧٦٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ١ (٧)، سنن الدارمي/الصلاة ٩ (١٢٣٦) (صحيح) (ليكن «وقت المطر» حسن ده، ملاحظه: صحيح ابي داود: ٢٩٤/٧، والصحيحة: ١٤٧٩)

## تشريح

يعنی د جنګ په شروع کښې د الله پاک نه دعا غوښتل، په حديث الباب کښې دی چه دوه دعاګانې نه رد کيږی يو دعا ﴿ عند الاذان ﴾ او دويمه ﴿ عند الباس حين يلحم بعضهم بعضا ﴾ يعنی د جنګ په وخت چه کله يو بل لره قتل کوی ﴿ لحم يلحم ﴾ د باب سمع نه په معنی د ﴿ قتل ﴾، او دا د باب افعال نه هم کيدې شی، ﴿ يلحم ﴾ چه د هغې معنی ﴿ يختلط ﴾ دې، يعنی سخت جنګ شروع وی، په يو بل کښې ننوتلې وی، او هم د دې نه دې ﴿ الملحمة ﴾ چه د هغې جمع ملاحم راځی ملحمه په معنی د حرب يا موضع الحرب، ميدان جنګ، يا دا خو د لحم نه ماخوذ دې ﴿ لکثرة لحوم القتلی ﴾ يا ﴿ لحمة الثوب ﴾ نه اخستلې شوې دې، لکه د کپړې په جوړولو کښې چه د ﴿ لحمه ﴾ د ﴿ سدی ﴾ سره اختلاط راځی، کوم تا چه تانا، بانا (ولاړ او پراته تارونه) وئيلې شی، او په بل روايت کښې د ﴿ وقت المطر ﴾ اضافه هم شته او په يو نسخه کښې ﴿ تحت المطر ﴾ دې يعنی کومه دعا چه په باران کښې اوريدو سره اوکړې شی هغه هم نه رد کيږی او په بعض رواياتو کښې دا هم راځی چه کله به باران شروع شو نو رسول الله ﷺ به د خپل بدن مبارک نه کپړه لرې کړه او هغې ته به د لږ ساعت دپاره اوريدلو د باران اوبه په خپل بدن باندې د اچولو دپاره او يو صحابی د هغه نه د دې وجه اوتپوسله نو وې فرمائيل: ﴿ حديث عهد بربه ﴾ چه دا اوبه تازه تازه د خپل رب د خوا نه راروانې دی.

## بَابٌ فِيمَنْ سَأَلَ اللَّهَ تَعَالَى الشَّهَادَةَ

### د الله پاک نه د شهادت د سوال کولو د فضيلت بيان

[٢٥٤١] ([1]) حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ خَالِدٍ أَبُو مَرْوَانَ، وَابْنُ الْمُصَفَّى، قَالَا: حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنِ ابْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ أَبِيهِ يَرُدُّ إِلَى مَكْحُولٍ إِلَى مَالِكِ بْنِ يُخَامِرَ، أَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ، حَدَّثَهُمْ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فُوَاقَ نَاقَةٍ فَقَدْ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ، وَمَنْ سَأَلَ اللَّهَ الْقَتْلَ مِنْ نَفْسِهِ صَادِقًا ثُمَّ مَاتَ أَوْ قُتِلَ فَإِنَّ لَهُ أَجْرَ شَهِيدٍ، زَادَ ابْنُ الْمُصَفَّى مِنْ هُنَا، وَمَنْ جُرِحَ جُرْحًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ نُكِبَ نَكْبَةً فَإِنَّهَا تَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَغْزَرِ مَا كَانَتْ لَوْنُهَا لَوْنُ الزَّعْفَرَانِ وَرِيحُهَا رِيحُ الْمِسْكِ وَمَنْ خَرَجَ بِهِ خُرَاجٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَإِنَّ عَلَيْهِ طَابَعَ الشُّهَدَاءِ".

**ترجمه:** د معاذ بن جبل رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه د نبی علیه السلام نه مې اوريدلې دې چه فرمائيل ئې: هر مسلمان چه اوښې د دوه ځله لوشلو درميانی مودې هومره وخت د الله په لار کښې اوجنګيدو نو دده دپاره جنت واجب شو او چاچه د زړه په خلوص سره د الله په لار کښې د شهادت سوال اوکړو او بيا په خپل مرګ مړشي نو دې شهيد دې او څوک چه د الله په لار کښې کوم تکليف برداشت کړي يا زخمي شي نو د قيامت په ورځ به په داسې حال کښې راشي چه وينه به تري بهيږې او دويني رنګ به ئې د زعفرانو او بوئی به ئې د مشکو په شان وي! او په چا چه د الله په لاره کښې دانې (پولۍ) راوختلې نو په ده باندې به د شهيدانو مهر لګيدلې وی.

**تشريح:** په حديث الباب کښې دی چه کوم سړې د الله پاک نه په رشتينی زړه سره شهادت طلب

---

[1]: سنن الترمذي/فضائل الجهاد ١٩ (١٦٥٤)، ٢١ (١٩٥٦)، سنن النسائي/الجهاد ٢٥ (٣١٤٣)، سنن ابن ماجه/الجهاد ١٥ (٢٧٩٢)، (تحفة الأشراف: ١١٣٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٣٠، ٢٣٥، ٢٤٣، ٢٤٤) سنن الدارمي/الجهاد ٥ (٢٤٣٩) (صحيح)

کوی نو الله پاک هغه ته د شهادت ثواب ورکوی اګر چه هغه په خپل مرګ باندې وفات شی.

## شرح حديث

يعنی کوم سړې چه د لږ ساعت دپاره هم د الله پاک په لاره کښې قتال اوکړی د هغه دپاره جنت واجب کيږی، د ﴿ فواق ناقة ﴾ په مطلب کښې دوه اقوال دی ﴿ ما بين الحلبتين ﴾ يعنی د اوښې دوه کرته د پئ لشلو ترمينځه چه کوم وخت او فصل وی، د اوښې پئ چه کله لشلې شی او يو ځل د پئ لشلو مقدار پوره شی نو په مينځ کښې دوباره بيا هغه بچې دې اوښې ته ور پريخودلې شی چه هغې سره ئې غلانزې ته باقی پئ هم راکوز شی چه هغه دوباره لشلې شی، او دويم قول دا دې چه لشلو والا چه غلانزې لره زور ورکولو سره موجوده پئ راوباسی نو فورا موټې پرانيزی د دې دپاره چه پئ د پورته نه راښکته شی، هغه بار بار داسې کوی، نو ګويا د دې موټې د پرانستلو او بندولو ترمينځه چه څومره وخت خرچ کيږی هغه مراد دې ﴿ ومن جرح جرحا فی سبيل الله او نکب نکبة فانها تجئ يوم القيامة کاغزر ما کانت ﴾ "يعنی د کوم سړی په بدن کښې چه څه زخم راشی د الله پاک په لاره کښې يا څه زخم راشی په کاڼړی وغيره سره يا ننوتل مراد دی شوکه يعنی ازغنه، او د هغې نه وينه وتل شروع شی نو هغه زخم به د قيامت په ورځ باندې راشی يعنی د هغه سړی په بدن کښې به ظاهر وی، اغزر په معنی د اکثر، غزارة په معنی د کثرة، يعنی په قيامت کښې هغه زخم ا ود هغې وينه په کامل او پوره شکل کښې ظاهريږی، چه کله ازغې وغيره لاړ شی يا زخمی کيدو سره وينه راوځی نو په شروع کښې د هغې بهيدل ډير شدت او زور سره وی، بيا روستو د هغې رفتار کم شی نو هلته به د کثرت په شکل کښې ظاهريږی د هغه مجاهد کارنامې لره د الله پاک د طرف نه چه اوګورئ دې سړی زمونږ په لاره کښې دومره مشقتونه اوچت کړی دی، د هغې کارنامه ښکاره کولې شی ﴿ لونها لون الزعفران ﴾ يعنی په کتلو کښې خو به هغه وينه وينه وی خنګه چه د وينې رنګ وی د زعفران په شان سور، په بعض رواياتو کښې دا دی ﴿ اللون لون الدم ﴾، او خوشبوئی به ئې د مشک په شان وی دا ټول هر څه د هغه مجاهد په اعزاز کښې دی ﴿ ومن خرج به خراج فی سبيل الله فان عليه طائع الشهداء ﴾ "طائع" بکسر الباء وبفتح الياء دواړه قسم راغلې دې، او خراج په معنی دنبل دانه يعنی د هغه په بدن کښې په سفر جهاد کښې دانه راوځی نو په هغه باندې به د شهداء مهر او د هغوی علامت وی.

والحديث رواه بقية اصحاب السنن، وهو عند الترمذی وابن ماجة مختصرا، وقال الترمذی صحيح، قاله الشيخ محمد عوامه.

## بَابٌ فِي كَرَاهَةِ جَزِّ نَوَاصِي الْخَيْلِ وَأَذْنَابِهَا

### داس د تندی او د لکئ د وېښتو د پريکولو دمما نعت بيان

[٢٥٤٢] ([1]) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ، عَنِ الْهَيْثَمِ بْنِ حُمَيْدٍ. ح وَحَدَّثَنَا خُشَيْشُ بْنُ أَصْرَمَ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ جَمِيعًا، عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ نَصْرٍ الْكِنَانِيِّ، عَنْ رَجُلٍ، وَقَالَ أَبُو تَوْبَةَ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ شَيْخٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ، عَنْ عُتْبَةَ بْنِ

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٧٥١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٤/٤) (صحيح)

عَبْدِ السُّلَمِيِّ وَهَذَا لَفْظُهُ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا تَقُصُّوا نَوَاصِيَ الْخَيْلِ وَلَا مَعَارِفَهَا وَلَا أَذْنَابَهَا فَإِنَّ أَذْنَابَهَا مَذَابُّهَا وَمَعَارِفَهَا دِفَاؤُهَا وَنَوَاصِيَهَا مَعْقُودٌ فِيهَا الْخَيْرُ".

**ترجمه**: د عتبه بن عبد سلمی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلي دي چه فرمائیل ئي: مه کټ کوئ د اسونو د تندو ویښته او نه ددوی د څټ ویښته او نه ددوی دلکئ ویښته ځکه چه ددوی لکئ دمچانو دشړلو ذریعه ده او ددوی دڅټ ویښته ددوی دګرم ساتلو سبب دې او ددوی د تندی په ویښتو کښې خیر کیخودلی خوی دې.

## شرح حدیث

په حدیث الباب کښې دی، هغه صلی الله علیه وسلم د اسونو په باره کښې کوم چه په الات جهاد کښې دی د هغوی په باره کښې څه هدایات فرمائی چه څنګه د هغوی خبر اوساتلې شی او خدمت اوکړې شی، پس فرمائی د اسونو د ویښتو د تندی ویښته مه کټ کوئ او نه د سټ ویښتو لره، او نه د هغوی دلکئ ویښتو لره ځکه چه د هغوی پکی دی. ځکه چه د پکی په ذریعه مچ وغیره لرې کولې شی اس په خپله لکئ سره هم دا کار کوی، او د هغوی معارف یعنی د سټ ویښته د هغوی دپاره د ګرمائش ذریعه ده، یعنی د هغې په ذریعه هغوی ته تاؤ رسیږی، یعنی څنګه چه سړې د څادر نه ګرمائش حاصلوی، هغوی د دې نه دا فائده حاصلوی او د تندی په باره کښې فرمائی چه د هغوی سره خو خیر تړلې شوې دې او لازم کړې شوې دې، په بعض حدیثونو کښې د خیر تفسیر په اجر او مغنم سره کړې شوې دې.

حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه د دې تفسیر نه معلومه شوه چه د اس نه هغه اس مراد دې کوم چه د جهاد دپاره تیار کړې شوې دې، لهذا دا حدیث به د هغه حدیث خلاف نه وی چه په هغې کښې راځی: ﴿ انما الشؤم فی ثلاثة فی الفرس والدار والمرأة ﴾ د دې نه دویم قسم اس مراد دې یعنی کوم چه د جهاد دپاره نه وی.

# بَابٌ فِيمَا يُسْتَحَبُّ مِنْ أَلْوَانِ الْخَيْلِ

### په اسونو کښې کوم رنګ مزیدار وی؟

اس کوم چه په جهاد کښې ډیره په کار راتلونکې سورلی ده او د کومې د سورلئ زده کولو چه په حدیث کښې حکم راغلې دې تردې چه په مال غنیمت کښې د اس یو مستقل حصه شریعت مطهره مقرر کړې ده، د دې ډیر قسمونه دی چه د هغې د پیژندګلو دپاره څه مخصوص رنګونه او علامات دی چه د هغې نه د اس قسم معلومولې شی، د دې ټولو رنګونو او قسمونو بیان په حدیث کښې راغلې دې چه د جهاد دپاره په هغه انواع کښې چه کوم غوره نه غوره وی هغه حاصل کړې شی.

[٢٥٤٣](1) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعِيدٍ الطَّالَقَانِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُهَاجِرِ الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنِي عَقِيلُ بْنُ شَبِيبٍ، عَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ، وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَلَيْكُمْ بِكُلِّ كُمَيْتٍ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ أَوْ أَشْقَرَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ أَوْ أَدْهَمَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ".

(1) سنن النسائي/الخيل ٢ (٣٥٩٥)، ويأتي برقم (٢٥٥٣)، (تحفة الأشراف: ١٥٥١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٤٥) (حسن)

ترجمه: د ابو وهب جشمي ؓ نه روايت دې اودې صحابي دې، فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي: ستاسو د پاره کميت (برګ) اس سپين تندى والا ضروري دې، اودځلورو واړو سپينو خپووالا، اويا سپينو خپو والا سور اس سپين تندى والا او دسپينو لاسونو خپو والا يا دتورو خپو والا اوسپين تندى والا اودسپينو متو والاهم بهتردي.

## شرح حديث

قوله: حَدَّثَنِي عَقِيلُ بْنُ شَبِيبٍ، عَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ، وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ..الخ:

اوپه بل سند کښې راځي: (حَدَّثَنِي عَقِيلُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)

په دې دواړو سندونو کښې فرق لکه څرنګه چه حضرت په بذل کښې د مسند احمد په روايت کښې ثابت کړې دې هغه دادې چه په ړومبى سند کښې ابووهب الجشمي دې چه دهغه دصحابى کيدو په خپله په سند کښې تصريح ده اوپه دويم سند کښې د ابو وهب نه ابووهب الکلامي مراد دې کوم چه تابعي دې، لهذا ړومبى روايت مسند او دويم روايت مرسل شو.

قوله: "عَلَيْكُمْ بِكُلِّ كُمَيْتٍ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ أَوْ أَشْقَرَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ أَوْ أَدْهَمَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ..الخ:

په دې حديث کښې د اسونو درې قسمونه ذکر شوې دى چه د هغې د استعمال رسول اللهﷺ ترغيب ورکړې دې، ﴿ عليكم ﴾ يعنى لازم اونيسئ او اختيار کړئ، کميت، اشقر، ادهم او د هر يو سره ئې دا قيد لګولې دې يعنى د ﴿ اغر محجل ﴾ کيدو، په دې ترتيب کښې رسول اللهﷺ کميت د ټولو نه مقدم ساتلې دې او اشقر ئې په دويمه درجه کښې او ادهم په دريمه درجه کښې، ﴿ کميت ﴾ هغه اس کوم چه احمر وى شديد الحمرة هغه مائل دې د تور والي طرف ته، او اشقر هغه اس کوم چه خالص احمر وى، او ادهم کوم چه خالص تور وى، ﴿اغر ﴾ هغه اس کوم چه ابيض الجبهه وى چه دهغه په تندى باندې سپينه پټئ وى، او ﴿ محجل ﴾ په معنى د ابيض القوائم چه د هغې ځلور واړه لاسونه او خپې د کونډو پورې سپين وى، زمونږ په نزد داسې اسونو ته کوم چه ﴿ اغر محجل ﴾ وى برګى وئيلې شى، دا د اسونو يو غوره قسم دې، او هم د دې قسم ترجمة الباب امام ترمذى هم قائم کړې دې چه په هغې کښې هغوى دوه احاديث ذکر کړې دى يو هغه کوم چه ابوداؤد د دې باب دويم حديث دې يعنى ﴿ يمن الخيل فى شقرها ﴾ او بل حديث په روايت د ابوقتاده مرفوعا دا ذکر کړې دې "خير الخيل الادهم الاقرح الارثم ثم الاقرح المحجل طلق اليمين فان لم يكن ادهم فکميت على هذه الشبه ﴾

## د حديث ترمذى شرح

په دې حديث د ترمذى کښې دوه قسمونه مذکور دى اولا ادهم، ثانيا کميت، او بيا ئى دا ادهم دوه قسمونه بيان کړې دې يو ﴿ الاقرح الارثم ﴾ او دويم ﴿ الاقرح المحجل طلق اليمين ﴾، اقرح هم تقريبا هم هغه دې کوم ته چه اغر وئيلې شى، خو د اغر د تندى سپين والې نسبة زائد وى د اقرح نه، او ﴿ ارثم ﴾ هغه اس دې چه د هغه پوزه او شفة عليا پورته شونډه سپينه وى، د محجل معنى خو مخکښې تيره شوې ده خو د ترمذى په روايت کښې ﴿ محجل ﴾ سره د ﴿ طلق اليمين ﴾ قيد دې يعنى ځلور لاسونو او خپو کښې ښى لاس يا د خپى نه علاوه باقى

درې سپين وى څلور واړه خپې سپين نه وى، او قسم ثانى په دې روايت کښې هغه ﴿ ادهم ﴾ نه پس کميت دې ﴿ على هذه الشبه ﴾ مطلب دې هم دغه شان صفت والا کوم چه پورته مذکور شو، يعنى ﴿ الاقرح الارثم ﴾.

[٢٥٤٤]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُهَاجِرٍ، حَدَّثَنَا عَقِيلُ بْنُ شَبِيبٍ، عَنْ أَبِي وَهْبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَلَيْكُمْ بِكُلِّ أَشْقَرَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ أَوْ كُمَيْتٍ أَغَرَّ"، فَذَكَرَ نَحْوَهُ قَالَ مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ مُهَاجِرٍ سَأَلْتُهُ: لِمَ فُضِّلَ الْأَشْقَرُ؟ قَالَ: لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ سَرِيَّةً فَكَانَ أَوَّلَ مَنْ جَاءَ بِالْفَتْحِ صَاحِبُ أَشْقَرَ.

**ترجمه**: دابو وهب نه روايت دې فرمائى چه نبى ﷺ فرمائيلى دى لازم دې په تاسو باندې ساتل دسور اس چه دا سپين تندى والا او سپينو خپو اومتهووالاوې ياکميت سپين تندى اوخپو والاوې، اوباقى روايت ئې دتير روايت په شان بيان کړو، او محمد بن مهاجر وائى مادعقيل نه تپوس اوکړو چه دسور اس دفضيلت څه وجه ده هغه اووئيل ځکه چه نبى ﷺ يولښکر اوليږو نودهغوئى نه مخکښې چه کوم شهسوار دفتح خبر راوړو هغه په سور اس باندې سور وو.

**تشريح**: وړاندې په ابوداؤد کښې دا راځى چه راوى د خپل استاذ نه تپوس اوکړو چه تا اشقر ته ولې ترجيح ورکړه غير اشقر باندې نو استاد جواب ورکړو ځکه چه رسول الله ﷺ يو ځل د جهاد دپاره يو لښکر ليږلې وو د هغوئى نه اول چه کوم سړى د فتح خبر راوړلو هغه صاحب اشقر وو، زه وايم چه دا د هغوى خپله رائې ده اصل څيز په دې کښې تجربه ده، د تجربې نه چه کوم څيز ثابت شو هغه ته هم هغه درجه ورکړې شوه، او د دې احاديثو نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ ته د علوم وحى نه علاوه نور علوم او معلومات په زيات مقدار کښې حاصل وو، يعنى هغه معلومات چه د هغې تعلق د احکام شرعيه او د رب د رسالت سره دې چه د احکامات الهيه رسول په طريقه د کمال اوشى. صلى الله تعالى عليه وسلم وشرف وكرم والحديث رواه النسائي، قاله المنذري.

[٢٥٤٥]([2])حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ شَيْبَانَ، عَنْ عِيسَى بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُمْنُ الْخَيْلِ فِي شُقْرِهَا".

**ترجمه**: د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائى چه نبى ﷺ فرمائيلى دى: په اسونوکښې دسور رنګ والا برکتي وي.

**تشريح**: ﴿ يمن الخيل فى شقرها ﴾ د آسونو خاص برکت په هغه اسونو کښې موندلې شى کوم چه اشقر وى، والحديث رواه الترمذى.

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٥٥١٩) (حسن)

[2]: سنن الترمذي/الجهاد ٢٠ (١٦٩٥)، (تحفة الأشراف: ٦٢٩٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٧٢) (حسن)

## بَابٌ هَلْ تُسَمَّى الْأُنْثَى مِنَ الْخَيْلِ فَرَسًا

### باب: آیا اسپې (ماده) له داس (نر) نوم ایخودلې شي؟

[٢٥٤٦] (١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مَرْوَانَ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، عَنْ أَبِي حَيَّانَ، حَدَّثَنَا أَبُو زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُسَمِّي: "الْأُنْثَى مِنَ الْخَيْلِ فَرَسًا".

**ترجمه:** دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه نبي علیه السلام به ښځې اسپې ته فرس وئیلو.

### تشریح

یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم به په اسپې باندې هم د فرس اطلاق کولو. په قاموس کښې هم دا لیکلې دی چه د فرس اطلاق په نر او ښځه دواړو باندې کیږي. هم دغه شان اسپې ته ﴿ فرسة ﴾ هم وئیلې شي. اهـ په دې حدیث باندې به شرعي مسئله دا متفرع کیږي چه کوم حکم په جهاد کښې د نر اس دې هم هغه ئې د ښځې هم دې. لهذا د غنیمت حصه به د دواړو دپاره وي د نر سره به خاص نه وي. (بذل).

## بَابُ مَا يُكْرَهُ مِنَ الْخَيْلِ

### کوم قسم رنګ والا اسونه ساتل فائده مند نه دی ګڼړلې شوې؟

دا د تیر شوی باب مقابل دې. هلته د ﴿ ما یستحب ﴾ بیان وو یعنی غوره او دلته د ﴿ ما یکره ﴾ یعنی هغه چه غوره نه دی.

[٢٥٤٧] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سَلْمٍ هُوَ ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَكْرَهُ الشِّكَالَ مِنَ الْخَيْلِ". وَالشِّكَالُ يَكُونُ الْفَرَسُ فِي رِجْلِهِ الْيُمْنَى بَيَاضٌ وَفِي يَدِهِ الْيُسْرَى بَيَاضٌ أَوْ فِي يَدِهِ الْيُمْنَى وَفِي رِجْلِهِ الْيُسْرَى، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَيْ مُخَالِفٌ.

**ترجمه:** دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه نبي علیه السلام به شکال (یوقسم اسونه دي نه خوښول اشکال هغه اسونه دي دکوم چه په ښي خپه اوچپ لاس کښې سپین والې وي اویاګسه خپه اوښي لاس کښې سپین والې وي.

### شرح حدیث

یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اسونو هغه قسم چه په هغې کښې شکال موندلې شی خوښ نه وو. وړاندې په روایت کښې د شکال تفسیر ذکر دې هغه دا چه د اس په شاته ښئ خپه کښې سپین والې وی او د هغې سره په وړاندې ګسه خپه کښې سپین والې وی. یا د دې برعکس یعنی ید یمنی کښې سپین والې وی او په رجل یسری کښ. شاته خپې ته په حدیث کښې په ﴿ رجل ﴾ سره تعبیر کړې شوې دې او وړاندې خپې لره په ید سره.

د شکال یو تفسیر خو دا شو دوه تفسیرونه ئې نور راغلې دی یو دا چه د اسپې په قوائم اربعه کښې درې محجل وی او یو مطلق یعنی غیر محجل، او یو د دې برعکس یعنی

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٩٣٢) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/الإمارة ٢٧ (١٨٧٥)، سنن الترمذي/الجهاد ٢١ (١٦٩٨)، سنن النسائي/الخيل ٤ (٣٥٩٧)، سنن ابن ماجه/الجهاد ١٤ (٢٧٩٠)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٩٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٥٠، ٤٣٦، ٤٦١، ٤٧٦) (صحيح)

په قوائم اربعه کښې يو محجل او باقی درې محجل، والحديث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

## بَابُ مَا يُؤْمَرُ بِهِ مِنَ الْقِيَامِ عَلَى الدَّوَابِّ وَالْبَهَائِمِ

### د څاروو په بهترې طريقې سره د خبر اخستلو بيان

د قيام نه مراد خبر ساتل او (من) بيانيه دې، يعنی د څاروو خيال ساتل کوم چه مامور به دې د دی بيان ګويا د دې باب په حديث کښې د څاروو د حقوق بيان دې.

[٢٥٤٨](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مِسْكِينٌ يَعْنِي ابْنَ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُهَاجِرٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي كَبْشَةَ السَّلُولِيِّ، عَنْ سَهْلِ ابْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ، قَالَ: مَرَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَعِيرٍ قَدْ لَحِقَ ظَهْرُهُ بِبَطْنِهِ، فَقَالَ: "اتَّقُوا اللَّهَ فِي هَذِهِ الْبَهَائِمِ الْمُعْجَمَةِ فَارْكَبُوهَا وَكُلُوهَا صَالِحَةً".

**ترجمه:** دسهل بن حنظليه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام يو اوښ اوليدوچه شاه ئې دخيټې سره لګيدلې وه نو خلقوته ئې اوفرمائيل دالله ويره اوکړئ دڅاروو په باره کښې کوم چه بې زبانه دي په دوی باندې په مناسبې طريقې سره سورلې کوي او په دوی باندې په ښه طريقه خورئ څکئ.

### تشريح

يو ځل رسول الله ﷺ په داسې اوښ باندې تير شو چه د هغه شا د خيټې سره لګيدلې وه د خيټې د خالی کيدو د وجې نه نو رسول الله ﷺ تنبيه اوفرمائيله چه د الله پاک نه ويره کوئ، د دې بې ژبې حيواناتو په باره کښې کوم سرې چه قادر علی الکلام نه وی هغه ته اعجم وئيلې شی او هم دغه شان معجم هم.

وړاندې رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم څاروی د سورلئ دی د هغې نه سورلی هم په داسې حال کښې اخستل پکار دی چه هغه ښه مزيدار وی خوشحال وی، تروتازه او څورب وی، او کوم چه په دې کښې د خوراک وی، ذبح کولو سره خوړلې شی خوراک هم هغه ته په ښه حالت کښې پکار دې.

[٢٥٤٩](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا مَهْدِيٌّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ سَعْدٍ مَوْلَى الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ، قَالَ: أَرْدَفَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلْفَهُ ذَاتَ يَوْمٍ فَأَسَرَّ إِلَيَّ حَدِيثًا لَا أُحَدِّثُ بِهِ أَحَدًا مِنَ النَّاسِ، وَكَانَ أَحَبُّ مَا اسْتَتَرَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَاجَتِهِ هَدَفًا أَوْ حَائِشَ نَخْلٍ، قَالَ: فَدَخَلَ حَائِطًا لِرَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَإِذَا جَمَلٌ، فَلَمَّا رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَنَّ وَذَرَفَتْ عَيْنَاهُ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَسَحَ ذِفْرَاهُ فَسَكَتَ فَقَالَ: مَنْ رَبُّ هَذَا الْجَمَلِ لِمَنْ هَذَا الْجَمَلُ؟ فَجَاءَ فَتًى مِنَ الْأَنْصَارِ، فَقَالَ لِي: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ: "أَفَلَا تَتَّقِي اللَّهَ فِي هَذِهِ الْبَهِيمَةِ الَّتِي مَلَّكَكَ اللَّهُ إِيَّاهَا فَإِنَّهُ شَكَى إِلَيَّ أَنَّكَ تُجِيعُهُ وَتُدْئِبُهُ".

**ترجمه:** دعبدالله بن جعفر رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه يوه ورځ زه نبی عليه السلام په ځان پسې

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨١/٤) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/الحيض ٢٠ (٣٤٢)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٣ (٣٤٠)، (ليس عندهما قصة الجمل) (تحفة الأشراف: ٥٢١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٠٤/١، ٢٠٥)، سنن الدارمي/الطهارة ٥ (٦٩٠) (صحيح)

شاته سورکړم او یوه پټه خبره ئې راته اوکړه کومه چه به هیڅ کله چاته ونه وایم، اودنبی ﷺ به داودس ماتي په پټو ځایونو کښې دوه ځایونه ډیر خوښ وو یوخوهغه ځائې دي چه لوړوي او بل هغه ځائي دي چرته چه دونو خنګل وي، یوځل نبی ﷺ دیوانصاري باغ ته تشریف یوړونو مخامخ یو اوښ په نظر راغې اوژړل شي اودسترګونه ئې اوښکي رواني شوي، نبی ﷺ دهغه طرف ته ور روان شو او په سرباندې ئې ورته دشفقت لاس راښکلو اوهغه خاموش شو، بیاددې نه پس نبی ﷺ تپوس اوکړوچه دا اوښ دچادې اوددې مالک څوك دې؟نوپه انصاروکښې یوځوان راغې اووئې وئیل چه د ازما دې اې دالله رسوله نبی ﷺ ورته اوفرمائیل ته ددې ځاروی په باره کښې دالله پاك نه ویره نه کوې دکوم چه ته الله پاك مالك جوړ کړې ئې دې اوښ ستانه ماته شکایت اوکړوچه ته ده لره اوږې ساتې اوپه ستړې توب کښې ئې وهې.

## د حدیث مضمون

د دې حدیث حاصل دا دې چه عبدالله بن جعفر رضی الله عنه فرمائی کوم چه د رسول الله ﷺ د تره ځوئې دې، چه رسول الله ﷺ یو ځل زه په خپل ځان پسې په سورلئ باندې سور کړم د هغې نه روستو ئې ماته غلې غلې یو داسې حدیث بیان کړو کوم چه به زه چاته هم نه بیانوم دا خو جمله معترضه شوه، وړاندې چه کوم مضمون هغه ته بیانول دی هغه دا دې چه د رسول الله ﷺ دا خبره خوښه وه چه د قضاء حاجت په وخت د یو بناء مرتفع نه پناه شی (څه دیوال یا کهنډر یا هغه ریګ) یا د څو اونو مجموعه (بڼ) نه، پس یو ځل هغه د یو انصاری باغ ته تشریف یوړلو (ممکنه ده چه داتلل د اونو نه پناه د قضاء حاجت دپاره وی) بهرحال چه کله هغه دغه باغ ته اورسیدو نو هلته یو اوښ تړلې شوې وو، چه کله اوښ رسول الله ﷺ اولیدو نو هغه په برړیدو شو او د هغه په سترګو کښې اوښکې راغلې، رسول الله ﷺ د هغه خواته راغلو او د هغه په سټ باندې ئې خپل لاس راښکلو په دې باندې هغه خاموش شو، بیا ئې اوفرمائیل چه د دې اوښ مالك څوك دې؟ نو یو انصاری ځوان راغلو، هغه عرض اوکړو یا رسول الله! دا زما دې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل ته د دې ځاروو په باره کښې د الله پاك نه نه ویرېږې، یقینا دې اوښ ماته ستا شکایت کړې دې چه ته دې اوږې ساتې، ستړې ئې کړې، یعنی کار ترې زیات اخلې اوبیا ئې هم موړ نه ساتې، والحدیث اخرجه مسلم وابن ماجة دون قصة الجمل، کما ان مسلما روی قصة ارداف عبدالله بن جعفر فی المناقب.

[٢٥٥٠] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سُمَيٍّ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "بَيْنَمَا رَجُلٌ يَمْشِي بِطَرِيقٍ فَاشْتَدَّ عَلَيْهِ الْعَطَشُ فَوَجَدَ بِئْرًا فَنَزَلَ فِيهَا فَشَرِبَ، ثُمَّ خَرَجَ فَإِذَا كَلْبٌ يَلْهَثُ يَأْكُلُ الثَّرَى مِنَ الْعَطَشِ، فَقَالَ الرَّجُلُ: لَقَدْ بَلَغَ هَذَا الْكَلْبَ مِنَ الْعَطَشِ مِثْلُ الَّذِي كَانَ بَلَغَنِي، فَنَزَلَ الْبِئْرَ فَمَلَأَ خُفَّهُ فَأَمْسَكَهُ بِفِيهِ حَتَّى رَقِيَ، فَسَقَى الْكَلْبَ، فَشَكَرَ اللهُ لَهُ فَغَفَرَ لَهُ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ وَإِنَّ لَنَا فِي الْبَهَائِمِ لَأَجْرًا؟ فَقَالَ: فِي كُلِّ ذَاتِ كَبِدٍ رَطْبَةٍ أَجْرٌ".

(١): صحيح البخاري/الوضوء ٣٣ (١٧٣)، والمساقاة ٩ (٢٣٦٣)، والمظالم ٢٣ (٢٤٦٦)، والأدب ٢٧ (٦٠٠٩)، صحيح مسلم/السلام ٤١ (٢٢٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٧٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صلاة الجماعة ٢ (٦)، مسند احمد (٣٧٥/٢، ٥١٧) (صحيح)

**ترجمه:** د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی یوځل یوکس په یوه لاره روان وو او ډیر تږي شوي وو نوپه یوکوهي تیریدو ورته ورکوزشو او اوبه ئې اوڅکلې کله چه راوختونویوسپې ئې اولیدو چه ژبه ئې راویستلې وه اوختې ئې څټلې دتندې نه، نوهغه کس ووئیل زما خیال دې چه دا سپې هم زماپه شان تږي شوې دې نوکوهي ته دوباره ورکوزشو اوخپله موزه ئې ورته داوبو ډکه راوویستله او په خپله خوله کښې ئې ټینګه کړې وه تردې چه راوختو اوپه سپي ئې اوبه اوڅکلې او دالله تعالی شکرئې اداکړو نوالله ورته ددغه عمل په وجه مغفرت اوکړو، صحابه کرامو عرض اوکړو چه اې دالله رسوله چه آیا زمونږ دپاره په څاروکښې هم اجرشته دې؟نبی علیه السلام اوفرمائیل یقیناً دهرساه لرونکې په خدمت کښې اجردې.

## تشریح

په دې حدیث کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د بنی اسرائیلو د یو سړي واقعه بیان کړې ده چه هغه روان وو او په لاره کښې ډیر سخت تږې شو، لږ ساعت پس هغه ته یو کوهي ملاؤ شو هغه هغې ته ورکوز شو، او اوبه څکلو سره چه کله بهر راغلو نو یو سپې ئې اولیدو چه هغه د تندې د وجې نه لونده ختنه سټله نو هغه سړي سوچ اوکړو چه دې به هم دومره تږې شوې وی څومره چه زه تږې شوې اوم، پس هغه دوباره کوهی ته کوز شو، او د خپلې څرمنې په موزه کښې ئې اوبه ډکې کړې او هغه ئې په خپلو غاښونو سره کلکه اونیوله او د کوهی نه بهر راغلو او هغه اوبه کومې چه په موزې کښې وې په هغه ئې اوڅکلې الله پاک د هغه د دې عمل قدر اوکړو او هغه ئې اوبخښلو، په دې باندې صحابه کرامو رضی الله عنهم د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو چه ایا زمونږ دپاره د څاروو په خدمت کښې هم ثواب دې؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ﴿ فی کل ذات کبد رطبة اجر ﴾ چه د هر لوند جګر والا په خدمت کښې ثواب دې، د هر ژوندی څاروی جګر لوند وی.

په دې حدیث کښې د موعظت او عبرت نه علاوه یو عملی بحث هم دې پس داودی رحمه الله فرمائی چه دا حدیث ټولو حیواناتو ته شامل دې، او ابو عبدالملک فرمائی چه په دې حدیث کښې چه کومه واقعه ذکر ده هغه د بنی اسرائیلو ده او په اسلام کښې داسې نه ده، په اسلام کښې خو د سپو د قتل کولو حکم راغلې دې او حدیث ﴿ فی کل ذات کبد الخ ﴾ دا مخصوص دې د بعض بهائم سره چه په هغې کښې ضرر نه وی، او هم دا خبره امام نووی رحمه الله هم فرمائیلې ده چه د حدیث عموم مخصوص دې د حیوان محترم سره چه د هغه د وژلو حکم نه وی ورکړې شوې د دې په مقابله کښې د ابن التین رائې دا ده چه دا حدیث په خپل عموم باندې ساتلې کیدې شی په دې کښې هیڅ استبعاد نشته، لهذا که سپې یا د هغې په شان حیوان وی نو د هغه تنده ختمولو سره، په هغه باندې اوبه څکولو سره که هغه قتل کول وی نو هغه دې قتل کړی، ﴿ لانا امرنا ان نحسن القتلة ونهینا عن المثلة ﴾ (من البذل). والحدیث اخرجه البخاری ومسلم، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي نُزُولِ الْمَنَازِلِ (١)

### خپل منزل ته د رسيدو بيان

[٢٥٥١] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ حَمْزَةَ الضَّبِّيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، قَالَ: كُنَّا إِذَا نَزَلْنَا مَنْزِلًا لَا نُسَبِّحُ حَتَّى نَحُلَّ الرِّحَالَ.

**ترجمه:** د حمزة الضبي نه روايت دي فرمائي چه دانس بن مالك رضي الله عنه نه مي اوريدلي دي چه فرمائيل ئي كله چه به مونږ كوم منزل (ارامگاه) ته اورسيدو نوترهغې به مومونځ نه كولوترڅوچه به مونږ داوښانونه كجاوي نه وي كوزي كړي.

### تشريح

سيدنا انس رضي الله عنه فرمائي چه زمونږ صحابه كرامو دا معمول وو چه كله به په يو سفر كښې يو منزل ته كوزيدلو نو مونځ او نفلونه به مو نه كول ترڅو چه به مو د اوښانو نه د هغوی كيجاوې او سامان وغيره نه وو كوز كړي. دا د رسول الله ﷺ د هم هغه تعليم اثر وو كوم چه به ئي د ځاروو د حقوق په باره كښې فرمائيلو. والله تعالى الموفق

## بَابٌ فِي تَقْلِيدِ الْخَيْلِ بِالْأَوْتَارِ

### د اسونو په غاړه كښې د نظر ماتی دپاره څرمنو (غاړكۍ) د زوړندولو ممانعت

اوتار جمع د وتر (بفتحين) ده، يعنې پيزوان كوم چه د ځاروی نرئ او اوچه پټئ (غاړكئ) وی كومه چه په تړلو او پرانستلو كښې پكار راځي.

[٢٥٥٢] (٣) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ، أَنَّ أَبَا بَشِيرٍ الْأَنْصَارِيَّ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ فَأَرْسَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَسُولًا، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ: حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ: وَالنَّاسُ فِي مَبِيتِهِمْ لَا يَبْقَيَنَّ فِي رَقَبَةِ بَعِيرٍ قِلَادَةٌ مِنْ وَتَرٍ، وَلَا قِلَادَةٌ إِلَّا قُطِعَتْ، قَالَ مَالِكٌ: أَرَى أَنَّ ذَلِكَ مِنْ أَجْلِ الْعَيْنِ.

**ترجمه:** دابوبشير انصاري نه روايت دي فرمائي چه زه دنبی عليه السلام سره په سفر كښې ملگري وم نونبی عليه السلام يوكس اوليږلو، عبدالله بن ابي بكر رضي الله عنه وائي چه زما خيال دي چه هغه داسي اووئيل چه خلق په خپلو ځايونو كښې اوده وو، چه نه به پرېږدي دهيڅ يواوښ په غاړه كښې زوړند شوي د څرمن تار (پټئ) اونه هيڅ قسم اميل مگرشلوي به ئي. مالك وائي چه زما خيال دي چه دابندونه به د بد نظر نه دبچ كيدو دپاره زوړندولي شو.

### تشريح

د پوره حديث مضمون دا دي، ابو بشير انصاری رضي الله عنه فرمائي چه زه د رسول الله ﷺ سره په يو سفر كښې اوم نو په كوم ځائې كښې چه مونږ ايسار شوي وو د شپې د تيرولو دپاره،

---

(١) الدر المنضود كښې او بعض درسی نسخو كښې دلته د باب دا عنوان موجود نه دي، بلكه دا حديث په باب سابق كښې ذكر كړي شوي دي. ابو عمار عبدالمالك

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٥٧) (صحيح)

(٣): صحيح البخاري/الجهاد ١٣٩ (٣٠٠٥)، صحيح مسلم/اللباس ٢٨ (٢١١٥)، (تحفة الأشراف: ١١٨٦٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صفة النبي ١٣ (٣٩)، مسند احمد (٥/٢١٦) (صحيح)

رسول اللهﷺ هلته يو قاصد راوليږو چا چه راتلو سره مونږ ته د هغه ﷺ هدايت واورولو چه د يو اوښ په څټ کښې د څرمن تار دې باقي پاتې نه کړې شي، او نه مطلق اميل (غاړکئ)، بلکه هغه دې پرې کړې شي.

د دې حديث په راويانو کښې امام مالک هم دې هغه د دې حديث په شرح کښې فرمائي چه دا پرې به هغه وو کوم چه به خلقو د بد نظر نه د بچ کولو دپاره استعمالولو او د څاروی په غاړه کښې به ئې اچولو.

زمونږ په نزد په کتاب الطهارة کښې په ابواب الاستنجاء کښې يو حديث تير شوې دې چه په هغې کښې داسې دی چه ﴿ اخبر الناس ان من عقد لحيته او تقلد وترا ﴾ الحديث د حديث مزيد تشريح دې هلته اوکتلې شی چه تقليد وتر به د څه دپاره وو او د دې نه مراد څه دې، والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

## بَابُ إِكْرَامِ الْخَيْلِ وَارْتِبَاطِهَا وَالْمَسْحِ عَلَى أَكْفَالِهَا(١)

**باب: د اسونو مناسب خيال ساتل (پالنه کول) او دهغې په پټهو (بدن) باندې د لاس راښکلو بيان**

[٢٥٥٣](٢) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعِيدٍ الطَّالْقَانِيُّ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُهَاجِرِ، حَدَّثَنِي عُقَيْلُ بْنُ شَبِيبٍ، عَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ، وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ارْتَبِطُوا الْخَيْلَ وَامْسَحُوا بِنَوَاصِيهَا وَأَعْجَازِهَا، أَوْ قَالَ أَكْفَالِهَا وَقَلِّدُوهَا، وَلَا تُقَلِّدُوهَا الْأَوْتَارَ".

**ترجمه:** دابووهب جشمی رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی: اسونه تړلي ساتي اوددوی په شا اوتندی باندې لاس راکاږئ. راوی وائی چه زماشك دې چه (اعجازها) لفظ ئې فرمائيلي دې (اوكه اكفالها) اودوي لره تړئ اودوي ته غاړه څه شي مه زوړندوئ.

### تشريح

رسول اللهﷺ فرمائی، د اسونو ښه ساتنه کوئ، او د هغوی ښه خدمت کوئ (چه د هغې ذکر وړاندې راروان دې) د هغوی په تندو او شا ګانو باندې ښه لاس راکاږئ، يعنی هغه مالش کوئ، او اميل هم ورته اچوئ خو دڅرمن تار ورته مه اچوئ، دا مطلب په هغه صورت کښې دې چه هر کله اوتار د وتر جمع وئيلې شوې وی، او بل قول په دې کښې دا دې چه دا اوتار د وتر بالکسر جمع ده، چه د هغې معنی حقد او دشمنی ده، دغه شان د دې معنی د دم او طلب ثار يعنی د وينې انتقام او بدله هم ده، په دې صورت کښې به د حديث معنی دا وی چه اس ضرور اوپالئ خو د جهاد او د دشمنانو د مقابلې دپاره، نه د جاهليت د زمانې د دشمنو او د وينې د بدلې اخستلو دپاره، د جاهليت د زمانې دشمنئ ډير اوږده او په مودو مدو باندې باقي پاتې کيدونکې وه، د اسلام قبلولو نه پس د هغې نه منع کولې شی چه د دې جنګونو بدلې اوس په اسلام کښې داخليدو سره مه اخلئ، او دا ختمې کړئ. والحديث اخرجه النسائی قاله المنذری.

---

(١) په الدر المنضود کښې او بعض درسی نسخو کښې دلته د باب دا عنوان موجود نه دې بلکه دا حديث په تير باب کښې ذکر کړې شوې دې. ابو عمار عبدالمالك)

(٢) انظر رقم (٢٥٤٣)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٢٠) (حسن)

# بَابٌ فِي تَعْلِيقِ الْأَجْرَاسِ

## څاروو ته د جرس (ګنګرو) راځوړندولو د ممانعت بیان

[٢٥٥٤]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِي الْجَرَّاحِ مَوْلَى أُمِّ حَبِيبَةَ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا جَرَسٌ".

**ترجمه:** د ام المومنين ام حبيبة ﷺ نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دی: د رحمت فرشتي د هغه کسانو سره ملګرتيانه کوي چاچه په مرئ کښي جرس (ګونګرو) زوړند کړي وی.

**تشريح: قوله:** عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا جَرَسٌ"...الخ: د سفر دي ملګرو سره ملائک نه وی چه په هغي کښي جرس وی، د څاروو په غاړه کښي چه کومه ټلۍ اچولي شی کومه چه په حرکت سره اواز کوی هغي ته جرس وئيلي شی. په بدل کښي کيدي شی چه د ملائکه نه مراد غير الحفظة والكتبه وی، د کراهت جرس په علت کښي ډير اقوال دی، انه شبيه بالنواقيس، چه د هغي اواز د ناقوس د اواز مشابه وی، لكراهة صوته لانه مزمار الشيطان، يعنی د هغي د اواز د کراهت د وجي نه چه هغه د شيطان باجه ده لکه چه هم د دي باب په دريم روايت کښي را روان دی، ﴿ وقيل لانه يدل على صاحبه بصوته وكان ﷺ يحب ان لا يعلم العدو حتي ياتيهم بغتة ﴾ يعنی د هغه قافلي د راتلو معلومات کيږي چه يو جماعت راروان دي چه د هغي نه دشمن خبر شی حال دا چه هغه به د غزوه په سفرونو کښي دا غوښتل چه دشمن خبر نه شی چه په دي بي خبرئ کښي په هغه باندي حمله کول اسان شي. (عون).

وراندي په دويم روايت کښي د جرس سره د کلب اضافه هم ده. حديث ام حبيبة اخرجه النسائي وحديث ابي هريرة الاول اخرجه مسلم والترمذی، وحديث الثاني اخرجه مسلم والنسائي قاله المنذری.

[٢٥٥٥]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا كَلْبٌ أَوْ جَرَسٌ".

**ترجمه:** د ابوهريره ﷺ نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دی: فرشتي د هغه کوروالا کسانو سره ملګرتيانه کوي په کوم کښي چه سپي وي يا جرس وي.

[٢٥٥٦]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "فِي الْجَرَسِ مِزْمَارُ الشَّيْطَانِ".

**ترجمه:** د ابوهريره ﷺ نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دی: جرس دشيطان سورنې (باجې) دی.

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٨٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢٦/٦، ٣٢٧، ٤٢٦، ٤٢٧) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٥٥)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/اللباس ٢٧ (٢١١٣)، سنن الترمذي/الجهاد ٢٥ (١٧٠٣)، مسند احمد (٢٦٢/٢، ٥٣٧)، سنن الدارمي/الاستئذان ٤٤ (٢٧١٨) (صحيح)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٠٢٥)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/اللباس ٢٧ (٢١١٤)، مسند احمد (٣٦٦/٢) (صحيح)

## بَابٌ فِي رُكُوبِ الْجَلَّالَةِ

**په مرداری (ګندګۍ) خورونکی څاروی باندې د سورلۍ کولو د ممانعت بیان**

﴿ جلالة ﴾ هغه څارويې کوم چه پلیتی او ګندګی خوری، د ﴿ جله ﴾ نه اخستلې شوې دې، بتثليث الجيم، البعرة... پچې ته وئيلې شي، ﴿ جلت الدابة الجلة ﴾ چه کله هغه پلیتی اوخوری، او داسې څاروی ته جالته او جلاله وئیلې شي، وړاندې په حديث الباب کښې دی چه هغه د جلاله د سورلۍ کولو نه منع فرمائيلې ده، په شرح کښې ليکی چه دا هغه وخت دې چه کله د هغه د خوراک غالبه حصه نجاست وی تردې چه د هغې د بوئې اثر ظاهر شی د هغه په غوښه کښې او د هغه په پیو کښې، په داسې صورت کښې د هغه اکل او رکوب حرام وی، مګر دا چه هغه د څو ورځو پورې تړلې اوساتلې شی چه هغې سره نجاست او نه خوړلې شی. (بذل من مجمع البحار)

[۲۵۵۷] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "نُهِيَ عَنْ رُكُوبِ الْجَلَّالَةِ".

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول پاک ﷺ منع فرمائيلې ده دسورلۍ کولونه په مردارخور څاروی باندې.

[۲۵۵۸] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي سُرَيْجٍ الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْجَهْمِ، حَدَّثَنَا عَمْرٌو يَعْنِي ابْنَ أَبِي قَيْسٍ، عَنْ أَيُّوبَ السَّخْتِيَانِيِّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْجَلَّالَةِ فِي الْإِبِلِ أَنْ يُرْكَبَ عَلَيْهَا".

**ترجمه**: دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائيلې ده دسورلۍ کولونه په هغه اوښ باندې کوم چه مرداري خوري.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُسَمِّي دَابَّتَهُ

**خپل څاروی په يو نوم سره نامداره کول**

[۲۵۵۹] (۳) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ مُعَاذٍ، قَالَ: كُنْتُ رِدْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى حِمَارٍ يُقَالُ لَهُ عُفَيْرٌ.

**ترجمه**: دمعاذ رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه زه په نبی علیه السلام پسې شاته په يوخرباندې سوراوم کوم ته چه به عفير وئيلې شو.

### تشريح

يعنی که يو سړې د خپل څاروی يو نوم کيخودل غواړی نو دا جائز ده د رسول الله ﷺ د زمانې نه دا خبره را روانه ده، پس په حديث الباب کښې سيدنا معاذ رضي الله عنه فرمائی چه زه په

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۹) (صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۹) (حسن صحيح)

(۳): صحيح البخاري/الجهاد ٤٦ (۲۸۵٦)، صحيح مسلم/الإيمان ۱۰ (۳۰)، سنن الترمذي/الايمان ۱۸ (۲٦٤۳)، (تحفة الأشراف: ۱۱۳٥۱)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/العلم (٥۸۷۷)، مسند احمد (۲۲۸/٥) (صحيح)

رسول الله ﷺ پسې شاته سور اوم په يو خر باندې چه د هغه نوم عفير وو.

په صحيح بخارى كښې هم دا قسم يو باب دې "باب اسم الفرس والحمار" د حضرت ګنګوهی په تقرير ابوداود كښې دی چه د مصنف غرض جواز تسميه دې چه څوک دا خيال اونكړي چه د څاروو نوم كيخودل د رسوم جاهليت نه دې. والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذی والنسائی مختصرا ومطولا قاله المنذری.

## بَابٌ فِي النِّدَاءِ عِنْدَ النَّفِيرِ يَا خَيْلَ اللَّهِ ارْكَبِي

**د روانيدو په وخت كښې داسې آواز كول چه اې الله سوارو! سواره شئ!**

يعني چه كله د جهاد لښكر روانيږي نو هغوی ته "خيل الله" وئيلو سره اواز كول چه اې د الله شهسوارانو! سواره شئ او كوچ اوكړئ! په بذل كښې ليكلي دی چه دا اواز د تولو نه مخكښې په غزوة الغابة كښې موندلې شوې ده كومې ته چه غزوه ذی قرد هم وئيلې شی.

[٢٥٦٠](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى أَبُو دَاوُدَ حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، حَدَّثَنِي خُبَيْبُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِيهِ سُلَيْمَانَ بْنِ سَمُرَةَ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمَّى خَيْلَنَا خَيْلَ اللَّهِ إِذَا فَزِعْنَا، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا إِذَا فَزِعْنَا بِالْجَمَاعَةِ وَالصَّبْرِ وَالسَّكِينَةِ، وَإِذَا قَاتَلْنَا.

**ترجمه:** د سمره بن جندب رضی الله عنه نه روايت دې هغه د حمد اوصلاة نه پس فرمائی چه نبی عليه السلام به زمونږ ډلې ته (تسلی راكولو دپاره) په خيل الله نوم سره اواز كوو اوكله چه به مونږ يريدو نو رسول الله به مونږ ته حكم كولو دويرې په وخت كښې ديوځائې كيدو او د صبركولو اودتحمل، اوهمدارنګې دابه ئې دجنګ په وخت كښې هم فرمائيل (دې دپاره چه زمونږ حوصلې اوچتې شی.)

### تشريح

د سيدنا سمره بن جندب رضی الله عنه چه څومره روايات په "اما بعد" سره شروع دی د هغې تعارض زمونږ په نزد د دې نه مخكښې راغلې دې، د دې حديث مضمون دا دې چه رسول الله ﷺ زمونږ د لښكر نوم خيل الله كيخودلو او حال دا چه مونږ ويريدو، په ظاهره مطلب دا دې چه د ويرې په وخت باندې ترې رسول الله ﷺ په خيل الله سره تعبير اوفرمائيلو، د هغوی همت ئې اوچت كړو او د تسلئ وركولو دپاره ئې د دې عظيم نسبت د وجې نه چه تاسو خدائی لښكر يئ د الله پاک مدد تاسو سره دې، وړاندې په روايت كښې دی چه رسول الله ﷺ به مونږ ته د ويرې په وخت هدايت فرمائيلو د اجتماع، يوځائې كيدو او د صبر او سكون، او هم دغه شان به ئې هدايت فرمائيلو مونږ ته د قتال په وخت هم. والحديث سكت عن تخريجه المنذری.

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦١٩) (ضعيف)

## بَابُ النَّهْيِ عَنْ لَعْنِ الْبَهِيمَةِ
### په څاروو باندې د لعنت وئیلو د ممانعت بیان

[٢٥٦١](١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْمُهَلَّبِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي سَفَرٍ، فَسَمِعَ لَعْنَةً فَقَالَ: "مَا هَذِهِ؟ قَالُوا: هَذِهِ فُلَانَةُ لَعَنَتْ رَاحِلَتَهَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ضَعُوا عَنْهَا فَإِنَّهَا مَلْعُونَةٌ، فَوَضَعُوا عَنْهَا، قَالَ عِمْرَانُ: فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهَا نَاقَةٌ وَرْقَاءُ".

**ترجمه:** د عمران بن حصين رضي الله عنه نه روایت دې فرمائي چه نبی علیه السلام په یو سفرکښې دچانه دلعنت لفظ واوریدونبی علیه السلام اوفرمائیل داڅه دی؟ خلقو ورته اووئیل دافلانئ ده په خپلې سورلئ لعنت وائی نبی علیه السلام اوفرمائیل ددې اوښې نه کجاوه کوزه کړئ ځکه چه دا ملعون دې نوخلقو هغه کوزه کړه عمران راوی وائی ګویاکښې چه زه ئې اوس هم وینم چه توربخنه اوښه وو.

### تشریح

یعنی څاروی ته د بد دعا کولو نه ممانعت دې، پس په حدیث الباب کښې دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په یو سفر کښې وو نو هغه د لعنت اواز ئې واوریدو، هغه صلی الله علیه وسلم تپوس اوکړو چه دا څه دی، صحابه کرامو عرض اوکړو چه یوې زنانه په خپله سورلئ باندې لعنت اوکړو، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه هغه زنانه د هغې د سورلئ نه راکوزه کړئ، ځکه چه هغه د هغې په قول ملعونه ده، پس هغه د هغې نه راکوزه کړې شوه، سیدنا عمران رضي الله عنه فرمائی چه ما هغه اوښه لیدلې وه چه د خړ رنګ اوښه وه. والحدیث اخرجه مسلم والنسائی قاله المنذری.

## بَابٌ فِي التَّحْرِيشِ بَيْنَ الْبَهَائِمِ
### د ځناورو او څاروو د جنګولو د ممانعت بیان

[٢٥٦٢](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ قُطْبَةَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ سِيَاهٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي يَحْيَى الْقَتَّاتِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّحْرِيشِ بَيْنَ الْبَهَائِمِ".

**ترجمه:** دابن عباس رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده د ځناورو جنګولونه په خپل مینځ کښې.

### تشریح

یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم څاروو لره خپل مینځ کښې جنګولو نه منع فرمائیلې ده، لکه چه د اوښانو والا بعض وخت د دوه اوښانو ترمینځه مقابله کوی په جنګ کولو کښې، هم دغه شان د دوه ګډورو ترمینځه او د دوه چرګانو ترمینځه، (بین الجمال والکباش والدیوک) او د منع وجه ظاهره ده لانه من الملاهی، یعنی دا د لهو او لعب نه دی وفیه ایلام الدواب واهلاکهم، یعنی څاروو ته بغیر د وجې نه اذیت ورکول او که دا حرکت دواړو طرفونو ته شرط تړلو سره اوکړې

(١): صحيح مسلم/البر ٢٤ (٢٥٩٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٢٩، ٤٣١)، سنن الدارمي/الاستئذان ٤٥ (٢٧١٩) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الجهاد ٣٠ (١٧٠٨)، (تحفة الأشراف: ٦٤٣١) (ضعيف)

شي نو بيا دا جواري هم ده. (بذل) والحديث اخرجه الترمذي مرفوعا ومرسلا قاله المنذري.

## بَابٌ فِي وَسْمِ الدَّوَابِّ

### په ځاروو باندې د نخو جوړولو بيان

[٢٥٦٣] (١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَخٍ لِي حِينَ وُلِدَ لِيُحَنِّكَهُ فَإِذَا هُوَ فِي مِرْبَدٍ يَسِمُ غَنَمًا أَحْسِبُهُ قَالَ: فِي آذَانِهَا.

**ترجمه:** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام ته مې خپل ورور يوړو كله چه هغه پيدا شو دتحنيك (څه شي جول او چاته په خوله كښې اچول) دپاره، نوچه ورغلم او مې ليدل چه نبي عليه السلام دځاروو په ځائي كښې وو او په چيلو ئې نښې (داغونه) جوړول، هشام وائي زما خيال دي چه انس اووئيل: دهغوى په غوږونو ئې داغونه لګول

### شرح حديث

سيدنا انس رضي الله عنه فرمائي چه كله زما وړوكي رور پيدا شو نو ما هغه د تحنيك دپاره رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يوړلو، چه كله هلته اورسيدم نو ما اوكتل چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د ګډو بيزو په غوجل كښې وو او د داغ په ذريعه ئې په بيزو باندې نخښې لګولې، امام شعبه رحمه الله فرمائي چه زه په خپل استاد هشامُ باندې ګمان كوم چه هغه په دې روايت كښې ﴿ فى اذانها ﴾ وئيلې وو، يعنى نخښې ئې د ګډو بيزو په غوږونو باندې لګولې

مربد د ځاروو غوجل ته وئيلې شي چرته چه هغوى تړلې شي او د كهجورو د اوچولو ځائې ته هم وئيلې شي او د ﴿ يسم ﴾ د ﴿ وسم ﴾ نه اخستلې شوې دې چه د هغې معنى د نښان او علامت لګولو ده، اوسپنه ګرمولو سره لګولې شي، د كوم څيز په ذريعه چه لګولې شي هغه ته ﴿ ميسم ﴾ وئيلې شي.

### په وسم الدواب كښې مذاهب ائمه

د جمهور علماء شافعيه په نزد د زكاة او جزيه اوښان او ګډو بيزو كښې دا نخښې لګول مستحب دي، خو په غير وجه كښې (يعنى د مخ نه علاوه د بدن په څه بل څه حصه كښې) او وسم فى الوجه بالاتفاق ناجائز دې، او د احنافو په نزد وسم فى غير الوجه مباح دې، او د حافظ د كلام نه معلوميږي چه دا حديث د احنافو خلاف دې، يعنى د هغوى په نزد وسم البهائم جائز نه دې، حال دا چه داسې نه ده. زمونږ په نزد هم دا وسم جائز دې، پس په در مختار كښې دي چه ﴿ لا باس بكي البهائم للعلامة وثقب اذن الطفل من البنات ﴾ لهذا د جمهورو او احنافو مذهب په دې كښې يو دې، زيات نه زيات دا وئيلې كيدې شي چه د جمهورو په نزد مستحب دې او د احنافو په نزد مباح

او دا ﴿ وسم فى الحيوان ﴾ په باره كښې دى، او په انسان باندې ﴿ وسم ﴾ په مخ كښې كول بالاجماع حرام دى، او بغير د مخ نه مكروه دى (هامش اللامع ج٣ ص ٣١٢)

---

(١): صحيح البخاري/الزكاة ٦٩ (١٥٠٢)، والذبائح ٣٥ (٥٥٤٢)، صحيح مسلم/اللباس ٣٠ (٢١١٩)، الأداب ٥ (٢١٤٥)، سنن ابن ماجه/اللباس ٤ (٣٦٥)، (تحفة الأشراف: ١٦٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٩/٣، ١٧١، ٢٥٤، ٢٥٩) (صحيح)

امام بخاري رحمه الله هم په دې موضوع باندې باب تړلې دې په كتاب الزكاة كښې ﴿ باب وسم الامام ابل الصدقة ﴾ او بيا د هغې نه روستو په كتاب الذبائح والصيد كښې په "باب العلم والوسم فى الصورة" والحديث اخرجه البخارى ومسلم (قاله المنذرى)

## بَابُ النَّهْيِ عَنِ الْوَسْمِ فِي الْوَجْهِ وَالضَّرْبِ فِي الْوَجْهِ

### په مخ د داغ جوړولو او ګذار وركولو نه د ممانعت بيان

[٢٥٦٤](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرَّ عَلَيْهِ بِحِمَارٍ قَدْ وُسِمَ فِي وَجْهِهِ فَقَالَ: "أَمَا بَلَغَكُمْ أَنِّي قَدْ لَعَنْتُ مَنْ وَسَمَ الْبَهِيمَةَ فِي وَجْهِهَا أَوْ ضَرَبَهَا فِي وَجْهِهَا"، فَنَهَى عَنْ ذَلِكَ.

**ترجمه:** دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دنبي عليه السلام په خوا كښې يوخر تيركړې شو چه په مخ باندې ئې داغ وه نبي عليه السلام اوفرمائيل آيا تاسو خبرنه يئ چه مالعنت ويلې دې په هغه چاباندې چه دڅاروي په مخ داغ جوړه كړي اويا ګذار وركړي په مخ باندې، بيا نبي عليه السلام ددې نه منع اوفرمائيله.

### تشريح

په دې حديث كښې په وسم فى الوجه باندې وعيد دې او هم دغه شان په ضرب فى الوجه باندې هم كوم چه بالاجماع مكروه دې لكه چه اوس پورته تير شو. والحديث اخرجه مسلم والترمذى بمعناه، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الْحُمُرِ تُنْزَى عَلَى الْخَيْلِ

### د خرونو داسپو سره د جوتى كولو (ملاوولو) د كراهيت بيان

[٢٥٦٥](2) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنِ ابْنِ زُرَيْرٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَغْلَةٌ فَرَكِبَهَا، فَقَالَ عَلِيٌّ: لَوْ حَمَلْنَا الْحَمِيرَ عَلَى الْخَيْلِ فَكَانَتْ لَنَا مِثْلُ هَذِهِ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا يَفْعَلُ ذَلِكَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ".

**ترجمه:** د على بن أبى طالب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام ته يوخچر په هديه كښې وركړې شو نوهغهورباندې سور شو، حضرت على رضي الله عنه اووئيل كه چرې مونږ په خرونو سره اسپې جوتى كړو نوزمونږ به هم داسې خچرې وى نبي عليه السلام په دې اوريدو سره اوفرمائيل داسې خو هغه كسان كوي څوك چه نه پوهيږي.

### د حديث مضمون

سيدنا على رضي الله عنه فرمائي چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې د چرته نه يوه بغله(3) يعنى ښځه

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٧٥٧)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/اللباس ٢٩ (٢١١٧)، سنن الترمذي/الجهاد ٣٠ (١٧١٠)، مسند احمد (٣٢٣/٣) (صحيح)

(2): سنن النسائي/الخيل ٨ (٣٦١٠)، (تحفة الأشراف: ١٠١٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٨/١، ١٠٠، ١٥٨) (صحيح)

(3) بغل د ځناورو هغه قسم دې چه دا د اس او خرې، يا بالعكس اجتماع نه پيدا كيږي، زمونږ استاذ مولانا صديق احمد صاحب به فرمائيل چه قچر د اس خورنې دې.

خچره په طور د هدیه راغله چه په هغې باندې رسول الله ﷺ سور هم شو، سیدنا علی ﷺ فرمائی چه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه که مونږ خلق هم خره په اسپو باندې اوخیژوو نو دلته به هم خچر پیدا کیدل شروع شي، نو هغه ﷺ اوفرمائیل چه دا کارونه هغه خلق کوی کوم چه ناپوهه او بیوقوفه دی ځکه چه په دې کښې استبدال الادنی بالخیر دې، یعنی د ښه څیز په بدله کښې کمزوری څیز اختیارول دی، ځکه چه بغل ادنی دې د خیل نه، او خیل اعلی دې.

## په ترجمة الباب والا مسئله کښې فقهی بحث

د دې نه پس ځان پوهه کول پکار دی چه انزاء الحمیر علی الخیل فقهاء کرامو جائز لیکلې دی، پس د جمهور او ائمه اربعه مذهب هم دا دې، او بعض فقهاء کرامو لکه عمر بن عبدالعزیز او عامر شعبی رحمة الله علیهم ورته جائز وئیلې دی [1] د جواز دلیل ئې دا دې چه د رسول الله ﷺ نه رکوب البغل ثابت دې، بله دا چه الله پاک د دې شمیر په نعمتونو کښې کړې دې او په طور د احسان ئې ذکر کړې دی پس فرمائی ﴿ والخیل والبغال والحمیر لترکبوها وزینة ﴾ باقی په دې حدیث کښې چه رسول الله ﷺ دې ته ناپوهی وئیلې ده نو دا د اتخاذ بغال کراهت په عدم جواز باندې دال نه دې بلکه په دې سره مقصود ترغیب دې د تکثیر خیل ځکه چه په دې کښې ثواب دې، او د ﴿ والذین لا یعلمون ﴾ مطلب هم دا دې چه کومو خلقو ته د دې ثواب نه دې معلوم هغوی داسې کوی، حکاه الحافظ عن الطحاوی، هم دغه شان خطابی فرمائی چه د اس په ذریعه جهاد کولې شي او باقاعده د هغه په مال غنیمت کښې حصه وی ځنګه چه د فارس (سور) وی، هم دغه شان د هغه غوښه هم ماکول ده او د دې نه یو فضیلت هم د بغل دپاره ثابت نه دې، خو علامه طیبی یوه خبره لیکلې ده (کما فی البذل) هغه دا چه په رکوب بغل او د هغې په ذریعه زینت حاصلول اګر چه جائز دی او هم دې سره د احسان ذکر هم راغلې دې خو کیدې شي چه سره د انزاء جائز نه وی، لکه چه بعض تصویرونه داسې دی چه د هغې استعمال په فراش او بساط وغیره کښې مباح دې، خو د تصویر عمل حرام دې

## د بغله مذکوره فی الحدیث متعلق کلام

د دې بغله په باره کښې روایت دې کوم چه رسول الله ﷺ ته په هدیه کښې راغلې وه، د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د اهداء بغله ذکر هم په دې کتاب کښې په "باب احیاء الموات" کښې راغلې دې په لفظ د ﴿ فَأَتَيْنَا تَبُوكَ فَأَهْدَى مَلِكُ أَيْلَةَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بَغْلَةً بَيْضَاءَ وَكَسَاهُ بُرْدَةً وَكَتَبَ لَهُ بِبَحْرِهِ ﴾ "یعنی د غزوه تبوک په سفر کښې چه کله هغه ﷺ تبوک ته اورسیدو نو د ایله بادشاه د هغه ﷺ په خدمت کښې راتلو سره سپین خچر پیش شو، او رسول الله ﷺ هغه ملک ایله ته د دې په بدله کښې یو قیمتی څادر او شال هدیه

[1] ذکر تلك المذاهب العلامة العینی فی شرح الطحاوی انظر حاشیة الطحاوی المطبوع بحاشیة والدی مولانا حکیم محمد ایوب المظاهری رحمه الله)

کړو، وئیلې شوې دی چه هم د دې بغلې بیضاء نوم دلدل دې او یو بغله بیضاء هغه ده چه د هغې ذکر د بخاری په "کتاب الجهاد "باب بغلة النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ البیضاء" په ضمن کښې د غزوه حنین په ذکر کښې راغلې دې ﴿ فلقیهم هوازن بالنبل والنبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بغلته البیضاء ﴾ د دې په شرح کښې حافظ لیکی چه په کومه بغله بیضاء باندې رسول اللهﷺ په غزوه حنین کښې وو هغه د دې بغله بیضاء نه علاوه ده کومه چه ملک ایله هغه ﷺ ته هدیه کړې وه، ځکه چه هغه په غزوه تبوک کښې وو او غزوه حنین د دې نه مخکښې شوې ده، او د مسلم په یو روایت کښې دی چه په کومه بغله باندې رسول اللهﷺ په حنین کښې وو هغه ورته فروه بن نفاثه پیش کړې وه، هم دغه شان د ملک ایله د اهداء حدیث په صحیح بخاری کتاب الزکاة کښې هم شته (فتح الباری ص ۸۸، ج ۶) والحدیث رواه النسائی (قاله الشیخ محمد عوامة).

## بَابٌ فِي رُكُوبِ ثَلَاثَةٍ عَلَى دَابَّةٍ

### د درې کسانو په یو ځاروی باندې دسورلئ کولو بیان

[٢٥٦٦](١) حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُوَرِّقٍ يَعْنِي الْعِجْلِيَّ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ، اسْتُقْبِلَ بِنَا فَأَيُّنَا اسْتُقْبِلَ أَوَّلًا جَعَلَهُ أَمَامَهُ فَاسْتُقْبِلَ بِي فَحَمَلَنِي أَمَامَهُ، ثُمَّ اسْتُقْبِلَ بِحَسَنٍ أَوْ حُسَيْنٍ، فَجَعَلَهُ خَلْفَهُ فَدَخَلْنَا الْمَدِينَةَ وَإِنَّا لَكَذَلِكَ".

**ترجمه**: دعبدالله بن جعفر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به کله دسفرنه راتلو نومونږ به داستقبال دپاره ورتلونو په مونږ کښې چه به کوم یو مخکښې ور ورسیدو هغه به ئې دځان سره سورکړو نوزه یوځل داستقبال دپاره ړومبې ورسیدم نوزه ئې دځان سره سورکړم او بیا ئې حسن یاحسین استقبال ته را ورسیدو نوهغه ئې دځان نه وروسته سورکړو، مونږ په همدې حالت ناست ووچه مدینې ته داخل شو (یعنی درې کسان په یوه سورلئ)

### شرح حدیث

د جعفر طیار رضی الله عنه ځوئې عبدالله فرمائی، د خپل ماشومتوب قصه اوروی چه کله به رسول اللهﷺ د یو سفر نه واپس راتلو نو مونږ به هم د هغه د استقبال دپاره بوتلې شو، یعنی کله چه به زمونږ مشران د مدینې منورې نه بهر د استقبال دپاره تلل نو مونږ به ئې هم بوتلو، د "مونږ" نه مراد د هغه د کور واړه ماشومان دی، نو وراندې هغه فرمائی چه کوم ماشوم به د هغه خواته اول اورسیدو نو هغه به ئې د ځان سره په سورلئ باندې مخکښې سور کړو، او کوم چه به روستو اورسیدو نو هغه به ئې روستو سور کړو، یو ځل داسې اوشو چه زه اول اورسیدم نو زه ئې د ځان نه مخکښې کینولم، د دې نه روستو د حسنین نه یو تن رااورسیدو نو هغه ئې په ځان پسې کینولو ﴿ فدخلنا مدینة وانا لکذلک ﴾ نو مونږ او رسول اللهﷺ

(١): صحیح مسلم/فضائل الصحابة ٣٥ (٢٤٢٨)، سنن ابن ماجه/الأدب ٣٣ (٣٧٧٣)، (تحفة الأشراف: ٥٢٣٠)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الاستئذان ٣٦ (٢٧٠٧)، مسند احمد (٢٠٣/١) (صحیح)

مدینې ته هم په دې حالت کښې داخل شو، د دې حدیث نه معلومه شوه چه په یوه سورلئ باندې د درې کسانو سوریدل جائز دی، په دې شرط چه سورلی ئې اوچتولې شی. (بذل) او دلته خو د عدم تحمل خو سوال نه پیدا کیږی ځکه چه دوه په دې کښې ماشومان وو، بهرحال په ترجمة الباب کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته چه سوریدونکو له د سورلئ د تحمل خیال ساتل ضروری دی، قلت ويستفاد منه بالطريق الاولى انه لا ينبغى ان يركب على رکشا، عدة اشخاص زائدا على المعتاد، والمعتاد هو الاثنان، ولا سيما لاهل العلم والوقار. والحديث اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي الْوُقُوفِ عَلَى الدَّابَّةِ

### په ځاروی باندې د بې ضرورته کیناستو ممانعت بیان

[۲۵۶۷](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي عَمْرٍو السَّيْبَانِيِّ، عَنِ ابْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِيَّاكُمْ أَنْ تَتَّخِذُوا ظُهُورَ دَوَابِّكُمْ مَنَابِرَ فَإِنَّ اللَّهَ إِنَّمَا سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُبَلِّغَكُمْ إِلَى بَلَدٍ لَمْ تَكُونُوا بَالِغِيهِ إِلَّا بِشِقِّ الْأَنْفُسِ وَجَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فَعَلَيْهَا فَاقْضُوا حَاجَتَكُمْ".

**ترجمه:** د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی خبردار د ځاروو د شاګانو نه د منبر جوړولو نه ځان بچ وساتئ ځکه چه دوی الله تعالی ددې د پاره ستاسو تابع کړي دي چه تاسو اورسوي دیوښار نه بل ښار ته کوم ته چه تاسونشئ رسیدلې مګر په مشقت سره، او الله تعالی ستاسو د پاره زمکه پیدا کړې، نو هم په دې باندې خپل حاجتونه پوره کوئ

### شرح حدیث

په دې باب کښې د مخکښې باب په شان د سورلئ د حق رعایت په یوه بله طریقه سره بیان شوې دې لکه چه په حدیث الباب کښې دی چه د سورلئ سره دې د ممبر په شان معامله اونکړې شی چه په سورلئ باندې په ناسته په لاره کښې اودریدو سره په بل څه کار کښې مشغول شی سوا د مزل نه، مثلاً چا سره خبرو کولو کښې د ډیر ساعته پورې مشغول شی، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه ګورئ الله پاک دا ځاروی ستاسو د سورلئ د پاره مسخر کړې دی چه تاسو د یو ښهر نه بل ښهر طرف ته چه د هغې طرف ته تاسو بغیر د مشقت نه نه شئ تلې په سهولت سره رسوی. ﴿ وجعل لكم الارض فعليها فاقضوا حاجتكم ﴾ او د مزل او سفر نه علاوه د نورو کارونو د پاره الله پاک ستاسو د پاره زمکه جوړه کړې ده په دې باندې هغه کار کوئ.

په اصل کښې د شارع علیه السلام مقصد دا دې ﴿ اعطاء كل ذى حق حقه ﴾ او دا چه د هر یو خیز استعمال د هغې د وضع او حال مناسب وی، د نعمت صحیح استعمال هم د دې قدردانی او د دې شکر دې، سبحان الله! زمونږ د شریعت څه غوره تعلیمات دی.

په دې حدیث کښې لفظ ﴿ ایای ﴾ راغلې دې دا د تحذیر د قبیل نه دې، مشهور خو په تحذیر کښې دا دې چه هغه پ ضمیر د مخاطب سره وی لکه ﴿ اياك والاسد ﴾، هم دغه شان دلته هم په بعض نسخو کښې د ﴿ ایای ﴾ په ځائې ﴿ اياكم ان تتخذوا ﴾ دې.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۴۵۹) (صحیح)

بهرحال د دې حدیث نه معلومه شوه چه تحذیر په ضمیر د متکلم هم صحیح دې اګر چه قلیل دې، او بعض په دې باندې د شذوذ حکم لګولې دې.

## بَابٌ فِي الْجَنَائِبِ

### صرف د زیب او زینت دپاره د اوښانو ساتلو بیان

جنائب جمع د جنيبة ده او جنيبة په معنی د مجنوبة ده، کوم چه د جنب نه ماخوذ دې په معنی د اړخ، کوم څیز چه انسان په خپل اړخ کښې او ځان سره ساتی هغې ته به مجنوب وئیلې شی، لکه چه د حماسه په دې شعر کښې دی.

جناب سعید بن ابی هند به فرمائیل: زما دا خیال دې چه د شیطان په کور کښې هم دا کتې او کیجاوې دی کوم چه خلقو په ریښمی کپړو کښې اینغښتلې دی.

هوای مع الركب اليمانين مصعد جنيب وجثمانى بمكة موثق

(ترجمه: زما محبوب د یمنی شهسوارانو سره په لرې سفر باندې روان دې او هغه مجنوب دې یعنی خلق په هغه پسې شاته روان دی او زما بدن په مکه مکرمه کښې مقید دې.

د کوم جنيبه ذکر چه په ترجمة الباب کښې دې هغې ته کوتل وائی، کوتل اس یا بله سورلی (یعنی د نمائش او زینت دپاره ساتلې شوې اس یا سورلی).

[٢٥٦٨] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي يَحْيَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَكُونُ إِبِلٌ لِلشَّيَاطِينِ وَبُيُوتٌ لِلشَّيَاطِينِ، فَأَمَّا إِبِلُ الشَّيَاطِينِ فَقَدْ رَأَيْتُهَا يَخْرُجُ أَحَدُكُمْ بِجُنَيْبَاتٍ مَعَهُ قَدْ أَسْمَنَهَا فَلَا يَعْلُو بَعِيرًا مِنْهَا، وَيَمُرُّ بِأَخِيهِ قَدِ انْقَطَعَ بِهِ فَلَا يَحْمِلُهُ، وَأَمَّا بُيُوتُ الشَّيَاطِينِ فَلَمْ أَرَهَا". كَانَ سَعِيدٌ يَقُولُ: لَا أُرَاهَا إِلَّا هَذِهِ الْأَقْفَاصَ الَّتِي يَسْتُرُ النَّاسُ بِالدِّيبَاجِ.

ترجمه: د ابوهريره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی: بعضې اوښان داسې دي چه هغه دشیطانانووي اوبعضې کورونه داسې وی چه هغه د شیطانانووي، پس کوم اوښان چه د شیطانانودي هغه لیدلی دی چه په تاسو کښې څوك دزینت دپاره دځان سره اوښان ګرځوي اوڅاربه کړي ئې وي او په دې اوښانوباندې سورلې نه کوي، اوکه چرې په لاره کښې خپل يو مسلمان ورور اووینې چه دتلونه عاجزه شوې وي لیکن دوی هغه نه سور وي اومادشیطانانو کورونه هم اولیدل، سعید وائی چه زه خودشیطانانو کورونه هم ددغه اوښانو کجاوته وایم کوموته چه دریښمو پردې اویزان دي.

### شرح حدیث

سیدنا ابوهريره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به د پیشنګوئی په طور فرمائیل چه یوه زمانه به راشی چه په هغې کښې به څه اوښان (د سورلئ اوښان) به د شیاطینو دپاره وی او څه کورونه (هم) به داسې وی کوم چه به د شیطانانو دپاره وی، اوس وراندې راوی حدیث ابوهريره رضی الله عنه فرمائی چه په هغې کښې چه په دې دواړو کښې اولنې څیز خو ما اولیدو، یعنی ابل الشیاطین لره، بیا وراندې وضاحت فرمائی چه په تاسو کښې یو تن د کور نه اوځی چرته د تلو دپاره څو څو سورلئ خپل ځان سره بوځی کومې چه ئې ښه څربې او خوشحاله ساتلې

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٣٧٨) (ضعيف)

دي، پس نه سوريږي په هغې کښې په څه باندې او تيريږي د خپل زور په خوا کښې چه د هغه حال دا دي چه د هغه نه مزل نه کيږي د خپلو ملګرو نه منقطع شوې دې (د سورلۍ نه کيدو وجې نه) خو هغه دا د جنيباتو خاوند په خپله يوه سورلۍ باندې نه سوروي.

په حديث کښې د دې جنيباتو د مذمت دپاره د شيطان سورلۍ وئيلې شوې دې، ځکه چه دا سورلۍ هغه سړې ځان سره د فخر او رياکارۍ دپاره بوځي، او د خپل رياست د ښودلو دپاره ئې د ځان سره ساتي. او ظاهره ده چه دا شيطاني حرکت دې په دې وجه ئې دې ته ﴿ للشياطين ﴾ وئيلې دې، او بله خبره دا ده چه هر کله د هغې مالک په هغې باندې يو معذور انسان هم نه سوروي نو هم دا به وئيلې شي چه هغه دا د شيطان دپاره ساتلې دې.

﴿ واما بيوت الشياطين فلم ارها ﴾ سيدنا ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه دويمه نخښه يعنې بيوت الشياطين ما تر اوسه پورې نه دي ليدلي، کيدې شي چه وړاندې په يوه زمانه کښې بيا موندلې شي، په دې باندې د ابوهريره رضي الله عنه شاګرد سعيد بن ابی هند رحمه الله فرمائي چه زمونږ استاذ خو هغه نه وو ليدلي (خو ما اوليدل) بيا وړاندې خپل خيال ظاهروي چه زه ګمان نه کوم د شياطين د کورونو مګر په هغه ښکلي پنجرو کوم چه په پرده باندې پټ ساتلې شي، يعنې ريښمي څادرې په هغې باندې اچولې شي او هغه ډولې کولې شي، په دې سره اشاره د مالدارانو او رئيس خلقو د هغه سورلو طرف ته ده کوم چه انتهائي ډولې کولې شي.

## بَابٌ فِي سُرْعَةِ السَّيْرِ وَالنَّهْيِ عَنِ التَّعْرِيسِ فِي الطَّرِيقِ

### د تيز رفتار کولو او په لاره کښې دشپې تيرولو نه دمنع بيان

[٢٥٦٩](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا سَافَرْتُمْ فِي الْخِصْبِ فَأَعْطُوا الْإِبِلَ حَقَّهَا، وَإِذَا سَافَرْتُمْ فِي الْجَدْبِ، فَأَسْرِعُوا السَّيْرَ فَإِذَا أَرَدْتُمُ التَّعْرِيسَ، فَتَنَكَّبُوا عَنِ الطَّرِيقِ".

**ترجمه**: د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي: کله چه تاسو دفراخۍ په وخت کښې سفر کوئ نو اوښانو ته خپل حق ورکړئ او کله چه دقهط په ورځو کښې سفر کوئ نو په تيزۍ سره ځئ او کله چه چرته شپه تير وئ نو دلارې نه بچ کيږئ.

**تشريح**: ﴿ خصب ﴾ يعنې د ګيا او شينکو زيات کثرت او ډير والې ﴿ جدب ﴾ د دې په مقابل کښې چه کوم وړاندې حديث راروان دې يعنې د باران د نه کيدو د وجې نه خشک سالي، مطلب دا دې چه خلقو له پکار دي چه کله د ګيا په زمانه کښې سفر کوي نو هغه سورلۍ ته دې د ګيا نه د منتفع کيدو موقع ورکړي، په هر يو منزل باندې دې نزول کوي، هلته دې لږ ساعت ايسار شي او هغه سورلۍ ته دې د ګيا خوړلو موقع ورکړي، پس په وړاندې روايت کښې دي ﴿ ولا تعدوا المنازل ﴾ يعنې په منزلو باندې تيريدو سره لاړ نه شئ، بلکه هلته دمه کوئ، او د دې په خلاف چه کله د خشک سالۍ په موسم کښې سفر کوئ نو سفر لره زر د ختمولو کوشش کوئ بغير د ضرورت نه په لاره کښې مه ايساريږئ د دې دپاره

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٢٦)، وقد اخرجه: صحيح مسلم/الإمارة ٥٤ (١٩٢٦)، سنن الترمذي/الأدب ٧٥ (٢٨٥٨)، مسند احمد (٢/٣٣٧) (صحيح)

چه زر منزل مقصود ته اورسيږئ، د دې نه پس د يو عام قاعدې خبره بيانوی چه کله په منزل باندې کوز شو نو د خلقو د لارې نه لرې جدا ، چه تيريدونکو د تيريدو وخت تکليف نه وی.
والحديث اخرجه مسلم والنسائی والترمذی، قاله المنذری.

## باب فى الدُّلْجَةِ[1]

### په تياره کښې د سفر کولو بيان

[٢٥٧٠](٢)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا هِشَامٌ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا قَالَ، بَعْدَ قَوْلِهِ: "حَقَّهَا وَلَا تَعْدُوا الْمَنَازِلَ.

**ترجمه:** دجابر بن عبد الله رضی الله عنه نه دتير روايت په شان روايت منقول دې مګر ددې اضافي سره چه نبی عليه السلام د حقها دلفظ نه وروسته ولا تعدو المنازل اوفرمائيل يعنی تاسو دخپل منزل نه مخکښې مه ځئ (ددې دپاره چه دسورلې ښاروته تکليف اونه رسيږي).

[٢٥٧١](٣)حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا أَبُو جَعْفَرٍ الرَّازِيُّ، عَنْ الرَّبِيعِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَلَيْكُمْ بِالدُّلْجَةِ فَإِنَّ الْأَرْضَ تُطْوَى بِاللَّيْلِ".

**ترجمه:** د انس بن مالك رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی: لازم دي په تاسو باندې سفرکول دشپې په تياره کښې ځکه چه زمکه دشپې رانغښتلې کيږی.

### شرح حديث

﴿ دلجة ﴾ يعنی شپه تيرول دا اسم مصدر دې ﴿ ادلاج ﴾ نه، (بسکون الدال ﴾ چه د هغې معنی د شپې په ابتداء کښې تلل، او يو دې ﴿ ادلاج ﴾ (تشديد دال سره) يعنی د شپې په اخره کښې تلل، او د ادلاج معنی د مطلق سير فی الليل هم راځی، او په ظاهره کښې په حديث کښې هم دا مراد دې، مطلب دا دې چه مسافر له پکار دی چه په سفر پوره کولو کښې صرف د ورځې په تلو کښې اکتفاء اونکړی بلکه د شپې هم تلل پکار دی ځکه چه د شپې سفر په سهولت سره او زر پوره کيږی ﴿ فان الارض تطوى بالليل ﴾ پس مشهوره ده چه په عربو کښې په اوښانو باندې د سورو قافلې د شپې مزل کوی او بيا د شپې په اخر کښې د ارام کولو دپاره يو منزل باندې کوزيږی کوم ته چه تعريس وئيلې شی.

## باب رَبُّ الدَّابَّةِ أَحَقُّ بِصَدْرِهَا

### د څاروی مالک په هغې باندې د مخکښې کيناستلو حقدار دې

د سورلئ مالک په صدر الدابة يعنی د سورلئ په وړاندې حصه باندې د کيناستلو زيات مستحق دې، لهذا بل سړی لره په هغه پسې شاته کيناستل پکار دی او غير مالک دې د هغه رديف وی، خو که د مالک دابه خواهش وی چه هغه بل سړې دې وړاندې کينی نو دا امر اخر

---

[1] ) دا باب دکتاب په حاشيه کښې د يوې نسخې په حواله سره موجود دې. (مترجم)
[2] ): سنن ابن ماجه/الأدب ٤٧ (٣٧٧٢)، سنن النسائي/اليوم والليلة (٩٥٥) (تحفة الأشراف: ٢٢١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٥/٣، ٣٨١) (صحيح)
[3] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٢٩) (صحيح)

دي، نو بيا په وړاندې کيناستلو کښې هيڅ باک نشته، لکه چه په حديث الباب کښې دی.

[٢٥٧٢](¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي بُرَيْدَةَ يَقُولُ: بَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي جَاءَ رَجُلٌ وَمَعَهُ حِمَارٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ارْكَبْ وَتَأَخَّرَ الرَّجُلُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا أَنْتَ أَحَقُّ بِصَدْرِ دَابَّتِكَ مِنِّي إِلَّا أَنْ تَجْعَلَهُ لِي"، قَالَ: فَإِنِّي قَدْ جَعَلْتُهُ لَكَ فَرَكِبَ.

**ترجمه:** دبريده رضی الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام روان وو اويوکس ورته راغي اوخر ورسره وو عرض ئي اوکړو اې دالله رسوله سورشه او هغه کس شاته شونبي عليه السلام اوفرمائيل مه روستوکيږه زما په نسبت ته پخپله سورلي باندې دمخکښې کيناستو زيات حقدار ئي مګر که چرې دا ته ماته راکړې نوبيا خيردې نو هغه اووئيل دامې تاته درکړو نبي عليه السلام وربانديې شورشو (يعنی مخکښې).

**تشريح:** ددې حديث په سند کښې دی ﴿ حدثنی عبدالله بن بريدة قال سمعت بريدة ﴾ "عبدالله بن بريده وائي چه ما واوريدل د خپل پلار يعنی بريده نه، دا بريده بدل واقع شوې دې د ﴿ ابی ﴾ نه، لهذا د ﴿ ابی ﴾ ياء د متکلم دپاره ده، دا دې کنيت او نه ګڼړلې شی، که دا کنيت وې نو بيا به داسې وې "سمعت ابا بريدة" کما هو ظاهر، وحديث الباب رواه الترمذی ايضا قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الدَّابَّةِ تُعَرْقَبُ فِي الْحَرْبِ

### باب: په جنګ کښې د سورلئ د خپو پريکولو بيان

### د ترجمة الباب شرح

يعنی دا باب دې د هغه سورلئ په بيان چه د هغې عراقيب پرې کړې شی په جنګ کښې "عراقيب جمع ده عرقوب" ده د خپو د ګيټو د لاندې چه کومه پټهه وی هغې ته وئيلې شی، بعض وخت چه کله غازی د خلورو وارو طرفونو نه ګيرشی او هغه سره د خپلې جدايئ خطره پيدا شی نو هغه دا سوچ کوی چه زما نه روستو هسې نه چه زما دا سورلی د دشمن په کار رانشی نو هغه په خپل لاس باندې خپله سورلی ختمه کړی، د هغې خپې پرې کړی، امام بخاری رحمه الله هم دا قسم ترجمه قائم کړې ده ﴿ باب من لم ير کسر السلاح وعقر الدواب ﴾ امام بخاری رحمه الله خو د دې د نفی طرف ته اشاره فرمائيلې ده، حافظ فرمائي چه امام بخاری رحمه الله اشاره کوی دې خبرې طرف ته چه په بعض موقعو باندې صحابه کرامو داسې کړې دی خو اصل په دې کښې عدم جواز دې "لانه يفعل امرا محققا لامر غير محقق" يعنی په دې کښې ضرر محقق لره اختيارول دی د ضرر غير محقق نه د بچ کيدو دپاره، لهذا دا څه ډيره د پوهې خبره نه ده، او امام ابوداؤد هم د حديث الباب د ذکر کولو نه پس فرمائيلې دی لکه چه په بعض نسخو کښې دی، ﴿ وقد جاء فيه نهی کثير عن اصحاب النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴾ د بعض صحابه کرامو نه چه داسې شوې دی هغه په حديث الباب کښې دی.

¹): سنن الترمذي/الأدب ٢٥ (٢٧٧٣)، (تحفة الأشراف ١٩٦١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٣/٥) (حسن صحيح)

[۲۵۷۳]( ) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي ابْنُ عَبَّادٍ، عَنْ أَبِيهِ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، قَالَ أَبُو دَاوُد وَهُوَ يَحْيَى بْنُ عَبَّادٍ، حَدَّثَنِي أَبِي الَّذِي أَرْضَعَنِي وَهُوَ أَحَدُ بَنِي مُرَّةَ بْنِ عَوْفٍ، وَكَانَ فِي تِلْكَ الْغَزَاةِ غَزَاةِ مُؤْتَةَ قَالَ: وَاللَّهِ لَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى جَعْفَرٍ حِينَ اقْتَحَمَ عَنْ فَرَسٍ لَهُ شَقْرَاءَ فَعَقَرَهَا ثُمَّ قَاتَلَ الْقَوْمَ حَتَّى قُتِلَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْحَدِيثُ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه**: د يحي بن عبادنه روايت دي فرمائی چه ماته زما رضاعي پلار دچاچه دبنومره بن عوفت سره تعلق وو روايت بيان کړي دي فرمائيل ئي چه زه په غزوه موته (په شام کښې ديو ځائي نوم دي کښې شريك وم، دې وائی قسم په الله لکه چه اوس زه جعفر وينم چه هغه دخپل سور اس نه راټوپ کړل اوزخمي ئي کړو اوبياتردي اوجنګيدو چه شهيد کړې شو. ابوداود وائی چه داحديث قوی نه دې.

## شرح حديث

عباد بن عبدالله بن زبير فرمائی چه ماته زما رضاعی پلار بيان اوکړو کوم چه په غزوه موته کښې شريک وو هغه د خپلو سترګو ليدلو واقعه بيانوی ﴿ والله لکانی انظر الی جعفر حين اقتحم عن فرس له شقراء فعقرها الخ ﴾ يعنی قسم په الله پاک داسې معلوميږی چه ګويا زه دې وخت کښې ګورم هغه منظر لره چه جعفر بن ابی طالب په دې غزوه کښې د خپل اس نه لاندې راکوز شو کوم چه اشقر وو او د راکوزيدو سره ئي د هغه خپې پرې کړې او بيا ئي د دشمن سره قتال اوکړو تردې چه شهيد شو.

غزوه موته مشهوره غزوه ده چه په هغې کښې د درې اميرانو نه يو امير سيدنا جعفر بن ابی طالب رضي الله عنه هم وو چا چه داسې اوکړل کوم چه دلته ذکر شوې دي کوم چه د حديث الباب د ترجمې مطابق دې، خو امام ابوداؤد فرمائی ﴿ هذا الحديث ليس بالقوی ﴾ او د مصنف يوه جمله د دې نه مخکښې مونږ ليکلې ده، حضرت په بذل کښې ليکلې دی، وجه د ضعيف فهم کښې رانغله چه څه ده الی اخر ما ذکر، شيخ احمد شاکر هم په خپل تعليق کښې هم دا وئيلې دی چه حديث د خپل سند په لحاظ سره صحيح دې هيڅ علت پکښې نشته، زما فهم کښې دا راغلې ده چه د مصنف په دې حديث باندې نقد په اعتبار د سند او ثبوت نه دې، سنداً خو اګر چه صحيح دې، غالباً مصنف دا وئيل غواړی چه من حيث الحکم والعمل، دا حديث غير قوی دې، پس د دې نه پس بعض نسخو کښې داسې دی : وقد جاء فيه نهی کثير عن اصحاب النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.... لکه چه حافظ چرته چه امام ترمذی رحمه الله فرمائی (هذا حديث حسن صحيح ﴾ هلته فرمائی چه مراد د امام ترمذی دا دې چه دا حديث د سند په اعتبار سره حسن دې او په اعتبار د حکم سره صحيح دې. والله تعالی اعلم

## د جمهورو د مسلک تائيد د يوې واقعې نه

هغه چه حافظ د جمهورو د مسلک په تائيد کښې فرمائيلې وو چه په داسې کولو کښې ضرر يقينی لره اختيارول دی صرف د ضرر محتمل نه د بچ کيدو دپاره، لهذا داسې نه دی

---

( ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۶۰۲) (حسن)

کول پکار، د دې تائيد د هغه واقعې نه کيږي کومه چه په غزوة الغابه کښې راپيښه شوې ده کومه چه په ابوداود کښې هم وړاندې د يو باب په ضمن کښې راروانه ده، باب في السرية ترد على اهل العسکر... په دې باب کښې مصنف غزوة الغابة والا حديث هم ذکر کړې دې چه د هغې اخرى مضمون دا دې، سلمه بن الاکوع فرمائي چه کله ما ته اخرم اسدى ﷛ په طور د مدد راورسيدو نو په هغه کښې او عبدالرحمن بن عيينه مشرک کښې مقابله اوشوه نو اولا اخرم اسدى صحابى په عبدالرحمن باندې وار اوکړو خو د هغه نخښه خطاء شوه، د هغه توره د عبدالرحمن په ځائې د هغه په اس باندې پريوتله چه د هغې نه عبدالرحمن بچ شو خو د هغه اس مړ کړې شو، بيا د هغې نه پس چه کله عبدالرحمن په هغه باندې وار اوکړو نو دهغه نخښه برابر شوه چه په هغې سره اخرم شهيد شو، او د هغه اس بچ شو چه په هغې باندې عبدالرحمن مشرک سور شو (اوس اوګورئ د دې واقعې نه خو د هغه صحابى تائيد کيږي چا چه عقر الدابة کړې وه يعنى سيدنا جعفر) بيا دهغې نه روستو داسې اوشوه چه د سلمه بن اکوع د مدد دپاره يو بل صحابى راغلو ابو قتاده ﷛، دې ځل په ابو قتاده او عبدالرحمن کښې مقابله اوشوه خو دلته معامله برعکس شوه چه اول عبدالرحمن په ابو قتاده باندې وار اوکړو اودهغه نخښه خطاء شوه چه په هغې سره د ابوقتاده سورلى هلاکه شوه او خپله بچ شو بيا د هغې نه روستو ابو قتاده حمله کولو سره عبدالرحمن لره ختم کړو خو د هغه اس بچ شو کوم چه د هغه سره د اخرم اسدى صحابى وو، اوس د ابو قتاده هغه اس پکار راغلو، د دې قصې د دې جزء نه د جمهورو تائيد کيږي چه خپل اس په خپل لاس باندې قتل کول نه دى پکار ځکه چه ممکنه ده چه روستو د بل سړي په کار راشي.

## باب في السَّبْقِ

### د ځاروو په مسابقه کښې د شرط لګولو بيان

﴿ سبق ﴾ که په سکون د باء سره دې، نو بيا خو دا مصدر دې چه د هغې معنى مسابقت يعنى په اسونو کښې مقابله، او که ﴿ سبق ﴾ بفتح الباء دې نو د دې معنى هغه انعام کوم چه سابق ته ملاويږي.

[٢٥٧٤](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ نَافِعِ بْنِ أَبِي نَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا سَبَقَ إِلَّا فِي خُفٍّ أَوْ فِي حَافِرٍ أَوْ نَصْلٍ".

**ترجمه**: د ابوهريره ﷛ نه روايت دې فرمائي چه نبى ﷺ فرمائيلى دى. په مقابله کښې نمبر اوړل جائز نه دى مګر د اوښ او د اس مخکښې کيدل اود نښې ويشتل.

### شرح حديث

ځنکه چه اعداد للقتال والجهاد دپاره په حديث کښې د رمى او رکوب ترغيب راغلې دې لکه چه تير شو. الا ان القوة الرمى... الا ان القوة الرمى... هم دغه شان دا مسابقت چه د هغې ذکر په دې باب کښې دې هغه هم د دې قبيل او لائق ځيز دې، لهذا کوم ځاروى چه په جهاد کښې د

(١): سنن الترمذي/الجهاد ٢٢ (١٧٠٠)، سنن النسائي/ الخيل ١٣(٣٦١٥) (تحفة الأشراف: ١٤٦٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٧٤/٢) (صحيح)

سورلۍ کار کوی لکه اوښ، اس او خچر، د هغوی ترمینځه په حدیث کښې د مسابقت ثبوت دې، لکه چه په حدیث الباب کښې مذکور دی ﴿ خف ﴾ سره اشاره د ﴿بعیر ﴾ طرف ته ده او مراد ﴿ ذی خف ﴾ دې، هم دغه شان د حافر نه مراد ﴿ ذی حافر ﴾ لکه فرس وبغل په اصل کښې خف وئیلې شی د څاروی داسې خپې ته چه په مینځ کښې څیزی وی لکه اوښ، میښه، بیزه، او حافر هغه نوکې ته وئیلې شی کوم چه غیر مشقوق وی لکه د اس، خچر او خر. وړاندې په حدیث کښې یو بل لفظ راغلې دې ﴿ نصل ﴾ د دې نه مراد هم ﴿ ذی نصل ﴾ دې، نصل وئیلې شی تیره نوکه یعنی په غشی کښې چه وړاندې طرف ته کومه اوسپنه تیره وتلې وی، هم دغه شان د نیزې او تورې وړاندې تیره حصه، دې ته هم نصل وئیلې شی، ﴿نصل السهم، نصل الرمح، نصل السیف ﴾، یعنی په دې درې واړو څیزونو کښې هم مسابقت او مقابله کیدل پکار دی، د حدیث مطلب دا دې چه کوم څیزونه په جهاد کښې پکار راتلونکی دی او الات جهاد دی په هغې کښې مسابقت مشروع او مرغوب فیه دې، د دې نه علاوه په نورو څیزونو کښې فعل عبث او لهو ولعب دې، په څاروو کښې چه کوم په جهاد کښې په کار راتلونکی دی هغه دا دی بعیر، فرس، بغل، حمار، علماء کرامو فیل هم په دې کښې شامل کړې دې، فانه انفع للقتال من الابل، او کوم څیزونه چه د جهاد د الاتو نه نه دی په هغې کښې مسابقت مشروع نه دې، فلا تجوز المسابقة فی الطیور مثل الحمام (کوتر بازی) کذا فی اشعة اللمعات. (ص ٣٦۶ ج ٣) علماء کرامو لیکلې دی چه مسابقت ریاضت محمودی دې کوم چه معین دې د مقاصد جهاد په حصول کښ، علامه باجی فرمائی، مسابقت بین الخیل مشروع دې ځکه چه په دې کښې د اسونو تدریب دې په منډه وهلو کښې او خپله د فارس هم تدریب دې ځکه چه په مسابقت کښې انسان په بل انسان باندې د غالب راتلو کوشش کوی چه د هغې د وجې نه محنت زیات کوی په خلاف د دې چه یو کار ځانله اوکړی. اهـ (اوجزج ٢ ص ۶)

## په کومو کومو څیزونو کښې مسابقت جائز دې
## په دې کښې د ائمه کرامو مذاهب بالتفصیل والتحقیق

مسابقت په کومو کومو څیزونو کښې جائز دې په دې باندې تفصیلی کلام او اختلاف ائمه په اوجز المسالک ص ٩٢ جلد ۴ کښې ذکر شوې دې، پس په اوجز کښې د امام شافعی او د امام مالک مسلک د حافظ نه دا نقل کړې دې چه د هغوی په نزد د دې جواز منحصر دې په خف او حافر او نصل کښ، او بعض علماء کرامو دا خاص کړې دې د خیل سره او امام عطاء جائز کړې دې په هر یو څیز کښې او په منهاج مع مغنی المحتاج ص ٣١٢ ج ۴ فی فقه الشافعیه کښې لیکلې دی، وتصح المسابقة علی خیل وکذا فیل وبغل وحمار فی االاظهر... او د دی په شرح کښې دی، تصح المسابقة علیها بعوض وغیره، هم دغه شان ئې په دی کښې د ابل اضافه هم کړې ده او د ماتن په دې باندې د سکوت اظهار کولو سره ئې تعجب هم کړې دې. او د حنابله مذهب شرح العمدة ص ٢۶٣ کښې دا لیکلې دی : ﴿ تجوز المسابقة بغیر جعل فی

الأشياء كلها" الدواب والأقدام والسفن والمزاريق وغيرها، ولا تجوز بجعل الا في الخيل والابل والسهام لقول رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لا سبق الا في خف او في حافر او نصل ﴾ اهـ او هم دا مذهب د مالكيانو دي ففي الاوجز(ص ٩٢ ج٤) قال الدردير المسابقة بجعل جائزة في الخيل والابل والسهم، فجاز فيما عداها مجانا،، اود احنافو مذهب كما في الأوجز عن الدر المختار، جازت المسابقة بالفرس والابل والارجل والرمي، ولا يجوز في غير هذه الاربعة كالبغل بالجعل، واما بلا جعل فيجوز في كل شئ، وفي العيني ولا تجوز المسابقة في البغال والحمير، وبه قال الشافعي في قول، ومالك واحمد، وعن الشافعي في قول تجوز. خو پورته د حنابله مذهب خپله د هغوی د کتابونو نه دا تیر شو چه د هغوی په نزد مسابقة في البغال والحمير بغير د جعل نه جائز دي، البته جعل سر جائز نه دي، او هم دغه شان د شوافعو اظهر القولين بغال او حمير کښې مطلقا جواز بجعل وبلا جعل تیر شوې دي، او مسابقت بالاقدام د احنافو په نزد بالجعل جائز دې، د امام شافعي هم یو قول هم دا دې، او قول منصوص د هغه دا دې چه جائز نه دې او هم دا رائې د امام مالک او امام احمد ده، كذا في الاوجز عن العيني، هم دغه شان په دې مقام باندې په شروع کښې لیکلې دی چه د هغه اشیاء مخصوصه نه علاوه د دشمن په مقابله کښې چه کوم څیزونه معین وی په هغه ټولو کښې مسابقت جائز دې په دوه شرطونو سره، یو دا چه بغیر د جعل نه وی، دویم دا چه په دې سره مقصود په دشمن باندې حصول غلبه وی، او که مقصود صرف فخر او ریاء او ښودنه وی او په خپل ملګری باندې غالب راتلل وی نو بیا غیر مشروع او د اهل فسق په عادتونو کښې دی.

**تنبیه** : زمونږ په دې زمانه کښې یو بل قسم د مسابقت جاری دې کوم چه ورته واره ترقی کوی یعنی مسابقت في القراءة والتجويد، ځکه چه دا د ترغیب في تجوید القران یوه کامیابه طریقه او ذریعه ده خصوصا په موجوده دور کښې حال دا چه د تجوید قران نه عام طور غفلت کولې شی وغیره وغیره فوائد او محاسن خو دا طریقه قابل غور ده اول خو په دې وجه چه په سلفو کښې د تجوید دا طریقه نه وه، دویمه دا چه د احادیثو او کلام فقهاء نه د مسابقې جواز صرف په هغه څیزونو کښې ثابت دې کوم چه په جهاد کښې په کار راتلونکی دی کله چه هم په هغه نیت سره هغه اختیار کړې شی او د ریاء او د فخر بوئی پکښې رانشی، په اصل کښې مسابقه مظنه د فخر او ریاء ده او د دی نه علاوه دا هم ده چه کوم حضرات علماء او مفتیان د دې مسابقت په حق کښې نه دی هغوی په دې طریقه کار کښې چه کوم مفاسد او تعلیمی ضررونو باندې رڼړا اچولې ده هغه هم په خپل ځائې صحیح دی، والله اعلم بالصواب، والحديث رواه الترمذي والنسائي وابن ماجة، قاله المنذري بزيادة.

[٢٥٧٥](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى

(١). صحيح البخاري/الصلاة ٤١ (٤٢٠)، والجهاد ٥٦ (٢٨٦٨)، ٥٧ (٢٨٦٩)، ٥٨ (٢٨٧٠) والاعتصام ١٦ (٧٣٣٦)، صحيح مسلم/الإمارة ٢٥ (١٨٧٠)، سنن النسائي/الخيل ١٢ (٣٦١٤)، (تحفة الأشراف: ٨٣٤٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجهاد ٢٢ (١٦٩٩)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٤٤ (٢٨٧٧)، موطا امام مالك/الجهاد ١٩ (٤٥)، مسند احمد (٢/٥، ٥٥، ٥٦)، سنن الدارمي/الجهاد ٣٦ (٢٤٧٣) (صحيح)

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي قَدْ ضُمِّرَتْ مِنَ الْحَفْيَاءِ، وَكَانَ أَمَدُهَا ثَنِيَّةَ الْوَدَاعِ وَسَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي لَمْ تُضَمَّرْ مِنَ الثَّنِيَّةِ إِلَى مَسْجِدِ بَنِي زُرَيْقٍ، وَإِنَّ عَبْدَ اللهِ كَانَ مِمَّنْ سَابَقَ بِهَا.

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه نبي ﷺ په مدينه کښي دحفياء مقام نه ترثنية الوداع پورې په تيارو شوو اسونوباندې شرط ولګولو، اوکوم اسونه چه نه وو تيارشوي ددوی دپاره ئې حد دثنية الوداع نه د بني زريق د مسجد پورې کړلوعبدالله بن عمر رضي الله عنهما هم داسونو په دې مقابله کښي شريك وو.

## شرح حديث

په دې حديث کښې د اضمار خيل ذکر دې، امام بخاري رحمه الله په دې باندې مستقل باب قائم کړې دې، د مطلق مسابقت باب ئې جدا قائم کړې دې او د دې ئې ځانله باب "اضمار الخيل للسبق" حافظ ليکي چه په دې ترجمه کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته چه د مسابقت غوره طريقه دا ده چه د دې نه مخکښې اضمار خيل اوکړې شي اګر چه د خيل غير مضمر مسابقت هم ممنوع نه دې، اضمار اوتضمير اس لره د مضبوطولو او د هغه د وازګو ختمولو نوم دې، او هغه دا دې چه په شروع کښې په اس باندې ښه ګيا او دانه اوخوړلې شي تردې چه ښه قوي او مضبوط شي او بيا د هغې نه روستو په قلاره قلاره د هغه په ګيا کښې کمې اوکړې شي تردې چه په قوت لا يموت باندې اکتفاء اوکړې شي، او بيا هغه په يو وړوکی شان کور کښې اوساتلې شي او په هغه باندې ښه کپړې او ګرم څيزونه واچولې شي چه هغه پرې ګرم شي او خوله ئې اوځي، څه موده پس به هغه په دې سره نرې او تيز رفتار به شي.

د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما په دې حديث کښې دا دی چه رسول الله ﷺ په خيل مضمر او غير مضمر دواړو قسم اسونو سره مسابقت کړې دې خو د دواړو په منتهاء مسافت کښې ئې فرق ساتلې دې، پس د خيل مضمر ميدان ئې د اسونو منډه کوم ته چه مضمار هم وئيلې شي د حفياء نه تر ثنية الوداع پورې کيخودلو چه د هغې مسافت شپږ ميله دې او د خيل غير مضمر ميدان ئې د ثنية الوداع نه د مسجد بنی رزيق پورې کيخودلو چه د هغې د مسافت مقدار صرف يو ميل دې.

## مراهنه علی المسابقة

حافظ ليکي چه په دې حديث کښې د نفس مسابقه ذکر خو شته خو د مراهنة علی المسابقه ذکر نشته، د مراهنه نه مراد جعل او انعام مقرر کول دی کوم چه چا سره په طور د ګټنړې کيخودلې شي، سابق ته د ورکولو دپاره، او قسطلاني دا هم وائي بلکه په صحاح سته کښې په يو کتاب کښې هم د مراهنه ذکر نشته، البته امام ترمذي رحمه الله ترجمه قائم کړې ده "باب المراهنة علی الخيل" کيدې شي چه د هغه اشاره د مسند احمد د روايت طرف ته وی چه په هغې کښې دا دی "عن نافع عن ابن عمر ان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سابق بين الخيل وراهن" د دې نه روستو حافظ د مراهنه تفصيل د جائز او ناجائز په اعتبار سره بيان کړې دې چه د هغې حاصل دا دې چه مسابقت بغير د عوض نه خو بالاتفاق جائز دې هم دغه شان (بعوض من احدالمتسابقين)، يعنی کوم عوض چه د دريم سړی د طرف نه وی، د امام يا بل

چا د طرف نه او هم دغه شان ﴿ بعوض من غير المتسابقين ﴾ هم جائز دي، او څلورم قسم دې بعوض من الجانبين، دا د جوارئ کيدو د وجې نه بالاجماع ناجائز دي، خو په يو صورت کښې جائزدي، يعنې ادخال محلل بين المتسابقين چه دهغې ذکربه په راروان باب کښې راشي.

[٢٥٧٦]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُضَمِّرُ الْخَيْلَ يُسَابِقُ بِهَا".

**ترجمه:** دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چه نبي عليه السلام به اسونه دزغلولو دپاره تيارول.

[٢٥٧٧]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَبَّقَ بَيْنَ الْخَيْلِ وَفَضَّلَ الْقُرَّحَ فِي الْغَايَةِ".

**ترجمه:** دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام داسونو مسابقه کړي وه او کوم اس چه په پنځم کال کښې داخل شوي وو دهغه دپاره ئي دحد اضافي فاصله مقرر کړي وه.

**تشريح:** ﴿ سبق بين الخيل وفضل القرح في الغاية ﴾ ﴿ قرح ﴾ جمع د قارح دي هغه اس چه د څلورو کالو وي په پنځم کال کښې داخل شي، د حديث معنى دا ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په اسونو کښې مسابقت اوفرمائيلو او کوم اسونه چه قارح وو د هغوى د مسافت مقدار ئي زيات کيخودلو ځکه چه هغوى په منډه وهلو کښې ډير قوي وي، د دې نه معلومه شوه چه د ځاروودحال رعايت کول پکاردي، په چاکښې چه څومره تحمل وي هغې ته دې اوکتلې شي.

## بَاب فِي السَّبْقِ عَلَى الرِّجْلِ

### په پيدل منډه کښې د مخکښې کيدلوبيان

يعنې مسابقه على الاقدام او پيدل منډه وهلو کښې مسابقت کول.

[٢٥٧٨]()حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ الْأَنْطَاكِيُّ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ يَعْنِي الْفَزَارِيَّ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: أَنَّهَا كَانَتْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ قَالَتْ: فَسَابَقْتُهُ فَسَبَقْتُهُ عَلَى رِجْلَيَّ فَلَمَّا حَمَلْتُ اللَّحْمَ سَابَقْتُهُ فَسَبَقَنِي، فَقَالَ: هَذِهِ بِتِلْكَ السَّبْقَةِ.

**ترجمه:** دام المومنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه زه دنبي عليه السلام سره په يوسفرکښې وم اوداهم فرمائي چه ماورسره په منډه کښې مقابله اوکړه نوزه دهغه نه پخپلو خپو باندې مخکښې شوم نوهرکله چه په غوښه درنه شوم نوبيا مې ورسره منډه کښې مقابله اوکړه خو داخل راته هغه مخکښې شو او وئې فرمائيل زمادامخکښې کيدل ستا دهغه مخکښې ځل مخکښې کيدلو په بدل کښې شو.

**تشريح:** سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه زه په يو سفر کښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره اوم، ما هغه سره په پيدل منډه وهلو کښې مقابله اوکړه نو زه ترې مخکښې شوم، بيا د څه مودې نه پس

---

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨١٢٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٨٦) (صحيح)

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٠٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٦١، ٩١، ١٥٧) (صحيح)

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٧٣٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/النكاح ٥٠ (١٩٧٩)، مسند احمد (٦/١٢٩، ٢٨٠) (صحيح)

چه کله زما بدن د مخکښي په نسبت عتې شوې وو ما بیا د هغه ﷺ سره مقابله اوکړه نو دې ځل هغه مخکښې شو، ﴿ فقال هذه بتلک السبقة ﴾ یعنی بدله دې خلاصه شوه، حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی اوګورئ څومره اوچت اخلاق او د حسن معاشرت او بې تکلفئ اعلی انداز دې، نن صبا یو ملا داسې کولې شی، نن صبا خو ملیان خان سره د وقار پنډ ګرځوی.
والحدیث أخرجه النسائی وابن ماجة قاله المنذری.

# بَابٌ فِي الْمُحَلِّلِ

## د دوه اسونو په مینځ کښې د بل اس د ننه کولو بیان

[٢٥٧٩]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حُصَيْنُ بْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حُسَيْنٍ. ح وحَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ بْنُ حُسَيْنٍ الْمَعْنَى، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا بَيْنَ فَرَسَيْنِ يَعْنِي وَهُوَ لَا يُؤْمَنُ أَنْ يَسْبِقَ فَلَيْسَ بِقِمَارٍ، وَمَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا بَيْنَ فَرَسَيْنِ وَقَدْ أَمِنَ أَنْ يَسْبِقَ فَهُوَ قِمَارٌ".

**ترجمه:** د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی: څوك چه ددوه اسونو په مینځ کښې یوبل اس ورداخل کړي اوهغه اس داسې وی چه دهغه دمخکښې کیدو یقین نه وي بلکه دهغه شاته پاتې کیدو احتمال وي نو دا جواري نه ده، څوك چه ددوه اسونو په مینځ کښې یوبل اس ورداخل کړي اوهغه اس داسې وی چه دهغه دمخکښې کیدو یقین وي نو دا جواري ده.

### شرح حدیث

یعنی کله چه متسابقین په مسابقت کښې یو ثالث لره شامل کړی او حال دا وی چه د هغه دریم مسبوق کیدل یا سابق کیدل یقینی نه وی بلکه دواړه احتمال لری نو بیا به دا معامله جواری نه وی، او که هغه دریم اس داسې داخل کړې شو چه د هغه مسبوق کیدل یا سابق کیدل یقینی وی نو دا معامله به صرف جواری وی (²) یعنی په دې ادخال ثالث سره به هیڅ فائده نه وی بلکه د دې کیدل او نه کیدل به برابر وی، بلکه هغه ثالث د کفو او سیال وی د جانبین چه په هغې کښې سابق او مسبوق دواړو کیدو احتمال وی، د دې شرح نه دا هم معلومه شوه چه لفظ ﴿ ان یسبق ﴾ په دواړو ځایونو کښې معروف او مجهول دواړو طریقو سره لوستلې کیدې شی، د دې حدیث په بنیاد جمهور علماء او ائمه ثلاثه د عوض من الجانبین د جواز قائل شوې دی هم په دې وجه دې ثالث ته محلل وئیلې شی لکه چه د مصنف په ترجمة الباب کښې دی، خو د مالکیانو په نزد مسابقت بشرط العوض من

---

¹): سنن ابن ماجه/الجهاد ٤٤ (٢٨٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٣٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٠٥/٢) (ضعیف)

²) حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه په کوم صورت کښې مسبوق کیدل یقینی وی نو په هغه صورت کښې خو به دا یقینی جواری وی ځکه چه په دې صورت کښې ثالث ﴿ کان لم یکن ﴾ دې او په کوم صورت کښې چه سابقت یقینی وی نو په هغه صورت کښې به قمار خو نه وی البته تعلیق د تملیک المال به علی خطر وی او دا هم ناجائز ده او په کوم صورت کښې چه ثالث کفو وی تعلیق التملیک علی خطر خو هلته هم موندلې شی خو دا د مصلحت دینیه د وجې نه قابل ناخوښه منلې شوې دې اهـ، بنه ځان پوهه شئ.

الجانبين په يو صورت کښې هم جائز نه دي، او د دي ادخال ثالث صورت علماء کرامو دا ليکلي دي چه په متسابقين کښې هر يو د عوض شرط اولګوی او دريم سړی لره په مينځ کښې اچولو د دي نه معاهده اوکړي شي چه که ستا اس سابق اوتلو ﴿ فالمالان لک ﴾ نو بيا به مونږ مقرر کړي انعام تاته درکوو، خو که ستا اس مسبوق شو نو بيا به ستا نه هيڅ هم نه شي اخستلي خو مونږ به دواړه په خپل شرط باندي يو، لهذا په مونږ کښې چه د چا اس سابق وی، بل به هغه ته انعام ورکوی په دي صورت کښې شرط من الجانبين جائز کيږی او دا معامله د جوارئ د صورت نه خارج کيږی.

## د قمار تعريف

د قمار تعريف دا کړې شوې دې "هو استواء الجانبين فى احتمال الغرامة" يعنى هغه معامله چه په هغې کښې د متعاقدين نه په هر يو باندي د ضمان راتلو امکان وی...... په دواړو کښې په يو باندې ضمان راتلل ضروری وی، اوس اوګورئ د محلل نه کيدو په صورت کښې به په ضمان متسابقين کښې په يو تن باندي ضرر راځي، يعنى صرف په يو باندې، او د ادخال محلل نه روستو يو شق داسې راوتلو چه په هغې کښې ضمان په هغه دواړو باندې دې صرف په يو باندې نه دې، د دې تشريح نه دا خبره معلومه شوه چه قمار د داسې قسم معاملې نوم دې چه په هغې کښې د جانبين نه ﴿ لا على التعين ﴾ د يو نفع د بل ضرر لره مستلزم وی يعنى چه د هغې يوه هم نفع وی هغه به په خپل ځان کښې د بل ضرر اخستلي وی، خومره د تکليف او خبيثه معامله ده د دې حرمت د شريعت په محاسنو کښې دې، زمونږ په شريعت کښې خو صرف محاسن دی، عبادت وی يا معاملات، خو خلق لالچ او د مال حرص، په طمع کښې د موهوم نفع خاطر په دې جوارئ کښې اخته کيږی، عصمنا الله تعالى وجميع المسلمين من المحرمات الشرعية، والحديث رواه ابن ماجة قاله المنذرى.

[۲۵۸۰]([1])حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ بَشِيرٍ، عَنْ الزُّهْرِيِّ بِإِسْنَادِ عَبَّادٍ وَمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ مَعْمَرٌ، وَشُعَيْبٌ، وَعُقَيْلٌ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ رِجَالٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهَذَا أَصَحُّ عِنْدَنَا.

**ترجمه**: په دې سند سره هم د زهری نه د عباد والا په طريق سره ددې مفهوم حديث نقل دې، ابوداؤد وائي: دې لره معمر، شعيب او عقيل د زهری نه او زهری د اهل علم د يو جماعت نه روايت کړې دې او دا زمونږ په نزد زيات صحيح دې.

# بَابٌ فِي الْجَلَبِ عَلَى الْخَيْلِ فِي السِّبَاقِ

### په مسابقه کښې د اسونو مخې ته د ورتلو بيان

[۲۵۸۱]([2])حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ جَمِيعًا، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣١١٨) (ضعيف)
[2]: حديث يحيي بن خلف، قد تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٠٨٠٠) وحديث مسدد، قد أخرجه: سنن الترمذي/النكاح ٢٩ (١١٢٣)، سنن النسائي/النكاح ٦٠ (٣٣٣٧)، الخيل ١٥ (٣٦٢٠)، سنن ابن ماجه/الفتن ٣ (٣٩٣٧)، مقتصراً علي قوله: من انتهب، (تحفة الأشراف: ١٠٧٩٣)، مسند احمد (٤٣٨/٤، ٤٣٩، ٤٤٣، ٤٤٥) (صحيح)

وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا جَلَبَ وَلَا جَنَبَ، زَادَ يَحْيَى فِي حَدِيثِهِ فِي الرِّهَانِ.

**ترجمه**: دعمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي په اسلام كښې نه جلب شته او نه جنب. اويحي په خپل روايت كښې د ﴿ فى الرهان ﴾ لفظ اضافه كړې ده.

**تشريح**: دا حديث په كتاب الزكاة كښې هم راغلي دي خو هلته ﴿ فى الرهان ﴾ قيد نه دې ذكر شوي، د دې پوره شرح مونږ په هغه ځائې كښې ليكلې ده، ﴿ فارجع اليه، حديث عمران اخرجه الترمذي والنسائى قاله المنذرى ﴾

[٢٥٨٢][1] حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ قَالَ: الْجَلَبُ وَالْجَنَبُ فِي الرِّهَانِ.

**ترجمه**: دقتاده نه روايت دې فرمائي چه جلب اوجنب داسونو زغلولو په مقابله كښې وي.

## بَابٌ فِي السَّيْفِ يُحَلَّى

### د تورې په موټې د سپينو زروخول دجوړولوبيان

[٢٥٨٣][2] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كَانَتْ قَبِيعَةُ سَيْفِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِضَّةً.

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دنبي عليه السلام د تورې د موټې خول دسپينو زرونه جوړ وو.

**تشريح**: د رسول الله صلى الله عليه وسلم د تورې قبيعه د سپينو زرو وه، قبيعه وئيلې شي د تورى موټې باندې د سپينو زرو يا د اوسپنې چه كومه غوټه وى، ﴿ قبيعة السيف ﴾ كه د سپينو زرو وى نو دا جائز ده ﴿ ولا يجوز من الذهب كما فى الشامى ﴾، د حضرت شيخ په حاشيه د بذل كښې دى چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د تورې په حليه كښې روايات مختلف دى لكه چه په جمع الوسائل كښې دى، په دې كښې يوروايت دذهب هم دې. والحديث اخرجه الترمذى والنسائى قاله المنذرى.

[٢٥٨٤][3] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ، قَالَ: كَانَتْ قَبِيعَةُ سَيْفِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِضَّةً، قَالَ قَتَادَةُ: وَمَا عَلِمْتُ أَحَدًا تَابَعَهُ عَلَى ذَلِكَ.

**ترجمه**: دسعيد بن أبى الحسن نه روايت دې فرمائي چه دنبي عليه السلام د تورې د موټې خول دسپينو زرونه جوړ وو. قتاده وائي ماته معلومه نه ده چه چا دسعيد بن أبى الحسن مطابعت كړې وي په دې روايت كښې.

[٢٥٨٥][4] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ كَثِيرٍ أَبُو غَسَّانَ الْعَنْبَرِيُّ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كَانَتْ فَذَكَرَ مِثْلَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَقْوَى هَذِهِ الْأَحَادِيثِ حَدِيثُ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ، وَالْبَاقِيَةُ ضِعَافٌ.

**ترجمه**: هم په دى سند سره دانس بن مالك رضي الله عنه نه دا مخكښې حديث روايت دې ابوداود

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٢١٧) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الجهاد ١٦ (١٦٩١)، والشمائل ١٣ (٩٩)، سنن النسائي/الزينة ٦٦ (٥٣٧٦)، (تحفة الأشراف: ١١٤٨، ١٨٦٨٨)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/السير ٢١ (٢٥٠١) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٤٦، ١٨٦٨٨) (صحيح)

[4]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٨٨) (صحيح) بما قبله

وائي په دې باب کښې قوي حديث د سعيد بن ابي الحسن دې او باقي ضعيف روايات دي.

## بَاب فِي النَّبْلِ يُدْخَلُ بِهِ الْمَسْجِدُ

### جومات ته د غشو د داخلولو بيان

نبل په معنی د غشي ﴿ لا واحد له من لفظه ﴾ او وئيلې شوي دی چه دا د ﴿ نبلة ﴾ جمع ده، او د دې جمع انبال او نبلان هم راځی، او نابل او نبال صاحب نبل او صانع نبل ته وئيلې شي.

[۲۵۸۶]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ: أَمَرَ رَجُلًا كَانَ يَتَصَدَّقُ بِالنَّبْلِ فِي الْمَسْجِدِ "أَنْ لَا يَمُرَّ بِهَا إِلَّا وَهُوَ آخِذٌ بِنُصُولِهَا".

**ترجمه:** جابر رضی الله عنه د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه روايت نقل کوي فرمائی چه نبی علیه السلام يو کس ته حکم اوکړو چاچه په مسجد کښې غشی تقسيمول چه غشی به په جومات کښې په داسې طريقې سره ګرځوي چه د تيرو ځوکونه به دې نيولې وي (احتياطا چه چاته ضرر اونه رسيږی).

**تشريح:** د حديث مضمون دا دې سيدنا جابر رضی الله عنه فرمائی چه يو خل يو سړي په مسجد کښې په طور د تصدق غشی تقسيمول نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ته حکم اوفرمائيلو چه د دې غشو سره دې په مسجد کښې داسې تير شی چه هغه ئې د ځوکو نه نيولې وی، يعنی ځوکه ئې خپل طرف ته اوساتی، ځکه چه که داسې اونشی نو د خلقو د خوږيدو ويره ده، يعنی غشی دې د ځوکې د حصې نه اونيسی او روان دې شی، او دا مطلب نه دې چه ځوکه دې اونيسی ځکه چه په دې کښې د نيونکی ضرر دی. والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذری

[۲۵۸۷]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ بُرَيْدٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا مَرَّ أَحَدُكُمْ فِي مَسْجِدِنَا أَوْ فِي سُوقِنَا وَمَعَهُ نَبْلٌ فَلْيُمْسِكْ عَلَى نِصَالِهَا أَوْ قَالَ: فَلْيَقْبِضْ كَفَّهُ أَوْ قَالَ: فَلْيَقْبِضْ بِكَفِّهِ أَنْ يُصِيبَ أَحَدًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ".

**ترجمه:** د ابوموسی رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی: څوک چه تيريږی زمونږه جومات سره يا زمونږه بازار سره او د هغه سره غشې وی نو د هغې سوکه دې په لاس کښې اونيسي، يا ئې اوفرمائيل په موټی کښې دې اونيسی، يا ئې اوفرمائيل هغه دې په موټی کښې مضبوطه اونيسی هسې نه چه څوک مسلمان پرې اولګی.

## بَاب فِي النَّهْيِ أَنْ يُتَعَاطَى السَّيْفُ مَسْلُولًا

### د برېنډې توري چاله د ورکولو ممانعت بيان

[۲۵۸۸]([3]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى أَنْ يُتَعَاطَى السَّيْفُ مَسْلُولًا".

[1]: صحيح مسلم/البر ۳۴ (۲۶۱۴)، (تحفة الأشراف: ۲۹۱۹)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ۶۶ (۴۵۱)، والفتن ۷ (۷۰۷۳)، سنن النسائي/المساجد ۲ (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الصلاة ۶۷ (۴۵۲)، والفتن ۶ (۷۰۷۵)، صحيح مسلم/البر (۲۶۱۵)، سنن ابن ماجه/الأدب ۵۱ (۳۷۷۸)، (تحفة الأشراف: ۹۰۳۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۹۱/۴، ۳۹۲، ۳۹۷، ۴۱۰، ۴۱۳) (صحيح)

[3]: سنن الترمذي/الفتن ۵ (۲۱۶۳)، (تحفة الأشراف: ۲۶۹۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۰۰/۳، ۳۶۱) (صحيح)

**ترجمه**: د جابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام منع فرمائيلې ده دبربنډې تورې چالره دورکولونه.

## بَابٌ فِي النَّهْيِ أَنْ يُقَدَّ السَّيْرُ بَيْنَ أُصْبُعَيْنِ

### باب: څرمن د دوه ګوتو په مينځ کښې ايخودلو سره کټ کول منع دی

[۲۵۸۹] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا قُرَيْشُ بْنُ أَنَسٍ، حَدَّثَنَا أَشْعَثُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى أَنْ يُقَدَّ السَّيْرُ بَيْنَ أُصْبُعَيْنِ".

**ترجمه**: د سمرة بن جندب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام منع فرمائيلې ده ددوه ګوتويه مينځ کښې د چمړې دپريکولونه.

### شرح حديث

سير په معنی د څرمن چه د هغې جمع سيور هم راځي يعنی رسول الله صلی الله عليه وسلم منع فرمائيلې ده د دې خبرې نه چه د څرمنې يوه ټکړه په داسې طريقه پرې کړې شی چه هغه د دوه دوه ګوتو په مينځ کښې وی، يعنی د څرمنې پرې کونکې يو سړی ته اوائی چه د کوم ځائې نه هغه څرمن پرې کول دی هغه په خپلو دواړو ګوتو سره زور کړی، او بيا هغه پرې کونکې په هغه څرمنه باندې خپله اله اوچلوی د دې دپاره چه هغه څرمن په سهولت سره پرې شی د هغې د زورلو په وجه سره، نو په دې حديث کښې د دې نه منع کړې شوې ده، ځکه چه په دې صورت کښې کيدې شی چه څرمنې لره زورلو سره د هغه ګوته هم پرې شی.
سبحان الله! د رسول الله صلی الله عليه وسلم تعليمات څومره جامع دی چه د هر هر څيز ادب بيان کړې شوې دې، لکه چه په ابواب الاستنجاء کښې تير شوې دی، ﴿ لقد علمکم نبيکم کل شئ ﴾ الحديث.

## بَابٌ فِي لُبْسِ الدُّرُوعِ

### [۲۵۸۲] دډيروزغرودا غوستوبيان

[۲۵۹۰] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: حَسِبْتُ أَنِّي سَمِعْتُ يَزِيدَ بْنَ خُصَيْفَةَ يَذْكُرُ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ رَجُلٍ قَدْ سَمَّاهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ظَاهَرَ يَوْمَ أُحُدٍ بَيْنَ دِرْعَيْنِ أَوْ لَبِسَ دِرْعَيْنِ".

**ترجمه**: سائب بن يزيد دداسې يوکس نه روايت کړې دې چه ده دهغه نوم اخستې وو چه نبی عليه السلام دغزوه احد په ورځ دوه زغرې لاندې باندې اغوستې وې.

**تشريح**: او امام بخاری رحمه الله باب تړلې دې ﴿ باب لبس البيضة ﴾ په دې باندې په لامع کښې ليکلې دی يعنی د دې استعمال د توکل منافی نه دې، او هم دا خبره دلته په دې باب کښې حضرت په بذل کښې ليکلې ده، په حديث الباب کښې دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم په جنګ احد کښې نه صرف يو بلکه دوه زغرې اچولې وې په يوې دپاسه ئې بله اچولې وه، زغره يو قسم اوسپنه وی کومه چه د دشمن د ضرب نه د حفاظت دپاره اچولې شی، دا خو يوه هم اچول د بهادر انسان کار دې پاتې لا دا چه دوه واچولې شی، دا د رسول الله صلی الله عليه وسلم په کمال بهادرئ

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٥٧٧) (ضعيف)
(۲): سنن ابن ماجه/الجهاد ۱۸ (۲۸۰٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤٩/٣) (صحيح)

باندې دلالت کوی، او هم دغه شان په دې کښې کمال استعداد للجهاد هم دې چه که بالفرض یوه زغره د دشمن په ضرب سره پرې کړې شوه نو بله به ئې په کار راشی، ګویا د اخره پورې به مقابله کوی، سبحان الله! څه شان دې د انبیاء علیهم السلام، جزی الله سیدنا محمدا عنا ما هو اهله، والحدیث اخرجه الترمذی فی الشمائل (قاله الشیخ محمد عوامه)

## باب في الرَّايَاتِ وَالْأَلْوِيَةِ

### د بیرغ (جهنډې) او د علامې (نښې) کیفیت

﴿ رایات ﴾ جمع ده د ﴿ رایة ﴾ او ﴿ الویة ﴾ جمع د لواء ده په حدیث کښې دی ﴿ وبیدی لواء الحمد یوم القیامة ولا فخر ﴾

### په رایه او لواء کښې فرق

په لواء او رایه کښې څه فرق دې په دې کښې مختلف اقوال دی بعض وائی چه ﴿ کلاهما واحد ﴾ او دا چه دې ته علم هم وئیلې شی، او وئیلې شوې دی چه نه، فرق دې، یو په دې کښې صغیر وی او بل کبیر، بیا په دې کښې هم اختلاف دې چه په دې کښې کوم یو صغیر وی او کوم کبیر؟ په دې کښې دواړه اقوال دی، او بعض وائی چه د دواړو په نوعیت کښې فرق دې، لواء خو دا وی چه د نیزې د لرګی په سر باندې یوه کپړه اوتړلې شی، دې ته لواء وئیلې شی، او رایه دې ته وئیلې شی چه د نیزې په لرګی کښې دننه یوه کپړه اوتړلې شی او هغه هم داسې زورنده پریخودلې شی د دې دپاره چه په هوا سره خوزیږی، هوا ګانې ئې خوزوی، په فتح الباری کښې دی چه په جهنډه کښې اصل دا ده چه هغه امیر الجیش سنبهال کړی او د هغه په لاس کښې وی، ثم صارت تحمل علی راسه. یعنی بیا داسې اوشو چه د امیر په ځائې د لښکر د امیر په لاس کښې یو سړې په دې باندې معین کړې شی کوم چه ئې د هغه امیر سره اوچتوی چرته چه هم امیر لاړ شی. او دې ته علم هم وئیلې شی ځکه چه هغه علامت وی د محل امیر. یعنی د کوم ځائې نه چه جهنډه په نظر راشی، دا علامت دې د دې چه د لښکر امیر هم هغه ځائې کښې دې

[۲۵۹۱] (۱) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، أَخْبَرَنَا أَبُو يَعْقُوبَ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنِي يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ رَجُلٌ مِنْ ثَقِيفٍ مَوْلَى مُحَمَّدِ بْنِ الْقَاسِمِ، قَالَ: بَعَثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْقَاسِمِ إِلَى الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ يَسْأَلُهُ عَنْ رَايَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا كَانَتْ، فَقَالَ: كَانَتْ سَوْدَاءَ مُرَبَّعَةً مِنْ نَمِرَةٍ.

**ترجمه:** یونس بن عبید وائی چه محمد بن قاسم زه براء بن عازب رضی الله عنه ته ولیږلم او د هغه نه ئې د نبی علیه السلام د جهنډې معلومات کول غوښتل چه هغه څنګه وه نو براء رضی الله عنه اووئیل څلورګوټې توره لکیرداره دوړی وه

### شرح حدیث

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د جهنډې رنګ تور وو، یعنی غالب رنګ ئې تور وو او هم په دې وجه باندې وړاندې راغی "من نمرة" یعنی د کربنو والا وړئ والا کپړه چه په هغې کښې تورې کربښې وې

(۱): سنن الترمذي/الجهاد ۱۰ (۱۶۸۰)، (تحفة الأشراف: ۱۹۲۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۷/۴) (صحيح)

او هغه چوکور وه، نمر وئيلې شي پړانګ ته د هغه د بدن څرمن چونکې کرښې کرښې وی په دې وجه کرښې والا کپړې ته نمره وئيلې شي او وړاندې په بل روايت کښې راروان دی.

﴿ كان لواءه يوم دخل مكة ابيض ﴾ او په دريم روايت کښې راځي چه هغه صفراء وه، حافظ په فتح الباری (ص ۱۴۷ ج ۲) کښې دا روايات مختلفه ذکر کولو نه پس ليکلې دی ﴿ ويجمع بينها باختلاف الاوقات، وحديث البراء اخرجه الترمذی وابن ماجة، وحديث جابر اخرجه الترمذی والنسائي وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۵۹۲](۱)حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمَرْوَزِيُّ وَهُوَ ابْنُ رَاهَوَيْهِ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَمَّارٍ الدُّهْنِيِّ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ يَرْفَعُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ لِوَاؤُهُ يَوْمَ دَخَلَ مَكَّةَ أَبْيَضَ.

**ترجمه**: د جابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام مکې ته داخل شو او د جهنډې رنګ ئې سپين وو.

[۲۵۹۳](۲)حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ، حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ قُتَيْبَةَ الشَّعِيرِيُّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ قَوْمِهِ، عَنْ آخَرَ مِنْهُمْ، قَالَ: رَأَيْتُ رَايَةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفْرَاءَ.

**ترجمه**: سماك د خپل قوم د يو کس نه روايت کوی چه د نبی عليه السلام جهنډه ما ليدلې وه او هغه زيړ رنګ والاوه.

## بَابٌ فِي الِانْتِصَارِ بِرَذْلِ الْخَيْلِ وَالضَّعَفَةِ

### د کمزورو او بې اسرې خلقو په ذريعه د مدد غوښتلو بيان

﴿ رذل ﴾ په معنی دردی، او د خيل اطلاق په اس باندې سور او په لښکر باندې هم کيږی د رذل الخيل نه مراد ضعيف او کمزوری خلق دی، د انتصار دوه معنی راځي، يو انتقام، دويم طلب نصرت، دلته دواړه کيدې شی، يعنی د کفارو نه انتقام اخستل او د هغوی سره مقابله کول د ضعفاء او غير اقوياء په ذريعه، او په بل صورت کښې به ئې معنی دا وی چه د الله پاک نه نصرت طلب کول د کمزورو او ضعفاء په وسيلې سره، په لښکر کښې ټول بهادر نه وی په دې کښې هر قسم مجاهدين وی، شباب او قوياء هم، مشائخ او کمزوری هم، نو مطلب دا شو چه دا کمزوری او ضعيفان سپک نه دی ګڼړل پکار بلکه د دوی په وجه باندې د الله پاک مدد راځي.

[۲۵۹۴](۳)حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا ابْنُ جَابِرٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْطَاةَ الْفَزَارِيِّ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ الْحَضْرَمِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا الدَّرْدَاءِ يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "ابْغُونِي الضُّعَفَاءَ فَإِنَّمَا تُرْزَقُونَ وَتُنْصَرُونَ بِضُعَفَائِكُمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: زَيْدُ بْنُ أَرْطَاةَ أَخُو عَدِيِّ بْنِ أَرْطَاةَ.

---

[۱]: سنن الترمذي/الجهاد ۹ (۲۸۶۶)، سنن النسائي/الحج ۱۰۶ (۲۸۶۹)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۲۰ (۲۸۱۷)، (تحفة الأشراف: ۲۸۸۹) (صحيح)

[۲]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۰۳) (ضعيف)

[۳]: سنن الترمذي/الجهاد ۲۴ (۱۷۰۲)، سنن النسائي/الجهاد ۴۳ (۳۱۸۱)، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۲۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۹۸/۵) (صحيح)

**ترجمه**: د ابو الدرداء رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه دنبی علیه السلام نه مي اوريدلي دي چه فرمائيل ئې ولټوئ ما لره په قيامت کښې ضعيفان خلق ځکه چه رزق درکولې شي تاسو ته او ستاسو مدد کولی شي ستاسو دضعيفانو په وجه، ابوداود وائی زيد بن - أرطات دعدي بن ارطات وروردې.

## شرح حديث

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی اې خلقو زما دپاره ضعيف او کمزوری قسم خلق اولټوئ، يعنی مونږ نه د دې ضرورت دې په جهاد کښې فتح او کاميابی دپاره، ځکه چه د الله پاک د طرف نه رزق او نصرت هم د دې په وجه باندې راکوزيږی، او د ترمذی د حديث الفاظ دا دی ﴿ ابغونی ضعفائکم ﴾ چه ما په خپلو ضعيفانو کښې اولټوئ يعنی که په ميدان جنګ کښې اتفاقی طور په خپل ځائې باندې ملاؤ نه شم نو ما د لښکر په کمزورو او ضعيفانو ملګرو کښې ګورئ، زه به هلته ملاويږم، په دې حديث باندې امام ترمذی رحمه الله ترجمه قائم کړې ده، "باب ما جاء في الاستفتاح بصعاليک المسلمين" يعنی د نادار او کمزوری مسلمانانو په ذريعه د الله پاک نه فتح طلب کول.

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی.... وقد اخرج البخاری بنحوه قاله المنذری (ملخصا).

# بَاب فِي الرَّجُلِ يُنَادِي بِالشِّعَارِ

### په خاص علاموسره چاته دآوازکولوبيان

### د ترجمة الباب تشريح

د شعار لغوی معنی خو علامت ده، او دلته يعنی په جهاد کښې د دې نه مراد هغه مخصوص اصطلاحی لفظ دې کوم چه د علامت په طور تجويز کولې شی چه په هغې سره فوج والا يو بل اوپيژنی، د دې زيات ضرورت د شپې په جنګ کښې پيښيږی، په دې وجه دې ته سرا الليل هم وئيلې شی، چونکه د شپې د تيرې د وجې نه په ښه طريقې سره پته نه لګی چه په چا باندې مونږ حمله کول غواړو هغه دشمن دې يا خپل سړې دې په دې موقع باندې دا لفظ په کار راځی، يعنی که يو مجاهد خپل سړې دشمن اوګڼړی او په هغه باندې حمله شروع کړی نو هغه ناڅاپه دا لفظ استعمالوی چه د هغې نه معلومات کيږی چه دا خپل سړې دې په هغه باندې حمله نه دی کول پکار. دا لفظ کوم ته چه شعار وئيلې شی د هميشه دپاره متعين نه وی بلکه دا بدلولې شی هم په دې وجه باندې په يوه غزوه کښې يو لفظ راغلې وی او په بله کښې بل ... لکه چه د احاديث الباب نه معلوميږی

[۲۵۹۵]([1])حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ الْحَجَّاجِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: كَانَ شِعَارُ الْمُهَاجِرِينَ عَبْدَ اللهِ، وَشِعَارُ الْأَنْصَارِ عَبْدَ الرَّحْمَنِ.

**ترجمه**: دسمره بن جندب رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه د مهاجرينو نښه عبدالله وه اود انصارو نښه عبد الرحمن وه.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٠١) (ضعيف)

[٢٥٩٦]([1])حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ، عَنْ إِيَاسِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: غَزَوْنَا مَعَ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زَمَنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ شِعَارُنَا أَمِتْ أَمِتْ.

**ترجمه**: ایاس بن سلمه دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه مونږ دابوبکر ﷜ سره جهاد ته تلي وو دنبی ﷺ په زمانه کښې اوزتونره علامه امت امت لفظ وو.

**تشریح**: ﴿ فکان شعارنا امت امت ﴾ یعنی په یوه غزوه کښې د صحابه کرامو شعار دا لفظ پاتې شوې دې یعنی چه کله یو مجاهد په بل مجاهد باندې غلطۍ سره حمله کوی نو هغه ته ئې دا اوئیل چه ﴿ امت امت ﴾ یعنی دشمن مړ کړه ما ولې وژنې، او دا ضروری نه ده چه د شعار دې هم دا فائده وی بلکه د دې په متعین کولو کښې نور اغراض هم وی چه په هغې کښې د دې لفظ نه کار اخستلې شی، مثلا دا لفظ وئیلو سره بعض وخت دا بیانول دی چه زه ستاسو سرې دلته موجود یم، چه په هغې سره یو بل ته تقویت ملاویږی وغیره وغیره.([2])

والحدیث رواه النسائی قاله المنذری.

[٢٥٩٧]([3])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْمُهَلَّبِ بْنِ أَبِي صُفْرَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنْ بُيِّتُّمْ فَلْيَكُنْ شِعَارُكُمْ حم لَا يُنْصَرُونَ".

**ترجمه**: د مهلب بن أبی صفرة نه روایت دې فرمائی چه ماته خبر راکړې دې هغه چا، چاچه دنبی ﷺ نه اوریدلي دي چه فرمائیل ئې که چرې په تاسو باندې دشپې ددشمن دحملې خطره وي نوستاسو دپاره به نښه حم لاینصرون وي.

**تشریح**: ﴿ ان بیتم فلیکن شعارکم حم لا ینصرون ﴾ رسول الله ﷺ یو جهاد ته د تلو په وخت لښکر ته اوفرمائیل چه که په تاسو باندې د شپې حمله اوکړې شی یعنی د شپې په وخت که د جنګ حالت راشی نو په دغه وخت ستاسو شعار ﴿ حم لا ینصرون ﴾ پکار دي، والحدیث رواه الترمذی والنسائی، قاله المنذری.

---

[1]): سنن ابن ماجه/ الجهاد ٣٠ (٢٨٤٠)، (تحفة الأشراف: ٤٥١٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦/٤)، سنن الدارمي/السير ١٥(٢٤٩٥)، ويأتي هذا الحديث برقم (٢٦٣٨) (حسن صحيح)

[2]) او په دې زمانه کښې خو ټول نقل وحرکت په دې باندې موقوف وی، مثلا مختلف دستې او د هغه دستو امراء او د هغوی خایونه د تولو دپاره مختلف شعار ته (کوډ) متعین کولې شی او په فوجیانو کښې چه څوک چرته لیږل وی یا استعمالول وی هم د دې شعار په ذریعه هغه استعمالولې شی په دې زمانه کښې چه هر کله وانرلیس وغیره الات عام شوې دی دا ټول شعارات (کوډ) خپل او دشمنان د یو بل اوری خو د حقیقت د نه معلومیدو د وجې نه فریق مخالف په هغې باندې نه پوهیږی، د جواسپس (جاسوس) یو اهم کار په دې زمانه کښې د دې شعار مصادیق معلومول او د هغې لټون کول هم دی، په دې وجه عام فوجیانو ته هم عین په محاذ باندې ونیلې شی څکه چه په فتح او شکست کښې د شعار محفوظ ساتلو او د هغې افشاء کولو ته ډیر دخل دې. حبیب الله.

[3]): سنن الترمذي/الجهاد ١١ (١٦٨٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٦٧٩)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ السير (٨٨٦١)، اليوم والليلة (٦١٧)، مسند احمد (٦٥/٤، ٣٧٧/٥) (صحيح)

# بَابُ مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا سَافَرَ

## په سفر کښې کومه دعا غوښتل پکاردي؟

په دې باب کښې مصنف د سفر بعض دعاګانې جمع کړې دی لهذا هغه په کتاب کښې کتلو سره یادې کړئ.

[۲۵۹۸]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ، حَدَّثَنِي سَعِيدٌ الْمَقْبُرِيُّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرَ قَالَ: "اللَّهُمَّ أَنْتَ الصَّاحِبُ فِي السَّفَرِ وَالْخَلِيفَةُ فِي الْأَهْلِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ وَكَآبَةِ الْمُنْقَلَبِ وَسُوءِ الْمَنْظَرِ فِي الْأَهْلِ وَالْمَالِ، اللَّهُمَّ اطْوِ لَنَا الْأَرْضَ وَهَوِّنْ عَلَيْنَا السَّفَرَ".

**ترجمه**: د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه کله به نبی علیه السلام په سفرتلو نو دادعابه ئې وئیله: - قال « «اللَّهُمَّ أنت الصاحب في السفر والخليفة في الأهل اللَّهُمَّ إني أعوذ بك من وعثاء السفر وكآبة المنقلب وسوء المنظر في الأهل والمال اللَّهُمَّ اطو لنا الأرض وهون علينا السفر»» اې الله ته زما دپاره په دې سفرکښې ملګرې ئې او زما د اهل او عیال دپاره محافظ ئې، اې الله زه په تا باندې ددې سفردشرنه پناه غواړم او په سختئ سره دواپسئ نه اودمال اودعیال دنظره کیدونه، اې الله مونږ ته زمکه راونغاړې اوپه مونږ سفر آسان کړه.

[۲۵۹۹]([2]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّ عَلِيًّا الْأَزْدِيَّ، أَخْبَرَهُ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ عَلَّمَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَانَ إِذَا اسْتَوَى عَلَى بَعِيرِهِ خَارِجًا إِلَى سَفَرٍ كَبَّرَ ثَلَاثًا، ثُمَّ قَالَ: سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ ﴿۱۳﴾ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ ﴿۱۴﴾ سورة الزخرف آية ۱۳-۱۴، اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ فِي سَفَرِنَا هَذَا الْبِرَّ وَالتَّقْوَى وَمِنَ الْعَمَلِ مَا تَرْضَى، اللَّهُمَّ هَوِّنْ عَلَيْنَا سَفَرَنَا هَذَا، اللَّهُمَّ اطْوِ لَنَا الْبُعْدَ، اللَّهُمَّ أَنْتَ الصَّاحِبُ فِي السَّفَرِ وَالْخَلِيفَةُ فِي الْأَهْلِ وَالْمَالِ، وَإِذَا رَجَعَ قَالَهُنَّ وَزَادَ فِيهِنَّ آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ، وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجُيُوشُهُ إِذَا عَلَوْا الثَّنَايَا كَبَّرُوا وَإِذَا هَبَطُوا سَبَّحُوا فَوُضِعَتِ الصَّلَاةُ عَلَى ذَلِكَ.

**ترجمه**: علی ازدي دابن عمر رضی الله عنه نه روایت کوی فرمائی چه نبی علیه السلام به کله سفر شروع کولواود اوبن په شاه به کیناستو نو درې ځله به ئې تکبیر ووئیلو او بیا به ئې دا دعاء وئیله: ««{ سبحان الذي سخر لنا هذا وما كنا له مقرنين * وإنا إلى ربنا لمنقلبون } اللَّهُمَّ إني أسألك في سفرنا هذا البر والتقوى ومن العمل ما ترضى اللَّهُمَّ هون علينا سفرنا هذا اللَّهُمَّ اطو لنا البعد اللَّهُمَّ أنت الصاحب في السفر والخليفة في الأهل والمال» » اوچه کله به واپس کیدو نوهم به ئې دا کلمات وئیل اودا کلمات به ئې پکښې زیات کړل: « «آيبون تائبون عابدون لربنا حامدون» » او نبی علیه السلام اودهغه لښکرې چه به کله په لوړ ځائې ختل نو الله اکبربه ئې وئیلو اوچه کوزیدل به نوسبحان الله به ئې وئیلو . اوبیامونځ هم په دې قاعده باندې بناء کړې شو.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۰۳۲)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ۷۵ (۱۳۴۲)، سنن الترمذي/الدعوات ۴۲ (۳۴۳۸)، سنن النسائي/الاستعاذة ۴۳ (۵۵۱۶)، مسند احمد (۲/۴۰۱، ۴۳۳) (حسن صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الحج ۷۵ (۱۳۴۲)، سنن الترمذي/الدعوات ۴۷ (۳۴۴۷)، (تحفة الأشراف: ۷۳۴۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۴۴، ۱۵۰)، سنن الدارمي/الاستئذان ۴۲ (۲۷۱۵) (صحيح)

**تشريح:** ﴿ فوضعت الصلاة على ذلک ﴾ د حديث مضمون دا دې چه رسول الله ﷺ او د هغه اصحاب او جيوش سفر کښې دا معمول وو چه کله به هغوی لوړ ځائې ته ختل نو تکبير به ئې وئيلو، او چه کله به د لوړې نه ښکته تلل نو تسبيح به ئې وئيلو يعنی ﴿ سبحان الله، سبحان الله ﴾ وئيلو سره به لاندې کوزيدل، د دې نه روستو راوی په پورته ذکر شوې جمله کښې دا وائی چه مونځ هم په دې نهج باندې کيخودلې شوې دې، پس د قيام په حالت کښې تکبير وئيلې شی او په رکوع او سجود کښې کوم چه د پستئ حالت دې په دې کښې تسبيح وئيلی شی، سبحان ربی العظيم، سبحان ربی الاعلی، والحديث رواه مسلم والترمذی والنسائی، واخر حديثهم، "حامدون" قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الدُّعَاءِ عِنْدَ الْوَدَاعِ

### دچا د رخصتولو په وخت کښې د دعا بيان

[٢٦٠٠](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ قَزَعَةَ، قَالَ: قَالَ لِي ابْنُ عُمَرَ: هَلُمَّ أُوَدِّعْكَ كَمَا وَدَّعَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْتَوْدِعُ اللهَ دِينَكَ وَأَمَانَتَكَ وَخَوَاتِيمَ عَمَلِكَ.

**ترجمه:** د قزعة نه روايت دې فرمائی چه ابن عمر رضی الله عنه راته ووئيل راشه چه رخصت دی کړم لکه څنګه چه نبی عليه السلام زه رخصت کړې وم زه ستادين اوستا امانت اوستاد کار انجام الله تعالی ته سپارم.

[٢٦٠١](٢) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ إِسْحَاقَ السَّيْلَحِينِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ الْخَطْمِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ الْخَطْمِيِّ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَسْتَوْدِعَ الْجَيْشَ، قَالَ: "أَسْتَوْدِعُ اللهَ دِينَكُمْ وَأَمَانَتَكُمْ وَخَوَاتِيمَ أَعْمَالِكُمْ".

**ترجمه:** عبد الله خطمی رضی الله عنه وائی چه نبی کريم ﷺ به کله د يو لښکر رخصتولو اراده کوله نو فرمائيل به ئې: «أستودع الله دينكم وأمانتكم وخواتيم أعمالكم» "زه ستاسو دين ، ستاسو امانت او ستاسو انجام الله تعالی ته سپارم

**تشريح:** يعنی په سفر باندې د رخصت کولو دعا، په حديث الباب کښې دا دعا ذکر شوې ده ﴿ استودع الله دينک وامانتک وخواتيم عملک ﴾ دا دعا خو هغه ده کوم چه مقيم په سفر باندې د تلونکی دپاره کوی او د دې په مقابل کښې به په سفر کښې تلو والا چه د مقيم دپاره کومه دعا کوی هغه دا ده ﴿ استودعک الله الذی لا تضيع ودايعه ﴾ دا دعا دلته په کتاب کښې ذکر شوې نه ده، په بل ځائې کښې ده، وحديث الباب اخرجه النسائی، قاله المنذری.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٢٦٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الدعوات ٤٤ (٣٤٤٣)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٢٤ (٢٨٢٦)، مسند احمد (٢/٧، ٢٥، ٣٨، ١٣٦) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٦٧٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/اليوم والليلة (٥٠٧) (صحيح)

## بَاب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا رَكِبَ

### په سورلۍ باندې د سوريدو په وخت کښې د دعا بيان

[۲۶۰۲](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبِيعَةَ، قَالَ: شَهِدْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَأُتِيَ بِدَابَّةٍ لِيَرْكَبَهَا، فَلَمَّا وَضَعَ رِجْلَهُ فِي الرِّكَابِ قَالَ: بِسْمِ اللَّهِ فَلَمَّا اسْتَوَى عَلَى ظَهْرِهَا قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ، ثُمَّ قَالَ: سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ ۝ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ ۝ سورة الزخرف آية ۱۳-۱۴، ثُمَّ قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ قَالَ: "سُبْحَانَكَ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ، ثُمَّ ضَحِكَ فَقِيلَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ ضَحِكْتَ؟ قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَ كَمَا فَعَلْتُ ثُمَّ ضَحِكَ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ ضَحِكْتَ؟ قَالَ: إِنَّ رَبَّكَ يَعْجَبُ مِنْ عَبْدِهِ إِذَا قَالَ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ غَيْرِي".

**ترجمه**: دعلي بن ابي ربيعه نه روايت دې فرمائي چه دعلي نه په خدمت کښې حاضرشوم اوهغه ته يوخاروې دخورلئ دپاره پيش کړې شو نوچه هرکله ئې خپه په رکاب کښې کيخوده نو وئې وئيل بسم الله هرکله چه دهغه په شاباندې کيناستو نووئې وئيل يعنی ثناده هغه ذات لره چاچه دا زما دپاره تابع کړو اوزه ددې قابوکونکې نه وم او مونږه الله پاک ته ورتلونکي يو اوبيائې درې ځله الحمدلله اووئيل اوبيائې الله اکبردری ځله اووئيل اوبيائې دادعا اووئيله پاکي ده تالره اې ربه ماظلم کړې دې په خپل نفس باندې ماته بخنه اوکړه يقينا هيڅوک ګناهونه نه شي بخښلې مګر صرف ته، اوبيائې اوخندل تپوس ورنه اوشو چه اې اميرالمومنين په څه وجه دې اوخندل هغه اووئيل نبی عليه السلام مې ليدلې وو چه داسې ئې کړې وو لکه څنګه چه ما اوکړل اوبيائې اوخندل ماورته اووئيل اې دالله رسوله ولې دې اوخندل هغه اوفرمائيل چه الله تعالی په خپل بنده تعجب کوي کله چه هغه دګناهونو بخنه غواړي ځکه چه دې په دې پوهيږي چه زمانه علاوه بل څوک ګناهونه نه شي بخلې.

**تشريح**: د سوريدو په وخت چه کومه دعا وئيلی شی هغه په کتاب کښې د سيدنا علی رضی الله عنه نه نقل ده هغه ياده کړئ، مشهوره دعا ده ﴿سبحان الذی سخر لنا هذا وما کنا له مقرنين﴾ الی اخر الحديث، وحديث الباب اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری.

## بَاب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا نَزَلَ الْمَنْزِلَ

### خپل منزل ته د رسيدو په وخت کښې د دعا بيان

[۲۶۰۳](۲) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنِي صَفْوَانُ، حَدَّثَنِي شُرَيْحُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْوَلِيدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرَ فَأَقْبَلَ اللَّيْلُ قَالَ: "يَا أَرْضُ رَبِّي وَرَبُّكِ اللَّهُ أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ شَرِّكِ وَشَرِّ مَا فِيكِ وَشَرِّ مَا خُلِقَ فِيكِ وَمِنْ شَرِّ مَا يَدِبُّ عَلَيْكِ، وَأَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ أَسَدٍ وَأَسْوَدَ وَمِنَ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ وَمِنْ سَاكِنِ الْبَلَدِ وَمِنْ وَالِدٍ وَمَا وَلَدَ".

---

(۱): سنن الترمذي/الدعوات ۴۷ (۳۴۴۶)، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۴۸)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري / (۸۷۹۹)، اليوم والليلة (۵۰۲)، مسند احمد (۹۷/۱، ۱۱۵، ۱۲۸) (صحيح لغيه) (ملاحظه هو: صحيح ابي داود ۳۵۴۷)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۶۷۲۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۳۲/۲، ۱۲۴/۳) (ضعيف)

**ترجمه:** د عبدالله بن عمر ﷺ نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ به کله سفر کولو اوشپه به راغله نودا دعابه ئې وئيله اې زمکې زمارب اوستا رب الله دی زه پناه غوارم په الله باندې ستادشر نه او دهغه شرنه کوم چه په تاکښې دې اودشردهغه څيز نه چه پيداشوې دې په تاکښې اودشردهغه څيز نه چه ګرځی په تاکښې او پناهي غوارم په الله باندې دليوه نه اودتورمار نه اودمارنه اودلړم نه او په زمکه داوسيدونکو د شر نه اودپيداکونکودضرر نه اود پيدا کړې شوو دضرر نه.

## شرح حديث

دا ټوله دعا ډيره مسجع ده لکه چه تاسو اوکتله او د رسول الله ﷺ اکثر دعاګانې مسجع دی، خو د رسول الله ﷺ دا تسجيع قصدا او تکلفا نه وه بلکه بغير د قصد او اختيار نه د هغه د کمال بلاغت او فصاحت په بناء باندې کوم چه الله پاک په هغه کښې وديعت کړې وو، ګينې په دعا کښې خو د سجع کولو نه هغه منع فرمائيلې ده. ﴿ اسود ﴾ وئيلې شی اژدها ته يعنی لوئې قسم مار ته او حيه کوم چه په حديث کښې دې هغه مطلق مار او ﴿ساکنی البلد ﴾ نه مراد ثقلين يعنی انس او جن دی، ﴿ لانهم يسکنون البلاد غالبا او لانهم بنوا البلدان واستوطنوها، او المراد بالبلد الارض کما قال الله تعالى والبلد الطيب يخرج نباته ﴾ او وړاندې په حديث کښې دی ﴿ من والد وما ولد ﴾ وئيلې شوې دی چه د دې نه مراد ادم ﷺ او د هغه اولاد دې، او يو احتمال دا ليکلې دې چه د والد نه مراد ابليس او د ﴿ وما ولد ﴾ نه نور شياطين مراد دی کوم چه د هغه د لاندې دی، والحديث رواه النسائی قاله المنذری.

# بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ السَّيْرِ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ

### د شپې په شروع کښې د سفر شروع کولو ممانعت بيان

[٢٦٠٤]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُرْسِلُوا فَوَاشِيَكُمْ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ حَتَّى تَذْهَبَ فَحْمَةُ الْعِشَاءِ، فَإِنَّ الشَّيَاطِينَ تَعِيثُ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ حَتَّى تَذْهَبَ فَحْمَةُ الْعِشَاءِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْفَوَاشِي مَا يَفْشُو مِنْ كُلِّ شَيْءٍ.

**ترجمه:** د جابر ﷺ نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی: مه خوشي کوئ څاروی خپل چه کله نمر په پريوتو شی ترڅوچه د ماسخوتن ابتدائی تياره نه وي خوره شوې ځکه چه شيطانان د نمر د ډوبيدونه پس فساد خوروی تردې چه دماسخوتن ابتدائي تياره خوره شی.

## شرح حديث

فواشی هغه څاروو ته وئيلې شی کوم چه ښکاره ګرځی اوښان او بيزې وغيره، او ﴿ فحمه ﴾ وئيلې شی هغه تيرې ته کومه چه د ماښام او ماسخوتن ترمينځه وی، او کومه تياره چه د ماسخوتن او صبا ترمينځه وی هغې ته ﴿ عسعسه ﴾ وئيلې شی، ﴿ قال تعالی والليل اذا عسعس﴾ او د ﴿ غات يغيث غيثا ﴾ معنی ده فساد کول، د حديث مطلب دا شو چه د ورځې د

---

[1] (): صحيح مسلم/ الأشربة ١٢ (٢٠١٣)، مسند احمد (٣/٣٠١، ٣١٢، ٣٦٢، ٣٧٤، ٣٨٦، ٣٩٥)، (تحفة الأشراف: ٢٧٢٣) (صحيح)

پټيدو نه پس خپل څاروی ازاد مه پرېږدئ بلکه هغه ترلې ساتئ ترڅو پورې چه ﴿ فحمة العشاء ﴾ باقي پاتې وی، د دې غايت تقاضه دا ده چه د هغې نه روستو ئې بيا پرانستلې شی يعنی په ابادئ کښې او داسې ځائې کښې چرته چه خواته پټی او فصلونه نه وی ګينې د شپې به ئې هم ترل ضروری وی لکه چه په هغه حديث کښې دی کوم چه وړاندې په ابوداؤد کښې په خپل محل کښې راروان دې چه د پټی او باغ والو په ذمه دا خبره ده چه هغوی د خپل پټی او باغ حفاظت د ورځې خپله کوی او د شپې د څاروو په خاوندانو باندې ضروری ده چه هغه خپل څاروی د شپې ترلې ساتی، دا فيصله رسول اللهﷺ هغه وخت فرمائيلې وه چه کله يو پټی والا هغه ته شکايت کړې وو چه د فلانی سړی څاروو زما فصل خراب کړې ، پس د دې حديث په بنياد باندې د جمهورو علماء کرامو مذهب دا دې چه د کوم څاروی سره سائق نه وی او هغه د ورځې د چا نقصان اوکړی نو په دې صورت کښې ضمان نشته او که د شپې په وخت څاروی نقصان اوکړی نو په دې صورت کښې بيا د څاروی په مالک باندې ضمان شته، وهذا ما عندی ولم يتعرض له احد من الشراح.[1]

د دې نه پس تاسو ځان پوهه کړئ چه د مصنف د ترجمة الباب حاصل دا دې چه د شپې په شروع کښې د سفر ابتداء نه ده پکار او د هغې په دليل کښې دا حديث پيش کولې شی، حضرت په بذل کښې په دې باندې دا اشکال کړې دې، هذا الاستنباط بعيد، والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي أَيِّ يَوْمٍ يُسْتَحَبُّ السَّفَرُ

### د سفر شروع کول په کومه ورځ مستحب دی؟

[۲۶۰۵][2] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَلَّمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ فِي سَفَرٍ إِلَّا يَوْمَ الْخَمِيسِ.

**ترجمه**: د کعب بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه ډيرکم به د زيارت دورځې نه علاوه نبی عليه السلام په سفر وتلې وي

[1] دا حديث په صحيح مسلم ص ۱۷۱ ج ۲ کښې په دوه طريق سره په مختلف سياق سره راغلې دې کوم طريق چه په ابوداؤد کښې دې ﴿ ابو الزبير عن جابر ﴾ د هغې الفاظ دا دی ﴿ لا ترسلو فواشيكم وصبيانكم ﴾ په دې کښې د صبيان زيادت دې کوم چه په ابوداود کښې نشته، او بل طريق د عطاء عن جابر دې د هغې الفاظ دا دی ﴿ اذا كان جنح الليل او امسيتم فكفوا صبيانكم فان الشيطان ينتشر حينئذ فاذا ذهب ساعة من الليل فخلوهم ﴾ په دې طريق کښې صرف صبيانکم دې د فواشی په دې کښې ذکر نشته او بيا په دې کښې دا دی چه کله ﴿ فحمة العشاء ﴾ تير شی نو بيا هغه بهر وتلې شی، لهذا معلومه شوه چه د ابوداؤد په روايت کښې اختصار دې لهذا د مجموعه رواياتو د سياق په وجه باندې وئيلې کيدې شی چه ﴿ حتي تذهب فحمة العشاء ﴾ د دې غايت تعلق د صبيان سره دې د فواشی سره نه دې، وهذا تحقيق انيق يزول به الاشكال والخلجان

[2]: صحيح البخاري/الجهاد ۱۰۳ (۲۹۵۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۴۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۴۵۴، ۴۵۵، ۳۸۶۶، ۳۸۷، ۳۹۰) (صحيح)

**تشریح:** یعني اکثر او به رسول الله ﷺ د سفر ابتداء د زیارت په ورځ کولو خو همیشه نه، پس د حافظ ابن قیم د رائې مطابق هغه ﷺ د حجة الوداع سفر په یوم السبت کښې فرمائیلې وو، خو د ابن حزم تحقیق هم دا دې چه د هغه ﷺ دا سفر د زیارت په ورځ شوې وو. والحدیث اخرجه النسائی قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْاِبْتِكَارِ فِي السَّفَرِ

### سحر وختی د سفر شروع کولو د فضیلت بیان

﴿ ابتکار ﴾ او ﴿ تبکیر د بکرة ﴾ نه دې، یعني سحر وختی څه کار کول، هم دغه شان یو کار د هغې په اول وخت کښې کولو ته هم وئیلې شي، اګر که د لږ وخت دپاره وی، خو په ترجمة الباب کښې اوله معنی مراد ده.

[٢٦٠٦](1)حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا يَعْلَى بْنُ عَطَاءٍ، حَدَّثَنَا عُمَارَةُ بْنُ حَدِيدٍ، عَنْ صَخْرٍ الْغَامِدِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "اللَّهُمَّ بَارِكْ لِأُمَّتِي فِي بُكُورِهَا"، وَكَانَ إِذَا بَعَثَ سَرِيَّةً أَوْ جَيْشًا بَعَثَهُمْ فِي أَوَّلِ النَّهَارِ، وَكَانَ صَخْرٌ رَجُلًا تَاجِرًا وَكَانَ يَبْعَثُ تِجَارَتَهُ مِنْ أَوَّلِ النَّهَارِ فَأَثْرَى وَكَثُرَ مَالُهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ صَخْرُ بْنُ وَدَاعَةَ.

**ترجمه:** د صخر غامدي رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی: اې الله برکت واچوې زما دامت دپاره ددوی دسحر په وخت کښې، راوی وائی چه کله به نبی علیه السلام یو لښکر لیږلو نو دورځې دشروع نه به ئې لیږلو، اوصخر یو کا روباری سړې وو خپل روزګار به ئې دورځې دسر نه شروع کولو نو دې دولت مند شو او مال ئې زیات شو.

**تشریح:** ﴿ اللهم بارک لامتی فی بکورها الخ ﴾ "صخر بن وداعة الغامدی د رسول الله ﷺ نه نقل کوی چه هغه دا دعا اوفرمائیله چه په هغې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ د الله پاک نه د خپل امت دپاره د سحر په وخت کښې برکت طلب کړو او وړاندې په روایت کښې دی چه د هغه معمول د جیوش او سرایا په باره کښې هم دا وو کوم چه به رسول الله ﷺ د ورځې په شروع کښې روانول، وړاندې په روایت کښې دی چه صخر غامدی یعنی د حدیث راوی یو سوداګر سړې وو، هغه به خپل د تجارت مال دورځې په شروع کښې لیږلو چه په هغې سره مالداره شو، د هغه په مال کښې ډیر برکت راغلو، والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُسَافِرُ وَحْدَهُ

### د یواځې سفر کولو د ممانعت بیان

[٢٦٠٧](2)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَرْمَلَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الرَّاكِبُ شَيْطَانٌ وَالرَّاكِبَانِ شَيْطَانَانِ وَالثَّلَاثَةُ رَكْبٌ".

---

[1]): سنن الترمذي/البيوع ٦ (١٢١٢)، سنن ابن ماجه/التجارات ٤١ (٢٢٣٦)، (تحفة الأشراف: ٤٨٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤١٦، ٤١٧، ٤٣٢، ٤/٣٨٤، ٣٩٠، ٣٩١)، دي/السير ١ (٢٤٧٩) (صحيح)

[2]): سنن الترمذي/الجهاد ٤ (١٦٧٤)، (تحفة الأشراف: ٨٧٤٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاستئذان ١٤ (٣٥)، مسند احمد (٢/١٨٦، ٢١٤) (حسن)

**ترجمه:** عمرو بن شعيب د خپل پلار نه اوهغه دده دنيکه نه روايت کوی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی يوسور يو شيطان وي اودوه سواره دوه شيطانان وي اودرې سواره ډله ده.

### د ځانله سفر په باره کښې مختلف روايات او د هغې توجيه

د دې حديث نه معلومه شوه چه صرف د يو يا دوه کسانو سفر کول ممنوع دې، او که د دوه نه زائد وی نو جائز دې، امام بخاری رحمه الله په دې سلسله کښې څو بابونه تړلې دی "باب السير وحده" او "باب هل يبعث الطليعة وحده" او په "باب السفر الاثنين" کښې هغه د مالک بن الحويرث حديث ذکر اوفرمائيلو په کوم کښې چه د هغه او د هغه د ملګری سفر ذکر شوې دې چاته چه رسول الله ﷺ فرمائيلې وو ﴿ اذنا واقيما وليؤكما اكبركما ﴾ د دې باب د لاندې حافظ ليکی چه کيدې شی مصنف د دې حديث تضعيف طرف ته شاره کړې وی چه د کوم تخريج اصحاب السنن کړې دې يعنی هم دا حديث د ابوداؤد والا، خو حافظ فرمائی چه هغه حديث قوی دې، بهرحال روايات په دې سلسله کښې مختلف دی جوازا ومنعا اوس يا خو دې داسې اوئيلې شی چه د منع روايات منسوخ دی په ابتداء باندې محمول دی، چه کله د کفارو غلبه وه، يا دا اوئيلې شی چه د منع روايات په عدم ضرورت باندې محمول دی يا د ويرې په حال باندې، لهذا د حاجت او ويرې نه کيدو په وخت باندې جائز دې، پس د جنګ مصلحت چه کوم دې چه د هغې په ضرورياتو کښې جاسوسی هم ده هلته په انفراد کښې هيڅ باک نشته بلکه هغه مصلحت صرف د انفراد نه حاصليږی. هسې د منع روايت په بخاری کښې هم شته.﴿ لويعلم الناس ما فی الوحدة ما اعلم ما سار راکب بليل وحده، اخرجه البخاری من حديث ابن عمر مرفوعا فی باب السيروحده،وحديث الباب اخرجه النسائی قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْقَوْمِ يُسَافِرُونَ يُؤَمِّرُونَ أَحَدَهُمْ

### کله چه درې کسان يا زيات په سفر روان شی نو يو کس دې امير کړی

[۲۶۰۸](1) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ بَحْرِ بْنِ بَرِّيٍّ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا خَرَجَ ثَلَاثَةٌ فِي سَفَرٍ فَلْيُؤَمِّرُوا أَحَدَهُمْ".

**ترجمه:** د ابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی. کله چه درې کسان يازيات په سفر روان شی نو يو کس دې امير مقرر کړي.

**تشريح:** يعنی په سفر کښې که کم از کم د درې کسانو جماعت وی نو هغوی له پکار دی چه يو تن پکښې امير کړی چه د سفر دوران د امورو په انتظام کښې سهولت راشی اختلاف نه پيدا کيږی، په دې حديث کښې امر د استحباب دپاره دې، اصل کښې اختلاف پيدا کيږی د تکبر او لويئ نه، او کله چه دوه کسان دريم لره امير جوړوی نو د دې بناء خو په تواضع باندې ده او د تواضع په صورت کښې اتفاق باقی پاتې کيږی.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٤٢٩) (حسن صحيح)

[۲۶۰۹]([1])حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ بَحْرٍ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا كَانَ ثَلَاثَةٌ فِي سَفَرٍ فَلْيُؤَمِّرُوا أَحَدَهُمْ"، قَالَ نَافِعٌ: فَقُلْنَا لِأَبِي سَلَمَةَ: فَأَنْتَ أَمِيرُنَا.

**ترجمه:** د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي: کله چه درې کسان يازيات په سفر روان شي نويوکس دې امير مقررکړي. نافع رضي الله عنه وائي مونږه ابو سلمه رضي الله عنه ته اووئيل ته زمونږ امير شوې.

## بَابٌ فِي الْمُصْحَفِ يُسَافَرُ بِهِ إِلَى أَرْضِ الْعَدُوِّ

### دارحرب ته د قرآن کريم د وړلو بيان

انسان په سفر باندې د تلو په وخت د خپل ضرورت څيزونه څان سره اخلي، مسواک، لوټه، مصلی وغيره، اوس ظاهره ده چه د قران کريم د تلاوت دپاره د مصحف ضرورت دې نو ايا د جهاد په سفر کښې به انسان د ځان سره مصحف اوړی يا نه؟ په حديث الباب کښې د دې نه منع راغلې ده.

[۲۶۱۰]([2])حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُسَافَرَ بِالْقُرْآنِ إِلَى أَرْضِ الْعَدُوِّ"، قَالَ مَالِكٌ: أُرَاهُ مَخَافَةَ أَنْ يَنَالَهُ الْعَدُوُّ.

**ترجمه:** عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام منع فرمائيلې ده دقرآن پاك دوړلونه د دشمن ملك ته. مالك وائي منع ئې ځکه فرمائيلی ده چه چرته داسې اونه شي چه دشمن دقرآن بې عزتي اوکړي.

**تشريح:** امام مالك رحمه الله کوم چه د حديث راوی دې هغه فرمائي چه دا ممانعت د دې دپاره دې چه چرته دشمن ئې بې حرمتي اونکړي، پس د امام مالک مسلک هم دا دې، د هغوی په نزد دا نهي مطلقا ده، او د احنافو مذهب دا دې چه چه عسکر صغير کښې اوړل خو خلاف احتياط او مکروه دي او که د مسلمانانو لوئې لښکر وی نو هيڅ باک نشته، د امام شافعي رحمه الله په نزد د دې بنياد د ضياع په ويره باندې دې، والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

## بَابٌ فِيمَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الْجُيُوشِ وَالرُّفَقَاءِ وَالسَّرَايَا

### د لښکر او ملګرو او د سريه د تعداد بيان چه کوم مستحب دی

[۲۶۱۱]([3])حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ أَبُو خَيْثَمَةَ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "خَيْرُ الصَّحَابَةِ

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۳۴۹) (حسن صحيح)

[2]): صحيح البخاري/الجهاد ۱۲۹ (۲۹۹۰)، (وليس عنده قول مالك)، صحيح مسلم/الإمارة ۲٤ (۱۸٦۹)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٤٥ (۲۸۷۹)، (تحفة الأشراف: ۸۳٤۷)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجهاد ۲ (۷)، مسند احمد (۲/٦، ۷، ۱۰، ۵۵، ٦۳، ۷٦، ۱۲۸) (صحيح)

[3]): سنن الترمذي/السير ۷ (۱۵۵۵)، (تحفة الأشراف: ۵۸٤۸)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/السرايا (۲۷۲۸)، سنن الدارمي/السير ٤ (۲٤۸۲)، مسند احمد (۱/۲۹٤، ۲۹۹) (ضعيف) (الصحيحة: ۹۸٦، وتراجع الألباني: ۱۵۲)

أَرْبَعَةٌ، وَخَيْرُ السَّرَايَا أَرْبَعُ مِائَةٍ، وَخَيْرُ الْجُيُوشِ أَرْبَعَةُ آلَافٍ، وَلَنْ يُغْلَبَ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا مِنْ قِلَّةٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ مُرْسَلٌ.

**ترجمه**: د عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي: غوره ملګرتيا د څلوروکسانوده اوغوره سريه دڅلور سوه کسانوده اوغوره لښکر دڅلور زره کسانو وی، اودولس زره کسان هيڅ کله دکم والي په وجه باندې نه شي مغلوب کيدې۔ ابوداود وائی صحيح خبره داده چه داروايت مرسل دې۔

**تشريح**: سيدنا ابن عباس رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم حديث نقل کوی چه هغه اوفرمائيل د سفر بهترين ملګری څلور ملګری دی، چه د هغې وجه شارحينو دا ليکلې ده چه که ملګری صرف څلور وی او په هغوی کښې يو تن مريض شی او يو ملګری لره خپل وصی جوړ کړی نو اوس د وصی د شهادت دپاره به صرف يو سړې وی، او ضرورت د شاهدين دې، لهذا که څلور وی نو دا مصلحت به پوره شی.

سرايا جمع د سرية ده يعنی عسکر صغير، او د لښکر يوه دسته، او جيوش جمع ده د جيش يعنی عسکر کبير، وړاندې په روايت کښې دی چه د دولسو زرو لښکر د قلت په بنياد مغلوب کيدې نه شی، يعنی که د بل څه عارض د وجې نه وی نو بيله خبره ده، پس په غزوه حنين کښې د مسلمانانو د لښکر تعداد دولس زره وو د دې باوجود د يو عارض د وجې نه د جنګ په شروع کښې هغوی د شکست سره مخ شو ﴿لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٍ وَيَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ﴾ الاية، والحديث اخرجه الترمذی قاله المنذری.

## بَابٌ فِي دُعَاءِ الْمُشْرِكِينَ

### مشرکانو ته د دعوت ورکولو بيان

يعنی د قتال نه مخکښې مشرکينو ته د اسلام دعوت ورکول، په دې کښې څلور مذاهب مشهور دی.

۱: وجوب مطلقا: يو جماعت هم د دې قائل دې، منهم عمر بن عبدالعزيز.

۲: الفرق بين من بلغته الدعوة وبين من لم تبلغه، هم دا مذهب دې د احنافو او د شوافعو

۳: الفرق بين اهل الکتاب وغيرهم، يعنی د اهل کتاب دپاره د دعوت حاجت نشته، يعنی يهود او نصاری او مجوس، او د هغوی نه علاوه چه کوم مشرکين دی په هغې کښې ذکر شوی فرق ته اوکتلې شی، يعنی بلوغ دعوة او عدم بلوغ دعوة، دا مذهب دې د امام احمد،

۴: د امام مالک مذهب په معالم السنن کښې امام خطابی خو مطلقاً وجوب ليکلې دې کوم چه د عمر بن عبدالعزيز مذهب دې، او حافظ د امام مالک مذهب دا ليکلې دې چه کوم مشرکان دار الاسلام ته نزدې اوسيږی هلته د دعوت حاجت نشته، او کوم چه د دار الاسلام نه بعيد دی هلته دعوت اقطع للشک دې. اهـ

[٢٦١٢] ()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَعَثَ أَمِيرًا عَلَى سَرِيَّةٍ أَوْ جَيْشٍ أَوْصَاهُ بِتَقْوَى اللَّهِ فِي خَاصَّةِ نَفْسِهِ وَبِمَنْ مَعَهُ مِنَ الْمُسْلِمِينَ خَيْرًا، وَقَالَ: "إِذَا لَقِيتَ عَدُوَّكَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، فَادْعُهُمْ إِلَى إِحْدَى ثَلَاثِ خِصَالٍ أَوْ خِلَالٍ فَأَيَّتُهَا أَجَابُوكَ إِلَيْهَا فَاقْبَلْ مِنْهُمْ، وَكُفَّ عَنْهُمْ ادْعُهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ فَإِنْ أَجَابُوكَ فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ، ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى التَّحَوُّلِ مِنْ دَارِهِمْ إِلَى دَارِ الْمُهَاجِرِينَ، وَأَعْلِمْهُمْ أَنَّهُمْ إِنْ فَعَلُوا ذَلِكَ، أَنَّ لَهُمْ مَا لِلْمُهَاجِرِينَ وَأَنَّ عَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُهَاجِرِينَ فَإِنْ أَبَوْا وَاخْتَارُوا دَارَهُمْ، فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّهُمْ يَكُونُونَ كَأَعْرَابِ الْمُسْلِمِينَ يَجْرِي عَلَيْهِمْ حُكْمُ اللَّهِ الَّذِي يَجْرِي عَلَى الْمُؤْمِنِينَ، وَلَا يَكُونُ لَهُمْ فِي الْفَيْءِ وَالْغَنِيمَةِ نَصِيبٌ إِلَّا أَنْ يُجَاهِدُوا مَعَ الْمُسْلِمِينَ، فَإِنْ هُمْ أَبَوْا فَادْعُهُمْ إِلَى إِعْطَاءِ الْجِزْيَةِ، فَإِنْ أَجَابُوا فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ، فَإِنْ أَبَوْا فَاسْتَعِنْ بِاللَّهِ تَعَالَى وَقَاتِلْهُمْ، وَإِذَا حَاصَرْتَ أَهْلَ حِصْنٍ فَأَرَادُوكَ أَنْ تُنْزِلَهُمْ عَلَى حُكْمِ اللَّهِ تَعَالَى فَلَا تُنْزِلْهُمْ، فَإِنَّكُمْ لَا تَدْرُونَ مَا يَحْكُمُ اللَّهُ فِيهِمْ وَلَكِنْ أَنْزِلُوهُمْ عَلَى حُكْمِكُمْ ثُمَّ اقْضُوا فِيهِمْ بَعْدُ مَا شِئْتُمْ"، قَالَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ: قَالَ عَلْقَمَةُ: فَذَكَرْتُ هَذَا الْحَدِيثَ لِمُقَاتِلِ بْنِ حَيَّانَ، فَقَالَ: حَدَّثَنِي مُسْلِمٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هُوَ ابْنُ هَيْصَمٍ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَ حَدِيثِ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ.

**ترجمه**: د بریده رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه کله به نبی علیه السلام په یوه سریه یا لښکر کښې څوك امیر مقرر کړو نوهغه ته به ئې وصیت اوکړو دالله نه په ویرې کولوسره د خپل ځان په باره کښې اودخلقو په باره کښې اوفرمائیل به ئې کله چه دخپلو دشمنانو مشرکانو سره مخامخ شئ نوهغوی ته ددرې خبرو دعوت ورکړه که چرې مشرك په دې درې څیزونوکښې یوقبول کړي نوته هم ددوی نه قبول کړه او ددوی سره جنګ مه کوه یعنی اول ورته داسلام دعوت ورکړه که چرې داسلام دعوت قبول کړی نوته ددوی اقرار قبول کړه او ددوی دقتل نه ځان وساته اوکه چرې اسلام قبول نه کړی نو دوی لره دخپل ملك نه دارالاسلام ته راوبله او ددې خبرې خبر ورته ورکړه که چرې دوی داخبرې اومنی نو دوی ته به دمهاجرینو د حقوقو برابر حقوق ورکولې شی او په دوی به هغه ذمه واریانې وي کومې چه په مهاجرینو باندې لازم وی نوکه چرې دوی دخپل ملك نه وتل قبول نه کړی نو دوی ته خبر ورکړه چه دوی به داسې وی لکه دمسلمانانو پښان او په دوی به دالله هغه حکم جاری کولې شی کوم چه په مومنانو باندې جاری کیږې او ددوی دپاره به په مال فئ اومال غنیمت کښې حصه نه وی خومګرهله چه داخلق دمسلمانانو سره یوځائې جهاداوکړي اوکه چرې داسلام قبلولونه انکاراوکړي نوددوی نه جزیه طلب کړه نوکه چرې دوی دا منظور کړی نوته هم ددوی نه جزئیه قبول کړه او ددوی سره جنګ مه کوه اوکه چرې دوی جزئیه قبول نه کړی نودالله نه امداد اوغواړه اوجنګ ورسره شروع کړه کله چه تاسو مشرکان په یوه قلعه کښې محاصره کړئ اوهغوی دا غواړی چه تاسودوی لره دالله په حکم سره راکوز کړئ نوتاسوبه ددوی خبره نه منئ ځکه چه معلومه نه ده چه په دې باره کښې دالله تعالی حکم څه دې؟ بلکه تاسودوی لره په خپل حکم راکوز کړئ بیاچه تاسو څنګه غواړئ ددوی فیصله اوکړئ.

[1]): صحيح مسلم/الجهاد ٢ (١٧٣١)، سنن الترمذي/السير ٤٨ (١٦١٧)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٣٨ (٢٨٥٨)، (تحفة الأشراف: ١٩٢٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٢/٥، ٣٥٨)، سنن الدارمي/السير ٥ (٢٤٨٣) (صحيح)

سفیان بن عیینه وائی چه علقمه وئیلی دی چه دا حدیث مې مقاتل بن حیان ته ذکرکړو هغه اووئیل داحدیث ماته مسلم بیان کړې دې، ابوداودوائی مسلم دهیصم خوي دې هغه دنعمان بن مقرن نه اوهغه دنبی ﷺ نه دسلیمان بن بریده دروایت په شان روایت بیان کړې دې.

## د اوږد او جامع حدیث مکمل او جامع تشریح

دا ډیر اوږد حدیث دې، مونږ د دې د هر هر ټکړې جدا جدا شرح کوو، یعنی چه کله به رسول الله ﷺ یو سړی د یوې سریه یا لښکر امیر جوړولو نو هغه امیر ته به ئې خاص د خپل ذات په باره کښې د تقوی حکم کولو یعنی دا چه ته د خپل ځان متعلق ډیر د احتیاط او تقوی نه کار اخله، او هغه امیر ته به ئې فرمائیل چه د خپلو ما تحتو سره د خیر خواهۍ معامله کوه، په دې کښې اشاره ده چه امیر له پکار دی چه د خپل ذات په باره کښې خو دې پوره پوره په احتیاط سره عمل کوی، او د ملګرو سره دې معامله نرمه ساتی، لکه چه په یو حدیث کښې دی. ﴿ یسروا ولا تعسروا ﴾ (بذل)

﴿ إِذَا لَقِيتَ عَدُوَّكَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَادْعُهُمْ إِلَى إِحْدَى ثَلَاثِ خِصَالٍ ﴾ په شروع کښې به رسول الله ﷺ د اهم خبرو د بیان نه پس، او د دې ځائې نه د قتال د کیفیت او د هغې تفصیل بیان فرمائی هغه دا چه د قتال نه مخکښې د مشرکینو په وړاندې دوه څیزونه نور دی کوم چه به ترتیب وار ذکر کولې شی یعنی د قتال درجه به په دریم نمبر باندې وی، او د شروع دوه دا دی، اول دې هغوی ته د عوت الی الاسلام ورکړې شی، پس که هغوی دا قبول کړی نو تاسو هغه تسلیم کړئ، او د هغې نه خپل لاس بند کړئ، دا امر اول دې، د دې امر اول یوه تکمله او تتمه ده کومه چه وړاندې بیان فرمائی : ﴿ ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى التَّحَوُّلِ مِنْ دَارِهِمْ إِلَى دَارِ الْمُهَاجِرِينَ ﴾ هغه دا چه هر کله دې کلي والو ټولو اسلام قبول کړو نو هغوی ته دعوت ورکړه د خپلو کورونو نه د مهاجرینو د کور طرف ته او هغوی د دې خبرې نه باخبر کړئ چه که هغوی داسې اوکړل یعنی هجرت ئې اختیار کړو نو د هغوی دپاره به هم هغه ثواب او سهولیات وی کوم چه د مهاجرینو دپاره وی، او ورسره ورسره به ذمه داریٔ هم وی کومې چه په مهاجرینو باندې وی، پس که هغوی دغه انتقال لره قبول کړی نو صحیح ده ﴿فان ابو او اختاروا دارهم ﴾ یعنی که هغه په دې انتقال مکانیٔ باندې راضی نه شی او خپله علاقه پریخودل نه غواړی نو بیا هغوی په دې باندې پوهه کړه چه په دې صورت کښې د هغوی حال او حکم د اعراب المسلمین په شان دې، کوم حکم چه د اعراب المسلمین دې هم هغه به د هغوی وی، وړاندې د دې لږ شان وضاحت دې، هغه دا چه ﴿ وَلاَ يَكُونُ لَهُمْ فِي الْفَيْءِ وَالْغَنِيمَةِ نَصِيبٌ إِلاَّ أَنْ يُجَاهِدُوا مَعَ الْمُسْلِمِينَ ﴾ یعنی د عدم انتقال په صورت کښې به د هغه خلقو دپاره په مال فیٔ کښې او غنیمت یعنی په خمس د مال غنیمت کښې حصه نه وی مګر دا چه هغه د مسلمانانو سره یوځائې کیدو باندې جهاد اوکړی، تردې ځائې هغه تکمله پوره شوه، په دې کښې بعض څیزونه تشریح ته محتاج دی هغه دا چه ﴿ لَهُمْ مَا لِلْمُهَاجِرِينَ وَأَنَّ عَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُهَاجِرِينَ ﴾ څه مطلب دې؟ پس پوهه شه چه کوم خلق اسلام راوړلو سره انتقال مکانی لره اختیار نه کړی، بلکه په خپله ابادیٔ کښې اوسیږی دې ته اعراب

المسلمین وئیلې شي او کوم خلق چه اسلام قبلولو سره او خپل وطن پریخودلو سره د مدینې طرف ته هجرت کولو سره لاړ شي هغوی ته مهاجرین وئیلې شي، هغه وخت د مهاجرینو حکم کوم چه په هغوی باندې عائد کیدو هغه دا وو چه کله هم د جهاد ضرورت راشي او هغوی جهاد ته لیږلې شي د هغوی دپاره هغې ته تلل ضروری وو، برابره خبره ده که هغه مسلمانان کوم چه دشمن ته نزدې اوسیږي چا سره چه جهاد کول دی او هغوی سره د جنګ کولو دپاره کافي وی یا نه وی، په خلاف د اعراب المسلمین چه د هغوی دپاره خروج للجهاد په هر صورت کښې ضروری نه وو، صرف په هغه صورت کښې ضروری وو چه کله هغه مسلمانان د جهاد دپاره کافي نه وی کوم چه دشمن ته نزدې اوسیږي، او که په هغې کښې کفایت وی نو بیا په دې صورت کښې د هغه اعرابو دپاره په جهاد کښې تلل ضروری نه وو، دا خو مطلب شو د دویمې جملې ﴿وعلیهم ما علی المهاجرین﴾ او د جمله اولی ﴿لهم ما للمهاجرین﴾ چه ستاسو دپاره به هم هغه وی کوم چه د مهاجرینو دپاره وی د دې نه مراد ثواب، یعنی ثواب هجرت او د مال فئ استحقاق، کوم چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې وو، چه رسول الله ﷺ به د مال فئ نه خرچ کولو په مهاجرینو باندې

## په مال فئ کښې د اعراب المسلمین حصه شته یا نه؟

په خلاف د اعراب المسلمین چه د هغوی دپاره به په مالِ فئ کښې حصه نه وه، په اصل کښې دا مذهب دې د شوافعو، پس امام نووی رحمه الله د دې حدیث په شرح (ص ۸۲ ج ۲) کښې لیکلې دی چه مال فئ او غنیمت کښې صرف د مهاجرینو حصه ده د اعراب المسلمین یعنی غیر مهاجرینو په دې کښې حصه نشته، بلکه د اعراب المسلمین حصه په مال صدقات کښې وی په دې شرط چه هغه د صدقې مستحق وی، مسکین او فقیر وی، او په مال صدقات کښې د مهاجرینو هیڅ حصه نه وی، نو ګویا په بیت المال کښې دوه قسمه مالونه او دوه قسمه فنډونه وی، اول صدقات او زکاة، دا خو حصه ده د فقیرانو او مسکینانو وغیره، او دویم قسم د مال فئ دې چه د هغې نه مراد د جزیه او خراج وغیره مال دې، او خمس د غنیمت، دا حصه وی صرف د مهاجرینو، مهاجرینو ته د قسم اول نه هیڅ نه ملاویږي، او اعراب یعنی غیر مهاجرینو ته په دې قسم ثانی کښې هیڅ نه شي ورکولی خو دا صرف د شوافعو مذهب دې، پس امام نووی رحمه الله خپله لیکی : وقال مالک وابو حنیفة المالان سواء یجوز صرف کل واحد منهما الی النوعین ﴾ اه

## د احنافو د طرف نه د حدیث توجیه

لهذا دا حدیث د احنافو خلاف شو، یا خو به د هغوی دواړو د طرف نه دا جواب کولې شی چه دا حدیث منسوخ دې، لکه چه وړاندې تلو سره امام نووی رحمه الله د ابو عبید نه نقل کړې دې، ﴿قال ابو عبید هذا الحدیث منسوخ، وانما کان هذا الحکم فی اول الاسلام لمن لم یهاجر، ثم نسخ ذلک بقوله تعالی : واولوا الارحام بعضهم اولی ببعض﴾ اه او زمونږ بعض استاذانو د دې جواب دا کړې دې چه ﴿لا یکون لهم فی الفئ والغنیمة نصیب﴾ دلته د نصیب نه مراد مطلق نصیب نه دې مراد بلکه د مخصوص نصیب نفی ده ای نصیب المجاهدین،

یعنی خومره حصه چه د مال فئ او غنیمت نه مجاهدینو ته ورکولې شی دومره به غیر مجاهدینو ته ورکولې شی، د نفس عطاء نفی نشته ګینې دا حدیث به د نصوص قرانیه خلاف شی. لکه چه د دې تفصیل په بذل المجهود کښې دې، خو په بذل کښې حضرت د دې حدیث صرف د نصوص قرانیه خلاف کیدل لیکلې دی، د احنافو او شوافعو د مذهب اختلاف یا نسخ وغیره چه کوم جواب مونږ لیکلې دې دې ته حضرت تعرض نه دې کړې بلکه اشکال کولو سره ئې پریخودلې دې، د طالبانو د متوجه کولو دپاره چه هغوی دې د دې جواب اولټوی، والله تعالی اعلم

## په حدیث باندې اشکال او د هغې جواب

دلته یو اشکال دا باقی پاتې کیږی هغه دا چه په دې حدیث کښې دی ﴿ فان ابوا واختاروا دارهم ﴾ چه که هغوی د اسلام راوړلو نه پس د هجرت دپاره تیار نه شی نو بیا هغوی ته اوایه چه د هغوی به دا حکم وی، اشکال دا دې چه هجرت خو په شروع کښې واجب وو نو په دې کښې دا ولې معاف کړې شو؟ د دې جواب په شروع کښې خو چرته هم ملاؤ نه شو خو حضرت ګنګوهی په کوکب کښې فرمائی چه د هغې حاصل دا دې چه د کوم هجرت ذکر په دې حدیث کښې دې هغه هجرت اصطلاحی نه دې کوم چه په شروع کښې واجب وو ځکه چه کوم هجرت واجب وو هغه وو کوم چه د دار الکفر نه د دار الاسلام طرف ته وو. او دلته چه کوم کلی والو ټولو اسلام قبول کړو نو هغه دار الکفر چرته پاتې شو؟ بیا هم هغوی ته دا وئیلې شوې دی چه که تاسو ترک وطن او انتقال مکانی کوئ نو ستاسو دپاره به دا فوائد وی که نه کوئ نو نه به وی، د دې نه علاوه د دې حدیث بل څه توجیه مونږ ته د بل چا په کلام کښې ملاؤ نه شوه.

﴿ فان هم ابوا فادعهم الی اعطاء الجزیة ﴾ دا امر ثانی دې، امر اول دعوة الی الاسلام وو او د هغې متعلقات او امر ثانی دا دې چه که هغوی د اسلام راوړلو نه انکار اوکړی نو د هغوی په وړاندې به د جزیه خبره کیخودلې شی پس که هغوی جزیه ورکول منظور کړی نو تاسو دا تسلیم کړئ. او د هغوی نه خپل لاس منع کړئ د جزیه په باره کښې دا اختلاف مشهور دې لکه چه په کتاب الزکاة کښې تیر شوې دی د سیدنا معاذ رضی الله عنه د حدیث د لاندې چه جزیه د کومو کومو کفارو نه اخستلې شی. د شوافعو او حنابله په نزد اهل کتاب یعنی د یهودو او نصاری او مجوسو سره خاص دې. او د احنافو او مالکیانو په نزد د اهل کتاب سره خاص نه دې بلکه د مشرکانو نه هم اخستلې شی، د مالکیانو په نزد بالعموم د ټولو مشرکانو نه. او د احنافو په نزد به سوا د مشرکین عرب نه باقی د ټولو مشرکانو نه، دا حدیث د خپل اطلاق د وجې نه د احنافو او مالکیانو دلیل دې ﴿ فان ابوا فاستعن بالله تعالی وقاتلهم ﴾ دا امر ثالث دې چه کله د شروع دواړه امرونه او نه مونډلې شی نو دریمه درجه به هغه کفارو سره د قتال وی ﴿ واذا حاصرت اهل حصن فارادوک ان تنزلهم علی حکم الله تعالی فلا تنزلهم الخ ﴾ په جهاد کښې چونکه بعض وخت داسې وی چه ډیر کرته د مسلمان فوج نه بچ کیدو سره دشمن قلعه کښې پناه اخلی او په داسې صورت کښې مسلمان فوج د هغه قلعه

په محاصره باندې مجبور کيږي، په هفتو باندې ئې هلته پړاؤ اچولې وي بيا دشمن فوج عاجز کيدو سره د مسلمان فوج سره خبرې کوي چه مونږ ته د بهر راتلو اجازت راکړې مونږ به ستاسو اطاعت کوو نو په دې کښې بعض وخت دشمن دا وائي چه کومه صحيح صحيح فيصله د الله پاک د رسول زمونږ په باره کښې وي نو مونږ په هغه فيصله باندې کوزيدل غواړو که تاسو دپاره دا منظور وي نو مونږ به د قلعه نه لاندې راکوز شو نو د دې په باره کښې رسول الله ﷺ په دې حديث کښې مجاهدينو ته دا هدايت فرمائيلې دې چه دا د الله پاک او د هغه د رسول په حکم باندې بالکل مه راکوزوئ يعنی داسې شرط مه منظور کوه بلکه داسې د هغوی سره معاهده پکار ده چه هغه فيصله به زمونږ يعنی د مجاهدينو وي که تاسو ته منظور وي نو لاندې راکوز شئ، رسول الله ﷺ فرمائی چه په اولنی شرط منظور کولو سره مونږ په دې وجه منع کوو چه تاسو ته څه خبر دی يقينی طور باندې چه د الله پاک او د هغه د رسول فيصله د هغوی په باره کښې څه ده ﴿ واذا حاصرت اهل حصن فارادوک ان تنزلهم علی حکم الله تعالی فلا تنزلهم ..الخ﴾ په جهاد کښې چونکه بعضې وخت داسې کيږي بلکه ډيرځل دمسلمان فوج نه بچ کيدو دپاره دشمن په قلعه کښې پناه واخلی اوپه داسې صورت کښې مسلمان فوج ددغې قلعه په محاصره کولو باندې مجبوره شي په هفتو هفتو ئې هلته ګيره اچولې وی، بيا دشمن عاجزه شي اود مسلمان فوج سره خبرې اترې (مذاکرات) کوی چه مونږ ته د بهر راتلو اجازت راکړې شي مونږ به ستاسو اطاعت کوو نوپه دې کښې بعضې وخت دشمن دا وائی چه کوم صحيح صحيح فيصله الله تعالی اودهغه د رسول زمونږ باره کښې وی مونږ په هغه فيصله باندې راتلل غواړو که تاسو ته دا منظوره وی مونږ د قلعه نه لاندې راځو. نوپه دې باره کښې نبی کريم ﷺ په دې حديث مبارک کښې مجاهدينو ته دا هدايت ورکوی چه هغوی د الله تعالی اود رسول په حکم باندې بالکل مه راکوزوئ يعنی داسې شرط ئې مه منئ بلکه دهغوی سره داسې معاهده اوکړئ چه کومه فيصله زمونږ د مجاهدينو وی که تاسو ته هغه منظوره وی نو د قلعه نه بهر راوځئ. نبی کريم ﷺ فرمائی چه د ړومبی شرط د منلو نه مونږ ځکه منع کوو چه تاسوته يقينی طورباندې څه پته ده چه د الله تعالی اودهغه د رسول فيصله دهغوی باره کښې څه ده.( فَإِنَّكُمْ لَا تَدْرُونَ مَا يَحْكُمُ اللَّهُ فِيهِمْ وَلَكِنْ أَنْزِلُوهُمْ عَلَى حُكْمِكُمْ) او بيا وړاندې دا دی ﴿ ثم اقضوا فيهم بعد ما شئتم ﴾ چه کله هغوی ستاسو شرط داسې منظور کولو سره لاندې راکوز شی نو تاسو د خپلې خوښې مطابق چه د هغوی په باره کښې څه فيصله کوئ اوکړئ.

[۲۶۱۳](¹)حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ الْأَنْطَاكِيُّ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "اغْزُوا بِاسْمِ اللَّهِ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَاتِلُوا مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ اغْزُوا وَلَا تَغْدِرُوا وَلَا تَغُلُّوا وَلَا تُمَثِّلُوا وَلَا تَقْتُلُوا وَلِيدًا".

**ترجمه**: سلمان بن بريده د خپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی دالله په نوم سره غزا شروع کوئ او د الله په لاره کښې غزاکوئ اوجنګ کوئ دهغه چاسره څوک چه

¹: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۹۲۹) (صحيح)

د الله نه انکار کوي، غزا کوئ او غداري مه کوئ او د غنيمت د مال نه غلامه کوئ او ځوك مُثله کوئ مه يعني غوږ پوزه پريکول، او ماشومان مه قتل کوئ.

[۲۶۱۴]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ حَسَنِ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ الْفِزْرِ، حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "انْطَلِقُوا بِاسْمِ اللَّهِ وَبِاللَّهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللَّهِ، وَلَا تَقْتُلُوا شَيْخًا فَانِيًا وَلَا طِفْلًا وَلَا صَغِيرًا وَلَا امْرَأَةً وَلَا تَغُلُّوا وَضُمُّوا غَنَائِمَكُمْ وَأَصْلِحُوا وَأَحْسِنُوا إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ".

**ترجمه:** د انس بن مالك نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي: د الله په نوم سره ځئ او د الله په مدد سره ځئ او د پيغمبر په دين باندې قائم اوسئ او ځوك چه ډير بوډا وي هغه مه وژنئ او ښځې او ماشومان مه وژنئ او په مال غنيمت کښې خيانت مه کوئ او مال غنيمت يو ځائې کوئ او د خپل حالت اصلاح کوی او نيکی کوئ ځکه چه الله تعالى نيکی کونکی خوښوی.

**تشريح:** ﴿ حدثنی انس بن مالک ان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴾... دا ډير جامع حديث دې د جهاد د سلسلې په دې کښې هغه ﷺ د ابتداء د خروج نه د اختتام قتال پورې ډير هدايات ارشاد فرمائيلي دی لکه چه په حديث کښې غور کولو سره هر څه فهميږی، د ټولو نه اول خبره خو دا ده چه د الله پاک نوم اخستلو سره او هم د هغه نه طلب د اعانت کولو سره د کور نه لاړ شی بلکه په پوره شريعت باندې پابند کيدو سره لاړ شی، لکه چه فرمائی ﴿ علی ملة رسول الله ﴾.

په دې حديث کښې د شيخ فانی د قتل نه منع کړې شوې ده او هم دغه شان د نابالغ ماشوم او د زنانه د قتل نه، او په دې کښې پورته حديث ﴿ لا تمثلوا ﴾ مذکور دې، يعنی نهی عن المثلة، د دې حديث بعض اجزاء باندې وړاندې په کتاب کښې مستقل باب رړاروان دې، د ﴿ نهی عن المثلة ﴾ باب، د قتل النساء باب هم دغه شان د قتل شيوخ متعلق د موجوده حديث خلاف يو حديث هلته راروان دې، بلفظ: ﴿ اقتلوا شيوخ المشرکين واستبقوا شرخهم ﴾ لهذا په دې ټولو باندې به کلام هم په هلته ځائې کښې ان شاء الله راشی.

## بَابٌ فِي الْحَرْقِ فِي بِلَادِ الْعَدُوِّ

### د دشمن علاقې ته د اور اچولو بيان

**په ترجمة الباب والا مسئله کښې اختلاف د علماء کرامو او د ائمه کرامو مذاهب**

هم دا ترجمه په بخاری کښې هم ده ﴿ باب حرق الدور والنخيل ﴾ حافظ رحمه الله ليکی چه جمهور علماء کرام د دشمن په ښهرونو کښې د تحريق او تخريب د جواز قائل دی، امام اوزاعی، ليث او ابوثور دې ته مکروه وئيلې دی، د هغوی استدلال د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د فعل نه دې چه هغه خپلو لښکرو ته وصيت کړې وو چه ﴿ ان لا يفعلوا شيئا من ذلک ﴾ امام طبری د دې جواب دا کړې دې چه د صديق اکبر مقصود قصداً او اصالةً د تحريق او تخريب

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۲٤) (ضعيف)

نه منع کول دي، په خلاف د دې چه دې ځېزونو ته حاجت راشي د قتال دوران پس د دې نه منع نشته، حافظ رحمه الله فرمائي چه د طبري نه علاوه بعض نورو علماء کرامو دا جواب ورکړې دې چه صديق اكبر په هغه بلادو كښې د داسې كولو نه منع كړې وه د كومو باره كښې چه هغوى ته دا توقع وه چه مسلمانان به دا ټول فتح كولو سره حاصل كړي نوځكه ئې منع فرمائيلې وه چه هغه د مسلمانانو په كار راشي،امام قسطلاني فرمائي د جمهورو استدلال د حديث الباب نه دې اهـ مختصرا من الابواب والتراجم،په حاشيه د لامع كښې د اوجز نه د دې مسئلې تفصيل ليكلې دې چه د كومو اونو پرې كول جائز دي او د كومو ناجائز، هم دغه شان په كوم صورت كښې جائز دي او په كوم صورت كښې ناجائز، لهذا د تفصيل معلومولو دپاره دې هغې ته رجوع اوكړې شي.

[٢٦١٥]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرَّقَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيرِ وَقَطَعَ وَهِيَ الْبُوَيْرَةُ فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا سورة الحشر آية ٥.

**ترجمه**: نافع دابن عمر رضی الله عنه نه روايت كوي فرمائي چه نبي عليه السلام په بويره مقام كښې دبنونضير قبيلې دكجورو ونې سوزولې اوپريكړې وې نو الله تعالى دا آيت نازل كړو ﴿مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا﴾( سورة الحشر آية ٥) دكجورو كومې ونې چه تاسو پريكړې يا موهغه په خپلو جرړو باندې ولاړې پريښودې، دا هرڅه د الله په حكم سره وو.

## شرح حديث

خبر د بنو نضير يو مستقبل باب وړاندې په كتاب كښې راروان دې، غزوه د بنو نضير په ۴ هجري كښې شوې ده، دا د يهودو مشهوره قبيله ده كومه چه مدينې منورې ته نزدې كلى كښې اباده وه، د دې تفصيل به خپله په ابوداؤد كښې په باب مذكور كښې راشي، ابن عمر رضی الله عنه فرمائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په غزوه بنو نضير كښې د بنو نضير بعض كهجورې سيزلې او بعض پرې كړې وې، بويره د هغه ځائې نوم دې چرته چه د يهوديانو قبيله اباده وه چه په هغې كښې د كهجورو لوئې لوئې باغونه وو، وړاندې په روايت كښې دا دي چه الله پاک دا آيت كريمه نازل كړو ﴿ ما قطعتم من لينة ﴾ د ترمذي په روايت كښې دي چه صحابه كرامو ته اول په شروع كښې د قطع نخل حكم وركړې شوې وو، او بيا د هغې نه منع كړې شوه نو د بعض صحابه كرامو دې باره كښې تردد پيدا شو او وې وئيل چه مونږ خو اونې پرې كړې او بعض ئې پريخودلې، مونږ به دې باره كښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس كوو چه كومې اونې مونږ پرې كړې دي په دې كښې زمونږ دپاره اجر دې، او كوم چه مونږ پريخودل په هغې كښې گناه خو نشته؟ نو په دې باندې دا آيت كريمه نازل شو دا چه څه شوي دي د بعض اونو پرې كول او د بعض پريخودل دا ټول د الله پاک په ارادې او د هغه په حكم سره اوشو، په ترمذي كښې د ابن عباس رضی الله عنه روايت دې هغه فرمائي : ﴿ اللينة النخلة ﴾ د دې په

(): صحيح البخاري/المزارعة ٤ (٢٣٥٦)، الجهاد ١٥٤ (٣٠٢٠)، المغازي ١٤ (٤٠٣١)، صحيح مسلم/الجهاد ١٠ (١٧٤٦)، سنن الترمذي/التفسير ٥٩ (٣٣٠٢)، والسير ٤ (١٥٥٢)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٣١ (٢٨٤٤)، (تحفة الأشراف: ٨٢٦٧)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/السير ٢٣ (٢٥٠٣)، مسند احمد (١٢٣/٢، ١٤٠) (صحيح)

باره کښې امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دا حدیث زما نه اوریدلې دې، هم دغه شان امام ترمذی د یو بل حدیث په باره کښې فرمائی کوم چه د ترمذی په کتاب المناقب کښې دې، د ابو سعید رضی الله عنه په حدیث مرفوع کښې ﴿یا علی لا یحل لاحد یجنب فی هذا المسجد غیری وغیرک﴾ د دې حدیث په باره کښې هم امام ترمذی رحمه الله فرمائی ﴿سمع منی محمد بن اسماعیل هذا الحدیث﴾ د دې حدیث ذکر په الدر المنضود کتاب الطهارة باب الجنب یدخل المسجد لاندې راغلې دې، دا د بنو نضیر د قطع نخل ذکر په حدیث الباب کښې دی د دې په باره کښې سیدنا حسان بن ثابت رضی الله عنه یو شعر وئیلې دې:

وهان علی سراة بنی لوی :: حریق بالبویرة مستطیر

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی النسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۶۱۶] (۱) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ صَالِحِ بْنِ أَبِي الأَخْضَرِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ عُرْوَةُ، فَحَدَّثَنِي أُسَامَةُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَهِدَ إِلَيْهِ فَقَالَ: أَغِرْ عَلَى أُبْنَى صَبَاحًا وَحَرِّقْ.

**ترجمه**: عروه د اسامه نه روایت کوی چه نبی علیه السلام ورته وصیت فرمائیلی وو چه په ابنی مقام (په فلسطین کښې دعسقلان او رملا په مینځ کښې واقع دې) دسحر په وخت کښې حمله اوکړه او اور ورته واچوه.

## شرح حدیث

سیدنا اسامه رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته وصیت فرمائیلې وو چه په مقام د ﴿ابنی﴾ باندې علی الصباح حمله اوکړه ځکه چه د سحر په وخت کښې خلق اوده وی او دا د ارام او غفلت وخت دې، او دا ئې هم فرمائیلې وو چه د هغوی کورونو او پټو وغیره ته اور اولګوه، بذل کښې حضرت لیکلې دی چه د مسند احمد د روایت نه معلومیږی چه سیدنا اسامه رضی الله عنه چه دا خبره پورته ذکر کړې ده دا ئې د صدیق اکبر په سوال باندې کړې ده یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس صدیق اکبر د سیدنا اسامه رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه کله ته رسول الله صلی الله علیه وسلم د مقام ابنی طرف ته د قتال دپاره اولیږلې نو تا ته ئې د هغه ځائې په باره کښې څه هدایت فرمائیلې وو، نو هغه په جواب کښې هغه خبره عرض کړه کومه چه دلته په روایت کښې ذکر ده،

دا دی هم واضحه وی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د صفر په میاشت ۱۱ھ کومه چه د هغه د وفات کال دی په هغې کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه لره د سریه امیر جوړولو سره د رومیانو د مقابلې دپاره لیږلی وو، خو بیا د هغه صلی الله علیه وسلم د بیمارئ د سختئ خبر اوریدلو سره مدینې منورې ته واپس شوې وو، بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس چه کله صدیق اکبر رضی الله عنه خلیفه شو نو اولنې کار ئې دا اوکړو چه دا د اسامه رضی الله عنه لښکر کوم چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات د حادثې په وجه باندې راوا پس شوې وو، دوباره اولیږلو، هم په دې موقع باندې ابوبکر صدیق رضی الله عنه هغه نه دا تپوس هم کړې وو کوم چه پورته د مسند احمد په روایت کښې ذکر شو، د باب د دوارو

(۱): سنن ابن ماجه/الجهاد ۳۱ (۲۸۴۳)، (تحفة الأشراف: ۱۰۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۲۰۵، ۲۰۹) (ضعیف)

احاديثو نه د تحريق فى بلاد العدو ثبوت معلوميږي، امام بخاري رحمه الله په باب حرق الدور کښې د ابن عمر رضي الله عنه يعنى د ابوداود حديث اول او د هغې نه علاوه يو بل حديث چه په هغې کښې دا دى چه رسول الله ﷺ سيدنا جرير بن عبدالله البجلى رضي الله عنه ته فرمائيلې وو ﴿الا تريحنى من ذى الخلصة﴾ ذکر فرمائيلې دې، چه په هغې کښې دا دى ﴿فانطلق اليها فکسرها وحرقها﴾ دا حديث مختصرا مونږ سره د ابوداود د کتاب الجهاد په اخر کښې په باب فى بعثة البشراء کښې راروان دې.

[۲۶۱۷](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو الْغَزِّيُّ، سَمِعْتُ أَبَا مُسْهِرٍ قِيلَ لَهُ: أُبْنَى، قَالَ: نَحْنُ أَعْلَمُ هِيَ يُبْنَى فِلَسْطِينَ.

**ترجمه:** حضرت عبدالله بن عمرو غزى وائى چه د ابو مسهر مخې ته د ابنى تذکره راغله نو ما دهغه نه واؤريدل چه: مونږ ته معلومه ده چه دا يُبنى ده په فلسطين کښې ده.

**تشريح: قوله:** سَمِعْتُ أَبَا مُسْهِرٍ قِيلَ لَهُ: أُبْنَى، قَالَ: نَحْنُ أَعْلَمُ هِيَ يُبْنَى فِلَسْطِينَ: يعنى د ابو مسهر په وړاندې چا د ابنى لفظ استعمال کړو، نو هغه اووې چه شش (تعجب دې چه دا نوم) ابنى نه دې، بلکه صحيح ﴿يبنى﴾ دې په دې باندې مونږ زيات پوهيږو دا هغه په دې وجه وئيلې وو چه هغه د شام اوسيدونکې وو او دا مقام په ملک شام کښې دې، لهذا د صحيح نوم تحقيق به هم هغه ته وى. والحديث اخرجه ابن ماجة قاله المنذرى.

## بَابُ بَعْثِ الْعُيُونِ

### د دشمن په طرف د جاسوس ليږلو بيان

[۲۶۱۸](۲) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ الْمُغِيرَةِ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: بَعَثَ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُسْبَسَةَ عَيْنًا يَنْظُرُ مَا صَنَعَتْ عِيرُ أَبِي سُفْيَانَ.

**ترجمه:** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام بسيسه رضي الله عنه د جاسوسئ دپاره اوليږلو ددې دپاره چه معلوم کړى چه دابوسفيان قافلې څه اوکړل؟

**تشريح:** په جهاد کښې د معلومات کولو دپاره چونکه د جاسوس هم ضرورت وى لهذا د دې مشروعيت د بيانولو دپاره مصنف دا باب قائم کړې دې، د بخارى ترجمه دا ده باب الجاسوس، چه په هغې کښې هغه د حاطب بن ابى بلتعه والا قصه ذکر کړې ده، په حديث الباب کښې چه د کوم جاسوس ذکر دې د هغه نوم بسيسه دې او په دې کښې بسبس او بسبسه هم منقول دې، کوم چه رسول الله ﷺ د ابوسفيان د قافلې کوم چه د ملک شام د طرف نه مال تجارت راوړلو د هغې د حال معلوملو دپاره ليږلې وو.

والحديث اخرجه مسلم قاله المنذرى.

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۹۴۹) (مقطوع)

(۲): صحيح مسلم/الإمارة ۴۱ (۱۹۰۱)، مسند احمد (۳/۱۳۶)، (تحفة الأشراف: ۴۰۸) (صحيح)

## بَابٌ فِي ابْنِ السَّبِيلِ يَأْكُلُ مِنَ التَّمْرِ وَيَشْرَبُ مِنَ اللَّبَنِ إِذَا مَرَّ بِهِ

**که مسافر د کجورو یا د لنکو څاروو سره تیریږی نو دهغې نه کجورې خوړلې شي او پۍ ځکلې شي**

[٢٦١٩]() حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيدِ الرَّقَّامُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ عَلَى مَاشِيَةٍ فَإِنْ كَانَ فِيهَا صَاحِبُهَا فَلْيَسْتَأْذِنْهُ فَإِنْ أَذِنَ لَهُ فَلْيَحْلِبْ وَلْيَشْرَبْ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهَا، فَلْيُصَوِّتْ ثَلَاثًا فَإِنْ أَجَابَهُ فَلْيَسْتَأْذِنْهُ وَإِلَّا فَلْيَحْتَلِبْ وَلْيَشْرَبْ وَلَا يَحْمِلْ".

**ترجمه**: د سمرة بن جندب نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی. که چرې په تاسو کښې څوك دڅاروو په خوا تیریږی نو که چرې ددې مالك موجود وي نو اجازت دې ترې اوغواړی که چرې اجازت ورته اوشی نوودې لوشی او ودې څکي اوکه چرې مالك نې موجود نه وی نودرې آوازونه دې اوکړی که چرې مالك جواب ورکړو نو اجازت دی اوغواړی اوکه چرې ورته دمالك جواب ملاو نه شی نو اودې لوشی او ودې څکي اودځان سره دې نه وړې.

### د حدیث په شرح کښې اشکال او جواب

د باب په اول حدیث کښې د ترجمې جزء ثانی مذکور دې، د حدیث مضمون واضح دې چه که د بیزې مالک موجود وی نو د هغه د اجازت نه بعد ئې لشلې شی، او که مالک موجود نه وی نو بیا دې درې کرته اواز اولګوی که چا اووې نو د هغه نه دې اجازت واخلی، او که څوک او نه وائی، یعنی موجود د نه موجود کیدو په وجه نو هغه له پکار دی چه د هغه بیزې پئ راولشی او هغه اوڅکی، او د خپل ځان سره دې نه اوړی، یعنی د یو ځل څکلو په قدر دې هغه هلته اوڅکی، او دا جائز نه دی چه د ځان سره هم څه یوسی.

دا حدیث ډیر قابل اشکال دې چه د مالک نه کیدو په صورت کښې بغیر د اجازت نه د احتلاب اجازت ورکړې شوې دې حال دا چه د غیر مال خوړل بغیر د اجازت نه د دې ممانعت په کتاب الله کښې او په راتلونکی باب باب فی من قال لا یحلب کښې راروان دې، په دې وجه د دې حدیث مختلف توجیهات کړې شوې دی. ۱: دا په مضطر باندې محمول دې په حالت اضطرار کښې داسې کول جائز دی، وعلیه الضمان بعد ذلک، روستو به ضمان ادا کوی. ۲: دا حدیث په عرف باندې محمول دې یعنی چرته چه عرف عام دا وی چه د ګډو بیزو د مالکانو د طرف نه د مسافرو دپاره د پئ لشلو اجازت وی. ۳: دا حدیث منسوخ دې په هغه حدیث سره کوم چه به په راروان باب کښې راشی. د دې جواباتو ضرورت د جمهور علماء او ائمه ثلاثه د مسلک د وجې نه دې، د اسحاق بن راهویه او امام احمد د مشهور قول مطابق کما قال الحافظ ابن القیم د هیڅ تاویل حاجت نشته. د هغوی په نزد داسې کول مطلقا جائز دی، که حالت اضطرار وی یا نه وی، امام ترمذی رحمه الله هم دغه شان فرمائیلې دی: حدیث سمرة حدیث حسن صحیح غریب والعمل علی هذا عند بعض اهل العلم، وبه یقول احمد واسحاق، اهـ والحدیث اخرجه الترمذی قاله المنذری.

(): سنن الترمذي/البيوع ٦٠ (١٢٩٦)، (تحفة الأشراف: ٤٥٩١) (صحيح)

[۲۶۲۰]()حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ شُرَحْبِيلَ، قَالَ: أَصَابَتْنِي سَنَةٌ فَدَخَلْتُ حَائِطًا مِنْ حِيطَانِ الْمَدِينَةِ، فَفَرَكْتُ سُنْبُلًا فَأَكَلْتُ، وَحَمَلْتُ فِي ثَوْبِي، فَجَاءَ صَاحِبُهُ فَضَرَبَنِي وَأَخَذَ ثَوْبِي فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ: مَا عَلَّمْتَ إِذْ كَانَ جَاهِلًا، وَلَا أَطْعَمْتَ إِذْ كَانَ جَائِعًا، أَوْ قَالَ: سَاغِبًا وَأَمَرَهُ فَرَدَّ عَلَيَّ ثَوْبِي وَأَعْطَانِي وَسْقًا أَوْ نِصْفَ وَسْقٍ مِنْ طَعَامٍ.

**ترجمه:** دعباد بن شرحبيل نه روايت دې فرمائي چه دقحط نه تنګ شوې وم نودمديني په باغونوکښې يوباغ ته داخل شوم نويوغونچك مې را وشوکولو څه مې دهغې نه اوخوړل اوباقي مې دځان سره په کپړه کښې واغستل نوکله چه ددې مالك راغې زه ئې اووهلم اوزمانه ئې زماکپړه واخستله نوزه دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شوم نبی عليه السلام دباغ مالك ته اوفرمائيل دی کس ته دشريعت حکم معلوم نه وو تاده ته دشريعت مسئله نه ده بيان کړې اودې اوګې وو اوتاپه ده باندې خوراك نه دې کړې نبی عليه السلام ده ته حکم اوکړو هغه ماته خپله کپړه واپس راکړه او ماته ئې شپيته صاع يا نيم وسق يعنی ديرش صاع خوراکی مواد هم راکړل.

**تشريح:** د حديث مضمون واضح دې د ﴿ سنة ﴾ معنی ده لوږه، ﴿ ففركت سنبلاً ﴾ يعنی ما د چا په پټی کښې د اوربشو څو وږی راوشوکول او د هغې نه مې بوس لرې کړل او هغه دانې مې ميده کولو سره اوخوړلې او څه مې ځان سره يوړلې ﴿ فقال له : ما علمت اذ كان جاهلا ﴾ کوم صحابی چه هغه نيولې وو او د رسول الله ﷺ په خدمت کښې ئې د شکايت دپاره حاضر کړې وو نو رسول الله ﷺ خپله هغه صحابی ته تنبيه اوفرمائيله چه دا اوږې وو تا د هغه د خوراک څکاک خير خبر وانخستلو او دې ناخبره وو تا دې پوهه نه کړواو نه دې ورته مسئله اوخودله. والحديث اخرجه النسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۶۲۱]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ قَالَ: سَمِعْتُ عَبَّادَ بْنَ شُرَحْبِيلَ رَجُلًا مِنَّا مِنْ بَنِي غُبَرَ بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه:** حضرت ابوبشر رحمه الله وائی چه ما د عبيد بن شرحبيل نه چه دې زمونږ د قبيله بنوغبر يو سړې وو، ددې مفهوم حديث واوريدلو.

## بَابُ مَنْ قَالَ إِنَّهُ يَأْكُلُ مِمَّا سَقَطَ

**باب په بيان د قول د هغه علماؤ چه هغوی وائی چه په زمکه غورځيدلی څيزونه خوړلې شی**

يعنی د مسافر دپاره خو دا جائز ده چه د يوې اونې د لاندې راغورځيدلې څيز اوخوری، خو د اونې نه ئې راشوکول جائز نه دی د جمهورو مذهب هم دا دې.

[۲۶۲۲]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ، وَأَبُو بَكْرٍ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ وَهَذَا لَفْظُ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ مُعْتَمِرِ بْنِ سُلَيْمَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ

---

[1]: سنن النسائي/آداب القضاة ۲۰ (۵٤۱۱)، سنن ابن ماجه/التجارات ٦۷ (۲۲۹۸)، (تحفة الأشراف: ۵۰٦۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٦٦) (صحيح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۰٦۱) (صحيح)

[3]: سنن الترمذي/البيوع ۵٤ (۱۲۸۸)، سنن ابن ماجه/التجارات ٦۷ (۲۲۹۹)، (تحفة الأشراف: ۳۵۹۵) (ضعيف)

أَبِي حَكَمٍ الْغِفَارِيِّ يَقُولُ: حَدَّثَتْنِي جَدَّتِي، عَنْ عَمِّ أَبِي رَافِعِ بْنِ عَمْرٍو الْغِفَارِيِّ، قَالَ: كُنْتُ غُلَامًا أَرْمِي نَخْلَ الْأَنْصَارِ، فَأُتِيَ بِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "يَا غُلَامُ لِمَ تَرْمِي النَّخْلَ؟" قَالَ: آكُلُ، قَالَ: فَلَا تَرْمِ النَّخْلَ وَكُلْ مِمَّا يَسْقُطُ فِي أَسْفَلِهَا ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ فَقَالَ: اللَّهُمَّ أَشْبِعْ بَطْنَهُ".

**ترجمه**: دابورافع بن عمرو غفاري دنره نه روايت دې فرمائی چه مابه په ماشوم والی کښې دانصارو دکجورو ونې په لوښو ويشتلې نونبی عليه السلام ته بوتلې شوم هغه اوفرمائيل اې هلکه دکجورو ونې ولې اُولې؟ ما اووئيل چه خورم ئې نبی عليه السلام اوفرمائيل اُوله ئې مه، کومې چه پخپله لاندې غورزېږي هغه خوره اوبيا ئې زما په سر باندې لاس راښکو اووئې فرمائيل اې الله دده خيټه مړه کړې

**تشريح**: ابن ابی حکم فرمائی چه ماته زما نيا بيان اوکړو هغې به نقل کولو زما د پلار د تره رافع بن عمرو غفاری نه.

### د سند تحقيق

رافع بن عمرو بدل واقع شوې دې د ﴿ عم ﴾ نه، په دې روايت کښې خو هم داسې دی، او په اکثر رواياتو کښې داسې دی، او اکثر روايات کښې داسې دی ﴿ عن عم ابيها رافع بن عمرو ﴾ يعنی زما نيا روايت کوی د خپل پلار د تره رافع بن عمرو غفاری نه، لهذا زمونږ د سند په اعتبار سره رافع بن عمرو، ابن ابی الحکم د پلار تره شو او په بل صورت کښې رافع بن عمرو، د ابن ابی الحکم د نيا د پلار تره شو، هغه وائی چه کله زه غلام يعنی نابالغ هلک اوم نو د بعض انصارو باغ ته تلو سره به مې هغه اونې په څه باندې اووهلې او هغه کهجورې به مې راؤشوکولې يوځل هغه خلقو زه اُونيولم اود حضور عليه السلام په خدمت کښې ئې بوتلم نو رسول الله عليه السلام اوفرمائيل داسې ئې مه شوکوه او کومې چه د اونو د لاندې پرتې وی د هغې نه خوره.

دا حديث بعض علماء کرامو په دې باندې محمول کړې دې چه په دې قسم ميوه کښې عام طور د مالکانو د طرف نه اجازت وی او بعض فقهاء کرامو دا هم په حالت اضطرار باندې محمول کړې دې. والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجة قاله المنذری

## باب فِيمَنْ قَالَ لَا يَحْلِبُ

### بيان د قول د هغه علماؤ د چا په نزد چه څاروی لوشل بغير اجازته جائز نه دی

[۲۶۲۳] (¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَحْلِبَنَّ أَحَدٌ مَاشِيَةَ أَحَدٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِ أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ تُؤْتَى مَشْرُبَتُهُ فَتُكْسَرَ خِزَانَتُهُ فَيُنْتَثَلَ طَعَامُهُ، فَإِنَّمَا تَخْزُنُ لَهُمْ ضُرُوعُ مَوَاشِيهِمْ أَطْعِمَتَهُمْ، فَلَا يَحْلِبَنَّ أَحَدٌ مَاشِيَةَ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِهِ".

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی نه دې لوشی يوکس ستاسو دچاڅاروې بغيره داجازت دمالک نه، اياخوښوي يوکس ستاسو چه دده ګودام ته دې څوک راشي اودده خزانه دې ماته کړی اودده خوراک دې يوړلې شي، يقيناجمع کوي

¹): صحيح البخاري/اللقطة ۸ (۲۴۳۵)، صحيح مسلم/اللقطة ۲ (۱۷۲۶)، (تحفة الأشراف: ۸۳۰۰، ۸۳۵۶)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/التجارات ۶۸ (۲۳۰۲)، موطا امام مالک/الاستئذان ۶ (۱۷)، مسند احمد (۲/۴، ۶، ۵۷) (صحيح)

ددوی دپاره غلانځې دځاروو ددوی خوراك ددوی دپاره نوځوك دي دچا ځاروې نه لوشي بغيرداجازت دهغه نه.

## د حديث شرح

رسول اللهﷺ فرمائی چه څوک دې هر ګز د چا د ځاروی پئ نه اخلی بغير د هغه د اجازت نه، ايا په تاسو کښې څوک دا خبره غواړی چه د هغه بالاخانې ته لاړ شی او د هغه د سامان ځائې مات کړې شی يعنی پرانستلې شی او بيا چه هلته د خوراک کوم څيزونه کيخودلې شوې دی هغه اوچت کړې شی؟ د دې جواب ظاهر دې چه څوک هم دا خبره نه غواړی، وړاندې هغه فرمائی چه د خلقو د ځاروو چه کومې غلانزې دی د هغوی د خوراک ځکاک د څيزونو محفوظ کيخودلو ځايونه دی، لهذا يوسړې دې د چا د ځاروی پئ بغير د هغه د اجازت نه نه راوباسی.

په دې حديث کښې د ځاروو غلانزو لره بالا خانه کښې دننه د سامان د محفوظ ساتلو ځائې سره تشبيه ورکړې شوې ده. والحديث اخرجه البخاری ومسلم قاله المنذری.

# بَاب فِي الطَّاعَةِ

## د تابع دارئ بيان

د دې نه مخکښې په يو باب کښې د سفر ملګرو ته هدايت کړې شوې وو چه سفر ته په تلو باندې څوک خپل امير جوړ کړئ په دې باب کښې د امير د اطاعت بيان دې.

[٢٦٢٤] ([1]) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، قَالَ: قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الأَمْرِ مِنْكُمْ سورة النساء آية ٥٩، فِي عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَيْسِ بْنِ عَدِيٍّ بَعَثَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَرِيَّةٍ أَخْبَرَنِيهِ يَعْلَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** حجاج وائی چه ابن جريج وئيلی دی چه آيت (يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الأَمْرِ مِنْكُمْ) (سورة النساء آية ٥٩) دعبدالله بن قيس بن عدي په باره کښې نازل شوې دې کله چه ده لره نبی علیه السلام په يوه سريه کښې ليږلې وو اوخبر راکړې دې ماته يعلي په دې روايت سره دسعيد بن جبيرنه اوهغه دابن عباس رضی الله عنهما نه.

## د حديث شرح

﴿ عبدالله بن قيس ﴾ په ترکيب کښې مبتداء دې او ﴿ بعثه النبی ﴾ د دې خبر، د روايت مطلب دا شو چه عبدالله بن قيس رضی الله عنه لره رسول اللهﷺ يوه سريه ته اوليږلو، يعنی د هغې امير ئې کړو، د دې جملې نه وړاندې ابن جريج دا آيت کريمه ذکر کړو، لهذا مطلب دا شو چه دا آيت کريمه د هغه په باره کښې نازل شوې دې يعنی د عبدالله بن قيس په باره کښې کوم چه رسول اللهﷺ امير ليږلې وو، ﴿ اخبرنيه يعلی الخ ﴾ ابن جريج چه په ماقبل کښې کوم مضمون بيان کړې وو اوس دلته هغه د هغې سند بيانوی چه دا مضمون ماته يعلی بيان

[1]: صحيح البخاري/تفسيرسورة النساء ١١ (٤٥٨٤)، صحيح مسلم/الإمارة ٨ (١٨٣٤)، سنن الترمذي/الجهاد ٣ (١٦٧٢)، سنن النسائي/البيعة ٢٨ (٤١٩٩)، (تحفة الأشراف: ٥٦٥١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٣٧) (صحيح)

کړې دي او یعلی روایت کوی د سعید بن جبیر نه او هغه د ابن عباس نه.

دا خو د دې روایت مطلب او حل شو او د دې عبارت د حل کولو زیات ضرورت په دې وجه راپیښ شو چه په ابوداؤد کښې د دې عبارت سیاق غیر واضح دې، د بخاری د دې نه واضح دې په هغې کښې داسې دی، ﴿عن ابن عباس : واطیعوا الله واطیعو الرسول واولی الامر منکم ﴾ قال نزلت فی عبد الله بن حذافة بن قیس اذ بعثه النبی صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فی سریة.

## د ایت کریمه د نزول مقصد

خو سوال دا باقی پاتې کیږی چه د عبدالله بن قیس په باره کښې دا آیت کریمه ولې نازل شو؟ د دې جواب دا دې چه د دې آیت کریمه د نزول مقصد هغه دی کوم چه د ابوداود په راروان روایت کښې کومه چه د سیدنا علی رضی الله عنه نه روایت ده، راروان دې هغه دا چه هغه صحابی رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کله امیر لیږلو نو لښکر ته د دې خبرې هم حکم کړې وو چه د هغوی اطاعت کوه، نو چه کله دا لښکر روان شو نو په لاره کښې دا قصه راپیښه شوه چه هغه امیر د خپل لښکر والو حکم ورکړو په څه خبره باندې ناراضه کیدو سره (او د بعض روایاتو نه معلومیږی چه داسې هغه په ټوقو کښې کړې وو) چه لرګی راجمع کړئ، چه کله لرګی راجمع شو نو په هغې باندې ئې اور بل کړو او هغوی ته ئې هغې ته د ننګلو حکم اوکړو چه په هغې باندې ملګرو کښې اختلاف پیدا شو، د بعض رائې دا شوه چه داخلیدل پکار دی، لکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د امیر د اطاعت حکم کړې وو، او بعض ملګرو د دې رائې مخالفت اوکړو چه د الله او رسول اطاعت خو د اور نه د بچ کیدلو دپاره کولې شی نه اور ته د داخلیدو دپاره، بیا چه کله دا لښکر واپس شو او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دا واقعه ذکر کړې شوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه خلقو د چا رائې چه د نه داخلیدو وه تصویب اوفرمائیلو او په دې موقع باندې دا آیت کریمه نازل شوې وو، او د دې واقعې متعلق د دې آیت کریمه اخری حصه دا ده : ﴿ فان تنازعتم فی شئ فردوه الی الله والرسول ﴾ لهذا د آیت کریمه مطلب دا شو چه که په یوه معامله کښې د اولو الامر د اطاعت په باره کښې د خلقو خپل مینځ کښې اختلاف پیدا شی نو په هغې کښې د الله پاک او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم حکم ته کتل پکار دی چه څه دې؟ یعنی فورا اطاعت نه دی کول پکار د امیر بلکه د امیر د حکم په باره کښې دې دا اوکتلې شی چه په دې کښې الله پاک او رسول صلی الله علیه وسلم څه فرمائی، او د الله پاک او د هغه د رسول حکم څه دې؟ ﴿ لا طاعة لمخلوق فی معصیة الخالق ﴾ او ظاهره ده چه اور ته داخلیدل دا معصیت دې لهذا د دې آیت کریمه د نزول د دې واقعې سره مناسبت ظاهر شو. هکذا شرح هذا المقام الحافظ فی فتح الباری، کتاب التفسیر (ص ۱۰۲، ج۸)

په واقعه مذکوره او د آیت کریمه په نزول کښې چه کله داودی رحمه الله شارح بخاری ته څه وجه د مناسبت ښکاره نه شوه نو هغه اووې چه ابن عباس رضی الله عنه ته دلته وهم راغلې دې یعنی د دې آیت کریمه د شان نزول په باره کښې، حافظ فرمائی چه مونږ چه د آیت کریمه په نزول او په دې واقعه کښې کوم ربط بیان کړې دې په هغې سره د داودی رحمه الله اشکال رفع کیږی ﴿ فقال : لو دخلوها فیها لم یزالوا فیه ﴾ یعنی کومو خلقو چه داخلیدل غوښتل په هغه

اور کښې کوم چه امير بل کړې وو نو په هغه اور کښې به سوځيدل، يعنى هغه اور به د هغوى په حق کښې يخ او سلامتى نه وو، چه چرته داخليدونکى په دې خيال کښې وو چه دا اور خو به زمونږ په حق کښې يخ شى او ضرر به نه راکوى ځکه چه مونږ خو د امير اطاعت کوو، نو د دې اطاعت په برکت سره به مونږ د دې اور نه ضرور محفوظ يو. رسول الله ﷺ فرمائى داسې نه ده، محفوظ به نه وو، بلکه سوځيدل به ځکه چه ﴿ لا طاعة لمخلوق فى معصية الخالق ﴾، د حديث د دې جملې په شرح کښې يو قول هم دا دې کوم چه مونږ اوليکه، د دې نه علاوه د دې نور هم مطلبونه بيان کړې شوې دى، کوم چه په بذل کښې مذکور دې که څوک غوارې هلته دې اوګورى

حديث ابن عباس اخرجه البخارى ومسلم والترمذى والنسائى وحديث على أخرجه البخارى ومسلم والنسائى قاله المنذرى.

[۲۶۲۵] (١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ زُبَيْدٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ جَيْشًا وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ رَجُلًا وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَسْمَعُوا لَهُ وَيُطِيعُوا فَأَجَّجَ نَارًا، وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَقْتَحِمُوا فِيهَا فَأَبَى قَوْمٌ أَنْ يَدْخُلُوهَا، وَقَالُوا: إِنَّمَا فَرَرْنَا مِنَ النَّارِ وَأَرَادَ قَوْمٌ أَنْ يَدْخُلُوهَا فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "لَوْ دَخَلُوهَا أَوْ دَخَلُوا فِيهَا لَمْ يَزَالُوا فِيهَا"، وَقَالَ: لَا طَاعَةَ فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ إِنَّمَا الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوفِ".

**ترجمه:** د على رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى ﷺ يولښکر اوليږو او يوکس ئې ددوى مشر مقررکړو او لښکرته ئې حکم اوکړو چه دده خبره به منئ اودې چه څه وائى هغه به اورئ نو په دې وخت کښې دغه مشر اور بل کړو اودوى ته ئې حکم اوکړو چه دې اور ته ورټوپ کړئ نوځه کسانو اور ته د دانګلونه انکار اوکړو اووئې وئيل مونږ خوداور نه راتښتيدلې يو، او څه کسانو اراده اوکړه چه اور ته ورودانګي هرکله چه ددې واقعې خبر نبى ﷺ ته ورسيدو نوئې فرمائيل که چرې دوى وردانګلې وې اويا وردننه شوې وې نوپه دې کښې به دوى هميشه وې اودائې هم اوفرمائيل دخلقو تابعدارې دخالق په نافرمانۍ کښې په کار نه ده يقيناخبره منل خو په ښه کارونوکښې پکارده.

[۲۶۲۶] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "السَّمْعُ وَالطَّاعَةُ عَلَى الْمَرْءِ الْمُسْلِمِ فِيمَا أَحَبَّ وَكَرِهَ مَا لَمْ يُؤْمَرْ بِمَعْصِيَةٍ فَإِذَا أُمِرَ بِمَعْصِيَةٍ فَلَا سَمْعَ وَلَا طَاعَةَ".

**ترجمه:** د عبدالله بن عمر دنبى ﷺ نه روايت کوى فرمائى چه نبى ﷺ فرمائيلى دى په مسلمان باندې د امير حکم منل واجب دى په هغه څه کښې چه دده خوښ وې اوکه خوښ نه

---

[1]: صحيح البخاري/المغازي ٥٩ (٤٣٤٠)، والأحكام ٤ (٧١٤٥)، وأخبار الآحاد ١ (٧٢٥٧)، صحيح مسلم/الإمارة ٨ (١٨٤٠)، سنن النسائي/البيعة ٣٤ (٤٢١٠)، (تحفة الأشراف: ١٠١٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٢/١، ٩٤، ١٢٤) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الجهاد ١٠٨ (٢٩٥٥)، والأحكام ٤ (٧١٤٤)، صحيح مسلم/الإمارة ٨ (١٨٣٩)، (تحفة الأشراف: ٨١٠٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجهاد ٢٩ (١٧٠٧)، سنن النسائي/البيعة ٣٤ (٤٢١٧)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٤٠ (٢٨٦٤)، مسند احمد (١٧/٢، ٤٢) (صحيح)

وی خوترخوپورې چه دوی ته حکم نه وی شوې دګناه کولو ، اوکله چه حکم اوکړې شي په ګناه کولوباندې نوبیا اطاعت کول نه دی پکار.

**تشریح:** ﴿فاذا امربمعصية فلاسمع ولاطاعة﴾ اخرجه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجة قاله المنذری.

[٢٦٢٧] (١) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ هِلَالٍ، عَنْ بِشْرِ بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ مَالِكٍ مِنْ رَهْطِهِ، قَالَ: بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً فَسَلَحْتُ رَجُلًا مِنْهُمْ سَيْفًا، فَلَمَّا رَجَعَ قَالَ: لَوْ رَأَيْتَ مَا لَامَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَعَجَزْتُمْ إِذْ بَعَثْتُ رَجُلًا مِنْكُمْ، فَلَمْ يَمْضِ لِأَمْرِي أَنْ تَجْعَلُوا مَكَانَهُ مَنْ يَمْضِي لِأَمْرِي".

**ترجمه:** دعقبه بن مالک رضی الله عنه نه روایت دی فرمائی چه نبی علیه السلام دجهاددپاره یوه سریه اولیږله ماپه کښې یوکس له خپله توره ورکړې وه هرکله چه هغه واپس راغي نووئې وئیل کاش چه تالیدلي وی چه مونږ نبی علیه السلام خومره ملامته کړو؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل ستاسونه دومره هم اونه شوه چه ماپه تاسو باندې یوکس مشر کړې وو ستاسونه اوهغه زماحکم نه پوره کوو نوچه تاسو دهغه په ځائې باندې بل مقرر کړې وې داسې کس چه هغه زماحکم پوره کولې.

**تشریح:** عقبه بن مالک فرمائی چه یو ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم یوه سریه اولیږله په هغوی کښې یو سړې ما مسلّح بالسّیف کړو ، یعنی هغه سره توره نه وه ما هغه ته توره ورکړه نو عقبه فرمائی چه کله هغه سړې د هغه جهاد نه واپس راغلو او بیا زما هغه سره څه وخت ملاقات اوشو نو هغه ماته اووې چه زمونږ په واپسئ باندې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ څنګه ملامته کړو که تاسو هغه لیدلې وې نو تاسو به تعجب کړې وې، اوس دا ملامته په څه څیز باندې وه د هغې معلومات د وړاندې جملې نه کیږی، چه د هغې مضمون دا دې، ایا تاسو د دې خبرې نه عاجز یئ (یعنی ستاسو نه دومره نه کیږی؟) چه کله زه په تاسو کښې یو داسې سړې امیر مقرر کړم کوم چه د امارت خدمت په ښه طریقه سره نه شی کولې چه تاسو د هغه په ځائې بل څوک امیر کړئ؟ یعنی کوم چه د امارت لائق وی؟

## بَابُ مَا يُؤْمَرُ مِنَ انْضِمَامِ الْعَسْكَرِ وَسَعَتِهِ

### د ټول لښکر افراد په یو ځائې کښې دراجمع ساتلو بیان

[٢٦٢٨] (٢) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ الْحِمْصِيُّ، وَيَزِيدُ بْنُ قُبَيْسٍ مِنْ أَهْلِ جَبَلَةَ سَاحِلِ حِمْصٍ وَهَذَا لَفْظُ يَزِيدَ قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْعَلَاءِ، أَنَّهُ سَمِعَ مُسْلِمَ بْنَ مِشْكَمٍ أَبَا عُبَيْدِ اللَّهِ يَقُولُ: حَدَّثَنَا أَبُو ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيُّ، قَالَ: كَانَ النَّاسُ إِذَا نَزَلُوا مَنْزِلًا، قَالَ عَمْرٌو: كَانَ النَّاسُ إِذَا نَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْزِلًا تَفَرَّقُوا فِي الشِّعَابِ وَالْأَوْدِيَةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ تَفَرُّقَكُمْ فِي هَذِهِ الشِّعَابِ وَالْأَوْدِيَةِ، إِنَّمَا ذَلِكُمْ مِنَ الشَّيْطَانِ"، فَلَمْ يَنْزِلْ بَعْدَ ذَلِكَ مَنْزِلًا إِلَّا انْضَمَّ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ حَتَّى يُقَالَ لَوْ بُسِطَ عَلَيْهِمْ ثَوْبٌ لَعَمَّهُمْ".

**ترجمه:** د ابوثعلبة الخشني رضی الله عنه نه روایت دی فرمائی چه صحابه کرام به کله یوځائې ته ورغلل نوپه دړواو خوړونو کښې به خواره شول نبی علیه السلام اوفرمائیل یقیناستاسوجدا والې

١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٠٠١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٠/٤) (حسن)

٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٨٧١)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ السير (٨٨٥٦)، مسند احمد (١٩٣/٤) (صحيح)

په دې درو اوخوړونو کښې دشيطان دطرف نه دې نوددې نه پس بيا يوځائې ته نه دې ورغلې مګردوی به ټول په يوځائې راجمع وو داسې به ښکاريدل که چرې په دوی باندې يوه کپړه خوره کړې شي نو دوی ټول به پرې پټ شي.

## شرح حديث

يعنی بعض وخت به داسې کيدل چه رسول اللهﷺ به په يو منزل باندې د سفر دپاره کوز شو نو خلق به راکوزيدلو سره مختلف واديانو کښې منتشر شو، يعنی يوځائې کښې به نه راجمع کيدل، چه کله رسول اللهﷺ د هغوی دا کيفيت اوليدو نو هغه په دې باندې نکير اوفرمائيلو، او دا ئې اوفرمائيل چه داسې منتشر کيدو سره راکوزيدل د شيطان د طرف نه دی، وړاندې راوی فرمائی چه د رسول اللهﷺ د دې تنبيه نه روستو خلق منزل ته داسې کوزيدل ﴿ لو بسط عليهم ثوب لعمهم ﴾ چه په داسې لږ شان ځائې کښې به راغلل چه ټوله قافله به په يو څادر او تنبو کښې هم ځائې کيدله، د دې حديث نه معلومه شوه چه د مجاهدينو لښکر لره پکار دی چه کله هغوی د سفر دوران کښې يو منزل باندې کوز شی نو ټول خلق دې يوځائې او جخت وی د دې دپاره چه په کتونکو باندې د مجمع اثر او د هغوی هيبت پريوځی، والحديث اخرجه النسائی قاله المنذری.

[٢٦٢٩]([1])حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ أَسِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْخَثْعَمِيِّ، عَنْ فَرْوَةَ بْنِ مُجَاهِدٍ اللَّخْمِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ نَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ كَذَا وَكَذَا، فَضَيَّقَ النَّاسُ الْمَنَازِلَ وَقَطَعُوا الطَّرِيقَ، فَبَعَثَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنَادِيًا يُنَادِي فِي النَّاسِ "أَنَّ مَنْ ضَيَّقَ مَنْزِلًا أَوْقَطَعَ طَرِيقًا فَلَا جِهَادَ لَهُ".

**ترجمه:** سهل بن معاذ بن انس رضی الله عنه دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه دنبی عليه السلام سره په فلانی فلانی جهاد کښې شريك شوې وو نوخلقو يوځل يوبل ته ځايونه تنګ کړل اولارې ئې تنګې کړې نونبی عليه السلام يواعلان کونکی اوليږلو چه په خلقو کښې اعلان اوکړې چه څوك چاته ځائې تنګ کړی يالاره بنده کړی نودده جهاد قبول نه دی.

**تشريح:** د حديث مضمون واضح دې، يو صحابی معاذ بن انس رضی الله عنه فرمائی چه زه د رسول اللهﷺ سره په يو غزوه کښې شريک شوم نو خلقو په يو منزل کښې کوزيدو سره لاره بنده کړه، يعنی د هغوی د تيريدو او تلو راتلو لاره ئې پرينخودله، هم دا مطلب دې د قطع طريق، چه کله رسول اللهﷺ دا منظر اوليدو نو هغه يو سړې اوليږلو چه لښکر ته زما دا پيغام ورکړه چه کوم سړې منزل باندی داسې کوز شی چه په هغې سره د خلقو لاره تنګه شی يا بنده شی نو د هغوی جهاد معتبر نه دې بلکه کالعدم دې.

معلومه شوه چه يو عبادت که هغه هر څومره عظيم وی که هغه بې قاعدې او بې اصولئ سره اوکړې شی نو هغه به په دې سره کالعدم او باطل شی، د هر يو کار د قاعدې مطابق کيدل ضروری دی، په بې پرواهئ سره کار کولو باندې مقصود نه حاصليږی، کوم کار چه د الله پاک نه په ويره او د قاعدې مطابق وی، هم هغه معتبر دې او د عبادت بللې

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٣٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤١/٣) (حسن)

کیدو مستحق، رزقنا الله تعالی موافقة الاصول والاخلاص فی العمل.

[۲۶۳۰]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ أُسَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ فَرْوَةَ بْنِ مُجَاهِدٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذٍ، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: غَزَوْنَا مَعَ نَبِيِّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه:** حضرت معاذ بن انس رضی الله عنه وائی چه مونږ د الله د نبی صلی الله علیه وسلم په ملګرتیا کښې غزوه اوکړه، بیا راوی د تیر شوي روایت په شان حدیث بیان کړو.

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ تَمَنِّي لِقَاءِ الْعَدُوِّ
### دشمن سره دمقابلې کولو آرزو دمما نعت بیان

[۲۶۳۱]()حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ سَالِمٍ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ يَعْنِي ابْنَ مَعْمَرٍ، وَكَانَ كَاتِبًا لَهُ، قَالَ: كَتَبَ إِلَيْهِ عَبْدُ اللهِ بْنُ أَبِي أَوْفَى حِينَ خَرَجَ إِلَى الْحَرُورِيَّةِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ أَيَّامِهِ الَّتِي لَقِيَ فِيهَا الْعَدُوَّ قَالَ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ لَا تَتَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ وَسَلُوا اللهَ تَعَالَى الْعَافِيَةَ، فَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاصْبِرُوا وَاعْلَمُوا أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ وَمُجْرِيَ السَّحَابِ وَهَازِمَ الْأَحْزَابِ اهْزِمْهُمْ وَانْصُرْنَا عَلَيْهِمْ".

**ترجمه:** دعمرو بن عبیدالله یعنی دابن معمر دغلام نه روایت دي فرمائی چه عبدالله بن أبی أوفی ماته اولیکل کله چه هغه دخوارجو مقابله کوله اولیکل چه کله به نبی علیه السلام دیو دشمن سره مقابله کوله نووی وئیل ای خلقو ددشمن سره دمقابلې کولو ارمان مه کوئ اودالله پاك نه دعافیت سوال اوکړئ خوکه چرې ددشمن سره مخامخ شوئ نوبیاصبرکوئ او پوهه شئ چه جنت دتورو دسورې لاندې دې اوبیا ئې دادعا اووئیله: اې الله چه نازلونکی دکتاب ئې اوچلونکې دوریځوئې اوشکست ورکونکې ئې لښکروته ددې کفارو ډلې ته شکست ورکړې او زمونږ مدد اوکړې په دوی باندې.

**تشریح:** ﴿ کتب الیه عبد الله بن ابی اوفی حین خرج الی الحروریة ﴾ یعنی عمر بن عبیدالله چه کله خوارجو سره د جنګ دپاره روان وو نو سیدنا عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه هغه ته اولیکل، په بعض شروح کښې دی چه عمر بن عبیدالله د خوارجو په جنګ کښې امیر وو، د خوارجو سره یو جنګ خو د سیدنا علی رضی الله عنه په زمانه کښې شوې وو. په ابوداود کتاب شرح السنة کښې د باب قتل الخوارج د لاندې چه د کوم جنګ ذکر راروان دې، یعنی جنګ نهروان، چه په هغې کښې سیدنا علی رضی الله عنه شانداره فتح حاصله کړې وه، او دا عمر بن عبیدالله به په بل یو جنګ کښې کوم چه د هغوی سره شوې وو امیر وی

﴿ لا تتمنوا لقاء العدو وسلوا الله العافیة ﴾ یعنی جنګ او جهاد د مشرکانو سره وی دا جنګ د ارمان کولو څیز نه دې چه د هغې غوښتنه دې اوکړې شی. قتال خو مجبورا کولې شی چه

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۰۳) (حسن)

[2]: صحیح البخاري/الجهاد ۹۸ (۲۹۳۳)، والمغازي ۲۹ (۴۱۱۵)، والدعوات ۵۷ (۶۳۹۲)، والتمني ۸ (۷۲۳۷)، والتوحید ۳۴ (۷۴۸۹)، صحیح مسلم/الجهاد ۷ (۱۷۴۲)، (تحفة الأشراف: ۵۱۶۱)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجهاد ۸ (۱۶۷۸)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۱۵ (۲۷۹۶)، مسند احمد ۴/۳۵۴) (صحیح)

کله خوک اسلام ته د داخلیدو نه انکار اوکړی، او په خپله خبره باندې مضبوط شی، بلکه د الله پاک نه عافیت غوښتل پکار دی، شارحینو لیکلي دی چه د لقاء عدو غوښتنه کول دا د عجب او خپل طاقت باندې د فخر کولو د قبیلې نه دې، په جهاد کښې چه کومه فتح ملاویږی هغه په انابت الی الله سره او د هغه نه په نصرت طلب کولو سره وی، مجاهدینو لره جهاد د خپل طاقت په زور نه دی کول پکار، پس په حدیث شریف کښې دی چه رسول الله ﷺ به د قتال په ابتداء کښې دا دعا کوله "اللهم بک احول وبک اصول وبک اقاتل ﴾ وړاندې په حدیث کښې دا دی چه کله جنګ ته خبره اورسیږی نو بیا مقابله مضبوطه او په همت سره کول پکار دی ﴿ فاذا لقیتموهم فاصبروا ﴾ او د جنګ نه تیختنه کول نه دی پکار.

## د حدیث شرح

﴿ ان الجنة تحت ظلال السیوف ﴾ امام ابن الجوزی رحمه الله فرمائی، یعنی جنت په جهاد او قتال سره حاصلیږی، په جهاد کښې چه کله فریقین یو بل ته نزدې کیږی بلکه داسې اوایئ چه د یو بل په سر باندې خیژی توره اخستلو سره نو په دواړو کښې هر یو د بل د تورې د لاندې وی، رسول الله ﷺ فرمائی، د تورې د سورې د لاندې جنت دې، او د تورې په سوری کښې انسان وی په سخت جنګ کښې. لهذا مطلب دا شو چه په جهاد کښې حصول جنت دې، د دې نه معلومه شوه چه د ظل یعنی سوری نه دلته مراد د دشمن د تورې سورې دې کوم چه د مجاهد په سر باندې وی، د جهاد بالسیف په وخت، شارحینو د دې حدیث د فصاحت او بلاغت ډیر داد ورکړې دې، او مقصود په دې سره د جهاد ترغیب ورکول دی چه د جهاد په ذریعه د جنت د حصول کوشش کوئ. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم قاله المنذری.

## بَابُ مَا يُدْعَى عِنْدَ اللِّقَاءِ

### د دشمن سره د مقابلې په وخت کښې کومه دعا غوښتل پکاردی؟

یعنی د عین جنګ شروع کیدو په وخت څه دعا کول پکار دی، دې وخت کښې د رسول الله ﷺ نه کومه دعا نقل ده، د دې باب د لاندې هم هغه دعا ده کومه چه مونږ سره پورته ذکر شوه،

[۲۶۳۲](۱) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الْمُثَنَّى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا غَزَا قَالَ: "اللَّهُمَّ أَنْتَ عَضُدِي وَنَصِيرِي بِكَ أَحُولُ وَبِكَ أَصُولُ وَبِكَ أُقَاتِلُ".

**ترجمه:** د انس بن مالک نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به کله جهاد کولو نوداسې به ئې فرمائیل: اې الله ته زما متې او مددګار ئې، ستا په مدد سره ګرځم راګرځم او ستا په مدد سره حمله کوم او ستا په مدد سره جنګیږم.

والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی قاله المنذری.

(۱): سنن الترمذي/الدعوات ۱۲۲ (۳۵۸٤)، سنن النسائي/اليوم والليلة (٦٠٤)، (تحفة الأشراف: ۱۳۲۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۱۸٤) (صحيح)

# بَابٌ فِي دُعَاءِ الْمُشْرِكِينَ

## د جهاد په موقعه باندې کفاروته داسلام دعوت ورکول

يعنى د قتال نه مخکښې دعوت الى الاسلام، بعينه دا ترجمه څو بابونه مخکښې تيره شوې ده هلته د دعوت قبل القتال حکم سره د اختلاف ائمه نه تير شوې دې، اوس به اشکال تکرار فى الترجمه وى، جواب دا دې چه مسئله خو په دواړو ځايونو کښې يوه ذکر شوې ده خو غرض د دواړو بابونو مختلف دې، په اول ځائې کښې مقصود وجوب دعوت او د هغې اثبات وو، او په دې ترجمة الباب کښې مقصود رخصت فى ترک الدعوة دې لکه چه په حديث الباب کښې امام نافع رحمه الله فرمائيلې دى د سوال په جواب کښې ﴿ ان ذلک کان فى اول الاسلام ﴾ چه د دعوت وجوب د اسلام په شروع کښې وو.

[٢٦٣٣]( ) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ، قَالَ: كَتَبْتُ إِلَى نَافِعٍ أَسْأَلُهُ عَنْ دُعَاءِ الْمُشْرِكِينَ عِنْدَ الْقِتَالِ، فَكَتَبَ إِلَيَّ أَنَّ ذَلِكَ كَانَ فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ وَقَدْ أَغَارَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى بَنِي الْمُصْطَلِقِ وَهُمْ غَارُّونَ وَأَنْعَامُهُمْ تُسْقَى عَلَى الْمَاءِ، فَقَتَلَ مُقَاتِلَتَهُمْ وَسَبَى سَبْيَهُمْ، وَأَصَابَ يَوْمَئِذٍ جُوَيْرِيَةَ بِنْتَ الْحَارِثِ، حَدَّثَنِي بِذَلِكَ عَبْدُ اللَّهِ وَكَانَ فِي ذَلِكَ الْجَيْشِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا حَدِيثٌ نَبِيلٌ رَوَاهُ ابْنُ عَوْنٍ، عَنْ نَافِعٍ وَلَمْ يُشْرِكْهُ فِيهِ أَحَدٌ.

**ترجمه:** دعون دځوى نه روايت دې فرمائى چه دنافع نه مې دخط په ذريعه تپوس کولو په باره ددعوت ورکولو مشرکانوته دجنګ په وخت کښې نوهغه راته په جواب کښې اوليکل چه داکار په ابتداء داسلام کښې وو، او يقينا حمله کړې وه نبى عليه السلام په بنى المصطلق باندې اوهغوى اوده وو اوځاروونې اوبه څکلې، نبى عليه السلام ددوى نه هغه کسان مړه کړل څوک چه پدوې کښې دجنګ قابل وو اوباقى خلق ئې په قيد کښې راوستل اوجويرية بنت حارث نبى عليه السلام په دې ورځ حاصله کړې وه، اودا روايت ماته عبدالله بيان کړې دې څوک چه پخپله په دغه لښکر کښې موجود وو. أبوداؤد وائى: دا يوښه حديث دې، دې لره ابن عون د نافع نه روايت کړې دې اوپه دې کښې دهغه سره هيڅوک شريک نه دى.

### شرح حديث

پس رسول الله ﷺ په بنوالمصطلق باندې داسې وخت کښې حمله اوکړه ﴿ وهم غارون ﴾ چه هغوى بې خبره او غافل وو، ﴿ غارون ﴾ د ﴿ غرور ﴾ او ﴿ غرة ﴾ په معنى د غفلت نه ماخوذ دې. ﴿ وانعامهم تسقى على الماء ﴾ او هغوى په ارام باندې خپلو ځارووته اوبه ورکولې ﴿فقتل مقاتلتهم وسبى سبيهم ﴾ مقاتلة په کسرې د تاء سره د مقاتل جمع ده، مقاتل جنګ کونکې، چه په چا کښې د قتال صلاحيت وى يعنى سړې عاقل او بالغ، ځکه چه په جهاد کښې هم داسې کفار قتل کولې شى نه زنانه او نابالغ ماشومان د کوم نه چه په سبى سره تعبير کړې شوې دې، هغوى صرف قيد کولې شى، هم دا خبره راوى بيانوى ﴿ واصاب يومئذ جويرية ﴾

( ): صحيح البخاري/العتق ١٣(٢٥٤١)، صحيح مسلم/الجهاد ١ (١٧٣٠)، (تحفة الأشراف: ٧٧٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣١، ٣٢، ٥١) (صحيح)

يعنى په دې جنګ کښې رسول الله ﷺ ته سيده جويريه بنت الحارث ﷞ ملاؤ شوې وه کومه چه رسول الله ﷺ ازاده کړه او په نکاح ئې واخستله.

## د سيده جويريه د عتق او نکاح واقعه

د هغوی پوره حال په ابواب العتق کښې راروان دې چه په هغې کښې دا دی چه په غزوه د بنو المصطلق کښې جويريه ﷞ د سيدنا ثابت بن قيس بن شماس ﷜ په حصه کښې راغلې وه، جويريه ﷞ هغه سره د مکاتبت معامله کړې وه، ﴿ وكانت امرأة ملاحة تاخذها العين ﴾ سيده عائشه ﷞ فرمائی کومه چه د دې قصې روايت کوی چه جويريه ﷞ ډيره مليحه او ښکلې وه، داسې ښکلې چه نظر به ئې راښکلو، يعنی داسې چه انسان ورته بس هم داسې ګوری، هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغله د بدل کتابت په سلسله کښې د دې دپاره چه هغه ئې په دې سلسله کښې مدد اوکړی، عائشه ﷞ فرمائی چه کله هغه په دروازه باندې اودريدله او ما هغه اوليده نو په ما باندې د هغې کتل ډير ګران شو، يعنی د هغې د حسن او ښکلا د وجې نه، او زما په زړه کښې دا خيال راغلو چه کله دا د رسول الله ﷺ سره خبرې اوکړی نو هغه به هم د هغې د حسن او جمال نه خبر شی، غرض دا چه هغې رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه زه جويريه يم او خپل حال ئې بيان کړو او دا چه زه د کتابت په سلسله کښې ستاسو نه مدد اخستل غواړم نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه که ته غواړې نو زه به تاته د دې نه غوره مشوره درکړم؟ هغې اووې هغه څه يا رسول الله! رسول الله ﷺ اوفرمائيل زه به ستا بدل کتابت ادا کړم او تا سره به نکاح اوکړم، هغې اووې زه د دې دپاره تياره يم، پس بيا هم داسې اوشو او رسول الله ﷺ د هغې سره نکاح اوکړه، چه کله خلقو ته د دې خبر اوشو نو په صحابه کرامو کښې چه چا چا سره د بنو المصطلق نه قيديان راغلې وو هغوی هغه په دې وينا پريخودل او آزاد ئې کړل چه دا د رسول الله ﷺ سخرګنئ ده، عائشه ﷞ فرمائی چه مونږ د هغې نه زياته يوه زنانه هم د خپل قوم په حق کښې برکتی نه ده ليدلې، په دې بنياد چه د بنو المصطلق سل کورنئ ازادې شوې.

﴿ حدثني بذلک عبد الله وکان في ذلک الجيش ﴾ دا د نافع مقوله ده، هغه دا مضمون په شروع کښې د خپل طرف نه بيان کړې وو بغير د حوالې نه کوم ته چه د محدثينو په اصطلاح کښې تعليق وئيلې شی، اوس نافع دا بيان فرمائی چه دا حديث ماته عبدالله بن عمر بيان فرمائيلې وو کوم خپله په دې لښکر کښې موجود وو، والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

[۲۶۳۴] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَانَ يُغِيرُ عِنْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ، وَكَانَ يَتَسَمَّعُ فَإِذَا سَمِعَ أَذَانًا أَمْسَكَ وَإِلَّا أَغَارَ.

**ترجمه:** د انس بن مالک ﷜ نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ به د سحر د مونځ په وخت کښې حمله کوله او اذان ته به ئې هم غوږ اينښودلې وو، کله چه به ئې اذان واوريدو نو د جنګ نه

(۱): صحيح مسلم/الصلاة ۶ (۳۸۲)، سنن الترمذي/السير ۴۸ (۱۶۱۸)، (تحفة الأشراف: ۳۱۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۳۲/۳، ۲۲۹، ۲۴۱، ۲۷۰، ۳۵۳) (صحيح)

به بند شو اوکه اذان به ئې نه اوریدو نو حمله به ئې اوکړه.

**تشریح:** ﴿ وكان يغير عند صلاة الصبح وكان يتسمع فاذا سمع اذانا امسك والا اغار ﴾ يعنې د رسول الله ﷺ معمول په شپه کښې د حمله کولو او قتال کولو نه وو، يعنې مثلاً که دار الحرب ته نزدې د شپې يا ماښام په وخت باندې راورسيږې نو دا نه چه هم هغه وخت قتال شروع کړي، بلکه د شپې تيريدو او د سحر کيدو انتظار به ئې کولو او د سحر په وخت به ئې اذان ته غوږ کيخودلو، که د هغه کلی نه به د اذان اواز راتلو نو د قتال نه به منع شو ګينې قتال به ئې شروع کړو.

د قتال نه د منع کيدو مطلب دا نه دې چه هغه به ئې ترک کړو بلکه مطلب به دا وو چه د اذان په اوريدو سره به چونکه دا معلوميده چه په دې کلي کښې مسلمانان هم دی په دې وجه به في الوقت منع شو د دې دپاره چه روستو تحقيق کولو سره قتال اوکړې شی، د امام شافعی رحمه الله نه منقول دی چه د رسول الله ﷺ د قتال شروع کولو دپاره د سحر انتظار کول په دې وجه نه وو چه د شپې قتال ممنوع دې بلکه د دې دپاره وو چه هغه اوګورې چه صحابه کرام څنګه قتال کوی يعنې د دې دپاره چه نګرانی ئې ښه اوشی وغيره وغيره مصالح، او بعض وخت به د قتال په کولو سره دا خطره هم وه چه د مسلمانانو په لاس سره خپل ملګرې قتل نه شي. اهـ والحديث اخرجه مسلم والترمذی، قاله المنذری

[٢٦٣٥](١)حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ نَوْفَلِ بْنِ مُسَاحِقٍ، عَنِ ابْنِ عِصَامٍ الْمُزَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَرِيَّةٍ فَقَالَ: "إِذَا رَأَيْتُمْ مَسْجِدًا أَوْ سَمِعْتُمْ مُؤَذِّنًا فَلَا تَقْتُلُوا أَحَدًا".

**ترجمه:** ابن عصام مزنی د خپل پلانه روايت کوی فرمائی مونږ نبی عليه السلام په يوه سريه کښې وليږلو او وئې فرمائيل کله چه جومات ووينئ يا اذان واورئ نو په دغه وخت کښې هيڅوک مه وژنئ.

## بَابُ الْمَكْرِ فِي الْحَرْبِ

### په جنګ کښې د چل کولو بيان

[٢٦٣٦](٢)حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الْحَرْبُ خُدْعَةٌ".

**ترجمه:** د جابر رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی جنګ د دهوکې او چل ول نوم دې.

### شرح حديث

دا لفظ په درې طريقو سره ضبط کړې شوې دې، ﴿ خدعة ﴾ په ضمې د خاء او فتحې د دال سره، ﴿ خدعة ﴾ او سکون دال سره، ﴿ خدعة ﴾ په فتحې د خاء او سکون دال سره، هم دې

(١): سنن الترمذي/السير ٢ (١٥٤٩)، (تحفة الأشراف: ٩٩٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤٨/٣) (ضعيف)

(٢): صحيح البخاري/الجهاد ١٥٧ (٣٠٣٠)، صحيح مسلم/الجهاد ٥ (١٧٣٩)، سنن الترمذي/الجهاد ٥ (١٦٧٥)، (تحفة الأشراف: ٢٥٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٨/٣) (صحيح)

اخير ته افصح وئيلې شوې دې، په دې صورت کښې به دا په وزن د ﴿ فعلة ﴾ وی او ﴿ فعله د مرة ﴾ دپاره راځی، يعنی په جنګ کښې که چال نه کار واخستلې شی په دې شرط چه هغه چال کامياب هم شی نو په يو ځل کښې ټول کار تمام شی او ډيره زر فتح حاصليږی لکه چه وئيلې شی يا ار پار، او په دويم صورت کښې په ﴿ خدعة ﴾ کښې معنی به دا وی چه جنګ د دهوکې څيز دې يعنی په دې کښې چالبازی ډيره پکار راځی او په دريم صورت کښې يعنی د ﴿ خدعة ﴾ معنی به دا وی چه جنګ ډير د دهوکې ورکولو څيز دې او مکار دې لهذا په دې کښې دې بې پرواهی او بې فکری اونکړې شی بلکه ښه د هوښيارتيا او احتياط نه کار اخستل پکار دی لکه چه مشهور دی چه دشمن به کله هم سپک نه ګڼړې.

په جنګ کښې د دهوکې ورکولو يو مضبوط مثال دا کيدې شی، مثلاً ستا طرف ته يو کافر منډه وهلو سره د حملې دپاره راروان دې او ته يواځې ئې نو دلته د دهوکې نه کار اخستلو ضرورت دې هغه دا چه ته هغه اوبروې او ډير په تندئ سره دا اوايه چه اوګوره په تا پسې شاته څوک دی هغه به په ويره باندې شاته اوګوری په دې کښې به ته هغه قتل کړې، هکذا افهمنی حضرة الشيخ عند الدرس، کوم چه په حديث کښې دی چه جنګ د دهوکې څيز دې، په دې باندې يعنی په جواز خداع فی الحرب باندې د ټولو علماء کرامو اتفاق دې، د خداع چه کوم صورت هم اختيار کړې شی په دې شرط چه هغه د معاهدې خلاف نه وی ګڼې دا به غدر وی چه د هغې په شريعت کښې اجازت نشته، هم په دې وجه ذميانو سره هيڅ قسم تعرض نه شی کولې، د مسلمانانو په شان د هغوی سره معامله کولې شی، هم د دې عهد د وجې نه، هم دا مطلب دې د هغه حديث کوم چه به وړاندې په يو باب کښې راشی، ﴿ الايمان قيد الفتک لا يفتک مومن، والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[٢٦٣٧]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ ثَوْرٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ غَزْوَةً وَرَّى غَيْرَهَا، وَكَانَ يَقُولُ: "الْحَرْبُ خَدْعَةٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَجِئْ بِهِ إِلَّا مَعْمَرٌ يُرِيدُ قَوْلَهُ الْحَرْبُ خَدْعَةٌ بِهَذَا الْإِسْنَادِ إِنَّمَا يُرْوَى مِنْ حَدِيثِ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرٍ، وَمِنْ حَدِيثِ مَعْمَرٍ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه:** عبدالرحمن بن کعب بن مالك دخپل پلارنه روايت کوی چه کله به نبی عليه السلام دجنګ اراده اوکړه نو کوم طرف ته چه به تلو دهغې نه دعلاوه توريه به ئې کوله او فرمائيل به ئې: جنګ دچل ول نوم دې. ابوداود وائی دمعمر نه بغير بل چا دې سند سره نه دې روايت کړې (يعنی معمر په دې روايت کښې متفرد دې)، اوپه دې سره به ئې د نبی ﷺ قول" الحرب خدعة" مراد اخستلو دا لفظ صرف د عمرو بن دينار په واسطې سره دجابر رضی الله عنه نه نقل دی يا دمعمرپه واسطې سره دهمام ب منبه نه نقل دی کوم چه هغه د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت کوی.

**تشريح: قوله** ﴿ كان اذا اراد غزوة ورى غيرها ﴾ دا هم د خدعة د قبيل نه دې، يعنی دا چه د غزوه

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١١٥١)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ١٠٣ (٢٩٤٧)، والمغازي ٧٩ (٤٤١٨)، سنن الدارمي/السير ١٤ (٢٤٨٤) (صحيح) دون الشطر الثاني

دپاره توریه اختیار کړې شی مثلاً کوم طرف ته چه د جنګ دپاره تلل دی، د هغې په ځائې د بل جهت په باره کښې ظاهری طور معلومات ورکړې شی، چه اصل ځائې چه کوم د جنګ دې د هغې چاته پته او نه لګی.

## باب في البيات

### د شپې د حملې کولو بیان

د بیات مطلب دا دې چه د شپې وخت د غفلت وخت وی په دې کښې په دشمن باندې ناڅاپه حمله کول چه د هغې بعض وخت ضرورت وی، په فارسئ کښې دې ته شب خون ونیلې شي، په حدیث الباب کښې د بیات ذکر دې کومې ته چه تبییت هم ونیلې شی. سلمه بن اکوع ﷺ فرمائی چه په دې شپه باندې ما په خپل لاس سره د مشرکینو اووه کورنۍ ختمې کړې

[۲۶۳۸]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ، وَأَبُو عَامِرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا إِيَاسُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَمَّرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْنَا أَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فَغَزَوْنَا نَاسًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ، فَبَيَّتْنَاهُمْ نَقْتُلُهُمْ وَكَانَ شِعَارُنَا تِلْكَ اللَّيْلَةَ أَمِتْ أَمِتْ، قَالَ سَلَمَةُ: فَقَتَلْتُ بِيَدِي تِلْكَ اللَّيْلَةَ سَبْعَةَ أَهْلِ أَبْيَاتٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ.

**ترجمه:** ایاس بن سلمه دخپل پلارنه روایت کوی فرمائي: چه نبی علیه السلام په مونږه ابوبکر ﷺ امیر مقرر کړو اودمشرکانوسره موجنګ اوکړو اودشپې پرې مونږه حمله اوکړه اوهغوی موقتل کړل او په دغه شپه باندې زمونږه نښه (کوډ) امت امت وه سلمه وائی په دغه شپه مې د مشرکانو داووه کورونو کسان په خپل لاس مړه کړل.

**تشریح:** په دې حدیث کښې د شعار ذکر هم دې کوم چه مخکښې په مستقل باب کښې تیر شوې دې. والحديث اخرجه النسائی وابن ماجة قاله المنذری.

## باب في لزوم الساقة

### د ساقه سره د امام د پاتې کیدو بیان

[۲۶۳۹]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ شَوْكَرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَلَّفُ فِي الْمَسِيرِ، فَيُزْجِي الضَّعِيفَ وَيُرْدِفُ وَيَدْعُو لَهُمْ.

**ترجمه:** ابوالزبیر فرمائی چه جابر بن عبدالله ﷺ مونږه ته حدیث بیان کړو چه نبی علیه السلام به دسفرپه دوران کښې وروسته پاتې کیدو ددې دپاره چه کمزوری به ئې دځان سره روانول او په سورلی به ئې دځان سره شاته سوروول اودعابه ئې ورته کوله.

**تشریح:** د ﴿ ساقه ﴾ نه مراد ساقة الجیش دې، د مقدمة الجیش مقابل، یعنی د لښکر هغه دسته کومه چه د ټولو نه شاته روانه وی، او د ټولو نه وراندې تلونکی ته مقدمه او بنی او

[1]: سنن ابن ماجه/الجهاد ۳۰ (۲۸۴۰)، (تحفة الأشراف: ۴۵۱۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۴۶)، سنن الدارمی/السير ۱۵ (۲۴۹۵) (حسن)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۶۸۳) (صحيح)

ګس طرف ته تلونکی ته میمنه او میسره او په مینځ کښې تلونکی ته قلب وئیلې شی، ګویا د لښکر پنځه حصې کولې شی، هم په دې وجه باندې دې ته خمیس هم وئیلې شی، د لزوم الساقه مطلب دا دې چه انسان په هغه دسته کښې روان وې لکه چه په حدیث الباب کښې د رسول الله ﷺ په باره کښې راځی. ﴿ کان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يتخلف فى الميسر ﴾ رسول الله ﷺ به په لښکر پسې شاته شاته روان وو ﴿ فيزجى الضعيف ويردف ويدعو لهم ﴾ راوی درسول الله ﷺ د شاته تلو مصلحت بیانوی چه که د چا سورلئ به سسته او کمزورې وه نو هغه به ئې شړله، او د ضرورت مطابق به ئې څوک په خپله سورلئ باندې ردیف جوړ کړو، او بل مصلحت دا دې چه د لښکر دپاره به چه څوک د هغه په وړاندې وو د هغه دپاره به ئې دعا کوله.

## بَاب عَلَى مَا يُقَاتَلُ الْمُشْرِكُونَ
### د مشرکانو سره په څه وجه جهاد اوکړې شی؟

[٢٦٤٠]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، فَإِذَا قَالُوهَا مَنَعُوا مِنِّي دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ إِلَّا بِحَقِّهَا وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللَّهِ تَعَالَى".

**ترجمه:** دابوهریره نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دي حکم شوې دې ماته چه جنګ وکړم دخلقوسره تردې چه : اشهد ان لا اله الاالله اووائی، کله چه دوی دا اووئیل نو دوی خپلې وینې اومالونه زمانه بچ کړل مګردڅه شرعي حق په وجه باندې او ددوی حساب الله تعالی ته سپارلی شوې دې.

**تشریح:** یعنی د مشرکانو سره قتال په کوم بنیاد باندې کول پکار دی او په کوم صورت کښې کول پکار دی، او د دې مقصد څه کیدل پکار دی؟ دا ټولې خبرې په احادیث الباب کښې غور کولو سره فهم ته راځی. ﴿ امرت ان اقاتل الناس حتى يقولوا لا اله الا الله ﴾ معلومه شوه چه په قتال سره مقصود اعلاء کلمة الله، او ابطال کفر. یعنی د کفر ختمول دی. کفار که بالفرض د قتال دوران کلمه اووائی نو دا خو جدا خبره ده چه هغوی ئې د زړه نه لولی یا د ځان د بچ کولو دپاره، خو بهرحال د کلمې د وئیلو په وخت به د هغوی نه لاس رانښکلې شی، ﴿ وحسابهم على الله ﴾ مطلب هم دا دې یعنی مونږ د ظاهر مکلف یو په ظاهره کښې به د هغوی د کلمې وئیلو په وجه باندې هغوی سره قتال نه شی کولې، د باطن حال مفوض الی الله دې.

د دې نه روستو په حدیث د انس ﷺ کښې زیادت دې ﴿ وان يستقبلوا قبلتنا وان ياكلوا ذبيحتنا وان يصلوا صلاتنا ﴾

[1]: سنن الترمذي/الإيمان ١(٢٦٠٦)، سنن النسائي/المحاربة ١ (٣٩٨١)، سنن ابن ماجه/الفتن (٣٩٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٠٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ١٠٢ (٢٩٤٦)، صحيح مسلم/الإيمان ٨ (٢٦١٠)، مسند احمد (٢/ ٣١٤، ٣٧٧، ٤٢٣، ٤٣٩، ٤٧٥، ٤٨٢، ٥٠٢) (صحيح متواتر)

[٢٦٤١]( )حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَعْقُوبَ الطَّالَقَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ وَأَنْ يَسْتَقْبِلُوا قِبْلَتَنَا وَأَنْ يَأْكُلُوا ذَبِيحَتَنَا وَأَنْ يُصَلُّوا صَلَاتَنَا فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ حَرُمَتْ عَلَيْنَا دِمَاؤُهُمْ وَأَمْوَالُهُمْ إِلَّا بِحَقِّهَا لَهُمْ مَا لِلْمُسْلِمِينَ وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُسْلِمِينَ".

**ترجمه:** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی ماته حکم شوې دې چه جنګ اوکړم دخلقو سره تردې چه لااله الاالله وان محمدا عبده ورسوله اووائی، او زمونږه قبلې ته مخ کوي او زمونږه حلاله خوري اوزمونږ په شان مونځ کوي کله چه دوی دا کارونه اوکړي نوپه مونږه باندې ددوی وينې او مالونه حرام شول مګر په حق دشريعت باندې چه ددوی دپاره دې په شان دهغه کوم چه دمسلمانانو دپاره دې اودهغه حق په وجه کوم چه په دوي باندې دې په شان دهغه کوم چه په مسلمانانو باندې دې.

## شرح حديث

دا ټول څيزونه هم د اسلام ظاهري علامات دی، نو مطلب دا شو چه کوم سړې کلمه وائي او کلمه لوستونکو ته کوم چه ظاهري اعمال دی هغه اختياروی نو هغه به مسلمان ګڼرلې شی، د دې نه معلومه شوه چه د اسلام په معتبر کيدو کښې به د شعائر اسلام اعتبار وی، پس د مسلمانانو قبله اختيارول او د هغې خپلول، او د مسلمانانو د لاس ذبيحه جائز ګڼرل دې ټولو څيزونو لره به اعتبار وی، يو سړې کلمه خو وائي خو کعبه خپله قبله نه منی، يا د مسلمان ذبيحه ناجائزه ګڼرې، يا د مونځ نه انکار کوی، دا ټول څيزونه د هغه د کفر په علاماتو کښې دی لکه يو سړې چه کلمه خو وائی خو د هغې سره زنار هم په غاړه کښې اچوی کوم چه د کفر په شعائرو کښې دې نو د هغه ظاهر اسلام هم معتبر نه دې.

دا د ﴿ امرت ان اقاتل الناس ﴾ والا حديث دکتاب الزکاة په شروع کښې تير شوې دې، وحديث انس اخرجه البخاری تعليقا، واخرجه الترمذی والنسائی قاله المنذری.

[٢٦٤٢]( )حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ الْمُشْرِكِينَ بِمَعْنَاهُ".

**ترجمه:** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی ماته حکم شوې دې چه جنګ اوکړم دمشرکانو سره اوباقي روايت دتير روايت په شان دې.

[٢٦٤٣]( )حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ المعنى، قَالَا: حَدَّثَنَا يَعْلَى بْنُ عُبَيْدٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي ظَبْيَانَ، حَدَّثَنَا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، قَالَ: بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً إِلَى الْحُرَقَاتِ فَنَذِرُوا بِنَا فَهَرَبُوا، فَأَدْرَكْنَا رَجُلًا فَلَمَّا غَشِينَاهُ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ فَضَرَبْنَاهُ حَتَّى قَتَلْنَاهُ، فَذَكَرْتُهُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

[1]: صحيح البخاري/الصلاة ٢٨ (٣٩٢)، سنن الترمذي/الايمان ٢ (٢٦٠٨)، سنن النسائي/تحريم الدم ١ (٣٩٧٢)، والإيمان ١٥ (٥٠٠٦)، (تحفة الأشراف: ٧٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/١٩٩، ٢٢٤) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٨٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/ الصلاة ٢٨ (٣٩٣ تعليقًا) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/المغازي ٤٥ (٤٢٦٩)، والديات ٢ (٦٨٧٢)، صحيح مسلم/الإيمان ٤١ (٩٦)، سنن النسائي/الكبري (٨٥٩٤)، (تحفة الأشراف: ٨٨) (صحيح)

فَقَالَ: "مَنْ لَكَ بِلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّمَا قَالَهَا مَخَافَةَ السِّلَاحِ، قَالَ: أَفَلَا شَقَقْتَ عَنْ قَلْبِهِ حَتَّى تَعْلَمَ مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ قَالَهَا أَمْ لَا مَنْ لَكَ بِلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟". فَمَا زَالَ يَقُولُهَا حَتَّى وَدِدْتُ أَنِّي لَمْ أُسْلِمْ إِلَّا يَوْمَئِذٍ.

**ترجمه**: د اسامه بن زید رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام مونږه په یووړوکي لښکر کښې حرقات طرف ته اولیږلو کله چه هغوی زمونږ دراتگ نه خبر شول نو اوتښتیدل نومونږه دهغوی یوکس گیرکړو هغه لااله الاالله اووئیل او مونږ دې وهلو تردې چه مړ مو کړو، بیا مې دا واقعه نبی علیه السلام ته ذکرکړه تبي علیه السلام اوفرمائیل دلااله الاالله په مقابل کښې به دقیامت په ورځ ستا څوك امدادکوي ماعرض اوکړواي دالله رسوله هغه خوکلمه دوسلې دویرې دوجې نه وئیلې وه نبی علیه السلام اوفرمائیل آیاتا دده زړه سیري کړې وو چه تاته دا معلومه شوه چه دویرې نه ئې کلمه وئیلې وه اوکه نه دلااله الاالله په مقابل کښې به دقیامت په ورځ ستا څوك امدادکوي داخبره به ئې باربارکوله ما ارمان اوکړو چه کاش چه هم دانن زه مسلمان شوې وې

**تشریح**: سیدنا اسامه بن زید رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ په یوه سریه کښې مقام حرقات ته اولیږلو، هغوی ته زمونږ د ورتلو په څه طریقه خبر اوشو هغوی خپل کلي پریخودلو او اوتختیدل خو بیا هم مونږ په هغوی کښې یوکس دوه گیر کړل، چه کله مونږ هغوی گیر کړل نو هغوی ﴿ لا اله الا الله ﴾ اووې، مونږ هغوی د دې باوجود قتل کړل (په دې خیال چه دوی په دې کلمه ځان خلاصوی) په واپسئ کښې ما د دې ذکر رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اوکړو نو هغه ډیر ناراضه شو او وې فرمائیل ﴿ من لک بلا اله الا الله یوم القیامة؟ ﴾ چه کله د قیامت ورځ شی نو ته به د هغه د ﴿ لا اله الا الله ﴾ څه جواب ورکوې، رسول الله صلی الله علیه وسلم بار بار دا جمله وئیله، هغه فرمائی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې سختې ناراضتیا د وجې نه ما په خپل زړه کښې ارمان اوکړو چه ارمان ما د دې حرکت نه مخکښې اسلام نه وو قبول کړې، بلکه د دې نه روستو مې قبول کړې وې، او کومه گناه چه زما نه شوې ده دا زما نه د اسلام نه بلکه د کفر په حالت کښې شوې وې، او بیا په اسلام راوړلو سره هغه ختمه شوې وې. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

[٢٦٤٤] (١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنِ اللَّيْثِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ، عَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ إِنْ لَقِيتُ رَجُلًا مِنَ الْكُفَّارِ فَقَاتَلَنِي، فَضَرَبَ إِحْدَى يَدَيَّ بِالسَّيْفِ ثُمَّ لَاذَ مِنِّي بِشَجَرَةٍ، فَقَالَ: أَسْلَمْتُ لِلَّهِ أَفَأَقْتُلُهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ بَعْدَ أَنْ قَالَهَا؟ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقْتُلْهُ"، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهُ قَطَعَ يَدِي، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَقْتُلْهُ فَإِنْ قَتَلْتَهُ فَإِنَّهُ بِمَنْزِلَتِكَ قَبْلَ أَنْ تَقْتُلَهُ وَأَنْتَ بِمَنْزِلَتِهِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ كَلِمَتَهُ الَّتِي قَالَ".

**ترجمه**: مقداد بن اسود رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام به خدمت کښې مې عرض اوکړو چه اې دالله رسوله ستاسو څه راې ده که چرې زه دیومشرك سره مخامخ شوم اوهغه

(١): صحيح البخاري/المغازي ١٢ (٤٠١٩)، والديات١ (٦٨٦٥)، صحيح مسلم/الإيمان ٤١ (٩٥)، (تحفة الأشراف: ١١٥٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣، ٤، ٥، ٦) (صحيح)

ماسره جنګ شروع کړي اويولاس مې په توره پرې کړي او ددې نه پس دې دوني شاته پټ شي او اووائي چه مادالله دپاره اسلام قبول کړو، نوايادې خبرې نه پس ئې زه قتل کړم؟ نبي ﷺ اوفرمائيل نه، دې مه وژنه ماعرض اوکړو اې دالله رسوله ده چه زمالاس پرې کړې دې نبي ﷺ اوفرمائيل دې به نه وژنې که چرې ته دې مړ کړې نودې به ستا په هغه حالت باندې شي کله چه دې تانه وو وژلې اوته به دده په هغه حالت باندې شي کله چه ده کلمه نه وه وئيلې.

**تشريح:** سيدنا مقداد بن اسود ﷺ فرمائي چه يو ځل ما د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه که زه يو کافر ته مخامخ شم او بيا زما او د هغه ترمينځه قتال شروع شي، او هغه زما لاس په توره باندې پرې کړي، او بيا زه د هغه طرف ته متوجه شم، يعنى د قتل کولو دپاره نو هغه زما نه بچ کيدو سره د يوې اونې شاته پټ شي او چه کله زه په هغه باندې وار کوم نو هغه اووائي چه ﴿ اسلمت لله ﴾ نو ايا په دې حالت کښې زه هغه قتل کولې شم؟ نو هغه زه منع کړم چه نه دې قتل کول پکار، وړاندې روايت کښې دا دى.

فَإِنْ قَتَلْتَهُ فَإِنَّهُ بِمَنْزِلَتِكَ قَبْلَ أَنْ تَقْتُلَهُ وَأَنْتَ بِمَنْزِلَتِهِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ كَلِمَتَهُ الَّتِي قَالَ".

## شرح حديث

د دې حديث په مطلب باندې لږ په غور سره ځان پوهه کړئ، د دې ترجمه دا ده چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه که تا د دې باوجود هغه قتل کړو نو (ياد ساته) هغه خو به داسې شي ځنګه چه ته وې، د هغه د قتل کولو نه مخکښ، او ته به داسې شې ځنګه چه هغه وو د کلمې وئيلو نه مخکښ.

په دې کښې دا اشکال دې چه هغه دشمن د کلمې وئيلو نه مخکښې کافر وو نو د دې مطلب دا شو چه دا مسلمان به د هغه د قتل کولو په وجه باندې د هغه دشمن په شان کافر شي، حال دا چه د مسلمان په قتل سره څوک کافر کيږي نه، او؛ فاسق فاجر کيږي، دا خو د خوارج او معتزله مسلک دې چه د کبيره ګناه د وجې نه انسان د دائره اسلام نه خارج کيږي، په دې وجه اهل سنت د دې حديث توجيه داسې کړې ده چه په دې حديث کښې تشبيه د کفر او اسلام په اعتبار سره نه ده بلکه د لازم کفر او لازم اسلام په اعتبار سره ده او هغه دې مباح الدم او غير مباح الدم کيدل، لهذا مطلب دا شو چه د هغه د قتل کولو نه روستو به ته هم هغه شان مباح الدم شې ځنګه چه هغه دشمن د کلمې وئيلو نه مخکښې مباح الدم وو خو د کافر اباحت دم د هغه د کفر په وجه باندې دې او د دې مسلمان قاتل قصاصا، كذا فى البذل نقلا عن القارى، او که هيڅ قسم توجيه اونکړې شى او دا په ظاهر باندې اوساتلې شي نو دا هم ممکن ده چه په دې صورت کښې به دا په مبالغه فى الزجر والتوبيخ باندې محمول وى، يوه توجيه خو په دې کښې دا هم کړې شوې ده چه دا حديث په خپل ظاهر باندې دې خو د استحلال قتل په صورت کښ، يعنى چه د کلمه ګو قتل حلال ګنړلو سره اوکړې شى، والحديث اخرجه البخارى ومسلم والنسائى، قاله المنذرى.

## بَابُ النَّهْيِ عَنْ قَتْلِ مَنِ اعْتَصَمَ بِالسُّجُودِ(١)

### بیان د ممانعت د قتل دهغه چا چه په سجده باندې پناه حاصل کړي

[٢٦٤٥](٢) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ قَيْسٍ، عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً إِلَى خَثْعَمٍ فَاعْتَصَمَ نَاسٌ مِنْهُمْ بِالسُّجُودِ فَأَسْرَعَ فِيهِمُ الْقَتْلَ، قَالَ: فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ لَهُمْ بِنِصْفِ الْعَقْلِ وَقَالَ: "أَنَا بَرِيءٌ مِنْ كُلِّ مُسْلِمٍ يُقِيمُ بَيْنَ أَظْهُرِ الْمُشْرِكِينَ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ لِمَ؟ قَالَ: لَا تَرَاءَى نَارَاهُمَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ هُشَيْمٌ، وَمَعْمَرٌ، وَخَالِدٌ الْوَاسِطِيُّ، وجماعة لم يذكروا جريرا.

**ترجمه**: دجریر بن عبدالله نه روایت دې فرمائی چه خثعم قبیلې ته نبی ﷺ یو وړوکې لښکر اولیږلو ، په دوی کښې څه کسانو (چاچه اسلام قبول کړې وو او دویرې نه دمشرکانو سره اوسیدل) په سجده پریوتل اودقتل نه ئې ځان بچ کول غوښتل نومجاهدینو دوی لره کافر اوګنړل اوقتل ئې کړل کله چه نبی ﷺ ته ددې واقعې خبراورسیدو نونبی ﷺ دوژلې شوو وارثانوته دنیم دیت ورکولو حکم اوکړو اووئې فرمائیل زه دهغه مسلمان نه بیزار یم څوک چه دکافرو په مینځ کښې اوسیږي چاعرض اوکړو په څه وجه باندې اې دالله رسوله؟ نبی ﷺ اوفرمائیل په دې وجه چه داسلام اور اودکفر اور په یوځائې کښې نه شي پاتې کیدې، ابوداود وائی داروایت هشیم،معمر، اوخالد واسطي او یوې ډلې نقل کړې دې اوجریر ئې په کښې نه دې ذکرکړې.

### شرح حدیث

رسول الله ﷺ یوه سریه اولیږله خشعم قبیلې طرف ته نو کله چه دا سریه هلته اورسیده او مقابله شروع شوه نو په هغوی کښې بعض خلقو د خپل اسلام ثابتولو دپاره د سجدو په ذریعه پناه اوغوښتله یعنی د مونځ په شان سجده کول ئې شروع کړل، یعنی په ځائې د دې چه هغوی په ژبې سره اوائی چه مونږ مسلمانان یو او اسلام مو قبول کړې دې، د اسلام دلیل ئې د هغوی په وړاندې ظاهر کړو، (چه دعوی مع الدلیل شي) خو سریه د هغوی د دې فعل طرف ته التفات اونکړو، او په تیزئ سره ئې قتل کول، چه کله رسول الله ﷺ ته د دې واقعې اطلاع اوشوه نو رسول الله ﷺ د هغه مقتولینو دپاره، یعنی د هغوی د وارثانو دپاره په قاتلینو باندې د نیم دیت فیصله اوکړه، او دا ئې هم اوفرمائیل چه زه د داسې مسلمان نه بری یم (یعنی د هغه ذمه دار نه یم) کوم چه د مسلمانیدو باوجود د مشرکانو ترمینځه اوسیږي.

یعنی دا څو افراد کوم چه د قبیله خثعم وو او اسلام ئې قبول کړې وو او د اسلام راوړلو باوجود په خپل خپل ځائې کښې مقیم وو او نه د هغه ځائې نه منتقل شو او نه ئې رسول الله ﷺ ته د خپل اسلام خبر ورکړو حال دا چه په دې دوه خبرو کښې یوه ضروری وه، نو د

---

(١) په الدر المنضود کښې او بعض درسی نسخو کښې دلته د باب دا عنوان موجود نه دې بلکه دا احادیث په باب سابق کښې ذکر کړې شوې دی. ابوعمار عبدالمالک.

(٢) سنن الترمذي/السير ٤٢ (١٦٠٥)، سنن النسائي/القسامة ٢١ (٤٧٨٤) (عن قيس مرسلا)، (تحفة الأشراف: ٣٢٢٧) (صحيح)

هغوی په مقتول کیدو کښې خپله د هغوی فعل ته هم دخل شو، هم په دې وجه باندې رسول الله ﷺ د هغوی دپاره د نصف دیت فیصله اوفرمائیله.

﴿ قالوا : یا رسول الله! لم؟ قال: لا ترائی ناراهما ﴾ ﴿ تراءی ﴾ په اصل کښې ﴿تتراءی﴾ وو یوه تاء تخفیفا حذف کولې شی، او نار په ترکیب کښې فاعل دې دپاره د فعل، د رؤیت نسبت د نار طرف ته مجازی دې مراد اهل نار دی، صحابه کرامو د هغه ﷺ نه تپوس اوکړو چه داسې ولې ده؟ رسول الله ﷺ د دې وجه بیان اوفرمائیله چه داسې پکار وو چه په فریقین (یعنی مسلم او کافر کښې) د یو اور د بل اور نه وینی، یعنی په مسلمین او مشرکین کښې دومره فاصله کیدل پکار دی چه په هغوی کښې که هر یو په خپل کور کښې اور بل کړی، روښانه کړی نو د هغې رڼړا د بل چا کور ته او نه رسیږی، یعنی که په یو کلی کښې بعض خلق اسلام قبول کړی نو هغوی له پکار دی چه اوس هغوی هلته پاتې نه شی بلکه د هغه ځائې نه هجرت کولو سره لاړ شی هله خو به د یو اور د بل اور نه وینی، او په دې ذکر شوې واقعه کښې هغوی داسې کړې نه دی په دې وجه د هغوی نیم دیت واجب کړې شو، په ځائې د کامل.

دا چه صحابه کرامو په ﴿ لم ﴾ سره تپوس کړې دې د دې تعلق د ماقبل دواړو جملو سره کیدې شی ﴿ امر لهم بنصف العقل ﴾ سره هم او د ﴿ انا بریئ ﴾ سره هم. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي التَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ

### د کفارو د مقابلې نه د تختیدلو بیان

یعنی د جنګ په ورځ باندې د جنګ نه واپس تلل چه حرام دی، په وخت د وجود د شرائطو، په حدیث کښې دا د کبائرو نه شمار کړې شوې ده.

[٢٦٤٦](١) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ جَرِيرِ بْنِ حَازِمٍ، عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ خِرِّيتٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: نَزَلَتْ إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ سورة الأنفال آية ٦٥ فَشَقَّ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ حِينَ فَرَضَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ أَنْ لَا يَفِرَّ وَاحِدٌ مِنْ عَشَرَةٍ، ثُمَّ إِنَّهُ جَاءَ تَخْفِيفٌ فَقَالَ: الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنْكُمْ سورة الأنفال آية ٦٦، قَرَأَ أَبُو تَوْبَةَ إِلَى قَوْلِهِ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ سورة الأنفال آية ٦٦، قَالَ: فَلَمَّا خَفَّفَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُمْ مِنَ الْعِدَّةِ نَقَصَ مِنَ الصَّبْرِ بِقَدْرِ مَا خَفَّفَ عَنْهُمْ.

**ترجمه:** عکرمه دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کوی چه فرمائیل ئې چه کله دا ذکرشوې آیت نازل شو نومسلمانانو داحکم ګران اوګڼړلو چه یوکس مسلمان دې دلسوکسانو دمقابلې نه نه تښتي نو په دې حکم کښې اسانې راغله اوالله تعالی بل حکم نازل کړو کله چه الله تعالی اولیدل چه تاسو کمزوری ئې یعنی که چرې تاسو سل کسان ئې نوپه دوه سووکسانوبه غالب کیږئ اوکه چرې زر کسان ئې نوپه دوه زروبه غالب کیږئ راوي وائی کله چه الله تعالی په تعداد کښې کمې راوستو نو دخلقو په صبرکښې هم دومره کمې راغې.

(١): صحیح البخاري/التفسیر ٧(٤٦٥٣)، (تحفة الأشراف: ٦٠٨٨) (صحیح)

## شرح حديث

په دې آيت كريمه كښې د جهاد متعلق يو خاص حكم ذكر شوې دې، هغه دا چه د دوه سوو كفارو د مقابلې دپاره شل مسلمانان كافى دى، يعنى كفار كه د مسلمانانو په نسبت لس چنده وى، نو د مسلمانانو مقابله واجب ده تيخته ترې جائز نه ده، ګويا په شروع كښې مصابرة الواحد بالعشره او مصابرة العشرة بالمائة واجب وه، وړاندې په آيت كريمه كښې دى ﴿ الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا فَإِن يَكُن مِّنكُم مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ وَإِن يَكُن مِّنكُمْ أَلْفٌ يَغْلِبُوا أَلْفَيْنِ بِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ الله پاك فرمائى، اوس مونږ په دې حكم كښې تخفيف اوكړو ستاسو د ضعف د وجې نه، لهذا اوس زمونږ فيصله دا ده چه سل مسلمانان په دوه سوه كفارو باندې د غلبې دپاره كافى دى، او زر مسلمانان په دوه زره كفارو باندې د غلبې دپاره كافى دى، ګويا اول د لس چنده سره مقابله واجب وه، روستو صرف دو دوچنده سره وجوب باقى پاتې شو، مصابرة الواحد بالعشرة... په ځائې مصابرة الواحد بالاثنين شو.

په دې حديث كښې ابن عباس رضي الله عنه هم دا فرمائى چه حكم اول چونكه په مسلمانانو باندې ګران وو هم په دې وجه دا تخفيف اوكړې شو.

﴿ قال : فلما خفف الله تعالى عنهم من العدة نقص من الصبر بقدر ما خفف عنهم ﴾ ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه الله پاك چه څومره تخفيف د تعداد په اعتبار سره فرمائيلې وو هم د هغې په اندازه د هغوى په صبر او استقلال كښې هم كمې راغلو، نو ګويا معامله هم هغه شان پاتې شوه، معلومه شوه چه د مشقت او مصيبت په اندازه الله پاك په هر يو مومن كښې صبر او استقلال پيدا كوى، والحديث اخرجه البخارى، قاله المنذرى.

[٢٦٤٧]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي لَيْلَى، حَدَّثَهُ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، حَدَّثَهُ أَنَّهُ كَانَ فِي سَرِيَّةٍ مِنْ سَرَايَا رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: فَحَاصَ النَّاسُ حَيْصَةً فَكُنْتُ فِيمَنْ حَاصَ، قَالَ: فَلَمَّا بَرَزْنَا قُلْنَا كَيْفَ نَصْنَعُ وَقَدْ فَرَرْنَا مِنَ الزَّحْفِ وَبُؤْنَا بِالْغَضَبِ، فَقُلْنَا: نَدْخُلُ الْمَدِينَةَ فَنَتَثَبَّتُ فِيهَا وَنَذْهَبُ وَلَا يَرَانَا أَحَدٌ، قَالَ: فَدَخَلْنَا فَقُلْنَا لَوْ عَرَضْنَا أَنْفُسَنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنْ كَانَتْ لَنَا تَوْبَةٌ أَقَمْنَا، وَإِنْ كَانَ غَيْرَ ذَلِكَ ذَهَبْنَا، قَالَ: فَجَلَسْنَا لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ صَلَاةِ الْفَجْرِ فَلَمَّا خَرَجَ قُمْنَا إِلَيْهِ فَقُلْنَا: نَحْنُ الْفَرَّارُونَ، فَأَقْبَلَ إِلَيْنَا فَقَالَ: "لَا بَلْ أَنْتُمُ الْعَكَّارُونَ"، قَالَ: فَدَنَوْنَا فَقَبَّلْنَا يَدَهُ، فَقَالَ: "إِنَّا فِئَةُ الْمُسْلِمِينَ".

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه زه په يو سريه لښكر كښې وم درسول الله دسرايا نه، فرمائى چه دمشركانو د مقابلې نه خلق اوتښتيدل په دغه خلقو كښې زه هم شامل وم څوك چه تښتيدلې وو، مونږه چه كله اوديدو نو په خپل مينځ كښې مو مشوره اوكړه چې اوس مونږ له څه كول پكاردي مونږ خود مشركانودقابلې نه اوتښتيدو او دالله دغضب مستحق شو بيا مونږ په خپل مينځ كښې اووئيل چه مدينې ته به لاړ شو اوهلته به اوسيږو كله چه بل ځل دجهاد حكم اوشى نوجهاد ته به او خو په داسې حال كښې چه څوك

---

[1]): سنن الترمذي/الجهاد ٣٦ (١٧١٦)، سنن ابن ماجه/ الأدب ١٦ (٣٧٠٤)، (تحفة الأشراف: ٧٢٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٣، ٥٨، ٧٠، ٨٦، ٩٩، ١٠٠، ١١٠) ويأتي هذا الحديث في الأدب (٥٢٢٣) (ضعيف)

مو اونه وینې بهرحال مونږ مدینې ته راورسیدو اوهلته مونږ اووئیل کاش چه مونږه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر وې اوخپل ځانونه موهغه ته پیش کړی وې که چرې زمونږ توبه قبوله شي نومونږ به پاتې شو او که توبه موقبوله نه شی نولاړ به شو دې وائی بهرحال مونږ واپس لاړو اود نبی ﷺ سره کیناستونبی ﷺ ته مودسحر دمونځ نه مخکښې انتظارکولو نوهرکله چه را اووتلو نومونږ اودریدو او ورته ورغلو او عرض مواوکړو چه اې دالله رسوله مونږه تښتیدلي خلق یو نبی ﷺ زمونږ طرف ته متوجه شو اووئې فرمائیل هیڅ کله داسې نه ده تاسو جنګ ته دوباره راتلونکی خلق یئ عبدالله وائی مونږ چه دا واوریدل نوخوشحاله شواونبی ﷺ ته نور ورنزدې شو او دهغه لاسونه موښکل کړل، نبی ﷺ اوفرمائیل زه دمسلمانانو دپناه ځائې یم

**تشریح:** سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنه خپله یوه واقعه عبدالرحمن بن ابی لیلی ته بیانوی چه یو ځل زه په یوه سریه کښې اوم د رسول الله ﷺ د سرایا نه، زمونږ د سریه والا د انهزام او شکست د وجې نه د جنګ نه اوتختیدل، زه هم په تیختنه کونکو کښې اوم، پس چه کله مونږ د میدان جنګ نه راوتلو نو مونږ سوچ اوکړو بلکه خپل مینځ کښې مو یو بل ته اووې چه اوس څه اوکړو مونږ خو د جنګ نه تختیدلي یو، او واپس شوې یو د الله پاک په غضب سره، یعنی داسې کار مو کړې دې کوم چه د الله پاک او د هغه د رسول د غضب باعث وی، نو مونږ د هغه سره دا صلاح او مشوره اوکړه چه مدینې منورې ته داخل شو، په ظاهره کښې مراد دا دې چه د شپې په وخت پټې طریقې سره، بیا ایسار وو یعنی په خپلو کورونو کښې، د دې دپاره چه د هغه ځائې نه لاړو شو د هغه په خدمت کښې یعنی د ورځې، یعنی په مدینه کښې د شپې په وخت داخلیدو سره خپلو خپلو کورونو ته اورسیږو نو د شپې به مو څوک وینی هم نه، بیا د سحر په وخت به د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، هغه فرمائی، پس مونږ مدینې ته داخل شو بیا به د تجویز او ارادې مطابق سحر د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د تلو اراده اوکړه په دې خیال چه که زمونږ قصور معاف کیږی نو په مدینه منوره کښې به ایسار شو، او که داسې نه وی نو د مدینې منورې نه به چرته لرې لاړ شو، پس هم دا ټول مضمون مونږ په ذهن کښې ساتلو سره د سحر د مانځه نه مخکښې د هغه د حجرې په دروازه باندې کیناستلو، چه کله رسول الله ﷺ بهر تشریف راوړلو نو مونږ د هغه په لیدو باندې اودریدو، او د خپل جرم اعتراف کولو سره مو هغه ته عرض اوکړو ﴿ نحن الفرارون ﴾ چه مونږ ټول میدان جنګ نه تیختنه کونکی یو، رسول الله ﷺ زمونږ طرف ته متوجه شو او وې فرمائیل : ﴿ لا بل انتم العکارون ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائیل نه بلکه تاسو واپس کیدو سره دوباره حمله کونکی یئ (د رسول الله ﷺ دا طرز عمل او کلام اوریدلو سره په مونږ کښې ساه راغله او په هغه باندې مو ځان قربان کړو، پس وراندې په روایت کښې دی) پس مونږ هغه ته نور هم نزدې شو او مونږ ټولو د هغه لاس مبارک ښکل کړو، رسول الله ﷺ مونږ نه نوره هم توجه پیدا کړه او وې فرمائیل ﴿ انا فئة المسلمین ﴾ چه زه د مسلمانانو پناه ګاه یم او د مرکزی فوج قائم مقام یم، رسول الله ﷺ هغوی ته ﴿ عکارون ﴾

اوفرمائيلو، يعنى ﴿ متحيزون ﴾ او دا اشاره ده د آيت کريمه طرف ته ﴿ وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَى فِئَةٍ فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِنَ اللَّهِ ﴾ يعنى کوم سړي چه ميدان جنګ پريخودلو سره اوتختي هغه د الله پاک د غضب مستحق وی، خو د دې حکم نه دوه مستثني دی، يو متحرف لقتال، او يو متحيز الى فئة، يعنى دا دوه کسان د فرار من الزحف په وعيد کښې داخل نه دی، او رسول الله ﷺ د ابن عمر رضي الله عنه دې سريه ته ﴿ متحيزا الى فئة ﴾ نه شمار کړل، د دې مطلب دا دې چه که مسلمان فوجې د مختصر او ناکافی کيدو د وجې نه د ميدان جنګ نه په دې وجه واپس شی چه د مرکزی فوج نه تعاون حاصل کړی نو بيا دا په دې وعيد کښې داخله نه ده، او دا فرار، فرار نه دې، په داسې طريقه چه رسول الله ﷺ هغه خلقو ته فرمائی او تسلی ورکوی چه ستاسو دا تيختنه فرار نه دې بلکه تحيز الى فئة دې، مدينه منوره او رسول الله ﷺ په منزله د مرکزی فوج دی، لهذا تاسو دوباره د مقابله کولو دپاره دلته ماته د مدد اخستلو دپاره راغلی يئ، ابن ابی حاتم هم دا حديث رايت کړې دې، د هغه په روايت کښې دا زيادت دې، ﴿ وقرا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هذه الاية، او متحيزا الى فئة، کذا فى تفسير ابن کثير ﴾ حافظ ابن کثير فرمائی چه په يوه موقع باندې سيدنا عمر رضي الله عنه هم داسې فرمائيلې وو، چه کله په جنګ جسر کښې ابو عبيد شهيد کړې شو د مجوس دلښکر د کثرت د وجې نه نو سيدنا عمر رضي الله عنه اوفرمائيل ﴿ لو انحاز الى کنت له فية ﴾ چه که هغه زما طرف ته راغلې وې يعنى په طور د مدد طلب کولو نو زه به د هغوی دپاره ﴿ فئة ﴾ ثابت شوې وې په آيت کريمه کښې بله استثناء د هغه سړی دپاره ده کوم چه متحرف لقتال وی يعنى د څه جنګی مصلحت په وجه باندې فوج خپل شکست ظاهرولو سره شاته شی، لکه چه بعض وخت په قتال کښې داسې هم کولې شی په دشمن باندې د فتح حاصلولو دپاره، والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجة، قاله المنذری.

[٢٦٤٨](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ هِشَامٍ الْمِصْرِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: نَزَلَتْ فِي يَوْمِ بَدْرٍ «وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ» سورة الأنفال آية ١٦.

**ترجمه**: دابوسعيد خدری رضي الله عنه نه روايت دې چه دا ايت: «ومن يولهم يومئذ دبره» دغزوه بدر په ورځ نازل شوې دې.

**تشريح**: يعنى دا آيت شريفه د جنګ بدر په باره کښې نازل شوې وو، د يوم اطلاق د حرب په معنى کښې هم وی لکه چه وئيلې شی ايام العرب حروبها.

(**د تولى يوم الزحف حکم**): ځان پوهه کړه چه تولى يوم الزحف د جمهورو علماء کرامو په نزد، چه په هغې باندې د اکثرو اتفاق دې حرام دې، او دا حکم د هغوی په نزد دائمی دې، د هميشه دپاره د جنګ بدر سره خاص نه دې، په جنګ بدر کښې د «تولى» په باره کښې نص قطعى دې او په دې باندې سخت وعيد دې، په قران کريم کښې مذکور دې، لهذا دې باره کښې خو د چا اختلاف بالکل نشته، که اختلاف دې نو د جنګ بدر نه علاوه په باقى

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٣١٦) (صحيح)

جنګونو کښې دې، د جمهورو مسلک خو هم دا دې چه کوم حکم د بدر دې هم هغه حکم د روستو جنګونو دې، خو بهرحال جائز دې، اوس نزدې تیر شو مصابرة الواحد بالعشرة او مصابرة الواحد بالاثنین بیان، او په دې کښې دویم قول دا دې چه د تولي یوم الزحف حرمت خاص دې د جنګ بدر سره چه د هغې څو قرائن دی، مثلاً خپله په آیت کریمه کښې تصریح ده د ﴿ یومئذ ﴾ د دې نه مراد جنګ بدر دې، دویم دا چه د جنګ بدر نه پس په جنګ احد کښې د صحابه کرامو تیختنه موندلې شوې ده او په دې باندې هیڅ وعید او تعنیف اونکړې شو، هم دغه شان په یوم حنین کښې هم تولی بیا موندلې شوې ده، کما قال تعالی ﴿ثم ولیتم مدبرین ﴾ د دې دویمې رائې په قائلینو کښې د صحابه کرامو نه ابو سعید خدری او تابعینو کښې نافع، حسن، قتاده وغیره حضرات دی، دا خلق د دې خبرې قائل دی چه دا آیت کریمه کوم چه د جنګ بدر په باره کښې نازل شوې دې چه په هغې کښې په فرار من الزحف باندې سخت وعید دې، منسوخ الحکم دې او آیت الضعف دا منسوخ کړو : ﴿ اَلْاٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا ﴾، د دې جماعت په نزد د دې دویم آیت کریمه د نزول نه پس اول حکم منسوخ شو او فرار من الزحف کبیره ګناه پاتې نه شوه، جمهور وائی چه د جنګ بدر والا آیت منسوخ نه دې بلکه هغه د همیشه دپاره دې، خو په شرط د ضعف یعنی که مشرکین د دوچند نه زیات نه وی، او د آیت وعید د نه منسوخ کیدو دلیل دا دې چه د آیت وعید نزول انقضاء حرب او قتال نه پس شوې دې، بیا منسوخ کیدې څنګه شی، امام قرطبی رحمه الله فرمائی ﴿ والی هذا ذهب مالک والشافعی اکثر العلماء وفی صحیح مسلم عن ابی هریرة ان رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال اجتنبوا السبع الموبقات ﴾ او په دې حدیث کښې د دغه اووه موبقات نه یو تولی عن الزحف هم دې، قال القرطبی وهذا نص فی المسئلة. پاتې شوه دا خبره چه په جنګ احد کښې تیختنه موندلې شوې وه، نو جواب دا دې چه هلته فراراً اکثر من الضعف نه وو ﴿ ولا خلاف فی جوازه ﴾، او دا وئیل هم صحیح نه دی چه په هغه باندې تعنیف نه دې کړې شوې، او هم دا حال د فرار یوم حنین دې، او دا چه وئیلې شی چه ایت وعید د یوم بدر سره خاص دې ځکه چه په آیت کریمه کښې د ﴿ یومئذ ﴾ تصریح ده، نو جمهور دا جواب ورکوی چه د دې نه مراد یوم بدر نه دې بلکه مطلق یوم الزحف دې چه په هغې باندې د الله پاک قول ﴿ اذا لقیتم الذین کفروا زحفا ﴾ دال دې، لهذا د تخصیص بنیاد ختم شو، او دا چه په حدیث الباب کښې د ابن عمر د فرار واقعه ذکر ده نو په د ې کښې دواړه احتماله دا کیدې شی چه د هغوی فرار من الضعف وی، دویم دا چه د اکثر من الضعف نه وی [1]، که دویم دې، نو بیا خو هیڅ اشکال نشته او که اولنې صورت دې نو د

---

[1] د شارحینو میلان هم دې طرف ته معلومیږی چه د صحابه کرامو چه کومې د فرار قصې پیښې شوې وې هغه اکثر د ضعف د وجې نه دی کومې چه اصولاً جائز دی بیا به په دې باندې دا اشکال وی چه اکثر د من الضعف نه فرار خو هسې هم جائز دې تحیز الي فئة وی یا نه وی، رسول الله ﷺ دا په تحیز الی فئة باندې ولې محمول کوی؟ د دې جواب دا دې چه د صحابه کرامو حال ته کتلو سره په دې وجه چه هغوی خو به د دوچند او درې چند نه هم تیختنه عام طور سره نه کوله، لهذا د هغوی د تسلی دپاره)

حضرت گنگوهی په تقریر کښې دی چه چونکه دلته قصه کښې د هغوی ندامت بلکه شدت ندامت مذکور دې کوم چه په حقیقت کښې توبه ده نو په دې وجه دا خلق په وعید کښې داخل نه شو، او رسول اللهﷺ هم هغوی معاف کړل، امام قرطبی د دې د لاندې د بعض علماء کرامو چه په هغوی کښې ابن الماجشون هم دې نه دا نقل کړې دی چه په مسئله د فرار کښې د ضعف، قوت او عدة لحاظ هم ضروری دې لهذا د مسلمین او مشرکین تعداد برابر کیدو په صورت کښې هم که د قوة او عدة په لحاظ سره مشرکین د مسلمانانو نه دوچند وی نو بیا هم فرار جائز دې، هغه فرمائی خو د جمهورو په نزد چه ترڅو پورې مشرکین د دوچند نه زیات نه وی فرار جائز نه دې، او د زیادت په صورت کښې هم صبر او استقلال اولی دې، بیا د دې نه روستو هغوی د صحابه کرامو بعض جنګونه په مثال کښې پیش کړل لکه په غزوه موته کښې د مسلمانانو لښکر چه د هغوی تعداد صرف درې زره وو او هغوی د دوه لاکهو په مقابله کښې مضبوط ولاړ وو، چه په هغې کښې یو لاکهـ خو رومیان وو یعنی عجمی، او یو لاکهـ د قبیله لخم او جزام عرب وو، الی اخر ما ذکر والحدیث اخرجه النسائی قاله المنذری.

وهذا اخر ما اردت ایراده فی هذا الباب، والی هنا تم الجزء الثالث من بذل المجهود، ونسأ الله تعالی التوفیق والتسدید فی جمیع الخیرات واتمام هذا الشرح، وما ذلک علی الله بعزیز.

## بَابٌ فِي الْأَسِيرِ يُكْرَهُ عَلَى الْكُفْرِ

### بیان د هغه مسلمان قیدی چه په کفر کولو باندې مجبوره کړې شی

د اسیر نه مراد مسلمان قیدی دې لکه چه ظاهره ده، د هغه ترجمة الباب نه چه څو صفحات پس راځی ﴿ باب فی الاسیر یکره علی الاسلام ﴾ هلته د اسیر نه مراد کافر قیدی دې، لهذا دا دواړه ترجمة الباب په خپل مینځ کښې متقابلین دی، دغه شان د کفر نه مراد دلته د کفر حقیقت نه دې مراد بلکه اجراء کلمة الکفر علی اللسان مراد دې، یعنی دا جائز ده یا ناجائز؟ جواب دا دې چه په دې کښې تفصیل دې په دې کښې به دا کتلې شی چه د اکراه دپاره ذریعه او صورت څه اختیارولې شی، پس که اکراه علی الکفر د داسې څیز په ذریعه وی چه په هغې سره ئې د قتل کیدو خطره وی یا ئې په اندامونو کښې د یو اندام د ضائع کیدو خطره وی نو د هغه دپاره ګنجائش شته د کفر د اظهار کولو، او هغه له پکار دی چه توریه اوکړی، پس که هغه داسې اوکړل او حال ئې دا وی چه د هغه زړه په ایمان باندې مطمئن وی نو ﴿ فلا اثم علیه ﴾، او که د صبر او استقلال نه کار واخلی او د کفر اظهار اونکړی تردې چه قتل کړې شی نو ﴿ کان ماجورا ﴾ کذا فی الهدایة، د دې نه معلومه شوه چه د کفر د اظهار ګنجائش او د هغې رخصت په داسې قسم اکراه کښې دې چه په هغې کښې د ساه د تلو یا کم از کم د یو اندام د ضائع کیدو خطره وی د کومې نه چه اصولین په اکراه ملجئ سره تعبیر کوی یعنی داسې اکراه چه په هغې کښې د الجاء او اضطرار معنی بیا موندلې شی، او که اکراه د دې نه د کمې درجې څیز وی مثلا ضرب، حبس وغیره نو بیا د اظهار کفر اجازت نشته.

[۲۶۴۹]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ، وَخَالِدٌ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ خَبَّابٍ، قَالَ: أَتَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُتَوَسِّدٌ بُرْدَةً فِي ظِلِّ الْكَعْبَةِ فَشَكَوْنَا إِلَيْهِ فَقُلْنَا: أَلَا تَسْتَنْصِرُ لَنَا أَلَا تَدْعُو اللَّهَ لَنَا فَجَلَسَ مُحْمَرًّا وَجْهُهُ، فَقَالَ: "قَدْ كَانَ مَنْ قَبْلَكُمْ يُؤْخَذُ الرَّجُلُ فَيُحْفَرُ لَهُ فِي الْأَرْضِ، ثُمَّ يُؤْتَى بِالْمِنْشَارِ فَيُجْعَلُ عَلَى رَأْسِهِ فَيُجْعَلُ فِرْقَتَيْنِ مَا يَصْرِفُهُ ذَلِكَ عَنْ دِينِهِ، وَيُمْشَطُ بِأَمْشَاطِ الْحَدِيدِ مَا دُونَ عَظْمِهِ مِنْ لَحْمٍ وَعَصَبٍ مَا يَصْرِفُهُ ذَلِكَ عَنْ دِينِهِ وَاللَّهِ لَيُتِمَّنَّ اللَّهُ هَذَا الْأَمْرَ حَتَّى يَسِيرَ الرَّاكِبُ مَا بَيْنَ صَنْعَاءَ وَحَضْرَمَوْتَ مَا يَخَافُ إِلَّا اللَّهَ تَعَالَى، وَالذِّئْبَ عَلَى غَنَمِهِ وَلَكِنَّكُمْ تَعْجَلُونَ".

**ترجمه:** د خباب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږ دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو اوهغه په يوڅادر کښې د کعبې سورې نه ډډه وهلې وه مونږ ورته شکايت اوکړو دمشرکينودطرف نه اوعرض مو ورته اوکړو چه ايا زمونږ دپاره دالله پاک نه امداد نه غواړئ؟ آيا تاسو دالله تعالى نه زمونږ دپاره دعا نه غواړئ؟ نبي عليه السلام چه دا واوريدل نوکيناستو او مخ ئې دغصې نه سور شو او وئې فرمائيل ستاسونه مخکښې په تيرو شوو امتونوکښې د دين داريئ په وجه باندې به يوسړې اونيولې شو او په زمکه کښې به خښ کړې شو اوبيابه اره راوړل شوه اودده په سرباندې به کيخود شوه اوهغه به په ريبلوسره دوه ځائې کړې شو اوحال دادې چه ددې عمل ويرې به ده لره دخپل دين نه نه منع کوو اود اوسپنې گمنزې به راوړلې شوې دهغه غوښه اوپلې به دهډوکې نه او تراشلې شوه او دهغه به دخپل دين نه نه اوريدو په الله مې دې قسم وي الله تعالى به داخپل دين خامخا پوره کوي تردې چه يوسړې به دصنعاء مقام نه دحضرموت پورې لاړشي اودالله نه به علاوه دبل څيزته نه ويريږي ياداچه پخپلو گډو او چيلوبه ديو درنده نه ويريږي، خو تاسو جلدبازي کوئ.

**تشريح:** د دې حديث راوى سيدنا خباب رضي الله عنه دې کوم چه د قديم الاسلام صحابه کرامو نه دې، د رسول الله صلى الله عليه وسلم د هجرت نه مخکښې په اسلام قبلونکو کښې دې، چاته چه د اسلام د خاطره د کفارو د لاس نه ډير مصيبتونه رسيدلې دى، کوم مضمون چه هغه دې وخت کښې بيانوى هغه هم د دې قسم دې، هغه فرمائى مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې راغلو او هغه د کعبة الله په سورى کښې د خپل څادر نه تکيه جوړه کړې وه او ملاست وو، مونږ هغه ته خپل حال عرض کړو او دا عرض مو هم ورته اوکړو چه تاسو د الله پاک نه زمونږ نصرت ولې نه غواړئ، زمونږ دپاره د الله پاک نه دعا ولې نه غواړئ، د هغه صحابى د سوال دا طرز د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د هغه د هغه شفقت او رأفت په بناء باندې وو چه د هغې به دې حضراتو مشاهده کوله څنګه چه اولاد پريشانه کيدو سره د مصيبت په وخت خپل مور او پلار ته گله کوى، او د هغه صلى الله عليه وسلم شفقت خو په امت باندې د مور او پلار نه ډير زيات وو.

﴿فجلس محمرا وجهه﴾ د دې سوال په جواب کښې د هغه طرز عمل هم هغه وو کوم چه د يو شفيق، مربى او مرشد کيدل پکار دى، پس رسول الله صلى الله عليه وسلم غصه کيناستلو، مخ مبارک ئې سور شو او وې فرمائيل چه ستا نه مخکښې د تيرو امتونو بعض مومنان داسې تير شوې

(): صحيح البخاري/المناقب ۲۲ (۳٤٦٦) ۲۵ (۳۸۲۹)، والإكراه ۱ (٦٥٤٤)، (تحفة الأشراف: ۳۵۱۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۰۹/۵، ۱۱۰، ۱۱۱، ۳۹۵/٦) (صحيح)

دی چه هغه به دشمنانو نیول بیا به ئې ورله کنده ویستله او په هغې کښې به ئې اودرول، او بیا به اره راوړلې شوه او د هغه په سر باندې به هغه چلولې شوه چه په هغې سره به د هغه د سر دوه ټکړې شو، دې مصیبت به هم هغه د خپل دین نه نه شو ستنولې، او هم دغه شان د بعض خلقو په بدنونو باندې به د اوسپنې ګومنځې راښکلې شوې چه هغې به د هډوکی نه علاوه باقي ټوله غوښه پرې کړله، هغه سړې به دې مصیبت هم د هغه د دین نه نه شو لرې کولې، دا خو د تیرو شوو اهل ایمان د صبر او استقلال بیان وو. د صحابه کرامو د تشجیع او د هغوی د حوصله افزائی دپاره، وړاندې ورته رسول الله ﷺ د پیشن ګوئۍ په طور د هغوی د تسلۍ دپاره یقین ورکوی چه والله الله پاک به زمونږ دا دین داسې خوروی چه یواځې به یو سور د صنعاء او حضرموت ترمینځه مزل کوی چه هغه ته به د هیڅ قسم کافر او دشمن ویره نه وی، سوا د الله پاک د ویرې نه او سوا د لیوه د ویرې نه په خپلو ګډو بیزو باندې. ﴿ولکنکم تعجلون﴾ خو تاسو تندی کوئ، شارحینو لیکلې دی چه د صنعاء نه مراد په ظاهره کښې صنعاء الیمن دې چه د هغې او د حضر موت ترمینځه د پنځو ورځو لاره ده ځکه چه حضرت موت په اقصاء یمن کښې دې او کیدې شی چه د صنعاء نه صنعاء الشام مراد وی.

د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت هم ظاهر دې ځکه چه په حدیث کښې د تیرو امتونو د اهل ایمان چه کومه اکراه ذکر کړې شوې ده د هغې بیان دې، والحدیث اخرجه البخاری والنسائی قاله المنذری.

## بَابٌ فِي حُكْمِ الْجَاسُوسِ إِذَا كَانَ مُسْلِمًا

### دهغه مسلمان حکم چه د کافرانو دپاره جاسوسی اوکړی

یعنی که یو سړې سره د مسلمان کیدو باوجود، د مسلمانانو خلاف جاسوسی کوی نو د هغه څه حکم دې؟

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه

جواب دا دې چه د جمهورو په نزد چه په هغوی کښې احناف او شوافع هم دی نو داسې سړی ته به تعزیر کولې شی او هغه به قتل کولې نه شی، او د امام مالک رحمه الله رائې دا ده چه په دې کښې امام ته اختیار دې چه څنګه هغه مناسب ګڼړی ګویا د هغه په نزد قتل کولې هم شی، امام خطابی رحمه الله په معالم السنن کښې د امام شافعی رحمه الله په دې کښې تفصیل نقل کړې دې چه که یو سړې صاحب حیثیت او مخوریز وی او په ناپوهې کښې هغه داسې کړې وی لکه چه د حضرت حاطب رضی الله عنه نه د دې صدور شوې وو، نو زه غوره ګڼړم چه هغه معاف کړې شی، او که هغه سړې مخوریز نه وی نو امام ته د هغه د تعزیر اختیار دې. اه علامه عینی (ج ۱۲ ص ۷۵) کښې د داودی نه نقل کړې دی چه د امام شافعی او د یو جماعت مسلک دا دې چه د مسلمان جاسوس دې تعزیر اوکړې شی، ولا یجوز قتله، او که مخوریز وی نو هغه دې معاف کړې شی د قصه «حاطب رضی الله عنه» د وجې نه، او د امام ابوحنیفه او اوزاعی نه منقول دی چه هغوی ته دې سخته سزا ورکړې شی، او تر ډیر وخته پورې دې په قید کښې اوساتلې شی او د بعض علماء کرامو نه منقول دی چه که د هغه عادت هم دا

وی نو هغه دې قتل کړې شی ﴿ وبه قال ابن الماجشون ﴾ اهـ مختصرا، امام شافعی رحمه الله چه په دې کښې کوم د هيئت او غير ذی الهيئة فرق کړې دې غالبا د هغه حديث په وجه باندې کوم چه به ابوداود کښې روستو راشی.

[ ٢٦٥٠ ] ( ) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، حَدَّثَهُ الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ، أَخْبَرَهُ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي رَافِعٍ، وَكَانَ كَاتِبًا لِعَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيًّا يَقُولُ: بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَالزُّبَيْرَ وَالْمِقْدَادُ فَقَالَ: انْطَلِقُوا حَتَّى تَأْتُوا رَوْضَةَ خَاخٍ فَإِنَّ بِهَا ظَعِينَةً مَعَهَا كِتَابٌ فَخُذُوهُ مِنْهَا، فَانْطَلَقْنَا تَتَعَادَى بِنَا خَيْلُنَا حَتَّى أَتَيْنَا الرَّوْضَةَ فَإِذَا نَحْنُ بِالظَّعِينَةِ، فَقُلْنَا: هَلُمِّي الْكِتَابَ فَقَالَتْ: مَا عِنْدِي مِنْ كِتَابٍ فَقُلْتُ: لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ أَوْ لَنُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ فَأَخْرَجَتْهُ مِنْ عِقَاصِهَا فَأَتَيْنَا بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا هُوَ مِنْ حَاطِبِ بْنِ أَبِي بَلْتَعَةَ إِلَى نَاسٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ يُخْبِرُهُمْ بِبَعْضِ أَمْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "مَا هَذَا يَا حَاطِبُ؟ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ لَا تَعْجَلْ عَلَيَّ فَإِنِّي كُنْتُ امْرَأً مُلْصَقًا فِي قُرَيْشٍ وَلَمْ أَكُنْ مِنْ أَنْفُسِهَا وَإِنَّ قُرَيْشًا لَهُمْ بِهَا قَرَابَاتٌ يَحْمُونَ بِهَا أَهْلِيهِمْ بِمَكَّةَ، فَأَحْبَبْتُ إِذْ فَاتَنِي ذَلِكَ أَنْ أَتَّخِذَ فِيهِمْ يَدًا يَحْمُونَ قَرَابَتِي بِهَا، وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا كَانَ بِي مِنْ كُفْرٍ وَلَا ارْتِدَادٍ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صَدَقَكُمْ فَقَالَ عُمَرُ: دَعْنِي أَضْرِبْ عُنُقَ هَذَا الْمُنَافِقِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَدْ شَهِدَ بَدْرًا وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ اللَّهَ اطَّلَعَ عَلَى أَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ: اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ.

**ترجمه:** دعلی رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام زه اوزبير اومقداد اوليږلو او وئې وئيل: تاسو لاړ شئ تردې چه روضه خاخ ته اورسئ اوهلته داوښ په کجاوه کښې يوه ښځه ناسته ده اودهغې سره يوخط دی هغه دهغې نه واخلئ، مونږه خپل اسونه وزغلول تردې چه روضه خاخ ته اورسيدو او په کجاوه کښې موهغه ښځه اوموندده مونږورته اووئيل خط را اوباسه هغې اووئيل ماسره هيڅ خط نشته ماورته اووئيل خامخا به خط راوباسې اوکه نه نو مونږ به دې بربنډه کړو نوهغې دخپلو کمخونه خط راوويستو اوهغه خط مونږه نبی عليه السلام ته راوړو او په هغه خط کښې د حاطب رضی الله عنه بن أبی بلتعه دطرف نه دمکې مشرکينوته دنبی عليه السلام دجنګې حالاتو معلومات ليکلې شوي وو نونبی عليه السلام حاطب راوغوښتو او ورته ئې اووئيل دا څه دي اې حاطب حاطب اووئيل اې دالله رسوله ماته په سزارا کولو کښې جلتې اونه کړې زه يوداسې سړې يم چه دقريشو حليف يم اودهغوی په مذهب نه يم کوم خلق چه قريش دي په مکه کښې دهغوی رشته دار اوسيږي دمکې مشرکان دهغوی درشته دارئ په وجه باندې ددوی دمال او داهل عيال نګراني کوي چونکه زما ددوی سره څه رشته داري نشته نوما اوغوښتل چه زه ددوی دپاره څه داسې کار اوکرم چه دهغې په وجه باندې دمکې مشرکان زمادښځې اوبچو حفاظت اوکړي اې دالله رسوله په الله مې دې قسم وي ماداکار دکفر اودمرتد کيدو په وجه باندې نه دې کړې نبی عليه السلام چه دا واوريدل نوونې فرمائيل حاطب رښتيا اووئيل عمر رضی الله عنه عرض اوکړو چه ماته ددې منافق دځټ دوهلو اجازت راکړه نبی عليه السلام اوفرمائيل دې خوپه غزوه بدرکښې شريك شوې وو تاته څه پته ده چه الله تعالی د

( ): صحيح البخاري/الجهاد ١٤١ (٣٠٠٧)، والمغازي ٩ (٣٩٨٣)، وتفسير الممتحنة ١ (٤٨٩٠)، صحيح مسلم/الفضائل الصحابة ٣٦ (٢٤٩٤)، سنن الترمذي/تفسير القرآن ٦٠ (٣٣٠٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧٩/١، ٢٩٦٧/٢) (صحيح)

اهل بدر په باره کښې فرمائیلی دی چه څه موخوښه وي هغه کوئ ماتاسوته بخښنه کړې ده.

## شرح حدیث

**قوله:حَتَّى تَأْتُوا رَوْضَةَ خَاخٍ فَإِنَّ بِهَا ظَعِينَةً مَعَهَا كِتَابٌ..الخ:**

مصنف په دې باب کښې د سیدنا حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه واقعه ذکر فرمائیلې ده چه د هغې راوی سیدنا علی رضی الله عنه دی.

هغه فرمائی چه رسول الله ﷺ زه زبیر او مقداد رضی الله عنهم اولیږلو او ورته ئې اوفرمائیل چه د مکې طرف ته لاړ شئ تردې چه کله تاسو روضه خاخ ته اورسیږئ نو تاسو به هلته یوه زنانه بیا مومئ چه هغه به په کجاوه کښې ناسته وی چه هغې سره یو لیک دې او هغه ترې راوړئ، سیدنا علی رضی الله عنه فرمائی چه مونږ دې طرف ته لاړو، زمونږ اسونو مونږ په منډه کړې وو، تردې چه کله مونږ هغه مقام ته اورسیدو کومې ته چه روضه خاخ وئیلې شی نو مونږ هلته د رسول الله ﷺ د خبر مطابق یوه زنانه اولیده چه په کیجاوه کښې ناسته وه، نو مونږ هغې ته اووې چه تا سره چه کوم خط دې هغه راکړه، هغې انکار اوکړو چه ما سره هیڅ قسم خط نشته، ما ورته اووې چه یا خو ته هغه خط راکړه کینې مونږ به ستا نه جامې اوباسو، یعنی د تلاشئ دپاره ﴿ فاخرجته عن عقاصها ﴾ نو هغې د خپلې کمسئ نه هغه خط راویستلو، او په یو روایت کښې دی ﴿ فاخرجته من حجزتها ﴾ یعنی هغې د خپل لنګ نه راویستلو، او جمع بین الروایتین داسې کړې شوې ده چه ممکنه ده چه هغې اولا دا خط د خپلې کمسئ په ول کښې داخل کړې وی او د هغې کمسئ چونکه اوږده وه نو په دې وجه ئې هغه په خپله بډه کښې پټه کړې وی، وړاندې په روایت کښې دی علی رضی الله عنه فرمائی چه د هغه خط سره مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو چه د هغې په شروع کښې دا لیکلې شوې وو ﴿ من حاطب بن ابی بلتعه الی ناس من المشرکین ﴾ او بیا چه وړاندې رسول الله ﷺ د غزوة الفتح کومه اراده کړې وه د هغې خبر ورکړې شوې وو، او د دې نه روستو روایت کښې د دې خط دا الفاظ منقول دی. ان محمدا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قد سار الیکم، او په یو روایت کښې دی، کما فی البذل.أن رسول الله ﷺ قد توجه الیکم بجیش کاللیل یسیر کالسیل،، یعنی محمد ﷺ په مکه باندې حمله کونکې دې دخپل لوئې لښکرسره کوم چه د شپې په شان دې یعنی دهغوی په تلو سره زمکه داسې تیاره شی لکه چه شپه وی، اوکوم چه په تیز رفتارئ او تیز تلو کښې د اوبو د بهیدو پشان دی.

او په الابواب والتراجم (ص ۲۵۸، ج ۴) کښې حضرت شیخ د علامه عینی رحمه الله نه د دې خط د الفاظ نقل کړې دی، ﴿ یا معشر قریش فان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جاءکم بجیش کاللیل یسیر کالسیل فوالله لو جاءکم وحده نصره الله علیکم وانجز له وعده فانظروا لانفسکم والسلام ﴾ اه امام بخاری رحمه الله دا قصه په کتاب الجهاد کښې په باب الجاسوس وغیره کښې او په کتاب المغازی کښې په باب غزوة الفتح وما بعث حاطب بن ابی بلتعة الی اهل مکة کښې ذکر کړې ده او په کتاب التفسیر وغیره کښې هم.

## د حديث مضمون

﴿ فقال : ما هذا يا حاطب فقال : يا رسول اللهﷺ لا تعجل على الخ ﴾ چه کله رسول اللهﷺ ته دا خط راورسيدو نو هغه حاطب راوغوښتلو او تپوس ئي ترې اوکړو چه دا تا څه اوکړل؟ نو هغه عرض اوکړو چه يا رسول اللهﷺ تاسو په خپله يوه فيصله کښې هم تندى مه کوئ اول زما خبره صفا صفا واورئ هغه دا چه تاسو سره چه کوم صحابه د قريشو د خاندان نه دى نو چونکه په مکه مکرمه کښې د قريشو خاندان موجود دې، لهذا ستا د صحابه کرامو بعض خپلوان په مکه کښې موجود دى نو هغه د هغوى د دې خپلولئ په وجه باندې د هغوى د اهل وعيال حمايت او حفاظت کوى او بنده خو اصالة د قريشو نه نه دې بلکه زه خو د هغوى سره د حليف کيدو په حيثيت باندې يوځائې شوې اوم نو زما چه کوم خپلوان په مکه کښې دى نو د هغوى د حمايت او حفاظت دپاره ما دا سوچ اوکړو چه په کفار قريش باندې څه احسان اولرم چه د هغې د وجې نه هغوى زما د خپلوانو خيال اوساتى، او هغه قسم کولو سره عرض اوکړو چه والله يا رسول اللهﷺ د دې نه علاوه يوه خبره هم د کفر او ارتداد په ما کښې موجود نه ده، رسول اللهﷺ د هغه خبره په غور سره واوريدله او صحابه کرامو ته ئې اوفرمائيل ﴿ صدقکم ﴾ دې چه څه وائى دا رشتيا دى، ګويا رسول اللهﷺ هغه معذور اوګڼړلو او معاف ئې کړو.

د حديث شارحينو د دې حديث نه چه کوم احکام او فوائد مستفاد کيږى هغه په تفصيل سره ليکلې دى که څوک غواړى نو هلته دې اوګورى. (ينظر العينى ص ۷۵ ج ۱۲) باب الجاسوس)

## شرح حديث

قوله: ﴿ فَقَالَ عُمَرُ: دَعْنِي أَضْرِبْ عُنُقَ هَذَا الْمُنَافِقِ.........وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ[1] اللَّهَ اطَّلَعَ عَلَى أَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ: اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ. ﴾

په دې باندې سيدنا عمرؓ د چا شدت چه د دين په امورو کښې معروف او مشهور دې اودريدو او هغه عرض اوکړو چه ماته اجازت راکړئ چه زه د دې منافق دا سټ اووهم او قتل ئې کړم، په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه دې په جنګ بدر کښې شريک شوې دې او تاته خبر هم شته چه الله پاک په څه شان سره په اهل بدر باندې متوجه شوې دې او د هغوى په باره کښې ئې فرمائيلې دى چه ﴿ اعملوا ما شئتم فقد غفرت لکم ﴾ په دې جمله باندې چه کوم اشکال راځى هغه ظاهر دې ځکه چه په دې سره د اهل بدر دپاره د هر قسم عمل اباحت معلوميږى، کوم چه د منشاء شارع خلاف دې، د دې يوه توجيه دا کړې شوې ده چه د حديث تعلق د تيرو اعمالو سره دې چه هغه ټول معاف کړې شوې دى او د دې تائيد د دې نه هم کيږى چه که د دې تعلق د زمانه مستقبل سره هم وى نو د لفظ ماضى په ځائې به داسې وئيلې کيدل ﴿ فاغفره لکم ﴾، خو په دې توجيه باندې يو قوى اشکال دا دې چه که دا

[1] ) ولفظ لعلّ، وان کان للترجي لکن قال العلماء ان الترجي في کلام الله وکلان رسوله للوقوع (بذل) قوله: اطلع بتشديد الطاء، أي اقبل عليهم ونظر اليهم نظر الرحمة والمغفرة (عون).

حکم صرف د ماضی سره متعلق وې نو بیا په د قصه دحاطب کښې د دې نه استدلال څنګه صحیح دې ځکه چه قصه د حاطب خو د بدر نه تقریبا شپږ کاله روستو د فتح مکه نه مخکښې پیښه شوې ده، بلکه توجیه دا ده چه دا خصوصیت دې د اهل بدر او الله پاک ته اختیار حاصل دې په خپلو وعیدونو نافذ کولو او نه نافذ کولو کښې، ﴿ لَا يُسْأَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْأَلُونَ ﴾ ففي العيني وفيه الحجة لترک انفاذ الوعيد من الله تعالى لمن شاء ذلک اهـ یعنی د اهل بدر د دې عظیم کارنامې د وجې نه د هغوی تیر شوی ګناهونه معاف کړې شوې دی او راروان وخت کښې هم که وقوع راشي نو هغوی د دې اهل او مستحق دی چه هغه هم معاف کړې شی لکه چه په دنیوی حکومتونو کښې هم د بعض خلقو د کارنامو د وجې نه د هغوی په حق کښې په طور د انعام د وفادارئ په حق کښې بعض ویني (قتلونه) معاف کولې شی، یعنی بالفرض که د هغوی نه داسې اوشی نو هغوی به رانیولې نه شی او دا مقصد نه دې چه هغه ته د قتل اجازت یا ترغیب ورکولې شی، نور هم بعض توجیهات په بذل وغیره شروحات کښې ذکر دی. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي، قاله المنذري.

[٢٦٥١]()حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ قَالَ: انْطَلَقَ حَاطِبٌ فَكَتَبَ إِلَى أَهْلِ مَكَّةَ أَنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ سَارَ إِلَيْكُمْ وَقَالَ: "فِيهِ، قَالَتْ: مَا مَعِي كِتَابٌ، فَانْتَحَيْنَاهَا فَمَا وَجَدْنَا مَعَهَا كِتَابًا فَقَالَ عَلِيٌّ: وَالَّذِي يُحْلَفُ بِهِ لَأَقْتُلَنَّكِ أَوْ لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ"، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه:** د علی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه حاطب بن أبی بلتعه دمکی مشرکینوته دنبی علیه السلام دجنګې حالاتو معلومات لیکلې وو چه نونبی علیه السلام په تاسوباندې حمله کونکی دي اوپه دې روایت کښې داهم دي چه هغه ښځې ووئیل ماسره خو خط نشته نوموږ ددې اوښ کینولو اوخط مو ورسره پیدانه کړو، علي رضی الله عنه فرمائي چه ماورته ووئیل په هغه ذات مې دې قسم وی په چاچه قسم خوړلې شي که خط نه را اوباسې نوقتل به دې کړم یا خط راکړه، اوباقی روایت ئې دتیر روایت په شان بیان کړو.

**تشریح:** د سیدنا حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه څه حال په بذل کښې ذکر دې هم د هغه په باره کښې دا آیت کریمه نازل شوې دې ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ ﴾

## بَابٌ فِي الْجَاسُوسِ الذِّمِّيِّ

### بیان د ذمی چه د کافرانو دپاره جاسوسی وکړی

### د جاسوسی کونکی حکم

ذمی که د مسلمانانو خلاف جاسوسی کوی نو د هغه دا فعل به نقض عهد کښې شمارلې کیږی یا نه؟ د جمهورو په نزد نه شمارلې کیږی، د امام مالک رحمه الله په نزد دا نقض عهد دې لهذا د هغوی په نزد په دې بناء باندې د هغه قتل جائز دې او د جمهورو په نزد د

() : صحيح البخاري/ الجهاد ١٩٥ (٣٠٨١)، المغازي ٩ (٣٩٨٣)، الاستئذان ٢٣ (٦٢٥٩)، صحيح مسلم/ فضائل الصحابة ٣٦ (٢٤٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٠١٦٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٠٥، ١٣١) (صحيح)

هغه قتل جائز نه دې، كذا في البذل عن النووي، وړاندې امام نووي رحمه الله فرمائي چه په دې صورت کښې د شوافعو په نزد هم په جاسوسئ سره انتقاض عهد کيږي يعنی که د دې شرط لګولې شوې وی، او که کافر جاسوس حربی وی نو د هغه قتل بالاجماع جائز دی، د مسلمان جاسوس حکم خو د باب په شروع کښې تير شوې دې، ذكر هذه الاحكام الامام نووی لكن لم يتعرض لحكم الجاسوس المستامن والظاهر والله تعالى اعلم عدم الجواز فانه اشبه بالذمي.

[۲۶۵۲](۱)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ مُحَبَّبٍ أَبُو هَمَّامٍ الدَّلَّالُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ حَارِثَةَ بْنِ مُضَرِّبٍ، عَنْ فُرَاتِ بْنِ حَيَّانَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِهِ، وَكَانَ عَيْنًا لِأَبِي سُفْيَانَ وَكَانَ حَلِيفًا لِرَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَمَرَّ بِحَلْقَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَقَالَ: إِنِّي مُسْلِمٌ، فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهُ يَقُولُ إِنِّي مُسْلِمٌ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنْكُمْ رِجَالًا نَكِلُهُمْ إِلَى إِيمَانِهِمْ مِنْهُمْ فُرَاتُ بْنُ حَيَّانَ".

**ترجمه:** دفرات بن حیان رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دده قتلولو حکم کړې وو اودې دابوسفیان جاسوس وو اودیو مسلمان انصاري په پناه کښې وو، یوځل دانصارو په یوه ډله باندې تیریدو اووئې وئیل چه زه مسلمان یم نوپه انصاروکښې یوکس ووئیل اې دالله رسوله دې خووائی چه زه مسلمان یم، نبی علیه السلام اوفرمائیل په تاسوکښې بعضې کسان داسې دي چه مونږئې خپلو ایمانونوته حواله کوویو دهغوی نه فرات بن حیان دې.

**تشریح:** فرات بن حیان کومه چه په دې واقعه مذکوره فی الحدیث نه پس اسلام قبول کړې وو هغه وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم زما د قتل حکم کړې وو او حال دا چه زه د ابو سفیان د طرف نه د جاسوس په شکل راغلې اوم، او دې هغه وخت د یو انصاری صحابی حلیف وو، پس د انصارو په یو جماعت باندې هغه راتیر شو نو وې وئیل زه مسلمان یم، نو یو انصاری سړی نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو اې دالله رسوله صلی الله علیه وسلم ! دې خو داسې وائی چه زه مسلمان یم،حال دا چه تاسو د هغه د قتل حکم کړې دې، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې اوریدلو سره اوفرمائیل چه بیشکه په تاسو کښې بعض سړی داسې دی چه مونږ هغوی ته معامله سپارو د هغوی د ایمان طرف ته، یعنی د هغوی د ایمان دعوی قبلوو، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل هم په هغوی کښې یو فرات بن حیان هم دې.

## د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت

دا حدیث په ظاهره کښې د ترجمة الباب سره مطابقت نه خوری، ځکه چه فرات بن حیان ذمی چرته وو، هغه خو به د ابو سفیان د طرف نه جاسوسی کوله، لهذا کافر حربی شو، د دې توجیه دا کیدې شی چه دلته په روایت کښې تصریح ده د دې خبرې چه هغه بعض انصارو حلیف وو، لهذا په منزله د ذمی شو.

---

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۲۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۳۶/۴) (صحيح)

## بَابٌ فِي الْجَاسُوسِ الْمُسْتَأْمَنِ

### بیان دهغه جاسوس کافر چه د مسلمانانو نه امن وغواړي او جاسوسي کوي

قوله: ﴿ حدثني ابي قال : غزوت مع رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هوازن ﴾ رسول الله ﷺ چه کله د غزوه حنین دپاره تشریف اوړلو نو د هغه د سفر ترمینځه دا واقعه ده کومه چه د سلمه بن الاکوع رضي الله عنه خوئي ایاس بن سلمه بیانوی.

[٢٦٥٣] (١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا، قَالَ أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا أَبُو عُمَيْسٍ، عَنِ ابْنِ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَيْنٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَهُوَ فِي سَفَرٍ فَجَلَسَ عِنْدَ أَصْحَابِهِ ثُمَّ انْسَلَّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اطْلُبُوهُ فَاقْتُلُوهُ"، قَالَ: فَسَبَقْتُهُمْ إِلَيْهِ فَقَتَلْتُهُ وَأَخَذْتُ سَلَبَهُ فَنَفَّلَنِي إِيَّاهُ.

**ترجمه:** سلمة بن الاکوع فرمائی چه نبی علیه السلام ته دمشرکانو یوجاسوس راغي اوهغه ﷺ د سفر په دوران کښې وو هغه جاسوس دصحابه کرامو سره کیناستو، څه وخت پس بیا پټ شان اووتو نبی علیه السلام اوفرمائیل اوئي لټوئ اوقتل ئي کړئ، راوي وائی چه زه دنوروصحابه کرامونه مخکښې شوم او دې مې اوموندو اوقتل مې کړو اودده سامان مې واخستو، نو نبی علیه السلام دهغه سامان ماته راکړو.

[٢٦٥٤] (٢) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ هَاشِمَ بْنَ الْقَاسِمِ، وَهِشَامًا حَدَّثَاهُمْ، قَالَا: حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ، قَالَ: حَدَّثَنِي إِيَاسُ بْنُ سَلَمَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَوَازِنَ قَالَ: فَبَيْنَمَا نَحْنُ نَتَضَحَّى وَعَامَّتُنَا مُشَاةٌ وَفِينَا ضَعَفَةٌ، إِذْ جَاءَ رَجُلٌ عَلَى جَمَلٍ أَحْمَرَ فَانْتَزَعَ طَلَقًا مِنْ حَقْوِ الْبَعِيرِ فَقَيَّدَ بِهِ جَمَلَهُ ثُمَّ جَاءَ يَتَغَدَّى مَعَ الْقَوْمِ فَلَمَّا رَأَى ضَعَفَتَهُمْ وَرِقَّةَ ظَهْرِهِمْ خَرَجَ يَعْدُو إِلَى جَمَلِهِ فَأَطْلَقَهُ ثُمَّ أَنَاخَهُ، فَقَعَدَ عَلَيْهِ ثُمَّ خَرَجَ يَرْكُضُهُ وَاتَّبَعَهُ رَجُلٌ مِنْ أَسْلَمَ عَلَى نَاقَةٍ وَرْقَاءَ هِيَ أَمْثَلُ ظَهْرِ الْقَوْمِ قَالَ: فَخَرَجْتُ أَعْدُو فَأَدْرَكْتُهُ وَرَأْسُ النَّاقَةِ عِنْدَ وَرِكِ الْجَمَلِ، وَكُنْتُ عِنْدَ وَرِكِ النَّاقَةِ ثُمَّ تَقَدَّمْتُ حَتَّى كُنْتُ عِنْدَ وَرِكِ الْجَمَلِ ثُمَّ تَقَدَّمْتُ حَتَّى أَخَذْتُ بِخِطَامِ الْجَمَلِ فَأَنَخْتُهُ فَلَمَّا وَضَعَ رُكْبَتَهُ بِالْأَرْضِ اخْتَرَطْتُ سَيْفِي، فَأَضْرِبُ رَأْسَهُ فَنَدَرَ فَجِئْتُ بِرَاحِلَتِهِ وَمَا عَلَيْهَا أَقُودُهَا فَاسْتَقْبَلَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ مُقْبِلًا فَقَالَ: "مَنْ قَتَلَ الرَّجُلَ؟ فَقَالُوا: سَلَمَةُ بْنُ الْأَكْوَعِ فَقَالَ لَهُ: سَلَبُهُ أَجْمَعُ"، قَالَ هَارُونُ: هَذَا لَفْظُ هَاشِمٍ.

**ترجمه:** حضرت سلمه بن الاکوع فرمائی چه زه دنبی علیه السلام په ملګرتیا کښې دهوازن قبیلې په جهاد کښې شریك شوي وم، یوه ورځ مونږ دڅاښت په وخت کښې ډوډۍ خوړله او په مونږکښې اکثر کسان پیدل تلونکي وو او څه ضعیفان وو، نوپه سور اوښ باندې یوکس سور راغې خپل اوښ ئي او تړلو اومونږسره ئي خوراك شروع کړونوچه کله ده زمونږ د ملګرو کمزوري اودسورلوکم والی اولیدونوخپل اوښ ته په منډه ورغې او راپرائي نستوار ورباندې سورشو او په تیز رفتارئ سره لاړو، مونږ ته معلومه شوه چه دا جاسوس دې نوپه انصارو کښې یوکس په خپله غنم رنګه اوښه باندې سورشوکومه چه زمونږ د تولوپه سورلوکښې ښه سورلئ وه، دې شروع شوچه په اوښه سورپه منډه ورخلاص وو

---

١): صحيح البخاري/الجهاد ١٧٣ (٣٠٥١)، (تحفة الأشراف: ٤٥١٤)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجهاد ١٣ (١٧٥٤) مطولاً، سنن ابن ماجه/الجهاد ٢٩ (٢٨٣٦)، مسند احمد (٤/٥٠)، سنن الدارمي/السير ١٥ (٢٤٩٥) (صحيح)

٢): صحيح مسلم/الجهاد ١٣ (١٧٥٤)، (تحفة الأشراف: ٤٥١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٩، ٥١) (حسن)

وړپسې روان وو، او دا دخلقو په سورلوکښې دټولو نه ښه وه، بيا زه ورمخکښې شوم تردې چه هغه مې راواړولو .او حال دا چه داوښې سر د اوښ کوناټو سره وو اوزه د اوښې په شا ووم زه ورمخکښې شوم تردې چه ما داوښ مهار ونيولواو اوښ مې کينولوهرکله چه اوښ په زمکه خپل زنګون کيخودو نوماخپله توره را وويستله دهغه سرمې ووهلو اوپړې مې کړونومادهغه سورلې اودهغه سامان نبی عليه السلام ته راوړو، نبی عليه السلام ماته مخې له راغې او وئې فرمائيل هغه کښې چامړ کړو؟ خلقو ورته ووئيل چه سلمه بن اکوع نبی عليه السلام اوفرمائيل دهغه ټول سامان به ده ته ورکولې شي. نبی کريم ﷺ چه کله د غزوه حنين دپاره تشريف اوړلو نو دهغه سفر په دوران کښې دا واقعه وه کومه چه سلمه بن الاکوع بيانوی

## شرح حديث

په دې غزوه کښې چه د قبيله هوازن سره شوې وه، د رسول الله ﷺ سره زه هم اوم، د يوې ورځې واقعه ده چه مونږ ټول قافلې والا د سحر خوراک کولو، اکثر په مونږ کښې خپې ابله وو او ډير په مونږ کښې ضعيف او کمزورې خلق وو (ضعفة جمع ده د ضعيف، او کيدې شي چه دا لفظ ﴿ ضعفة ﴾ وی په سکون د عين سره، ای حالته الضعف) نو څاپاپه يو سړې کافر، په سور اوښ باندې سور راورسيدو، او په هغې بادې د کوزيدو نه پس هغه د هغې اوښ کتې نه د خرمنې يوه تسمه راويستله، د هغې په ذريعه ئې خپل اوښ اوتړه، بيا راغلو او مونږ سره په خوراک کښې شريک شو (د خوراک درميان هغه په پوره لښکر باندې نظر واچولو سره) د خلقو د ضعف حالت او د هغوی د سورلو د کمی اندازه ئې اولګوله، بيا پاسيدو سره په منډه باندې لاړو د خپل اوښ طرف ته، پس په هغې باندې سور شو او هغې ته پوندې ورکولو سره په تيخته شو، سيدنا سلمه بن الاکوع رضی الله عنه فرمائی چه د قبيله اسلم يو سړی په خپله اوښه باندې سوريدو سره په هغه پسې شو، او دا اوښه د پوره لښکر په اوښو کښې د ټولو نه افضل وو، يعنې په تيزه منډه وهلو کښې، سلمه فرمائی، زه هم د هغې په تعاقب کښې روان شوم پيدل منډې وهلو سره (هغه په تيز رفتارئ کښې ډير مشهور او معروف وو په پيدل منډه وهلو کښې به ئې شهسواران روستو پريخودل) پس وړاندې هم دا خبره بيانوی ﴿ فادركته ورأس الناقة عند ورک الجمل وكنت عند ورک الناقة ﴾ سلمه چه کوم صورت حال بيانوی هغه دادې چه په منډه کښې خودټولو نه مخکښې هغه مشرک وو کوم چه په اوښ باندې سور وو، اوپه هغه پسې د قبيله اسلم دغه صحابی وو کوم چه په خپله اوښه باندې سور وو، سلمه فرمائی چه په منډه منډه کښې ددغه صحابی د اوښې سر د مشرک د اوښ کوناټو سره نزدې رسيدلې وو او زه ددغه صحابی د اوښې کوناټو ته په منډه منډه اورسيدم، (ثُمَّ تَقَدَّمْتُ حَتَّى كُنْتُ عِنْدَ وَرِكِ الْجَمَلِ ثُمَّ تَقَدَّمْتُ حَتَّى أَخَذْتُ بِخِطَامِ الْجَمَلِ) يعنې ما همت کولو سره يو ټوپ بل او وهلو تردې چه زه د هغه صحابی ځائې ته اورسيدم يعنې د اوښ شاته طرف ته نزدې، بيا زه په قوت سره نور هم ور وړاندې شوم تردې چا ما د هغه مشرک سور نه وړاندې وتلو سره د هغه د اوښ واږې اونيولې او هغه اوښ ما په زمکه بادې کينولو او هم دې دوران کښې ما خپله توره د تيکی نه راويستله او هغه کافر مې پرې

اووهلو چه په هغې سره د هغه سر کټ شو او هغه مشرک د سورلئ نه راپرېوتلو، بيا زه د هغه سورلئ سره د هغه د ساز وسامان سره روان اوم پس ما رسول الله ﷺ اوليدو چه هغه سره د خپلو څو ملګرو زما طرف ته راروان دې، او چه راغلو نو تپوس ئې اوکړو چه دا مشرک چا قتل کړې دې خلقو ورته زما نوم واخستلو چه سلمه بن الاکوع رضی الله عنه قتل کړې دې، په دې باندې هغه اوفرمائيل چه ﴿ له سلبه اجمع ﴾ چه د هغه کافر سلب ټول د ابن الاکوع دپاره دې.

## د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت

په دې حديث باندې هم د ترجمة الباب سره د عدم مطابقت اشکال کيږی ځکه چه د جمل احمر والا مشرک مستامن چرته وو، پس په دې حديث باندې امام بخاری رحمه الله باب تړلې دې ﴿ باب الحربی اذا دخل دار الاسلام بغير امان ﴾ د دې زيات نه زيات توجيه کيدې شی چه په روايت کښې دا دی چه دا مشرک صحابه کرامو سره په خوراک کښې اخر شريک شو، او ظاهره ده چه هغه چا ټوکلې نه دې ګويا دا يو قسم استيمان شو خو دا هم په ذهن کښې ساتئ چه دا توجيه په حديث او ترجمة الباب کښې د مناسبت د پيدا کولو دپاره ده، خو د دې نه دا نه لازميږی چه د دواړو حکم يو دې، ای حکم الجاسوس الحربی والمستامن، په دې حديث کښې د سلب مقتول ذکر دې چه هغه د قاتل دپاره دې، کما فی الحديث، من قتل قتيلا فله سلبه، خو دا د سلب مسئله اختلافی او وسيع الذيل ده يعنی د دې د لاندې ډير زيات مسائل او جزئيات دی کوم چه به عنقريب په خپل محل کښې په کتاب الجهاد کښې راشی، حديث الباب المختصر اخرجه البخاری والنسائی، والمفصل اخرجه مسلم، قاله المنذری.

# بَابٌ فِي أَيِّ وَقْتٍ يُسْتَحَبُّ اللِّقَاءُ

## د دشمن سره د مخامخ کيدو دپاره کوم وخت بهتر دې؟

يعنی کوم وخت په دشمن باندې حمله کول او مقابله کول غوره دی.

[۲۶۵۵]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا أَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِيِّ، عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ النُّعْمَانَ يَعْنِي ابْنَ مُقَرِّنٍ، قَالَ: شَهِدْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَمْ يُقَاتِلْ مِنْ أَوَّلِ النَّهَارِ أَخَّرَ الْقِتَالَ حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ وَتَهُبَّ الرِّيَاحُ وَيَنْزِلَ النَّصْرُ.

**ترجمه:** معقل بن يسار دنعمان بن مقرن نه روايت نقل کوي چه هغه وئيلي وو چه زه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم چه هغه د ورځې دشروع نه ددشمن سره نه جنګيدو بلکه تاخير به ئې کولوتردې نمر به زائله شو اوباد به راوالوتو اونصرت الهی به شروع شو.

## مضمون حديث

نعمان بن مقرن رضی الله عنه فرمائی چه زه د رسول الله ﷺ په بعض مغازی کښې شريک اوم نو ما اوکتل که هغه به د څه وجې نه د ورځې په شروع قتال اونکړې شو نو بيا به ئې قتال موخر کولو د زوال شمس پورې.

(): صحيح البخاري/الجزية ۱ (۳۱۶۰)، سنن الترمذي/السير ۴۶ (۱۶۱۳)، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۴۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۴۴۴) (صحيح)

## باب فِيمَا يُؤْمَرُ بِهِ مِنَ الصَّمْتِ عِنْدَ اللِّقَاءِ

### د جنګ په وخت کښې خاموش کېدل يا ذکر الهی کول بهتر دی

[۲۶۵۶](1) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ ح وحَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ، قَالَ: كَانَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُونَ الصَّوْتَ عِنْدَ الْقِتَالِ.

**ترجمه:** دقيس بن عباد رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه د نبی علیه السلام صحابه کراموبه دجنګ په وخت کښې شور بد ګڼړلو.

**تشريح:** يعنی صحابه کرامو به د حملې په وخت باندې شور او غوغا کول نه خوښول. بلکه په خاموشئ سره به ئې قتال کولو، شارحينو ليکلې دی چه په دې وخت کښې په شور او غوغا سره شبه راځی د ويرې اوبې صبرئ، په خلاف د متانت او خاموشی چه هغه دليل دې د ثبات او پوخ والې، په بذل کښې دی چه ملا علی قاری دلته د ذکر الله استثناء کړې ده خو د دې استثناء وجه فهم کښې نه راځی ځکه چه د جنګ په وخت ذکر الله سره اواز اوچتول چرته ثابت دی.

[۲۶۵۷](2) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، عَنْ هَمَّامٍ، حَدَّثَنِي مَطَرٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِ ذَلِكَ.

**ترجمه:** ابوبرده د خپل پلار نه دتيرشوی روايت په شان روايت بيان کړې دې.

## باب فِي الرَّجُلِ يَتَرَجَّلُ عِنْدَ اللِّقَاءِ

### د جنګ په وخت کښې د سورلئ نه د کوزيدو او پيدل تلو بيان

يعنی دا چه غازی د مخکښې نه خو سور وی او بيا عين د جنګ او حملې په وخت د خپلې سورلئ نه لاندې راکوزيدو سره قتال اوکړی مطلب دا دې چه که په دې کښې مصلحت کېږی نو داسې کولې شی. لکه چه په حديث الباب کښې دی (لَمَّا لَقِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُشْرِكِينَ يَوْمَ حُنَيْنٍ فَانْكَشَفُوا نَزَلَ عَنْ بَغْلَتِهِ فَتَرَجَّلَ).

[۲۶۵۸](3) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ الْبَرَاءِ، قَالَ: لَمَّا لَقِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُشْرِكِينَ يَوْمَ حُنَيْنٍ فَانْكَشَفُوا نَزَلَ عَنْ بَغْلَتِهِ فَتَرَجَّلَ.

**ترجمه:** دبراء بن عازب رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی کله چه نبی علیه السلام دمشرکانو سره مخامخ شو په ورځ دحنين اومسلمانان اوتښتيدل نونبی علیه السلام دخپلې قچرې نه راکوز شو اوپياده روان شو.

### شرح حديث

په غزوه حنين کښې چه کله صحابه کرام رضی الله عنهم د مشرکانو د غشو په ډير والی سره منتشر شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپلې سورلئ نه لاندې راکوز شو او پيدل د دشمن طرف ته روان شو، په

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩١٢٨) (صحيح)

(2): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩١٢٨) (ضعيف)

(3): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٢٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجهاد ١٥ (١٦٨٨) (صحيح)

داسې کولو کښې ډير مصلحتونه وو، مثلا دا چه د مشرکانو د غشو د وجې نه د هغوی سورلۍ ويريدو سره شاته نه شي، او بله دا چه رسول الله ﷺ په کفارو باندې خپله ثابت قدمي ظاهروله، او هم دغه شأن ئې د صحابه کرامو حوصله افزائي اوکړه، چه کوم په هغوی کښې منتشر شوې وو رسول الله ﷺ لره پياده د دشمن طرف ته په وړاندې کيدو باندې ليدلو سره راجمع شي وغيره، او د دې نه د هغه ﷺ د کمال شجاعت ثابتيدل خو ظاهر دی؟ چه هغه ﷺ د خپلې سورلۍ نه راکوزيدو سره، د صحابه کرامو د منتشر کيدو باوجود ﴿ انا النبی لا کذب انا ابن عبد المطلب ﴾ وئيلو سره وړاندې لاړو، وشرف وکرم وعلى اله وصحبه اجمعين، والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی اتم منه فی اثناء الحديث الطويل، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْخُيَلَاءِ فِي الْحَرْبِ

### په جنګ کښې د تکبر اوغرور کولو بيان

[۲۶۵۹](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وموسى بن إسماعيل، المعنى وَاحِدٌ قَالَا: حَدَّثَنَا أَبَانُ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ ابْنِ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: "مِنَ الْغَيْرَةِ مَا يُحِبُّ اللَّهُ وَمِنْهَا مَا يُبْغِضُ اللَّهُ، فَأَمَّا الَّتِي يُحِبُّهَا اللَّهُ فَالْغَيْرَةُ فِي الرِّيبَةِ وَأَمَّا الْغَيْرَةُ الَّتِي يُبْغِضُهَا اللَّهُ فَالْغَيْرَةُ فِي غَيْرِ رِيبَةٍ وَإِنَّ مِنَ الْخُيَلَاءِ مَا يُبْغِضُ اللَّهُ وَمِنْهَا مَا يُحِبُّ اللَّهُ، فَأَمَّا الْخُيَلَاءُ الَّتِي يُحِبُّ اللَّهُ فَاخْتِيَالُ الرَّجُلِ نَفْسَهُ عِنْدَ الْقِتَالِ وَاخْتِيَالُهُ عِنْدَ الصَّدَقَةِ وَأَمَّا الَّتِي يُبْغِضُ اللَّهُ فَاخْتِيَالُهُ فِي الْبَغْيِ"، قَالَ مُوسَى: وَالْفَخْرِ.

**ترجمه:** د جابر بن عتيك نه روايت دې چه نبی عليه السلام به فرمائيل غيرت په دوه قسمه دې يو هغه غيرت دې کوم چه د ال، مالي خوښ دې دويم هغه غيرت دې کوم چه د الله تعالى خوښ نه دې پس هغه غيرت کوم چه دالله تعالى خوښ دې هغه غيرت کول دې دشك او قرينو دموجود کيدو په وخت کښې اوکوم غيرت چه دالله خوښ نه د هغه دادې چه بغير دشك او قرينونه غيرت اوکړې شي همدارنګې تکبرهم دې بعضې هغه تکبر دې کوم چه دالله تعالى خوښ دې اوبعضې هغه تکبردې کوم چه دالله تعالى خوښ نه دې پس هغه تکبر کوم چه دالله تعالى خوښ د هغه غرور کول دې په کافرانوباندې دجهاد په وخت کښې اوغرور کول دې دصدقې ورکولو په وخت کښې. اوکوم غرور چه دالله خوښ نه دې هغه دادې چه دظلم په وخت کښې تکبر کول اود موسى په روايت کښې دی چه: په نسب باندې دفخر په وخت کښې غرور اوکړې شي.

### شرح حديث

په دې حديث کښې دوه اجزاء دی، يو د غيرت متعلق او بل د فخر او خيلاء متعلق د دويم جزء د ترجمة الباب سره مطابقت دې، هغه دا چه رسول الله ﷺ فرمائی چه بعض قسمونه د تکبر داسې دی کوم چه د الله پاك په نزد ناخوښه او مبغوض دی، او بعض قسمونه داسې هم دی کوم چه د الله پاك خوښ دی، د قسم ثانی مصداق د فخر او تکبر هغه اظهار دې کوم چه د دشمن مخکښې د جنګ په وخت اوکړې شی، دشمن لره د مرعوب کولو دپاره خپله بهادری اوښائی، په ژبې سره هم او په نقل وحرکت سره هم، او هم دغه شان هغه خيلاء کومه

(١): سنن النسائي/الزكاة ٦٦ (٢٥٥٩)، (تحفة الأشراف: ٣١٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٤٤٥، ٤٤٦) (حسن)

چه د صدقې او خیرات په وخت وی، او په صدقه کښې خیلاء دا ده چه که هر څومره مقدار دصدقې وی هغه کثیر اونه ګڼړی بلکه دهغې دقلت اظهار اوکړی، بله داچه ډیرپه خوشحالئ سره او فراخه تندی سره صدقه اوکړی، او د اختیال قسم اول کوم چه د الله پاک په نزد مبغوض دې هغه دانسان تکبرکول او مستیدل دی او په نورو باندې ظلم او زیاتې کول دی.

او د حدیث دویم جزء کوم چه د غیرت سره متعلق دې د هغې په باره کښې رسول اللهﷺ فرمائی چه د دې هم دوه قسمونه دی یو د الله پاک په نزد خوښ، او دویم مبغوض، غیرت وئیلې شی ﴿ کراهة المشارکة فی امر محبوب ﴾ یعنی د انسان په خپل محبوب او خوښ څیز کښې د بل سړی شرکت نه خوښول، لکه چه عاشق د خپل معشوق په باره کښې دا نه غواړی چه بل څوک د هغه سره تعلق قائم کړی، او دا چه هغه معشوق دې د بل چا طرف ته متوجه شی، علی هذا القیاس، خپله ښځه ئې ده، دا به څوک غواړی چه بل سړې هغې طرف ته اوګوری یا رغبت اوکړی، پس رسول اللهﷺ فرمائی چه کوم صفت د غیرت د الله پاک خوښ دې نو هغه داسې غیرت دې کوم چه واقعی په محل د شک او په محل د تهمت کښې وی کوم چه په دې الفاظو بیانوی ﴿ فالغیرة فی غیر ریبة ﴾ او هغه غیرت کوم چه مبغوض دې نو هغه هغه دې چه بې محله وی، هیڅ بې هیڅه او بغیر د څه وجې نه، دا خبره بالکل صحیح ده چه کوم غیرت بغیر د څه وجې نه او بې محله وی هغه خو سراسر بدګمانی ده، لهذا د دې نه بچ کیدل ضروری دی هم په دې وجه باندې ئې دې ته مبغوض وئیلې دې او کوم غیرت چه واقعی په محل د شک کښې وی هغه مطلوب او غوره دې،([1]) والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُسْتَأْسَرُ

### باب: مجاهد چه قیدی جوړکړې شی (نوڅه به کوی؟)

### د ترجمة الباب شرح:

﴿ یستاسر ﴾ لره معروفًا او مجهولاً دواړو طریقو سره لوستلې کیدې شی، مطلب دا دې چه که یو مسلمان په جنګ وغیره کښې د کفارو سره ګیر شی نو هغه لره څه کول پکار دی، خپل ځان دې هغه ته حواله کړی، او د هغوی قید دې قبول کړی، یا دا چه د هغوی سره دې مزاحمت اوکړی، او د هغوی قید قبلولو ته دې نه تیاریږی، امام بخاری رحمه الله هم په دې مضمون باندې باب تړلې دې ﴿ باب هل یستاسر الرجل، ومن لم یستاسر ﴾ زما ذوق دا وائی چه امام بخاری په ترجمة الباب کښې جزء ثانی ﴿ ومن لم یستاسر ﴾ لره زیاتولو سره عدم استیسار ته افضل وئیلې دې، یعنی اګر چه په داسې سخت وخت کښې د کفارو قید قبلول جائز دی، خو اولی هم دا ده چه د کفارو په خبره دې اعتماد اونکړی، او د هغوی قید دې نه قبلوی.

[1] ) مثلا که یو سړی ته د خپلې ښځې په باره کښې په دې وجه باندې غصه او غیرت راشی چه هغه فلانی پردی سړی ته ګوری یا یو پردې سړې هغې ته ګوری نو دا خبره که د څه قرینې په وجه باندې ده نو بیا خو دا غیرت محبوب دې او که بغیر د څه وجې نه وی نو مبغوض دې.

[٢٦٦٠]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ جَارِيَةَ الثَّقَفِيُّ حَلِيفُ بَنِي زُهْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةً عَيْنًا، وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَاصِمَ بْنَ ثَابِتٍ فَنَفَرُوا لَهُمْ هُذَيْلٌ بِقَرِيبٍ مِنْ مِائَةِ رَجُلٍ رَامٍ فَلَمَّا أَحَسَّ بِهِمْ عَاصِمٌ لَجَئُوا إِلَى قَرْدَدٍ فَقَالُوا لَهُمْ: انْزِلُوا فَأَعْطُوا بِأَيْدِيكُمْ وَلَكُمُ الْعَهْدُ وَالْمِيثَاقُ أَنْ لَا نَقْتُلَ مِنْكُمْ أَحَدًا، فَقَالَ عَاصِمٌ: أَمَّا أَنَا فَلَا أَنْزِلُ فِي ذِمَّةِ كَافِرٍ، فَرَمَوْهُمْ بِالنَّبْلِ فَقَتَلُوا عَاصِمًا فِي سَبْعَةِ نَفَرٍ، وَنَزَلَ إِلَيْهِمْ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ عَلَى الْعَهْدِ وَالْمِيثَاقِ مِنْهُمْ خُبَيْبٌ وَزَيْدُ بْنُ الدَّثِنَةِ وَرَجُلٌ آخَرُ، فَلَمَّا اسْتَمْكَنُوا مِنْهُمْ أَطْلَقُوا أَوْتَارَ قِسِيِّهِمْ فَرَبَطُوهُمْ بِهَا، فَقَالَ الرَّجُلُ الثَّالِثُ: هَذَا أَوَّلُ الْغَدْرِ وَاللَّهِ لَا أَصْحَبُكُمْ إِنَّ لِي بِهَؤُلَاءِ لَأُسْوَةً فَجَرُّوهُ، فَأَبَى أَنْ يَصْحَبَهُمْ فَقَتَلُوهُ فَلَبِثَ خُبَيْبٌ أَسِيرًا حَتَّى أَجْمَعُوا قَتْلَهُ فَاسْتَعَارَ مُوسَى يَسْتَحِدُّ بِهَا فَلَمَّا خَرَجُوا بِهِ لِيَقْتُلُوهُ، قَالَ لَهُمْ خُبَيْبٌ: دَعُونِي أَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ قَالَ: وَاللَّهِ لَوْلَا أَنْ تَحْسَبُوا مَا بِي جَزَعًا لَزِدْتُ".

**ترجمه:** ابوهریره دنبی ﷺ نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ لس کسان د معلوماتو حاصلولو دپاره اولیږل او عاصم بن ثابت ئې په دوی باندې امیر مقرر کړو نودوی سره دجنګ دپاره دهزیل قبیلې تقریبا سل کسان غشي ویشتونکی را اووتل عاصم چه کله دوی اولیدل نو په یوه پناه ګاه کښې ئې ځان پټ کړو لیکن کافران ددوی نه چاپیر شول او ورته ئې اووئیل راکوز شئ اوزمونږ خبره اومنئ مونږه دا اقرارکوو چه په تاسو کښې به هیڅوک نه وژنو عاصم اووئیل زما خو دکافر په امان کښې کوزیدل خوښ نه دی نو په دې وجه باندې ده لږه کافرانو په غشو اوویشتو عاصم اودده اووه ملګري شهیدان شول اوباقي درې کسان د کافرانوسره په لوظ اودهغوی په اقرارباندې په اعتبار کولوسره لاندې راکوز شول یوپه دوی کښې خبیب اوبل زید بن دثنه اویوکس بل وو چه نوم ئې عبدالله بن طارق وو دا خلق چه کله دکافرانو په لاس کښې راغلل نودخپلو لیندو په مزوباندې ددوی لاسونه او تړل په دوی کښې چه دریم کس وو هغه اووئیل داخو اوله دهوکه ده (یعنی اقرار خوداسې شوې وو چه مونږ به څوك نه وژنونوبیا دتړلوڅه مطلب دې) په الله قسم چه زه خوتاسو سره نه ځم زما په خپلو ملګرو پسې تلل خوښ دي (شهادت ته ئې ترجیح ورکوله) اوکافرو دې راښکلو اوده دتلونه انکار اوکړو بهرحال کافرانو دې هم شهید کړو اوس خبیب ددوی په لاس کې قیدي پاتې شو دوی ټولو دده قتلول هم اوغوښتل نوده دکافرانونه اوغوښتل چه ماته لږ مهلت راکړئ چه زه دوه رکعته مونځ اوکړم، بیا ئې اووئیل په الله مې دي قسم وي که چرې تاسو دا ګمان نه کولې چه زه دویرې په وجه اوږد مونځ کوم نوما به دوه رکعته نورهم کړي وو.

## د حدیث الباب شرح

مصنف په دې باب کښې د سریة الرجیع واقعه ذکر کړې ده، دا اصحاب سریه لس کسان وو کوم چه رسول الله ﷺ عین یعنی جاسوس جوړولو سره د قریشو د خبر راوړلو دپاره مکې مکرمې ته لیږلې وو، چه د هغې امیر رسول الله ﷺ عاصم بن ثابت مقرر کړې وو لکه چه دلته په حدیث کښې تصریح ده.

(): صحیح البخاري/الجهاد ١٧٠ (٣٠٤٥)، والمغازي ١٠ (٣٩٨٩)، والتوحید ١٤ (٧٤٠٢)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٩٤، ٣١٠) (صحیح)

قوله: ﴿ فنفروا لهم هذيل بقريب من مائة رجل رام ﴾ يعنې کله چه دا سريه د مکې طرف ته تله نو په لاره کښې د هغوى طرف ته د قبيله هذيل سل سړى غشى ويشتلو والا د هغوى مقابلې دپاره راغلل، او ظاهره خبره ده چه دا اصحاب سريه نو خالى لاس وو، غير مسلح، ځکه چه دا خو صرف د جاسوسئ دپاره روان وو نه د جنګ دپاره، اوس چه کله ناڅاپه غشى ويشتونکى د هغوى د مقابلې دپاره راغلل نو دې خلقو د خپل ځان د بچ کولو دپاره يوې غونډئ ته اوختل. چه د هغې په باره کښې راوى فرمائى ﴿ فلما احس بهم عاصم لجأوا الى قردد ﴾ الحاصل چه کله دا خلق غونډئ ته اوختل نو هغه غشى ويشتونکى مشرکانو دوى ته اووې چه راکوز شئ او خپل ځان مونږ ته اوسپارئ په داسې طريقه چه مونږ تاسو سره معاهده کوو، يعنې په دې خبره چه په تاسو کښې به څوک هم نه قتل کوو، په دې باندې امير سريه عاصم بن ثابت اوفرمائيل ﴿ اما انا فلا انزل فى ذمة كافر ﴾ چه زه خو د يو کافر په ذمه باندې اعتماد کولو سره نه راکوزيږم (چه تاسو څه کولې شئ هغه اوکړئ) په دې باندې هغه مشرکانو په غشو ويشتلو سره عاصم امير سريه او د هغه سره اووه ملګرى ختم کړل.

﴿ونزل اليهم ثلاثة نفر ﴾ اوس چه کوم درې کسان باقى پاتې شو هغوى د هغوى لوظ قبلولو سره لاندې راکوز شو، هغوى دا دى يو خبيب بن عدى، زيد بن الدثنه او يو بل سړې (عبدالله بن طارق) چه کله دې مشرکانو هغه درې واړه قابو کړل نو د خپلو ليندو مزى ئې پرانستل او په هغې باندې ئې د هغوى تړل شروع کړل، خبيب او زيد خو هغوى اوتړل، چه کله ئې دريم کس تړلو نو هغه اووې ﴿ هذا اول الغدر والله لا اصحبكم ﴾ چه دا خو د غدر او لوظ ماتولو ابتداء ده يعنې تړئ مو ولې، قسم په الله زه به تاسو سره هرګز لاړ نه شم، او دا چه زمونږ ملګرى شهيدان کړې شوې دى دا زما دپاره بهترينه اسوه او نمونه ده، مشرکانو هغه په راښکلو باندې په زبردستئ د ځان سره بوتلو خو هغه د تلو نه انکار اوکړو نو هغوى دې هم قتل کړو. اوس دوه کسان باقى پاتې شو خبيب او زيد ابن الدثنه، دا دواړه هغه مشرکانو اوتړل او د ځان سره ئې بوتلل، ﴿ فلبث خبيب اسيرا ﴾ په روايت کښې اختصار دې، صرف د خبيب ذکر کړې شوې دې ﴿ حتى اجمعوا قتله ﴾ دلته هم اختصار دې، د بخارى په روايت کښې تفصيل دې، پس په هغې کښې داسې دى ﴿ فَانْطَلَقُوا بِخُبَيْبٍ وَابْنِ دَثِنَةَ حَتَّى بَاعُوهُمَا بِمَكَّةَ بَعْدَ وَقْعَةِ بَدْرٍ فَابْتَاعَ خُبَيْبًا بَنُو الْحَارِثِ بْنِ عَامِرِ بْنِ نَوْفَلِ بْنِ عَبْدِ مَنَافٍ، وَكَانَ خُبَيْبٌ هُوَ قَتَلَ الْحَارِثَ بْنَ عَامِرٍ يَوْمَ بَدْرٍ فَلَبِثَ خُبَيْبٌ عِنْدَهُمْ أَسِيرًا فَأَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللهِ بْنُ عِيَاضٍ أَنَّ بِنْتَ الْحَارِثِ أَخْبَرَتْهُ أَنَّهُمْ حِينَ اجْتَمَعُوا اسْتَعَارَ مِنْهَا مُوسَى ﴾ يعنې هغه مشرکانو خبيب او زيد بن الدثنه دواړه بوتلل، او هغوى دواړه ئې په مکه مکرمه کښې خرخ کړل، په هغوى دواړو کښې خبيب د حارث بن عامر ځامنو واخستلو، او حال دا وو چه خبيب په جنګ بدر کښې حارث بن عامر لره قتل کړې وو، اوس ظاهره ده چه خبيب اوس د داسې سړى لاس ته راغلو چه د هغه د پلار قاتل خبيب دې نو هغه به د هغه سره څه معامله کوى، کومه هم چه د سختنه سخته معامله کوى کمه ده، بهرحال په روايت کښې دى چه دا خبيب د هغوى سره څو ورځې وو، اخر دا چه بنو الحارث چه کله د خبيب د قتل اراده اوکړه نو هغه د خپل مرګ او

د شهادت په تیاریٔ کښې د هغه کور والو نه چاره اوغوښتله د نامه نه لاندې ویښته صفا کولو دپاره، ﴿ فلما خرجوا به لیقتلوه ﴾ دلته هم اختصار دې، د دې روایت باقی حصه کومه چه خپله په ابوداؤد کتاب الجنائز کښې د "باب المریض یاخذ من اظفاره وعانته" کښې راروان دې، هلته دا دی چه ﴿ فاعارته فدرج بنی لها وهی غافلة ﴾ یعنی کوم وخت چه خبیب استحداد کولو نو یو وړوکې ماشوم په لوبو لوبو کښې هغه ته راغلو، کوم چه هغه په خپل پتون باندې کینولو، اتفاقاًچه دا منظر د هغه ماشوم مور اولیدو هغه په دې لیدو سره اویریده، خبیب چه کله هغه اولیده نو هغه یې پوهه کړه چه ولې ویریږې الله دې نه کړی زه به دې قتل کړم، د بخاری په روایت کښې د دې نه روستو مزید تفصیل دې ﴿ فلما خرجوا به لیقتلوه ﴾ الحاصل چه کله بنو الحارث هغه د قتل دپاره بوتلو نو خبیب رضی الله عنه هغوی ته اوفرمائیل چه ماته لږ شان مهلت راکړئ د دوه رکعته نفل کولو، پس هغوی ورته مهلت ورکړو، هغه دوه رکعته مختصر شان کولو سره سلام واړولو او وې وئیل چه والله که زما دا خیال نه وې چه تاسو به زما په باره کښې د مرګ د ویرې ګمان کوئ نو ما به دا مونځ اوږد کړې وې، په روایت کښې دی چه هغه دې خلقو ته بعض خیرې اوکړې ﴿ اللهم احصهم عددا، واقتلهم بددا ﴾ یا الله! دا ټول یو یو هلاک کړه، په روایت کښې دی، راوی وائی چه هغه کال له پوره شوې نه وو چه هغوی ټول هلاک کړې شو، مصنف په دې باب کښې د سریة الرجیع واقعه ذکر فرمائیلې ده، دا اصحاب سریه لس اضحاب وو کوم چه رسول الله صلی الله علیه وسلم جاسوسان جوړولو سره د قریش مکه طرف ته لیږلې وو، چه د هغوی امیر هغه صلی الله علیه وسلم عاصم بن ثابت رضی الله عنه مقرر کړې وو، لکه چه دلته په حدیث کښې تصریح ده.

په دې موقع باندې حضرت خبیب رضی الله عنه څو اشعار هم وئیلې وودشهادت په ذوق اوشوق کښې!

ولست ابالی حین اقتل مسلما — علی ای شق کان لله مصرعی

وذلک فی ذات الاله وان یشاء — یبارک علی اوصال شلو ممزع

په صحیح بخاری کښې څو هم دا دواړه بیتونه دی باقی قصیده اوږده ده، کومه چه د سیرت په کتابونو کښې ذکر ده کومه چه زمونږ حضرت شیخ رحمه الله بتمامها لامع الدراری په حاشیه کښې د اردو ترجمې سره د طالبانو د سهولت دپاره لیکلې ده، هغه دې ضرور اوکتلې شی.

## د سیدنا خبیب رضی الله عنه قصیده

مونږ د کتونکو د سهولت دپاره دلته نقل کوو، د اصل قصیدې شروع داسې ده او په حاشیه د لامع کښې د هر هر بیت نه روستو د هغې ترجمه ذکر شوې ده.

١: لقد جمع الاحزاب حولی والبوا — قبائلهم واستجمعوا کل مجمع

زما نه چاپیره ډیرې ډلې راجمع کیږی او هغوی ډیر زیات قبائل راجمع کړې دی، او زیات نه زیات مجمع راجمع کیږی.

٢: وکلهم مبدی العداوة وجاهد — علی لانی فی وثاق بمضیع

هر یو په دوی کښې دشمنی کولو والا دې، او زما خلاف کوشش کونکې دې ځکه

چه زه په رسو کښې تړلې شوې یم، او د بربادئ په خاپ باندې پروت یم.

۳: وقد جمعوا ابناءهم ونسائهم — وقربت من جذع طویل ممنع

او دې خلقو (زما د تماشې کتلو دپاره) خپلې ټولې زنانه او ماشومان راجمع کړې دی او (په سولئ کولو دپاره) نزدې راوړلې شوې یم د یوې ډیرې لوئې اونې خواته کومه چه محفوظ ده یا ډیره زیاته اوږده ده.

۴: الی الله اشکو غربتی ثم کربتی — وما ارصد الاحزاب لی عند مصرعی

صرف الله پاک ته ګله کوم د خپې بې وسئ او د خپل مصیبت او د هغه څیز کوم چه دې کافر جماعتونو زما د قتل په وخت زما دپاره تیار کړې دی.

۵: فذا العرش صبرنی علی ما یراد بی — فقد بضعوا لحمی وقد یاس مطمعی

پس اې د عرش مالکه! ته ماته صبر راکړه په هغه څیز باندې د کومې چه خلق زما باره کښې اراده لرې او دې خلقو زما د غوښو ټکړې ټکړې کړې دی او زه د هر هغه څیز نه مایوسه شوې یم چه د هغې زما خواهش وی (لوئې خواهش خو د قید نه خلاصیدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضریدل دی او د ژوند خواهش هم په دې کښې داخلیدې شی)

۶: وذلک فی ذات الاله وان یشاء — یبارک علی اوصال شلو ممزع

او دا ټول هر څه د الله پاک د پاک ذات په سلسله کښې کیږی او که الله پاک اوغواړی نو برکت به اوکړی په ټکړو زما او په هغه بدن کوم چه ټکړې ټکړې کړی شوې دې.

۷: وقد خیرونی الکفر والموت دونه — وقد هملت عینای من غیر مجزع

او دې خلقو ماته اختیار راکړې دې د کفر، او بغیر د دې نه د مرګ (یعنی یا به کفر اختیاروم ګینې مرګ) او زما د دواړو سترګو نه اوښکې روانې دی بغیر د څه ویرې نه (او د ویرې نه کیدلو وجه وړاندې راروانه ده).

۸: وما بی حذا الموت انی لمیت — ولکن حذاری جحم نار ملفع

ماته د مرګ ویره نشته ځکه چه (زه به بهرحال یوه ورځ) ضرور مړ کیږم خو زما ویره د هغه اور د جسامت ده کوم چه د ډیرو شغلو والا دې (یا انسانانو لره) خوروونکې دې، مراد د جهنم اور دې.

**تنبیه** : د اور جسامت دا ترجمه په دې بناء ده چه حجم حاء مهمله مقدم کړې شی په جیم باندې، خو صحیح "جحم" په تقدیم الجیم علی الحاء دې کوم چه د جحیم ماخذ دې، په دې صورت کښې به ترجمه دا وی (خو ما سره ویره د هغه بل شوی اور ده).

۹: فوالله ما ارجو اذا مت مسلما — علی ای جنب کان لله مصرعی

پس قسم په الله! که زه د اسلام په حالت کښې قتل کړې شم نو زما لره شان پرواه هم نشته چه زه د الله پاک دپاره په هر یو اړخ پریوتلم

۱۰: فلست بمبد للعد وتخشعا — ولا جزعا انی الی الله مرجعی

پس نه یم ظاهروونکې د دشمن په وړاندې هیڅ قسم عاجزی او نه څه قسم ویره، ځکه چه د الله پاک طرف ته زما واپس کیدل دی، د ﴿ انا لله وانا الیه راجعون ﴾ طرف ته اشاره

ده، په بعض نسخو کښې داسې دی چه ﴿ فلست ابالي حين اقتل مسلما، على اى جنب كان فى الله مصرعى ﴾

د بخارۍ په روايت کښې دی ﴿ فكان خبيب هو سن الركعتين لكل مسلم قتل صبرا ﴾ چه سيدنا خبيب رضي الله عنه اولنې هغه سړې دې چا چه د قتل صبرا په وخت د اداء ركعتين سنت جارى كړو. دا د سرية الرجيع قصه د جنګ بدر نه پس په ۳ هجرى کښې پيښه شوې وه، د دې قصې نه معلومه شوه چه د سريه امير عاصم بن ثابت رضي الله عنه د مشركانو قيد قبول نه كړو بلكه په هغې ئې شهادت ته ترجيح وركړه، البته باقى دوه صحابه كرامو د هغوى قيد قبول كړو، علامه عينى د دې حديث د فوائدو د لاندې ليکى چه د سيدنا خبيب رضي الله عنه او د هغه د دواړو ملګرو نزول د دې خبرې دليل دې چه په داسې وخت کښې د کافرانو قيد قبلول جائز دى، مهلب فرمائى چه كه يو سړې د خپل ځان د بچ كولو دپاره په رخصت باندې عمل كول غواړى نو كولې شي، د حضرت حسن نه هم نقل دى چه په دې کښې هيڅ پاک نشته، او د امام اوزاعى رحمه الله نه د فعل عاصم ترجيح منقول ده، يعنى په داسې وخت کښې د كفارو د قيد په ځائې شدت اختيارول اولى دى. (بذل) والحديث اخرجه البخارى والنسائى، قاله المنذرى.

[٢٦٦١] (¹) حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْفٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ أَبِي سُفْيَانَ بْنِ أَسِيدِ بْنِ جَارِيَةَ الثَّقَفِيُّ وَهُوَ حَلِيفٌ لِبَنِي زُهْرَةَ، وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ أَبِي هُرَيْرَةَ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه**: دعمرو بن سفيان روايت دې كوم چه د بنو زهره حليف او دابوهريره رضي الله عنه په ملګروكښې دې، بيا راوى پوره روايت بيان كړو.

## بَاب فِي الْكُمَنَاءِ

### څوک چه په کمين (څوکئ) کښې پټ کيناستل شی

كمناء جمع ده د كمين، كمين هغه سړې كوم چه دشمن ته پټ ناست وى چه موقع راشى او په هغه باندې ناڅاپه حمله اوكړى، د كمين اطلاق په اردو او فارسئ کښې په هغه ځائې باندې هم كيږى چرته چه انسان پټ ناست وى يعنى مورچه باندې كومې ته چه په فارسئ کښې دامګاه وئيلې شى، په اصل کښې دا اخستلې شوې دې د كمون نه كوم چه مقابل دې د بروز، په ظاهره کښې د مصنف مقصد دا دې چه د جنګ په تدبيرونو کښې يو تدبير په مورچه کښې كيناستل هم دى لكه چه په غزوه احد کښې اوشو كوم چه په حديث الباب کښې ذكر دې.

[٢٦٦٢] (²) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، قَالَ: سَمِعْتُ الْبَرَاءَ يُحَدِّثُ، قَالَ: جَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الرُّمَاةِ يَوْمَ أُحُدٍ وَكَانُوا خَمْسِينَ رَجُلًا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ جُبَيْرٍ وَقَالَ: إِنْ رَأَيْتُمُونَا تَخْطَفُنَا الطَّيْرُ فَلَا تَبْرَحُوا مِنْ مَكَانِكُمْ هَذَا حَتَّى أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ، وَإِنْ رَأَيْتُمُونَا هَزَمْنَا الْقَوْمَ وَأَوْطَأْنَاهُمْ فَلَا تَبْرَحُوا حَتَّى أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ قَالَ: فَهَزَمَهُمُ اللَّهُ قَالَ: فَأَنَا وَاللَّهِ رَأَيْتُ النِّسَاءَ يَشْتَدِدْنَ عَلَى الْجَبَلِ فَقَالَ: أَصْحَابُ عَبْدِ

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٤٢٧١) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الجهاد ١٦٤ (٣٠٣٩)، والمغازي ١٠ (٣٩٨٦)، والتفسير ١٠ (٤٥٦١)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٤/٤) (صحيح)

اللّٰهِ بْنِ جُبَيْرٍ: الْغَنِيمَةَ أَيْ قَوْمِ الْغَنِيمَةَ ظَهَرَ أَصْحَابُكُمْ فَمَا تَنْتَظِرُونَ، فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ جُبَيْرٍ: أَنَسِيتُمْ مَا قَالَ لَكُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا: وَاللّٰهِ لَنَأْتِيَنَّ النَّاسَ فَلَنُصِيبَنَّ مِنَ الْغَنِيمَةِ فَأَتَوْهُمْ فَصُرِفَتْ وُجُوهُهُمْ وَأَقْبَلُوا مُنْهَزِمِينَ.

**ترجمه**: دابو اسحق نه روايت دې فرمائی چه دبراء بن عازب نه مې حديث اوريدلې دې چه نبی ﷺ په غزوه احد کښې په پنځوسو غشي ويشتونکو باندې عبيدالله بن جبير امير مقرر کړو اودوی ته ئې اوفرمائيل که چرې تاسو اووينې چه مارغان زمونږ په سرونو باندې ټونګې وهی (قتل کيدوته اشاره ده) نوبيا به هم تاسو د خپل ځائې نه نه خوزئ ترڅو چه تاسو رابلل شوې نه ئې اوکه تاسو اووينئ چه مونږه کافرانوته شکست ورکړو نوبيابه هم دخپل ځائې نه نه ځئ ترڅو چه را اونه غوښتلې شی، راوي وائی الله تعالٰی کافرانوته شکست ورکړو او مادمشرکانو ښځې اوليدلې چه غرونوته دپناه دپاره تښتيدلې دعبدالله بن جبير ملګرو سوچ اوکړو چه مال غنيمت به واخلو زمونږ ملګري کامياب شوپه دې باندې عبدالله بن جبير اووئيل نبی ﷺ چه درته څه وئيلې وو هغه مو هيرشول؟ بهرحال الله تعالٰی ددوی خونه واړول او مسلمانانو شکست خوړونکی لاړل.

## شرح حديث

يعنی رسول الله ﷺ د جنګ احد په موقع باندې پنځوس داسې صحابه کرام کوم چه غشی ويشتونکی وو په يوه غونډئ (جبل رماة کوم چه جبل احد ته مخامخ دې) باندې کينولو سره عبدالله بن جبير لره په هغوی باندې امير جوړ کړو او هغه ته ئې په تاکيد سره دا هدايت اوفرمائيل چه که تاسو دا هم اوګورئ چه مونږ يعنی د مسلمانانو لښکر لره مارغان د ځان سره اوړی نو بيا هم تاسو د خپل ځائې نه بيرته نه شئ ترڅو چه ما تاسو ته يو قاصد نه وی راليږلې، او که مونږ مشرکانو ته شکست هم ورکړو تاسو به د دې ځائې نه خوزئ نه. ﴿فهزمهم الله، قال فانا والله رايت النساء﴾ راوی وائی چه الله پاک کفارو ته شکست ورکړو او ما اوليدې د مشرکانو زنانه غر ته په ختلو باندې، دې صورت حال ته کتلو سره د عبدالله بن جبير رضی الله عنه ملګرو اووې ﴿ای قوم الغنيمة﴾ اې ملګرو! ځائې چه غنيمت راټول کړو، زمونږ لښکر غالب شو بيا د څه څيز انتظار کوې، په دې باندې ورته عبدالله بن جبير رضی الله عنه اوفرمائيل چه تاسو هغه خبره هيره کړه کومه چه تاسو ته رسول الله ﷺ کړې وه، خو هغوی د هغې باوجود ايسار نه شو او لاندې راکوز شو. ﴿فصرفت وجوههم واقبلوا منهزمين﴾ د هغوی د راکوزيدو نه پس ټول خلق حيران او پريشانه شو، ځکه چه د بل طرف نه هم کفارو حمله اوکړه او مسلمانان په مينځ کښې ګير شو او د شکست صورت پيدا شو. والحديث اخرجه البخاری والنسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الصُّفُوفِ

### د مجاهدينو دپاره د صفونو جوړولو بيان

يعنی د قتال دپاره د مخکښې نه صفونه تړل، د امام ترمذی رحمه الله ترجمه په دې کښې زياته صفا او واضحه ده، باب الصف والتعبية عند القتال. تعبه يعنی ترتيب... د لښکر په دستو

کښې د هرې يوې دستې دپاره مناسب ځائې تجويز کول او هغوی لره د دې نه خبرول د دې دپاره چه د قتال د شروع کولو په وخت هره يوه دسته خپل متعين ځائې ته اورسيږي، امام ترمذي رحمه الله د دې باب د لاندې د عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه دا حديث ذکر کړې دې. ﴿ عبانا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ببدر ليلا ﴾ يعنی د جنګ په موقع باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم زمونږ د ټولو ځايونه د شپې متعين کړل.

[٢٦٦٣]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سِنَانٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سُلَيْمَانَ بْنِ الْغَسِيلِ، عَنْ حَمْزَةَ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ اصْطَفَفْنَا يَوْمَ بَدْرٍ: "إِذَا أَكْثَبُوكُمْ يَعْنِي إِذَا غَشُوكُمْ فَارْمُوهُمْ بِالنَّبْلِ وَاسْتَبْقُوا نَبْلَكُمْ".

**ترجمه**: حمزه بن او اوسيد دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی دبدر په ورځ چه کله مونږه صفونه جوړ کړل نونبی علیه السلام اوفرمائيل کله چه کافران تاسو ته نزدې راورسيږي نوپه غشو ئې اولئ اوخپل غشی بچ هم کړئ.

**تشريح**: قوله: "إِذَا أَكْثَبُوكُمْ ([2]) يَعْنِي إِذَا غَشُوكُمْ فَارْمُوهُمْ بِالنَّبْلِ وَاسْتَبْقُوا نَبْلَكُمْ":

سيدنا ابو اسيد صحابی فرمائی چه کله په جنګ بدر کښې مونږ خلق په خپلو خپلو صفونو کښې راغلو نو هغه صلی الله علیه وسلم دا هدايت اوفرمائيلو چه کله دا کفار تاسو ته نزدې راشی نو بيا غشی ورول شروع کړئ، يعنی په تاسو او مشرکانو کښې چه کله دومره فاصله پاتې شی چه ستاسو غشی هغوی ته رسيدلې شی نو بيا غشی ويشتل شروع کړئ، او که د دې نه مخکښې مو غشی ورول شروع کړل نو ظاهره ده چه غشی به مو ضائع شی، څه به دشمن ته رسيږی او څه به نه رسيږی هم په دې وجه باندې وراندې فرمائی چه خپل غشی محفوظ ساتئ، د محفوظ ساتلو مطلب هم دا دې چه د لرې نه ويشتلو سره دې هغه ضائع نه کړې شی. والحديث اخرجه البخاری، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي سَلِّ السُّيُوفِ عِنْدَ اللِّقَاءِ

### دشمن چه کله را نزدې شی نو توري راويستل پکاردی

[٢٦٦٤]([3])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَجِيحٍ وَلَيْسَ بِالْمَلْطِيِّ، عَنْ مَالِكِ بْنِ حَمْزَةَ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ السَّاعِدِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ: "إِذَا أَكْثَبُوكُمْ فَارْمُوهُمْ بِالنَّبْلِ وَلَا تَسُلُّوا السُّيُوفَ حَتَّى يَغْشَوْكُمْ".

**ترجمه**: مالك بن حمزه بن أبی اسيد ساعدي دخپل پلارنه اوهغه دده دنيکه نه روايت کوی چه نبی علیه السلام دغزوه بدر په ورځ او فرمائيل کله چه درته مشرکان رانزدې شي نوپه غشوئې اوولي اوترڅوچه درته دوې ښه رانزدې شوي نه وی نوخپلې توري مه راوباسئ.

---

[1]): صحيح البخاري/الجهاد ٧٨ (٢٩٠٠)، والمغازي ١٠ (٣٩٨٤)، (تحفة الأشراف: ١١١٩٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٩٨/٣) (صحيح)

[2]) أي قربوكم، من كثب واكتب اذا قارب والكثب القرب، وفي نسخة اذا كثبوكم. (بذل)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١١٩٠) (ضعيف)

**تشریح:** ﴿ اذا اکثبوکم فارموهم بالنبل ولا تسلوا السیوف حتی یغشوکم ﴾ دا د اولنی حدیث دويم طريق دې، په دې کښې د سل سیوف زیادت دې کوم چه په اول طريق کښې نه وو، په دې کښې د تورې د استعمال طريقه بيان کړې شوې ده، او دا مطلب دې چه کله مشرکان لړ شان رانږدې شی نو بيا خو دې غشی ويشتلې شی، او چه کله زيات رانږدې شی نو هغه وخت دې د تورو استعمال اوکړې شی، دا د رسول الله ﷺ د طرف نه صحابه کرامو ته د وسلې د استعمال په باره کښې ضروری هدايات دی.

## بَابٌ فِي الْمُبَارَزَةِ

### د جنګ کونکو د مقابلې بيان

**د ترجمة الباب شرح او مذاهب ائمه:**

د قتال او مقابلې دوه صورتونه وی، يو اجتماعی او بل انفرادی يعنی پوره جماعت، په جماعت باندې حمله اوکړی او يا مقابله فردا فردا وی، فردا فردا د مقابلې دپاره راتلو ته مبارزه وئيلې شی، يعنی د قتال د صف نه يو بهادر راوځی او ميدان ته راشی او اوائی چه ﴿ هل من مبارز؟ ﴾ څوک شته زما مقابله کولو والا؟ په دې باب کښې مصنف رحمه الله هم دا خبره بيان کړې ده چه ايا داسې کول جائز دی يا ناجائز، که مبارزه د امام په اذن وی نو بيا خو د دې په جواز کښې هيڅ کلام نشته، عند الاکثر ومنهم الائمة الاربعة سوی الحسن فانه لم یجزها مطلقا، او که بغير د امام د اذن نه وی نو بيا هم د جمهورو په نزد چه په هغوی کښې امام مالک او امام شافعی هم دی جائز دې، ففی المغنی (ص ۳۹۴ ج ۱۰) واما المبارزة فجوز باذن الامير فی قول عامة اهل العلم الا الحسن فانه لم يعرفها وكرهها الى اخر ما ذكر... خو په دې کښې د حنابله اختلاف دې د هغوی په نزد په دې کښې تفصيل دې، ابن قدامه د دې درې صورتونه ليکلې دی په يو صورت کښې مستحب دې، په يو کښې مباح او په بل کښې مکروه، مستحب په هغه صورت کښې دې چه کله د دې ابتداء د کفارو د طرف نه وی، او د مقابلې دپاره راتلونکې قوی او بهادر وی د امام په اجازت، او مباح په هغه صورت کښې دې چه کله د دې ابتداء د داسې مسلمان سړی د طرف نه اوشی کوم چه شجاع او قوی وی، او مکروه په هغه صورت کښې چه کله د هغې ابتداء د مسلمان ضعيف د طرف نه وی.

[۲۶۶۵] (۱) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللهِ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ حَارِثَةَ بْنِ مُضَرِّبٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: تَقَدَّمَ يَعْنِي عُتْبَةَ بْنَ رَبِيعَةَ، وَتَبِعَهُ ابْنُهُ، وَأَخُوهُ فَنَادَى مَنْ يُبَارِزُ فَانْتَدَبَ لَهُ شَبَابٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَقَالَ: مَنْ أَنْتُمْ فَأَخْبَرُوهُ فَقَالَ: لَا حَاجَةَ لَنَا فِيكُمْ إِنَّمَا أَرَدْنَا بَنِي عَمِّنَا فقال النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قُمْ يَا حَمْزَةُ قُمْ يَا عَلِيُّ، قُمْ يَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْحَارِثِ"، فَأَقْبَلَ حَمْزَةُ إِلَى عُتْبَةَ وَأَقْبَلْتُ إِلَى شَيْبَةَ وَاخْتُلِفَ بَيْنَ عُبَيْدَةَ وَالْوَلِيدِ ضَرْبَتَانِ فَأَثْخَنَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا صَاحِبَهُ، ثُمَّ مِلْنَا عَلَى الْوَلِيدِ فَقَتَلْنَاهُ وَاحْتَمَلْنَا عُبَيْدَةَ.

**ترجمه:** د علی رضی الله عنه نه روايت دې چه زمونږ طرف ته عطبه بن ربيعه اودده ځوی رامخکښې شول اودده ورور هم ور پسې وو بيا آواز عتبه اوکړو چه څوک په تاسو کښې ميدان ته

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۰۰۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۱۷) (صحيح)

راوځي؟ نوپه انصاروکښې یوځو ځوانانو جواب ورکړو یعنی دصف نه په میدان کښې دجنګ کولو دپاره عتبه اووئیل تاسو څوک یئ؟ نوانصاري ځوانانو ورته خپل ځانونه اوخودل نوده اووئیل زما ستاسو سره څه کار نشته دې زمونږه دخپل تره ځامنونه علاوه دبل چاسره دجنګ کولو اراده نشته یعنی قریش اومهاجرین ئې مراد وو نونبی ﷺ اوفر مائیل اې حمزه اودریږه او اې علي اودریږه او اې عبیده بن حارث اودریږه نوحمزه خود عتبه طرف ته دجنګ دپاره متوجه شو اوهغه ئې په توره اووهلو اوزه دشیبه طرف ته متوجه شوم اودې مې اووهلو په هغه وخت کښې عبیده اوولید په خپل مینځ کښې یوبل زخمي کړل او مونږه هم په ولید باندې حمله اوکړه اوهغه مو قتل کړو او عبیده موراپورته کړو دجنګ دځائې نه مو راوستلو.

## شرح حدیث

د سیدنا علي رضی الله عنه نه روایت دې (چه په جنګ بدر کښې) درې کفار عتبه بن ربیعه او د هغه نه روستو د هغه ځوئې ولید بن عتبه، او د عتبه رور شیبه بن ربیعه، دا درې واړه میدان ته رامخکښې شو او هر یو چغه کړې چه ﴿ من یبارز؟ ﴾ نو د هغې په جواب کښې درې انصاری ځوانان میدان ته راغلل (عبدالله بن رواحه، عوف بن عفراء، معوذ بن عفراء) چه کله دوی مقابلې ته راغلل نو عتبه ترې تپوس اوکړو: ﴿ من انتم؟ ﴾ هغوی ورته اووې چه مونږ فلانې فلانې یعنی د انصارو نه یو، نو هغه ډیر په فخر او تکبر سره اووې چه مونږ ته ستاسو ضرورت نشته ﴿ انما اردنا بنی عمنا ﴾ مونږ ته خو د مقابلې دپاره د خپل خاندان قریشو سړی پکار دی، رسول الله ﷺ او مسلمانانو دا ټول منظر لیدلو، پس هغه وې فرمائیل: ﴿ قم یا حمزة، قم یا علی، قم یا عبیدة ابن الحارث ﴾ پس دا درې واړه حضرات میدان ته راغلل چونکه مقابله فردا فردا وه په دې وجه سیدنا حمزه رضی الله عنه د عتبه طرف ته متوجه شو، علی رضی الله عنه فرمائی چه زه د شیبة طرف ته متوجه شوم (دې دواړو خو خپل مقابل الحمد الله ختم کړل) وړاندې علی رضی الله عنه فرمائی ه د عبیده او د هغه د مقابل ولید ترمینځه مقابله اوشوه، هر یو بل له زخمی کړو (مونږ چونکه فارغ شوې وو نو مائل شو د ولید طرف ته) او هغه مو قتل کړو، او خپل ملګرې عبیده مو د میدان نه راوچت کړلو، حافظ لیکلې دی چه دا د ټولو نه اولنئ مبارزه ده کومه چه په اسلام کښې پیښه شوې ده، ابن قدامه په جواز مبارزه باذن الامام کښې دا واقعه هم پیش کړې ده د دې نه علاوه هم بعض نور مثالونه د دې لیکلې شوې دی چه د هغې نه په بعض کښې د امام اذن هم ثابت نه دې، که څوک غواړی هلته دې اوګوری، د حدیث الباب نه معلومیږی چه مبارزه باذن الامام او بغیر د اذن الامام دواړه جائز دی لکه چه دا د جمهورو مسلک دې، ځکه چه د حمزه او علی مبارزه خو بالاذن وه خو د انصارو مبارزه بغیر د امام د اذن نه وه، لم ینکر علیهم النبی صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ، قاله الخطابی، دلته یوه مسئله بله اختلافی ده، هغه دا چه د مبارز اعانت جائز دې یا نه؟ د قیاس تقاضه خو دا ده چه جائز نه وی ځکه چه مقابله د کافر سره ده، پس د امام اوزاعی او سحنون مالکی په نزد دا اعانت مکروه دې. لکن عند الجمهور تجوز لهذا الحدیث. (اوجز) په

دي حديث باندې منذري سكوت كړې دې او د دې تخريج ئې نه دې كړې، په صحيح بخاري كښې مختصرادا دی، قيس بن عباد فرمائي چه دا آيت كريمه ﴿ هذان خصمان اختصموا فی ربهم ﴾ د هغه خلقو په باره كښې نازل شوې دې چا چه په جنګ بدر كښې مبارزه كړې وه، حمزه او علي او عبيد. اهـ فتح الباري (ص ۴۶ ج ۷) كښې حافظ ليكي چه په دې روايت كښې د مبارزه تفصيل نه دې ذكر شوې او بيا د دې نه روستو حافظ د سيرة ابن اسحاق وغيره نه د دې مبارزې تفصيل ذكر كړې دې.

## بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ الْمُثْلَةِ

### په جنګ كښې د غوږاو پوزې وغيره د پريكولو د ممانعت بيان

﴿ مثله ﴾ اسم مصدر دې، د دې مصدر ﴿ مثل ﴾ دې، يقال مثلت بالحيوان مثلا بالقتيل، او ﴿ مثلت ﴾ بالتشديد د مبالغې دپاره دې، يو انسان يا حيوان په بده طريقه قتل كول، اندامونو لره جدا جدا كولو سره، خو په روايت كښې مجردا راغلي دې. (مجمع البحار)

مثله د اسلام په ابتداء كښې جائز وه روستو په دې باندې نهی راغله او د دې جواز منسوخ شو لكه چه د احاديث الباب نه به معلومه شي.

[٢٦٦٦](1)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، وَزِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، قَالَا: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا مُغِيرَةُ، عَنْ شِبَاكٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ هُنَيِّ بْنِ نُوَيْرَةَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعَفُّ النَّاسِ قِتْلَةً أَهْلُ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** علقمه دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت كوی فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی: چه په بهترين طريقې سره قتل كونكی مومنان دي.

**تشريح:** ﴿ اعف الناس قتلة اهل الايمان ﴾ يعنی په قتل كولو كښې د ټولو نه زيات عفيف او محتاط اهل ايمان وی په دې حديث كښې ګويا اشاره ده دې خبرې طرف ته چه اهل ايمان د چا په قتل كولو كښې مثله نه كوی او د دې نه په روستو حديث كښې د مثله نه صراحة نهی راغلې ده. ﴿ كان نبی الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يحثنا على الصدقة وينهانا عن المثلة ﴾ يعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم به مونږ ته د صدقې ترغيب راكولو او د مثله كولو نه به ئې منع كولو او په در مختار كښې دی چه مثله ممنوع ده

[٢٦٦٧](2)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنِ الْهَيَّاجِ بْنِ عِمْرَانَ، أَنَّ عِمْرَانَ أَبَقَ لَهُ غُلَامٌ، فَجَعَلَ لِلَّهِ عَلَيْهِ لَئِنْ قَدَرَ عَلَيْهِ لَيَقْطَعَنَّ يَدَهُ، فَأَرْسَلَنِي لِأَسْأَلَ لَهُ، فَأَتَيْتُ سَمُرَةَ بْنَ جُنْدُبٍ فَسَأَلْتُهُ، فَقَالَ: كَانَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحُثُّنَا عَلَى الصَّدَقَةِ وَيَنْهَانَا عَنِ الْمُثْلَةِ، فَأَتَيْتُ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحُثُّنَا عَلَى الصَّدَقَةِ وَيَنْهَانَا عَنِ الْمُثْلَةِ.

**ترجمه:** دهياج بن عمران نه روايت دې چه دده دپلار عمران غلام او تختيد ونوده دالله تعالی

(1): سنن ابن ماجه/الديات ٣٠ (٢٦٨٢)، (تحفة الأشراف: ٩٤٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٣/١) (ضعيف)

(2): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٦٣٧، ١٠٨٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٨/٤، ٤٢٩)، سنن الدارمي/الزكاة ٢٤ (١٦٩٧) (صحيح)

په نوم نذر او منلو که چرې زه ددې غلام په نیولو قادرشوم نودده لاس به پرېکړم، بیاعمران زه سمره بن جندب ته اولیږلم چه دده دپاره ترې مسئله معلومه کړم نومادهغه نه تپوس اوکړوهغه ووئیل چه نبی ﷺ به مونږ ته دصدقې ورکولوترغیب راکولواو دمثلې کولونه به ئې منع کولونوزه عمران بن حصین ته واپس راغلم اوتپوس مې ترې اوکړوددې حدیث متعلق نوهغه (دمذکوره روایت په تصدیق کښې)ووئیل یقینا چه نبی ﷺ به مونږ ته دصدقې ورکولوترغیب راکولواودمثلې کولونه به ئې منع کولو.

**تشریح:** اوپه در مختار کښې دی چه مثله ممنوع ده د کفارو سره بعد الظفر بهم واما قبله فلا باس بها.یعنی د یو کافر مثله کول په هغه باندې د قابو موندلو نه پس ناجائز ده، او د قابو موندلو نه مخکښې په هغه باندې د قابو موندلو دپاره چه هر څنګه ممکن وی هغه قتل کولی شی، په دې باندې علامه شامی رحمه الله فرمائی: قال الزیلعی : وهذا حسن ونظیره الاحراق بالنار... یعنی د احراق بالنار حال هم دغه شان دې چه د یو کافر سوزول په هغه باندې د قابو موندلو نه پس ناجائز دې،او دقابو موندلو نه مخکښې جائزدې.کولې شی،دتعذیب بالاحراق مسئله مستقل راروانه ده،حدیث عبدالله اخرجه ابن ماجة،قاله المنذری،وحدیث سمرة سکت علیه المنذری.

## بَابٌ فِي قَتْلِ النِّسَاءِ

### په جنګ کښې د ښځود وژلو د ممانعت بیان

په جهاد کښې د زنانو، ماشومانو او شیخ فانی قتل کول جائز نه دی، فقهاء احنافو د دې تصریح کړې ده خو په بعض صورتونو کښې ئې قتل کول جائز دی هغه دا چه دا زنانه یا ماشوم په قتال کښې شریک وی یا هغه زنانه د مشرکانو مشره وی، هم دغه شان صبی مالک، او هم دغه شان هغه شیخ فانی کوم چه تجربه کار او د رائې خاوند وی څکه چه منقول دی چه رسول الله ﷺ حکم کړې وو د درید بن الصمة د قتل په غزوه حنین کښې د هغه د ذو رائې کیدو د وجې نه، حال دا چه د هغه عمر یو سل او شل کاله وو، خو په دې کښې د امام مالک او امام اوزاعی اختلاف دې د هغوی په نزد د نساء او صبیان قتل مطلقًا ناجائز دې، د داسې شیوخ په باره کښې د شوافعو اختلاف دې کوم چه په راروان حدیث کښې راتلونکې دې، تردې چه که مشرکان خپلې زنانه او بچی د ډهال په طور استعمالوی نو بیا هم په هغوی باندې غشی ورول جائز نه دی، حتی لو تترس اهل الحرب بالنساء والصبیان لم یجز رمیهم. (کذافی الابواب والتراجم ص ۱۱۶ ج ۴ عن الحافظ)

[۲۶۶۸] (۱) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ، وَقُتَيْبَةُ يَعْنِي ابْنَ سعيدَ قَالَا: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ امْرَأَةً وُجِدَتْ فِي بَعْضِ مَغَازِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقْتُولَةً، فَأَنْكَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَتْلَ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ".

---

(۱): صحیح البخاري/الجهاد ۱۴۷ (۳۰۱۴)، صحیح مسلم/الجهاد ۸ (۱۷۴۴)، سنن الترمذي/الجهاد ۱۹ (۱۵۶۹)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۳۰ (۲۸۴۱)، (تحفة الأشراف: ۸۲۶۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجهاد ۳ (۹)، مسند احمد (۲/۱۲۲، ۱۲۳)، سنن الدارمي/السير ۲۵ (۲۵۰۵) (صحيح)

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دي چه دنبی ﷺ په بعضي غذاګانو کښي يوه قتل شوي ښځه اوموندلي شوه نو نبی ﷺ بد اوګنړل وژل دښځو او ماشومانو په جنګونو کښي.

[۲۶۶۹](١) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ الْمُرَقَّعِ بْنِ صَيْفِيِّ بْنِ رَبَاحٍ قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّهِ رَبَاحِ بْنِ رَبِيعٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ فَرَأَى النَّاسَ مُجْتَمِعِينَ عَلَى شَيْءٍ، فَبَعَثَ رَجُلًا فَقَالَ: انْظُرْ عَلَامَ اجْتَمَعَ هَؤُلَاءِ؟ فَجَاءَ فَقَالَ: عَلَى امْرَأَةٍ قَتِيلٍ، فَقَالَ: مَا كَانَتْ هَذِهِ لِتُقَاتِلَ قَالَ: وَعَلَى الْمُقَدِّمَةِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ، فَبَعَثَ رَجُلًا فَقَالَ: قُلْ لِخَالِدٍ لَا يَقْتُلَنَّ امْرَأَةً وَلَا عَسِيفًا.

**ترجمه**: درباح بن ربیع رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه مونږ د نبی ﷺ سره په يوه غزوه کښي شريك وو نوخلق ئې اوليدل چه په يوشی باندې جمع كيدل نويوكس ئې اوليږلو چه لاړ شه چه داخلق دڅه دپاره راجمع شوي دي نوهغه كس لاړو كله چه واپس راغې نووئې وئيل د يوې ښځې په مړي باندې نبی ﷺ اوفرمائيل داخو نه جنګيدله نودا ولي قتل شوي ده خلقو اووئيل دفوج په مخكنۍ حصه كښي خالد بن وليد دي نونبی ﷺ ورته يوكس وروليږلو او ورته ئې اووئيل خالد ته اووايه چه ښځې او مزدور مه وژنه.

**تشريح**: ﴿كنا مع رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فى غزوة الخ﴾ رباح بن ربیع رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله ﷺ په يوه غزوه كښي وو (فتح مكه) هغه بعض خلق يوځائې كښي راجمع شوى اوليدل، نو يو سړي ئې ور اوليږو چه اوګورى چه دا خلق ولي مجتمع دى، هغه راغلو او جواب ئې وركړو چه يوه كافره مقتوله پرته ده نو وې فرمائيل ﴿ما كانت هذه لتقاتل﴾ چه زنانه خو قتال نه كوى، مطلب دا چه بيا دا قتل ولې كړې شوه؟ د دې نه معلومه شوه كه زنانه قتال كوى نو د هغې قتل كول جائز دى لكه چه جمهور وائى خلافا للامام مالک، قاله الحافظ.

﴿قل لخالد لا يقتلن امراة ولا عسيفا﴾ عسيف يعنى اجير او خادم كوم چه د مجاهد سره د هغه د خدمت دپاره وى، د اجير په باره كښي حضرت په بذل كښې دا ليكلي دى چه ﴿لم ار له ذكر فى كتب فقه الاحناف﴾ زه وايم چه په مغنى المحتاج شرح المنهاج ص ۲۲۳ ج ۴ كښې د شوافعو په دې كښې دوه روايتونه ليكلي دى جواز قتل او عدم جواز، ولفظه: ويحل قتل راهب واجير وشيخ واعمى وزمن لا قتال فيهم ولا راى فى الاظهر... او د دې په شرح كښې دى لعموم قوله تعالى: اقتلوا المشركين، والثانى المنع لانهم لا يقاتلون فاشبهوا النساء والصبيان.

[۲۶۷۰](٢) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْتُلُوا شُيُوخَ الْمُشْرِكِينَ وَاسْتَبْقُوا شَرْخَهُمْ".

---

١): سنن ابن ماجه/الجهاد ٣٠ (٢٨٤٢)، (تحفة الأشراف: ٣٤٤٩، ٣٧٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٨٨/٣، ١٧٨/٤، ٣٤٦) (حسن صحيح)

٢): سنن الترمذي/السير ٢٩ (١٥٨٣)، (تحفة الأشراف: ٤٥٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢/٥، ٢٠) (ضعيف)

**ترجمه:** د سمره بن جندب رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی علیه السلام فرمائيلي دي د مشرکينو بوډاګان (چه کوم د جنګ قابل وی) قتل کړئ او د کمو عمرونو والا باقی پريږدئ.

## شرح حديث او مذاهب ائمه

شرخ د شارخ جمع ده يعنی ماشوم، د دې حديث نه د شيوخ او صبيان د حکم ترمينځه فرق مستفاد کيږی چه د اول قتل جائز دې او د دويم ناجائز خو د احنافو او مالکيانو په نزد د دواړو حکم يو شان دې لکه چه مخکښې هم تير شو، يعنی عدم جواز، لهذا حديث د احنافو او مالکيانو خلاف شو، او د شوافعو موافق شو په دې وجه د هغوی قول اصح جواز قتل شيوخ دې لکه چه اوس د مغنی المحتاج نه پورته تير شو، وکذا قال النووی، زمونږ د طرف نه د حديث جواب دا دې چه د شيخ استعمال کله د شاب په مقابله کښې وی او کله د صغير او صبی په مقابله کښې، لکه چه دلته په حديث کښې د صغير په مقابله کښې شوې دې او کله چه د شيخ استعمال د صغير په مقابله کښې وی نو د دې نه مراد شاب وی، لهذا مطلب دا شو چه د مشرکانو مشرانو لره يعنی ځوانان به قتل کولې شی، او ماشومان به نه شی قتل کولې، دا خبره مشهوره ده چه د شيخ اطلاق کله په کبير يعنی بوډا او ضعيف باندې کيږی، او کله د دې اطلاق په کامل فی الرجولية باندې يعنی ځوان او بهادر او کله په کامل فی العلم يعنی استاد او ماهر فی العلم باندې کيږی، او زمونږ دليل د سيدنا انس رضی الله عنه هغه مرفوع حديث دې کوم چه په "باب فی دعاء المشرکين" کښې تير شوې دې "لا تقتلوا شيخا فانيا، ولا طفلا ولا صغيرا ولا امراة الحديث وفی الاوجز ص ۱۷ ج ۴ قوله : ولا صبيا ولا كبيرا هرما، قال الباجی يريد الشيخ الهرم الذی بلغ من السن ما لا يطيق القتال ولا ينتفع به فی رای ولا مدافعة، فهذا مذهب جمهور الفقهاء ان لا يقتل، وبه قال ابو حنيفه ومالک، وللشافعی قولان احدهما مثل قول الجماعة، والثانی يقتل، والدليل علی ما نقوله قول ابی بكر هذا، ولا مخالف له فثبت انه اجماع. اهـ په دې کښې د حنابله مذهب رانغلو، هغه هم په دې کښې د جمهورو سره دې ففی شرح العمدة ص ۵۸۹ ولا يقتل منهم صبی ولا مجنون ولا امراءة ولا راهب ولا شيخ فان ولا زمن ولا اعمی، ولا من رای لهم، الا ان يقاتلوا الخ، حديث عبدالله بن عمر اول حديث الباب اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی واما حديث رباح بن ربيع فاخرجه النسائی وابن ماجة والحديث الثالث حديث سمرة بن جندب اخرجه الترمذی، قاله المنذری.

[۲٦۷۱](1)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: لَمْ يُقْتَلْ مِنْ نِسَائِهِمْ تَعْنِي بَنِي قُرَيْظَةَ إِلَّا امْرَأَةٌ إِنَّهَا لَعِنْدِي تُحَدِّثُ تَضْحَكُ ظَهْرًا وَبَطْنًا، وَرَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يقتل رجالهم بالسيوف، إذ هتف هاتف

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٣٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٧/٦) (حسن)

باسمها أين فلانة؟ قَالَتْ: أَنَا، قُلْتُ: وَمَا شَأْنُكِ؟ قَالَتْ: حَدَثٌ أَحْدَثْتُهُ، قَالَتْ: فَانْطَلَقَ بِهَا فَضُرِبَتْ عُنُقُهَا فَمَا أَنْسَى عَجَبًا مِنْهَا أَنَّهَا تَضْحَكُ ظَهْرًا وَبَطْنًا وَقَدْ عَلِمَتْ أَنَّهَا تُقْتَلُ".

**ترجمه:** دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه دبنی قريظه په ښځو کښې يوه هم نه ده وژل شوې مګر يوه ښځه چه ماسره به کيناستله او داسې خبرې به ئې کولې توقې اوخندل به ئې چه په خيته او ملا کښې به ئې غوټې جوړې شوې اونبی عليه السلام به ددوی سړی په تورو قتلول تردې پورې چه يو آواز کونکی ددې نوم واخستو او آواز ئې اوکړو چه فلانی چرته ده؟ هغې اووئيل زه دلته يم ماورته اووئيل په تاڅه شوي دي يعنی تاته ولې آوازونه کيږی تاڅه نقصان کړې دې هغې اووئيل ما يونوې کار کړې دې ام المومنين حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه دغه آواز کونکی دا ښځه بوتله او ددې څټ ئې اووهلو دهغه وخت تعجب زه اوس هم نه هيروم کوم چه به ماته دهغې په هرحالت کښې دخندلو په وجه وو، چه دهغې په شا اوخيته کښې به ښنې چاودی جوړشو، حالانکه هغې ته معلومه وه چه زه به اوس قتل کيږم

## شرح حديث

په دې حديث کښې د قتل بنو قريظه ذکر دې کومه چه مشهوره واقعه ده، رسول الله صلى الله عليه وسلم د يهود بنی قريظه رجال قتل کړې وو او زنانه او ماشومان ئې قتل کړې وو، خو يوه زنانه چه د هغې ذکر سيده عائشه رضي الله عنها فرمائی، هغه فرمائی چه د يهود بنو قريظه يوه زنانه (قيل اسمها نباتة) ما سره ئې خبرې کولې او د خبرو کولو په وخت ئې داسې خندل چه ډير زيات! لکه خلق وائی د خندا نه شنه وه، حال دا چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغوی سړی بهر قتل کول، هم په دې دوران کښې يو اواز کونکی د هغه زنانه نوم واخستلو چه ﴿اين فلانة﴾ هغې اووې ﴿ انا ﴾ يعنی او! زه موجود يم، عائشه رضي الله عنها فرمائی ما د هغې نه تپوس اوکړو چه څه خبره ده؟ (تاته ولې اواز کوی؟) نو هغې اووې چه ﴿ حدث احدثته ﴾ چه ما يو حرکت کړې دې، هغه فرمائی چه هغه زما د خوا نه بوتلې شوه او د هغې سټ اووهلې شو، عائشه رضي الله عنها فرمائی چه زه په دې باندې هميشه تعجب کوم چه هغه دومره بې اختياره کيدو سره خاندی حال دا چه هغې ته معلومه وه چه زما د قتل نمبر راتلونکې دې) وئيلې شوې دی چه هغه زنانه خلاد بن سويد رضي الله عنه قتل کړې وو، کمبختې په هغه باندې د جرند پل راګزار کړې وو، وقيل کانت شتمت النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، د شاتم نبی صلى الله عليه وسلم مسئله مونږ سره دلته په کتاب الحدود کښې د يو باب د لاندې ان شاء الله راشی، او په بذل کښې دلته ذکر شوې ده، کتلې ئې شئ.

[۲۶۷۲]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ الصَّعْبِ ابْنِ جَثَّامَةَ، أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الدَّارِ مِنَ الْمُشْرِكِينَ يُبَيَّتُونَ فَيُصَابُ مِنْ ذَرَارِيِّهِمْ وَنِسَائِهِمْ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هُمْ مِنْهُمْ"، وَكَانَ عَمْرٌو يَعْنِي ابْنَ دِينَارٍ يَقُولُ: هُمْ مِنْ آبَائِهِمْ، قَالَ الزُّهْرِيُّ: ثُمَّ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ "عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ".

**ترجمه:** ابن عباس رضي الله عنه دصعب بن جثام رضي الله عنه نه روایت کوی فرمائی چه دنبی عليه السلام نه مې تپوس اوکړو په باره د مشرکانو دکورونو کښې چه دشپې په دوی باندې حمله اوکړې شي اودحملې په وخت کښې ددوی ښځې او ماشومان قتل کړې شي نبی عليه السلام اوفرمائیل هغوی هم ددوینه دی عمرو بن دینار اووئیل چه دوی د خپلو پلارونو اولاد دې زهري وائی بیاددې نه پس نبی عليه السلام منع اوفرمائیله دقتل کولودښځو او ماشومانونه.

## شرح حدیث

د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو د مشرکانو د اهل خانه په باره کښې چه په هغوی باندې د شپې حمله کولې شي او په هغه حمله کښې د هغوی زنانه او ماشومان قتل کړې شی، د سوال حاصل دا دې چه د مشرکانو د زنانو ا ود هغوی د بچو د قتل خو اصالة ممانعت دې، او د شپې په جنګ کښې ظاهره ده چه د زنانو او د ماشومانو د قتل کیدو قوی امکان دې، نو د رسول الله ﷺ نه د دې حکم اوتپوسلې شو نو هغه په جواب کښې اوفرمائیل : ﴿ هم منهم ﴾ یعنی د مشرکانو زنانه او ماشومان په دې صورت کښې د رجال مشرکین په حکم کښې دی، یعنی ممانعت خو بالقصد د هغوی د وژلو نه دې ﴿ قال الزهری ثم نهی رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴾ زهری د حدیث راوی فرمائی چه بیا روستو رسول الله ﷺ د زنانو او ماشومانو د قتل نه منع اوفرمائیله، دا د زهری خپله رائې ده، د زنانو او ماشومانو د قتل نه ممانعت خو د مخکښې نه دې هم په دې وجه سائل ته د سوال ضرورت راپیښ شو ، خو د دې نه معلومیږی چه ممانعت اګر چه دې خو په دې صورت کښې نشته، بلکه دا صورت معفو عنه دې. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[الحمد لله پنځم جلد ختم شو]

[1]: صحيح البخاري/الجهاد ١٤٦ (٣٠١٢)، صحيح مسلم/الجهاد ٩ (١٧٨٥)، سنن الترمذي/السير ١٩ (١٥٧٠)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٣٠ (٢٨٣٩)، (تحفة الأشراف: ٤٩٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨/٤، ٧١، ٧٢، ٧٣) (صحيح)